د انصاري دزمكې طرف ته پريږده اصل صورت حال دا وو چه غريزه ناله د كوم ځائی نه راتلله هلته مخكښې د حضرت زبير ﷺ زمكه وه شاته د انصاري زمكه وه د قاعده مطابق د حضرت زبير ﷺ زمكه د پولود سرونوپورې د اوبونه دكيدونه پس د انصاري نمبر راځي ليكن حضورپاك د حسن اخلاق او مروت د وجې نه حضرت زبير ﷺ ته اوفرمائيل چه صرف خپل پټی ته اوبه وركړه بيا د انصاري طرف ته اوبه ورپريږده
ليكن چه كله انصاري د حضورپاك فيصلې ته د شك په نظر سره اوكتل او په هغې باندې اعتراض اوكړو نوبيا حضورپاك د قاعده مطابق حضرت زبير ﷺ ته د هغه پوره حق وركړو او فيصله ئې واوروله

**[۲۹۹٤] دَ ضرورت څخه د زياتو اوبو راښندولو ممانعت**

—[۲] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا تَمْنَعُوا فَضْلَ الْمَاءِ [۳] لَا تَمْنَعُوا بِهِ فَضْلَ الْكَلَأِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايې [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل كومې اوبه چې ستاسو د ضرورت څخه زياتې وي هغه مه منع كوئ [۳] چې د دې په وجه د ضرورت څخه زيات د وښو څخه منع كول لازم نشي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْكَلَأ: گيا ، واښه،

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَمْنَعُوا فَضْلَ الْمَاءِ

**په حديث كښې د يوې حيلې سد باب:** - دَدې حديث تشريح اوتوضيح "باب المنهى عنها من البيوع" حديث نمبر (۲۸۵۹) لاندې ليكلې شوې دې. خلاصه دا چه پخپله راټوكيدونكو وښوكښې په وجه د ضرورت چونكه ټول مسلمانان شريك دی اوس يوسړې نيغ په نيغه د وښونه خو رامنع كولې نه شی دَدې دپاره هغه دا حيله كوی چه د څرن ځائی سره د هغه كومې اوبه وی هغه د دغه اوبو نه خلق منع كوی. كله چه اوبه څناوروته نه ملاويږی نوهلته به د څرن دپاره څوك څناور راولی. دغه شان حيله كولوسره دا سړې د وښونه منع كول غواړی. حضورپاك اوفرمائيل چه داسې مه كوئی كه چرې زياتې اوبه وی نوهغه مه منع كوئی. هلته كه چرته اوبه د خپل ضرورت نه زياتې نه وی هغه جدا خبره ده ليكن د ضرورت نه زياتې اوبه منع كولوسره د ضرورت نه زياتی واښه منع كول ډير زيات نامناسب دی.

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب من قال: إن صاحب الماء أحق بالماء حتى يروى لقول النبي صلى الله عليه وسلم: «لا يمنع فضل الماء» (رقم-۲۳۵٤) ومسلم في المساقاة/باب تحريم بيع فضل الماء الذي يكون بالفلاة ويحتاج إليه لرعي الكلأ، وتحريم منع بذله، وتحريم بيع ضراب الفحل (رقم-۳۷ - (۱۵۶۶))

**[۲۹۹۵] دري قسمه خلقو سره دالله تعالى خبري نه کول**

۲۹۹۵-[۵] (۱) ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ: ③ رَجُلٌ حَلَفَ عَلَى سِلْعَةٍ لَقَدْ أُعْطِيَ بِهَا أَكْثَرَ مِمَّا أُعْطِيَ وَهُوَ كَاذِبٌ ④ وَرَجُلٌ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ، ⑤ وَرَجُلٌ مَنَعَ فَضْلَ مَاءٍ، ⑥ فَيَقُولُ اللهُ: الْيَوْمَ أَمْنَعُكَ فَضْلِي كَمَا مَنَعْتَ فَضْلَ مَا لَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَذُكِرَ حَدِيثُ جَابِرٍ فِي بَابِ الْمَنْهِيِّ عَنْهَا مِنَ الْبُيُوعِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ② دري سړي داسې دي چې د قيامت په ورځ به الله جل جلاله دهغو سره (د رحم وکرم) خبره ونه کړي او نه به د هغوئ طرف ته د (مهرباني په نظر) وګوري، ③ يو خو هغه تاجر سړی دی چې قسم اخستو سره (خريدار ته) وايي چې د دې شي قيمت تا راکړي دي، د دې څخه زيات قيمت ما ته حاصليدی (يعني هغه چې خپل څه څيز خرڅوي نو قسم اخستو سره وايي چې د دې څخه زيات قيمت ما ته حاصليدلی) حالانکه هغه سړی (په خپل قسم کې) دروغجن وی (څکه چې درحقيقت د دی څخه زيات قيمت هغه ته نه حاصليدی) ④ دويم سړی هغه دی چې د مازيګر څخه وروسته د دروغو قسم واخلي او د دې (دروغ قسم) مقصد د يو مسلمان سړي (يا ذمي) څه مال اخستل وي ⑤ او دريم هغه سړی دی چې د زياتو اوبو څکلو څخه خلق منع کوي ⑥ داسې سړي ته به الله جل جلاله د قيامت په ورځ وفرمايي چې څنګه تا په دنيا کې د زياتو اوبو څخه خلق منع کړي وو باوجود د دې چې هغه اوبه خو تا په خپل لاس سره نه وي راښکلي، دغه شان نن زه هم تا د خپل فضل څخه لرې کوم، (بخاري)

**حل اللغات:** - ① سِلْعَةٍ: نرخ، قيمت، ② لِيَقْتَطِعَ: چه قبضه کړی، واخلی، ③ لَمْ تَعْمَلْ: تا عمل او محنت نه وو کړي

**تسهيلات: قوله: بَعْدَ الْعَصْرِ:**

**د مازيګر څخه روسته د قسم خوړلو وجه:** - دَ مازيګروخت چونکه دَ ډير تقدس او عظمت حامل دي په دې وجه قسم کښې هم عظمت راځی

**قوله: مَا لَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ:**

**د اوبو منع کولو وعيد:** - يعنی چه داسې قدرتی څيز رامنع کوی کومه چه ستا دَ لاس ګټه نه ده بلکه دَ الله تعالی يوعام نعمت دي ته دا ولې دَخلقو نه منع کولې. ستادَي جرم دَ وجې

---

۱ ) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة /باب من رأى أن صاحب الحوض والقربة أحق بمائه (رقم-۲۳۶۹) ومسلم في كتاب الإيمان /باب بيان غلظ تحريم إسبال الإزار، والمن بالعطية، وتنفيق السلعة بالحلف، وبيان الثلاثة الذين لا يكلمهم الله يوم القيامة، ولا ينظر إليهم، ولا يزكيهم ولهم عذاب أليم (رقم-۱۷۱ - (۱۰۶) واخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة /باب في منع الماء (رقم-۳۴۷۴) والنسائي في كتاب البيوع /باب الحلف الواجب للخديعة في البيع (رقم-۴۴۶۲) وابن ماجه في كتاب التجارات /باب ما جاء في كراهية الأيمان في الشراء والبيع (رقم-۲۲۰۷) واحمد في المسند: ۲۵۳/۲

نه نن د قيامت په ورځ تا نه خپل رحمت را منع کوم او تا به د خپل فضل نه منع ساتم

**قوله: وَذُكِرَ حَدِيثُ جَابِرٍ:** ددې حديث تشريح دې نه مخکښې شوې ده هلته کتل پکار دی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۹۹۶] د شاميلاتی زمکې په حد بندۍ کولو د ملکيت راتلل

[۲۹۹۶]-(۱) [۱] عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «مَنْ أَحَاطَ حَائِطًا عَلَى الْأَرْضِ فَهُوَ لَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] جناب حسن بصري رحمه الله د حضرت سمره رضي الله عنه څخه نقل کوي او هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه نقل کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] کوم سړی چې د شاړې زمکې سره ديوار را اوګرځولو نو هغه د هغه شي، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - (۱) حَائِطًا: ديوال.

**تسهيلات:**

**قوله: أَحَاطَ:**

**د شاميلات د زمکې څخه د ديوال راتاوولو حکم:** - يعنی يوه لرې غير آباده زمکه ده د هغې نه ګيرچاپيره چاديوال جوړ کړو نو ددې حديث مطابق به هغه زمکه د ګيرونکی سړی شوه دا حديث او ددې باب رومبې حديث مفهوم هم يو دې چه ارض موات ناچاپيره ديوال جوړ کړو هغه د احياء موات په حکم کښې ده زمکه به هم د هغه وی ليکن باقی درې ائمه فرمائی چه د احياء موات د پاره ضروری دی چه دغه زمکه آباده کړې شی صرف په ديوال جوړولو سره آباديږی نه لهذا زمکه به د هغه نه وی. په دې حديث کښې د اوسيدو او آبادولو په غرض سره ديوال جوړول مراد دې صرف د راګيرولو د پاره مراد نه دې

### [۲۹۹۷] زبير رضي الله عنه ته د جاګير په طور شاړه زمکه ورکول

[۲۹۹۷]-(۲) [۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَقْطَعَ لِلزُّبَيْرِ نَخِيلًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لور بي بي اسماء رضي الله عنها وايي [۲] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت زبير رضي الله عنه د پاره د کجورو وَنې په طور د جاګير ورکړې وې، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - (۱) أَقْطَعَ: ورکړې وه

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء / باب فی إحياء الموات(رقم-۳۰۷۷) واحمد فی المسند: ۲۱/۵

۲) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء / باب فی إقطاع الأرضين(رقم-۳۰۶۹)

تسهيلات:

قوله: اقطع للزبير نخيلا:

**حضرت زبیر ته د کجورو ونو ورکولو کښې دوه احتمالات:-**

① يعنى حضورپاك حضرت زبير ﷺ ته جاگيرد کهجورو ونې ورکړې. په دې کښې حضرت زبير ﷺ ته دا ونې د مال خمس نه ورکړې وو

② حضورپاك هغه ته افتاده شاړه زمکه د جاگیرپه توگه د آبادولو دپاره ورکړې وی

**[۲۹۹۸] ابن زبیر ته د جاګیر ورکولو حکم**

۲۹۹۸—[۸] (۱) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ② «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَقْطَعَ لِلزُّبَيْرِ حُضْرَ فَرَسِهِ③ فَأَجْرَى فَرَسَهُ حَتَّى قَامَ④ ثُمَّ رَمَى بِسَوْطِهِ⑤ فَقَالَ: أَعْطُوهُ مِنْ حَيْثُ بَلَغَ السَّوْطُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عمر ﷺ وايي② چې رسول الله ﷺ حضرت زبير ﷺ ته د هغه د آس د زغليدو په قدر زمکه په طور د جاگير ورکړله (يعني يو زغل کې چې آس تر کوم ځايه رسيدو سره ودريږي، د هغه پې زمکه ورته ورکړه)③ نو (د دې مقصد د پاره) حضرت زبير ﷺ خپل آس وزغلولي او هغه آس (يو ځای ته د رسيدو سره) ودريدلو،④ بيا حضرت زبير ﷺ خپله دُره وويشتله،⑤ د دې څخه وروسته حضور ﷺ وفرمايل چې د زبير ﷺ دُره چې په کوم ځاي کې ولويده د هغه پورې دی زمکه زبير ﷺ ته ورکول شي، (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ①حُضْرَ: حضرواحضار د اس منډې ته وائي. ②السَّوْطُ: دُوره،

**تسهيلات: قوله:** حُضْرَ فَرَسِهِ:

**د حضر موټ مصداق او د حديث پس منظر:-** يعنى حضورپاك حضرت زبير ﷺ ته دهغه د اس د منډې په مقدار باندې جاگيرورکړو. يعنى په يوخل چه يوشان اس ترکومې پورې په زمکه کښې منډه اووهی دهغه ځائی پورې زمکه به دهغه شي اوکوم ځائی چه اس اودريدو هم هلته به دغه ورکړه ختمه شي. نود حضرت زبير ﷺ اس چه تر کومې پورې ستړې کيدوسره اودريدو نو حضورپاك دهغه ځائی نه خپله همسا وراندې دهغه ځائی پورې اوغورزوله حضورپاك اوفرمائيل چه ده له د وراندې ځائی پورې ورکړئی ترکوم ځائی پورې چه همسارسيدلې ده داهم د لرې شاړې زمکې د جاگيرمعامله ده.

**قوله:** حُضْرَ فَرَسِهِ:

**د اس د منډې په مقدار زبیررضی الله عنه ته زمکه ورکول:-** ديته د اسونو منډه وئيلې

---

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/ باب في إقطاع الأرضين(رقم-٣٠٧٢) واحمد في المسند: ١٥٦/٢

كيږي يعني نبي عليه السلام حضرت زبير رضي الله عنه ته د هغه د اس د منډي هومره زمكه وركړه چنانچه كوم ځائي پورې چه د حضرت زبير رضي الله عنه اس ستړې شو او اودريدو بيا چه هغه ځائي نه تر كوم ځائ پورې تير اورسيدو نو تر هغه ځائي پورې د ده هغه جائيداد شو

**[۲۹۹۹] وائل بن حجر رضي الله عنه ته د جاګير په طور شاره زمكه وركول**

۲۹۹۹—[۹] (۱) ① «وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ عَنْ أَبِيهِ ② أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَقْطَعَهُ أَرْضًا بِحَضْرَمَوْتَ، ③ قَالَ: فَأَرْسَلَ مَعِي مُعَاوِيَةَ قَالَ: أَعْطِهَا إِيَّاهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت علقمه ابن وائل د خپل پلار (حضرت وائل ابن حجر رضي الله عنه) څخه نقل كوي ② چې رسول الله ﷺ وائل ابن حجر رضي الله عنه ته په حضرموت كې څه زمكه په طور د جاګير عطا كړه، ③ نو حضرت وائل رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ حضرت معاويه رضي الله عنه زما سره وليږلي چې هغه د هغه زمكي پيمايش وكړي او معاويه رضي الله عنه ته يې وفرمايل چې هغه زمكه (ناپ كولو سره) وائل ته وركړه.

**تسهيلات:**

**قوله: بِحَضْرَمَوْتَ:**

**حضرموت محل وقوع:**- دَ جبل السراة يوه سلسله دَ يمن سره تيريږي اودَجزيرة العرب جنوب مغربي كونې سره مشرق طرف ته تاويږي. بيا جنوبي ساحل سره نيزدې ترلرې پورې تلې ده. دَ جبل السراة هم دغه كوهستاني ريګستاني سلسله چه په كومو علاقو باندې مشتمل ده هغې ته حضر موت ونيلې شي. په دغه كوهستاني علاقوكښې هيڅ يوځائي دَ كر قابل نشته دې. خوبعض واديانې داسې دی چه دَ كروندې قابل دی. هم په دې كښې يو وادی حضرموت دې.

**د وائل بن حجر اسلام راوړل:**- حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه هم دَدې علاقې دَ پخواني شاهي خاندان اولاد وو. دَ دوی پلار دَ هغه ځائي بادشاه وو. كله چه وائل بن حجر رضي الله عنه دَ اسلام قبلولودَپاره دَ هغه ځائي نه روان شو نوحضورپاك په ډيره خوشحالئي سره صحابه كرامو ته دَهغه دَ راتګ خبر وركړو او بيا ئې دَ هغه په راتلوباندې استقبال اوكړو اوخپل څادر ئې ورته خوركړواوخپل ځان سره ئې نيزدې كينولو. اوبيا دې دَ حضرموت حاكم مقرركړو اوڅه جاګير ئې وركړو. په دې حديث كښې هم دَ دغې حقيقت بيان دې.

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/ باب في إقطاع الأرضين (رقم-۳۰۵۸) والترمذي في كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في القطائع (رقم-۱۳۸۱) واحمد في المسند: ۳۹۹/۶

**[۲۰۰۰] د تيارې زمكې د جاګير په توګه د وركولو ممانعت**

۳۰۰۰-[۱۰] (۱) [۱] «عَنْ أَبْيَضَ بْنِ حَمَّالٍ الْمَأْرِبِيِّ [۲] أَنَّهُ وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۳] فَاسْتَقْطَعَهُ الْمِلْحَ الَّذِي بِمَأْرِبَ فَأَقْطَعَهُ إِيَّاهُ [۴] فَلَمَّا وَلَّى قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّمَا أَقْطَعْتَ لَهُ الْمَاءَ الْعِدَّ [۵] قَالَ: فَرَجَعَهُ مِنْهُ [۶] قَالَ: وَسَأَلَهُ مَاذَا يُحْمَى مِنَ الْأَرَاكِ [۷] قَالَ: لَمْ تَنَلْهُ أَخْفَافُ الْإِبِلِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابيض ابن حمّال ماربي رضي الله عنه په باره كې منقول دى [۲] چې هغه د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شو [۳] او دا درخواست يې وكړي چې په مارب كې د مالګې چې كوم كان دى هغه ته دې په طور د جاګير وركول شي، نو حضور ﷺ هغه ته د مالګې هغه كان په طور د جاګير عطاكړي، [۴] كوم وخت چې ابيض واپس شو ، نو يو سړى (يعني اقرع ابن حابس تميمي رضي الله عنه ) عرض اوكړو چې يا رسول الله! ﷺ تا خو ابيض رضي الله عنه ته تيارې اوبه (يعني په كان كې بالكل تياره مالګه) وركړې ده، [۵] راوي وايي (كوم وخت چې حضور ﷺ ته د حضرت اقرع رضي الله عنه څخه دا معلومه شوه چې ابيض رضي الله عنه ته خو يو داسې كان وركول شوى دى چې په هغه كې مالګه خو بالكل تياره ده نو) حضور ﷺ هغه كان د ابيض رضي الله عنه څخه واپس واخستى، [۶] راوي وايي چې هغه سړى (يعني حضرت اقرع رضي الله عنه ) د رسول الله ﷺ څخه دا پوښتنه هم وكړه چې د پيلو (يوه ونه چې د بيخلو څخه يې مسواكونه جوړيږي) د ونو كومه زمكه ګيره كړل شي؟ (يعني كومه غير آباده زمكه په آبادولو سره خپل ملكيت جوړشي) [۷] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل هغه زمكه چرته چې د اوښانو پښې نه رسيږي، (ترمذي ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** - ① الْمِلْحَ: مالګه. ② مَأْرِبَ: دادَ يمن دَ يوښارنوم دې كوم چه دَ صنعاء نه ۶۰ كلوميټر لرې دې ③ وَلَّى: واپس شو. ④ الْعِدَّ: تياره. ⑤ يُحْمَى: چه راګيره كړې شي. ⑥ الْأَرَاكِ: د پيلو يا زيړ لرګى ونه (د كيكر پشان) كوم نه چه مسواكونه جوړيږي. ⑦ أَخْفَافُ: د اوښانو خپې.

**تسهيلات: قوله بِمَأْرِبَ:**

**په ماربى كېښې د نسبت وجه :-** مارب طرف ته نسبت دې حضرت ابيض رضي الله عنه هم دَدې مارب ښار اوسيدونكې وو هغه دَ حضورپاك نه په مارب كښې دَ مالګې دَ يوكان دَ هغه دَپاره دَ جاګيركولودرخواست اوكړو حضورپاك قبول كړو اودَ جاګيرپه توګه ئى وركړو كله چه ابيض رضي الله عنه روان شو نو په مجلس كښې چا اوونيل يارسول الله ﷺ تاسو خوبالكل تياركان دَ هغوى په حواله كړو.

---

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في القطائع (رقم-۱۳۸۰) وابن ماجه في كتاب الرهون/باب إقطاع الأنهار والعيون (رقم-۲۴۷۵)

**قوله** قَالَ رَجُلٌ:

**د رجل مصداق:-** ونيلي شي چه دا اقرع بن حابس ﷺ وو حضورپاك ابيض ﷺ را ؤغوښتو او هغه كان ئې دَ هغه نه واپس واخستو دې نه معلوميږي چه دَ جاگير په توګه شاړه زمكه وركولې شي بالكل تيار كان يا زمكه نه شي وركولې

**قوله:** الْمَاءَ الْعِدَّ:

**د احياء الموات د زمكې تعريف:-** يعنى دَ تيارو اوبوپه شان كان وو داسې اوبه كومې چه دائم هم وى اوقائم هم، دَ احياء موات دَپاره داسې زمكه چه دَ هغې حاصلول مشكل او ګران وې وركولې كيږي داتيار څيزوو په كوم كښې چه دَ ټولو مسلمانانوحق وو

**قوله:** وَسَأَلَهُ مَاذَا يُحْمَى مِنَ الْأَرَاكِ

**په ساله كښې د سائل مصداق:-** يعنى راوى وائى "وسأله" يعنى اقرع بن حابس ﷺ دَ حضورپاك نه تپوس اوكړو چه دَ زيړلرګى دَ ونو كومه يوه زمكه ګيرولې شى

**قوله:** لَمْ تَنَلْهُ أَخْفَافُ الْإِبِلِ:

**د كانونو دوه قسمونه:-** يعنى تركومې پورې چه دَ اوښانو خپې نه وى رسيدلې دَ آبادنى نه ډيره لرې شاړه زمكه وى هغه دَ احياء موات په توګه آبادولې شى. نيزدې مقامات خودَ ښار او كلى دَ ضروريات نه وى. حضورپاك اول اوګنړل چه دا سخت كان دې چه چاته هم دَ آبادولودَپاره وركولې شى. كله چه معلومه شوه چه دا سهل الحصول دې نوواپس ئې كړو دَ كانونو هم دغه دوه قسمونه وى.

**[۲۰۰۱] په مسلمانانو كښې د دريو څيزونو اشتراك**

—[۵] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② «الْمُسْلِمُونَ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ فِي الْمَاءِ وَالْكَلَإِ وَالنَّارِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس ﷺ وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② درې څيزونه يعنى اوبه وابنه او اور داسې دي چې په هغه كې ټول مسلمانان شريك دي، ابوداؤد ابن ماجه.

**حل اللغات:-** ① الْكَلَإِ: ګيا، وابنه.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمُسْلِمُونَ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ

**د درې څيزونو مصداق:-** يعنى په دريوڅيزونوكښې عام مسلمانان شريك دى په دغه څيزونو باندې دَ چاقبضه كول جائزنه دى.

---

۱ ) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة /باب في منع الماء(رقم-۳۴۷۷) وابن ماجه في كتاب الرهون/باب المسلمون شركاء في ثلاث (رقم-۲۴۷۲) واحمد في المسند: ۳۶۴/۵

① اوبه دې نه دَ دریابونو نالو اوکوهیانو تالابونوعام اوبه مراد دی هغه اوبه مرادنه دی کومې چه چا په ټینکې یا لوښې یا مشك کښې اچولې وی.
② وابنه دَ وښونه مراد هغه وابنه دی چه په ځنګلوکښې پخپله راټوکیږی چا دَهغې ساتنه نه وی کړې نه ئې شپول لګولې وی.
③ اور که یوسړې دَ اور دَ شغلې نه دَخپل ځان دَپاره اور اوړل غواړی نوهغه بندول منع دی ځکه چه په اورکښې هیڅ کمې نه راځی اوکه اور اوړونکې دَ لرګوسره اور اوړل غواړی نوهغه منع کولې شی بل په اورکښې دَ ګرمولونه او دَهغې په رڼړاکښې دَ کیناستونه څوك منع کولې نه شی.

**[۲۰۰۲] په مباح څیزد قبضې په صورت کښې ملکیت راتلل**

۲۰۰۲-[۳] (۱) ① وَعَنْ أَسْمَرَ بْنِ مُضَرِّسٍ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَبَايَعْتُهُ ② فَقَالَ: «مَنْ سَبَقَ إِلَى مَاءٍ لَمْ يَسْبِقْهُ إِلَيْهِ مُسْلِمٌ فَهُوَ لَهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت أسمر ابن مُضَرِّس ﷺ وايې چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او د حضور ﷺ سره مې بیعت وکړي (یعني اسلام مې قبول کړي) ② نو حضور ﷺ وفرمایل کوم سړی چې د داسې اوبو طرف ته سبقت وکړي (یعني هغه اوبه حاصلې کړي) کومې چې یومسلمان نه وي حاصلې کړي نو هغه د هغه دی، (ابوداؤد)

**تسهيلات: قوله:** مَنْ سَبَقَ إِلَى مَاءٍ لَمْ يَسْبِقْهُ إِلَيْهِ مُسْلِمٌ فَهُوَ لَهُ

**په مباح څیز باندې د قبضې کولو نه پس د ملکیت ثبوت:** - مطلب دادې چه کوم سړې مباح اوبه یعنی د دریاب یا تالاب وغیره نه څه مقدار واخلی نود اوبو دغه اخستلې شوې مقدار ددغه سړی ملکیت جوړیږی اوکومې اوبه چه په دریاب یا تالاب وغیره کښې باقی پاتې شی هغه دهغه په ملکیت کښې نه راځی، بلکه هغه په خپل حال باندې مباح پاتې کیږی، دغسې نور مباح څیزونه مثلاً د ګیاه، وابنه او لرګو وغیره هم دغه حکم دې.

**[۲۰۰۳] دَکمزوری انسانانو دَحقوقو تحفظ او د حاکم ذمه واری**

۲۰۰۳-[۳] (۲) ① وَعَنْ طَاوُسٍ مُرْسَلًا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② «مَنْ أَحْيَا مَوَاتًا مِنَ الْأَرْضِ فَهُوَ لَهُ ③ وَعَادِيُّ الْأَرْضِ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ هِيَ لَكُمْ مِنِّي». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت طاؤس ﷺ بذریعه ارسال نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② افتاده او بنجر زمکه چې کوم سړي آباده کړي هغه د هغه ملکیت شی ③ او قدیم زمکه د الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ دپاره ده اوبیا هغه زما د طرف څخه ستاسو د پاره ده (شافعي)

---

۱) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب في تفسير الجائحة (رقم-۳٤۷۱)
۲) اخرجه الشافعي في الام في كتاب الهبة باب عمارة ما ليس معمورا.

۳۰۰۳ — (۸) [۱] وَرُوِيَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَقْطَعَ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ الدُّورَ بِالْمَدِينَةِ [۲] وَهِيَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ عِمَارَةِ الْأَنْصَارِ مِنَ الْمَنَازِلِ وَالنَّخْلِ، [۳] فَقَالَ بَنُو عَبْدِ بْنِ زُهْرَةَ: نَكِّبْ عَنَّا ابْنَ أُمِّ عَبْدٍ، [۴] فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: فَلِمَ ابْتَعَثَنِي اللَّهُ إِذًا، [۵] إِنَّ اللَّهَ لَا يُقَدِّسُ أُمَّةً لَا يُؤْخَذُ لِلضَّعِيفِ فِيهِمْ حَقُّهُ».

**ترجمه:** [۱] او په شرح السنه کې منقول دی چې رسول الله ﷺ حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ ته په مدینه کې چې کوم مکانات ورکړل [۲] هغه د انصارو د آبادئ (یعني د هغوئ د مکانو او د هغوئ د کجورو د ونو) په منځ کې واقع وو. [۳] نو د عبد ابن زهره خامنو اوویل چې تاسو د ام عبد خوی (یعني عبد الله ابن مسعود ﷺ) زمونږ څخه لرې وساتي اووای ږوي، ددې په جواب کې، [۴] رسول الله ﷺ وفرمایل چې بیا الله ﷻ زه څه د پاره رالیږلی یم [۵] یاد لرئ! الله ﷻ هغه قوم ته پاکیزګي نه عطا کوي چې په هغه کې د کمزورو حق ته تحفظ حاصل نه وي.

**حل اللغات:** - ① الدُّورَ: د دارُ جمع ده، دارْ کورته وائی. ② بَيْنَ ظَهْرَانَيْ: په مینځ کښې، ③ نَكِّبْ: واړوئ، لرې کړئ،

**تسهیلات:** **قوله:** وَعَادِيُّ الْأَرْضِ:

**د عادی الارض څخه مراد:** - دې نه مراد هغه شاړه غیرآباده زمکه ده دَ کومې چه څوك مالك نه وی اونه چاته دَهغې دَ مالك علم وی بلکه دادَ قوم عاد طرف ته منسوب پخوانئ زمکه وی

**قوله:** أَقْطَعَ:

**ابن مسعود ته کورونه ورکول:** - یعنی حضرت ابن مسعود ﷺ ته حضورپاك په مدینه کښې مکانات ورکړل چه دَ انصارو دَ کورونو او کهجورو دَ باغونو په مینځ کښې واقع وو

**قوله:** فَقَالَ بَنُو عَبْدِ بْنِ زُهْرَةَ:

**د بنوعبدبن زهره د قول وجه:** - دَ عبدبن زهره اولاد دَ حضرت ابن مسعود ﷺ دَ پلارسره حریفانه مقابله کښې پاتې وو بل دَ حضرت ابن مسعود ﷺ مور په یووخت کښې دَ مجبورئ نه دَ دغه خلقو مزدوری کړې وه. اوس دَ انسانی بشری جذباتو په وجه دغه خلقو حضرت ابن مسعود ﷺ په خپل مینځ کښې په داسې شان اوشوکت سره برداشت نه کړو بلکه دَ حقارت جمله ئې استعمال کړه چه "فنکب عنا ابن ام عبد" یعنی زمونږ نه ئې واړه وئې

**کمزورو ته د هغوی حق ورکول منصب رسالت:** - دَدې په جواب کښې حضورپاك دَ غصې اوخفګان اظهاراوکړو اودَ عدل اوانصاف خبره ئې اوکړه که چرې زه دَ یوکمزوری انسان

۱) اخرجه الشافعی فی المسند کتاب الجهاد باب ماجاء فی الحماو القطایع

حو هغه ته ورته کړې شم نو بيا زما رب زه ولې نبي جوړ کړې راليکلې يم؟ بيا حضورپاك يوه قاعده بيان کړه چه هغه قوم کله پاك صفا اومقدس جوړيدې نه شي په کوم قوم کښې چه د کمزوري انسان د حق تحفظ حاصل نه وي

**[۲۰۰۵]د لهرو ډيره له پټی خروب کولو ضابطه**

۲۰۰۵-[۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَضَى فِي السَّيْلِ الْمَهْزُورِ أَنْ يُمْسَكَ حَتَّى يَبْلُغَ الْكَعْبَيْنِ [۳] ثُمَّ يُرْسَلَ الْأَعْلَى عَلَى الْأَسْفَلِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار (حضرت شعيب) څخه او هغه د خپل نيکه (يعني حضرت عبد الله ابن عمرو ﵄) څخه نقل کوي [۲] چې رسول الله ﷺ د مهزور د اوبو په باره کښې دا حکم وکړي (چې هر کله د هغه اوبه په کښتي تی وغيره کښې د پنړکوپوري د کې شي نو هغه دې بندې شي [۳] او بيا دې پورته والا لاندې والا د پاره (د هغه اوبه) پريږدي. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① السَّيْلِ: سيلاب، د ځنګلاتو او صحرائي غرونو نه چه کومې اوبه په کومه لار رابهيږي راځي هغه نالئی او نهر ته هم سيل وائی. ② الْمَهْزُورِ: د بنوقريظه په علاقه کښې د يوې وادۍ نوم دې ③ الْكَعْبَيْنِ: د خپو ګيټۍ، پرکۍ،

**تسهيلات: قوله:** الْمَهْزُورِ:

**دحديث پس منظر:** - په مدينه منوره کښې د بنوقريظه په علاقه کښې د يوې وادئی نوم دې د بنوقريظه د پټو اوبه به هم په دغه نالئی او وادئی کښې راتلې چه پټی به نی خروب کول حضورپاك هم دَدغې متعلق داحکم فرمائيلې چه د يوقاعدې اوضابطه حيثيت لري اود دنيا د ټولو انسانانودپاره يوشرعی ضابطه ده.

**د اوبه خور په باب کښې يوه قاعده:** - مطلب دادې چه مثلاً د غرونونه اوبه د يونالئی په ذريعه د آبادئی طرف ته راځي اوخلق په هغې باندې خپلې زمکې خروب کوی نودهغې دپاره قاعده او شرعی ضابطه داده چه د کوم سرې په زمکه کښې دغه نالئی اول راتيريږی هغه سرې د خپلې زمکې اوبه کولو دپاره رومبې حقدار دې هغه سرې دې په خپله زمکه کښې دومره اوبه جمع کړی چه د خپو د ګيټو پورې اورسی بيا دې خپل نيزدې ملګری ته اوبه پريږدی هغه دې هم دغه شان زمکه اوبه کړی اود بل طرف ته دې اوبه ورپريږدی داحکم سره ددې چه دمدينې په خلقو کښې نافذ شوې وو خودا شرعی ضابطه د دنياد ټولو مسلمانانودپاره ده.

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الأقضية/باب من القضاء (رقم-۳۶۳۹) وابن ماجه فی کتاب الرهون/باب الشرب من الأودية ومقدار حبس الماء (رقم-۲۴۸۲) ومالک فی الموطا کتاب الاقضية/باب القضاء فی المياه (رقم-۲۸)

## [۲۰۰٦] د خپل جائيداد په ذريعه چاته د تکليف ورکولو ممانعت

۳۰۰۰ - [٥] (١) ﴿١﴾ «وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ ﴿٢﴾ أَنَّهُ كَانَتْ لَهُ عَضُدٌ مِنْ نَخِيلٍ فِي حَائِطِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، ﴿٣﴾ وَمَعَ الرَّجُلِ أَهْلُهُ، فَكَانَ سَمُرَةُ يَدْخُلُ عَلَيْهِ فَيَتَأَذَّى بِهِ، ﴿٤﴾ فَأَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ ﴿٥﴾ فَطَلَبَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِيَبِيعَهُ فَأَبَى، ﴿٦﴾ فَطَلَبَ أَنْ يَنْقُلَهُ فَأَبَى،

**ترجمه:** ﴿١﴾ او د حضرت سمره ابن جندب ﷺ په باره کې منقول دی ﴿٢﴾ چې د هغه د کجورو خو ونې د يو انصاري (چې د هغه نوم بعضې علماوو مالك ابن قيس ﷺ ليکلي دي) په باغ کې وې ﴿٣﴾ او هغه د خپل اهل وعيال سره په هغه باغ کې اوسيدلی هر کله چې سمره به (د خپلو هغوی ونو په وجه) باغ ته راتلو نو هغه انصاري ته به خيني تکليف وو (يوه ورځ) ﴿٤﴾ هغه انصاري د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او حضور ﷺ ته يې د دې ذکر وکړې، ﴿٥﴾ نو حضور ﷺ سمره خپل مجلس ته طلب کړې چې (هغه ته دا وفرمايي چې) هغه دې د خپلو کجورو هغه ونې خرڅې کړي (چې د دې ونو په وجه انصاري ته کوم تکليف رسيږي هغه ځني نجات پيدا کړي) ليکن سمره (د خپلو ونو خرڅولو څخه انکار وکړې، ﴿٦﴾ بيا حضور ﷺ د دې خواهش اظهار وکړي چې سمره خپلې (دا) ونې د انصاري د (هغه) ونو سره بدلې کړي (کومې چې په بل ځای کې واقع وې) خو سمره دې ته هم تيار نه شو .

**حل اللغات:** - ①عَضُدٌ: د ونو قطار، د ورو کهجورو بوټی.

﴿١﴾ قَالَ: فَهَبْهُ لَهُ وَلَكَ كَذَا أَمْرًا رَغَّبَهُ فِيهِ فَأَبَى، ﴿٢﴾ فَقَالَ: أَنْتَ مُضَارٌّ ﴿٣﴾ فَقَالَ لِلْأَنْصَارِيِّ: اذْهَبْ فَاقْطَعْ نَخْلَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَذُكِرَ حَدِيثُ جَابِرٍ "مَنْ أَحْيَا أَرْضًا" فِي بَابِ الْغَضَبِ بِرِوَايَةِ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي صِرْمَةَ «مَنْ ضَارَّ أَضَرَّ اللَّهُ بِهِ» فِي بَابِ مَا يُنْهَى عَنِ التَّهَاجُرِ.

**ترجمه:** ﴿١﴾ بيا حضور ﷺ سمره ته دا وفرمايل چې ښه خپلې ونې انصاري ته په طور د هديې ورکړه، تاته به د دې اجر (د جنت د نعمتونو په صورت کې) حاصل شي، ګويا حضور ﷺ په طور د سفارش او رغبت ورکولو د پاره دا حکم ورکړې يا (أَمْرًا رَغَّبَهُ) ترجمه دا ده چې حضور ﷺ سمره ته د ترغيب يوه خبره وفرمايله (يعني خپلې ونې په طور د هديې ورکولو د ثواب ذکر يې وفرمايلو) ليکن سمره د دې څخه هم انکار وکړې. ﴿٢﴾ په آخر کې حضور ﷺ سمره ته وفرمايل چې د دې مطلب دا دی چې ته (واقعي) دې انصاري ته ضرور تکليف رسول غواړې او کوم سړی چې چاته تکليف رسوي د هغه دفعيه ضروري ده، خکه ﴿٣﴾ حضور ﷺ انصاري ته وفرمايل چې ته ورشه او د سمره ونې پريکولو سره وغورځوه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ①مُضَارٌّ: ضرر او تکليف رسونکي، ②الْغَضَبِ: غصه، ③ضَارَّ: چه ضرر اورسوی، ④ التَّهَاجُرِ: يوبل سره تعلق پريښودل

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأقضية /باب من القضاء (رقم- ٣٦٣٦)

**تسهيلات:**

**قوله عَضُدٌ:**

**د عضد په مصداق کښې اقوال:-**

① ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دې نه دکهجورو دَ ونو قطار مراددې اوبعضو ونیلی چه یوخوورې کهجورې مراد دی اهل لغت هم دغه دوه معنی خودلی دی

② علامه توریشتی رحمه الله فرمائی دَ حدیث دَ ظاهری الفاظو اومفردضمائرنه معلومیږی چه دا یوه ونه وه که چرې دا زیاتې ونې وې نوحضورپاك به دَ هغې دَ پرې کولو اواخواکولوحکم نه فرمائیلو دَ علامه توریشتی رحمه الله دَرائې نه دَملاعلی قاری رحمه الله رائې زیاته بهترده چه دادَ ونودَ یوقطار نوم دې

**دحدیث پس منظر:-** دَ حضرت سمره رضی الله عنه دَ ونو یوبناخ دَ یوانصاری مالك بن قیس رضی الله عنه په باغ کښې وو دَ حضرت سمره رضی الله عنه په تلو راتلو به انصاری ته تکلیف کیدلو حضورپاك دَ سفارش او ترغیب په توګه حضرت سمره رضی الله عنه له خپلې ونې خرڅولو یا بدلولویا هبه کولوڼاره اوونیل دَ "رغبه" مطلب هم دغه سفارش اوترغیب دې دَ حضورپاك داحکم وجوبی نه وو ګنی دَ حضرت سمره رضی الله عنه به دَ انکار ګنجائش نه وې

**قوله: أَنْتَ مُضَارٌّ:**

**د سمره د ونې کټ کولو حکم کولو وجه:-** یعنی ستا مطلب صرف نقصان اوتکلیف رسول دی لهذا اوس ستا ضرر دفع کول ضروری شوی دی اودَدې صورت هم دغه دې چه دا ونې دَ بیخه اوویستلې شی نو حضورپاك هم دغه شان حکم ورکړو

**اشکال:-** دَ حضوراکرم دَ طرف نه حضرت سمره رضی الله عنه ته داحکم وجوبی نه وو صرف سفارش وو نو بیا نی دَهغه ونو دَ پرې کولوحکم ولې ورکړو؟

**داشکال درې جوابونه:-**

① په اصل کښې حضورپاك دَ حضرت سمره رضی الله عنه په وړاندې باقی تولې اختیاری خبرې کیخودې ترغیب نی هم ورکړو دَ جنت زیرې نی هم ورکړو کله چه هغه اونه منله نوحضورپاك بیا وجوبی حکم ورکړو ځکه چه اوس دَ ضرر اوتکلیف رسولوصورت پیدا شو لهذا دَ دغه ضرر دفع کول ضروری شو نوحضورپاك دَ ونو دَ پرې کولو حکم ورکړو

② ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه ممکن ده چه حضرت سمره رضی الله عنه سره دغه ونې دَ باغ دَ مالك دَ طرفه هبه وې

③ یادَ بل چا دَ طرفه دَ عاریت په توګه وی په دې وجه نی دَ پرې کولو حکم ورکړو.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۰۰۷] د اوبو مالګې او اور ورکولو ثواب**

۲۰۰۷-[۸] (۱) [۱] عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - [۲] أَنَّهَا قَالَتْ: «يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ [۳] قَالَ: اَلْمَاءُ وَالْمِلْحُ وَالنَّارُ، [۴] قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا الْمَاءُ قَدْ عَرَفْنَاهُ فَمَا بَالُ الْمِلْحِ وَالنَّارِ؟ [۵] قَالَ: يَا حُمَيْرَاءُ مَنْ أَعْطٰى نَارًا فَكَأَنَّمَا تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَا أَنْضَجَتْ تِلْكَ النَّارُ

**ترجمه:** [۱] د ام المؤمنين بي بي عائشه ﷺ په باره کې روايت دی [۲] چې (يوه ورځ هغې پوښتنه وکړه چې يا رسول الله! ﷺ هغه کوم څيز دی چې د هغه د ورکولو څخه انکار کول درست نه دی؟ [۳] حضور ﷺ وفرمايل چې اوبه، مالګه او اور. [۴] بي بي عائشه ﷺ وايې چې ما (دا اوريدو سره) عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ د اوبو معامله خو ماته معلومه ده (چې دا د الله ﷻ يو داسې عام نعمت دی چې د هيڅ سړي ذاتي ملکيت نه دی څه انساني څه حيواني د ټول مخلوق ضرورتونه د دې سره تړلی دی ځکه دي څخه منع کول د ډير زيات تکليف او ضرر باعث جوړيدی شي) ليکن د مالګې او اور خبره خما په پوهه کې نه راځي (چې دا دواړه څيزونه د اوبو په مثل نه دی او په ښکاره بالکل حقير او معمولي څيزونه دي چې د هغوی ورکول او نه ورکول څه حيثيت لرلی شي) [۵] حضور ﷺ وفرمايل چې (دامه ګڼه چې ددې دواړو څيزونو د ورکولو يانه ورکولو څه حيثيت نشته) کوم سړی چې اور ورکړي نو ګويا هغه ټول څيزونه په طور د صدقې ورکړل، کوم چې په هغه اور پاخه شي.

**حل اللغات:** - ① يَا حُمَيْرَاءُ: عرب حميرا سفين ته وائی او مقصود په کښې د هغې ښائست وی خو بيا ددې اطلاق په هغه سپين والی باندې کيږی چې په هغې سوروالی هم وی. ② أَنْضَجَتْ: چه پاخه شی.

[۱] وَمَنْ أَعْطٰى مِلْحًا فَكَأَنَّمَا تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَا طَيَّبَتْ تِلْكَ الْمِلْحُ، [۲] وَمَنْ سَقٰى مُسْلِمًا شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ حَيْثُ يُوجَدُ الْمَاءُ فَكَأَنَّمَا أَعْتَقَ رَقَبَةً، [۳] وَمَنْ سَقٰى مُسْلِمًا شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ حَيْثُ لَا يُوجَدُ الْمَاءُ [۴] فَكَأَنَّمَا أَحْيَاهَا». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] دغه شان چا چې چاته مالګه ورکړه ګويا هغه هغه ټول څيزونه په طور د صدقې ورکړل کوم چې هغه دي مالګې ذائقه دار جوړ کړل او د اوبو اهميت خو ته په خپله پيژنې (ليکن تاته دا معلومه نه ده چې) [۲] کوم سړی چاته هغه ځای کې چرته چې اوبه وي يو ځل هم اوبه وربانديې وڅکلې ګويا هغه يو غلام آزاد کړي [۳] او کوم سړی چې چاته په هغه ځای کې چرته چې اوبه موجود نه وي يو ځل وربانديې اوبه وڅکلې [۴] نو ګويا هغه، هغه (يعنې يو مسلمان) ژوندی کړي. (ابن ماجه)

۱) اخرجه ابن ماجه في كتاب الرهون/باب المسلمون شركاء في ثلاث (رقم-۲۴۷۴)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ:**

**د اور او مالګې فائدې او اهميت:-** يعنى اوبه اور اومالګه وركولوكښې تركومې چه ګنجائش وى نوډهغې دَ يومسلمان نه منع كول جائزنه دى خكه چه داځيزونه دَ وخت په ضرورت ډير دكار او دَ احتياج سبب وى لهذا دَدې په وركولوكښې ثواب هم زيات دې حضرت عائشه رضي الله عنها دَ اوبوپه اهميت باندې خو پوهه شوه خكه چه په عربستان ريګستان كښې اوبه دَ ژوند دَپاره ډيرې ضرورى دى او دَ دې وجود ډير كم وى ليكن دَمالګې او اور اهميت باندې حضرت عائشه رضي الله عنها پوهه نه شوه په دې وجه ئې هغه حقير اوكمتر ګنړلوسره سوال اوكړو دَدې په جواب كښې حضورپاك دَ اور مالګې فائدې اواهميت او ضرورت واضح كړو دَ اور په ذريعه ټول دَ پخولوځيزونو دَعطيه شان ثواب به ملاوېږى اودَ مالګې په خوندسره دَ پوره طعام دَ صدقې په شان ثواب ملاوېږى اواوبه خو اوبه دى دا خو ژوندون او ځان دې چه په چا باندې ځكوى لكه چه هغه ته ژوند وركوى.

# [۱۵] بَابُ الْعَطَايَا

**دَعطايابيان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على مسئلتين:**

① حكم الوقف: ۱.

② حكم العمرى: ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸.

**دقرآن څخه عطايا ثبوت:-** قال الله جل جلاله ﴿كُلًّا نُّمِدُّ هَٰؤُلَاءِ وَهَٰؤُلَاءِ مِنْ عَطَاءِ رَبِّكَ ۚ وَمَا كَانَ عَطَاءُ رَبِّكَ مَحْظُورًا﴾ [بنى اسرائيل الايه: ۲۰]

**د لفظ العطايا تحقيق:-** عطايا جمع ده دَدې مفرد عطيه ده، عطيه بخشش اوهديه ته وائى چه يوسړې دَخپل څه ځيزتصرف اوملكيت دَ بل سړى طرف ته منتقل كړى په دې باب كښې دَعطايا ټول قسمونه مثلاً وقف، هبه عمرىٰ او رقبىٰ بيان كيږى ملاعلى قارى رحمه الله مرقات كښې ليكلى دى چه دلته دَ عطيا نه دَ امراء اوسلاطين بخشش او انعامات مراددى

**د حاكمانو انعاماتو قبلولو كښې مختلف اقوال:-** ملاعلى قارى رحمه الله دامام امام غزالى رحمه الله د منهاج العابدين په حوالې سره ليكلى دى چه دَ امراء اوسلاطين بخششونه او سركارى انعامات قبلولو كښې دَ علماء مختلف اقوال دى.

① دَ امراء هدايا مطلقاً قبلول جائزدی مګر دا چه دَدې خبرې مکمل يقين اوشی چه دا مال حرام دې ځکه چه حضورپاك دَ مصردَ بادشاه مقوقس هديه قبوله کړې وه

② دَ غريب او مسکين دَپاره دا هدايا قبلول جائزدی اودَ غنی مالداردَپاره ناجائز دی.

③ که چرې دغه عطايا دَ حرام مالونونه نه وی يعنی دَهغې دَ حرام کيدو يقين نه وی نودا قبلول صحيح دی.

④ ترکومې چې دَ دغه مال دَ حلال کيدو يقين نه وی ترهغه وخته پورې دَ دې نه قبلول بهتر اواولی دی. ځکه چه په دغه زمانه کښې په خزانه کښې جمع شوی مالونه اکثر اوبيشتر په غيرشرعی ذرائع سره حاصليږی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۰۰۸] دَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ طرفه دَ خيبردَ زمکې وقف کول

۲۰۰۸-[۱] (۱) ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ «أَنَّ عُمَرَ أَصَابَ أَرْضًا بِخَيْبَرَ ② فَأَتَى النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنِّي أَصَبْتُ أَرْضًا بِخَيْبَرَ لَمْ أُصِبْ مَالًا قَطُّ أَنْفَسَ عِنْدِي مِنْهُ فَمَا تَأْمُرُنِي بِهِ؟ ④ قَالَ: إِنْ شِئْتَ حَبَسْتَ أَصْلَهَا وَتَصَدَّقْتَ بِهَا، ⑤ فَتَصَدَّقَ بِهَا عُمَرُ، إِنَّهُ لَا يُبَاعُ أَصْلُهَا وَلَا يُوهَبُ وَلَا يُورَثُ،

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايی چې د خيبر څه زمکه (چې په هغه کې کجوري پيدا کيدلې) حضرت عمر رضي الله عنه ته د مال غنيمت د حصې په طور حاصله شوه، ② نو هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرشو ، او عرض يې وکړې ③ چې يا رسول الله! ﷺ ما په خيبر کې او دخپلې حصې داسې زمکه پيدا کړې ده چې د هغه څخه زيات ښه مال ماته هيڅ کله نه دی حاصل شوی (او اوس غوارم چې هغه زمکه د الله ﷻ د رضا او خوشنودي د پاره ورکړم ځکه) ته ماته حکم وکړه (چې زه په دې باره کې څه وکړم؟) ④ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې که ته دا غوارې، نو اصل زمکه وقف کړه او هغه څخه چې څه پيدا کيږي، هغه په طور د صدقې تقسيم کوه، ⑤ نو حضرت عمر رضي الله عنه هغه زمکه د دې شرط سره د الله ﷻ په لار کې ورکړه (يعني هغه يې وقف کړه) چې اصل زمکه دې نه خو خرڅول کيږی، نه هبه کيدی شي، او نه دې هغه د چا ميراث ګرځول کيږی،

**حل اللغات:** - ① إِنِّي أَصَبْتُ: زه رسيدلې يم، ما حاصله کړې ده، ② قَطُّ: هيڅ کله، ③ أَنْفَسَ: زيات ښه، قيمتی، ④ حَبَسْتَ: حبس په اصل کښې بنديز ته وائی خو دلته ترې مراد ځان سره ايسارول دی.

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الشروط /باب الشروط فی الوقف (رقم-۲۷۳۷) ومسلم فی کتاب الوصية /باب الوقف (رقم-۱۵ - (۱۶۳۲))والنسائی فی کتاب المزارعة /باب ذکر الأحاديث المختلفة فی النهی عن کراء الأرض بالثلث والربع. واختلاف ألفاظ الناقلين للخبر (رقم-۳۸۹۷) وابن ماجه فی کتاب الصدقات /باب من وقف (رقم-۲۳۹۶)واحمد فی المسند: ۱۲/۲

۱ وَتَصَدَّقَ بِهِ فِي الْفُقَرَاءِ وَفِي الْقُرْبَى ۲ وَفِي الرِّقَابِ وَفِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَالضَّيْفِ، ۳ لَا جُنَاحَ عَلَى مَنْ وَلِيَهَا أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا بِالْمَعْرُوفِ ۴ أَوْ يُطْعِمَ غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ». ۵ قَالَ ابْنُ سِيرِينَ: غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ او د هغه پیداوار دې په طور د صدقې داسې صرف شي چې هغه فقیرانو، قربتدارو ته نفع رسول کیږي، ۲ د غلامانو مدد ورباندې وکړی شي (یعني څنګه چې مکاتب ته زکوة ورکول کیدی چې د هغه په ذریعه خپل مالك ته بدل کتابت ورکولو سره آزاد کړل شي دغه شان د دې زمکې د پیداوار څخه دې هم د مکاتب مدد وشي) د الله ﷻ په لار کې (یعني په مونځ ګذارو او په حاجیانو) دې خرڅ شي، د مسافرو ضرورتونه دې پوره شي (باوجود د دې چې هغه په خپل وطن کې د مال او زرو مالك وي) او د میلمنو میلمستیا دې ورباندې وشي، ۳ او د دې زمکې متولي دې هم بقدر حاجت د دی څخه خوري ۴ یا خپل اهل وعیال ته (چې د مستطیع نه کیدو په وجه د هغه زیر کفالت وي) خوري، نو په دې کې د ګناه څه خبره نشته، په شرط د دې چې هغه متولي (د هغې وقف آمدني څخه) مالدار جوړ نشي (یعني کوم سړی چې د هغه زمکې نګراني کوي او د هغه پیداوار په مذکوره بالاخلقو د خرچ کولو په ذمه واري په طور د متولي مامور کړل شي، که هغه هم خپل او د خپل اهل وعیال د ژوند ضروریات پوره کولو د پاره د هغه زمکې پیداوار او آمدني څخه څه اخلي نو په دې کې څه حرج نشته، هو د دې خبرې اجازت به نه وي چې هغه د دې زمکې په ذریعه مالدار جوړ شي)، ۵ ابن سیرین رحمه الله د غیر متمول په ځای غیرمتاثل ذکر کړي دی او د غیر متاثل مطلب یې دا بیان کړي دی چې هغه متولي هغه زمکه د ځان د پاره د مال وزر جمع کولو ذریعه جوړه نکړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: - ⑤الرِّقَابِ: د رقبة جمع ده، څټ ته وائی، مراد ترې غلام دې. ⑥ابْنِ السَّبِيلِ: مسافر. ⑦الضَّيْفِ: میلمه. ⑧وَلِيَهَا: متولی، او مالک ددې. ⑨غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ: ای غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ: چه نه وی مال وزر جمع کونکي.

**تسهیلات**: **قوله**: لَمْ أُصِبْ مَالًا قَطُّ أَنْفَسَ عِنْدِي مِنْهُ:

**په حدیث کښې د وقف بنیادي احکام**: - په دې حدیث کښې دَ وقف بنیادی مثالی احکامات دی ① مثلاً په وقف کښې خپل ښکلي مال ورکول پکاردی

② دا هم جائز دی چه په اندازه دَ ضرورت څه آمدن پخپله هم استعمال کړی.

③ دا هم جائز دی چه دَ وقف نګرانی هم خپل ځان سره اوساتلي شی

④ وقف کله شخصی وی چه اصل او نفع چرته هم دَ یو مسکین لاس کښې ورکړې شی او کله دَعام مسکینانو دَپاره وقف کولي شی دلته دَعامو مسکینانودَپاره وقف شوې دې

⑤ وقف مال نه خرڅولي شی نه هبه کولي شی نه په دې کښې میراث چلیږی بلکه "الوقف لا یملك" ضابطه ده

## [۲۰۰۹] د عمرىٰ جواز

[۲] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ قَالَ: «الْعُمْرَى جَائِزَةٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي ۲ چې رسول الله ﷺ وفرمايل عمرىٰ جائز ده، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْعُمْرَى: عمرىٰ دَ فُعلى په وزن باندې دې چاته دَ ټول عمر دپاره خپل کور ورکول.

**تسهيلات: قوله:** الْعُمْرَى:

**د عمرى تعريف:** - عمرىٰ دَ فُعلى په وزن باندې دې دَدې معنى ده چه چاته دَ ټول عمر دپاره خپل کور ورکول اوداسې الفاظ استعمالول "هذه الدار لك عمرى" چه ماداکور دَ ټول عمر دپاره تاته درکړو دا استعمالوه. لکه چه عمرىٰ هبه اوعطيه اوتحفه ضروري دي. دَ عمرى صيغه اکثردَباب افعال نه استعماليږي. په دې کښې عطيه کونکى ته معمر وائى اوچاته چه عطيه کړې شوې ده هغه ته "مُعْمَرْلَهُ" وائى اودغه عطيه ته عمرىٰ وائى

**دَ عمرى دَ هبه کولو درې صورتونه دى:** ① اول صورت دادې چه په دې کښې دَمعمرله دَ وراثت تصريح وى مثلاً عطيه کونکى اووئيل "أَعْمَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّارَفَإِذَامِتَّ فَهِيَ لِوَرَثَتِكَ".

② دويم صورت هغه دې چه بالکل مطلق وى. مثلاً "أَعْمَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّارَ"

③ دريم صورت هغه دې په کوم کښې چه دکور دَ واپس کولو تصريح وى مثلاً "أَعْمَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّارَفَإِذَامِتَّ عَادَتْ إِلَيَّ".

### دعمرى په تمليک کښې مذاهب: -

① امام مالك ﷫ فرمائى چه دَ عمرىٰ په دريواړو صورتونوکښې تمليک منافع دې تمليک عين نه دې لهذا دَمعمرله دَمرګ نه پس عمرىٰ عين دَ اصل مالك طرف ته به واپس شى

② امام ابوحنيفه ﷫ امام شافعى ﷫ دَ يوقول مطابق امام احمدبن حنبل ﷫ جمهورو په نيز عمرىٰ دريواړو صورتونوکښې مطلقًا تمليک عين اوهبه دې. اودَ واپس کيدو شرط فاسددې کوم چه باطل دې لهذا معمرله دَ مرګ نه پس به دَ هغه وارثان هغه اخلى څوک ئې منع کولې نه شى

**داول فريق دليل:** - دَ حضرت جابر ﷺ حديث نمبر (۳۰۳) د اول فريق مستدل دې په کوم کښې چه "فإنها ترجع الى صاحبها" الفاظ راغلى دى

---

۱) اخرجه مسلم فى كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب ما قيل فى العمرى والرقبى (رقم-۲۶۲۶) واخرجه ابو داود فى السنن أبواب الإجارة/باب فى العمرى (رقم-۳۵۴۸) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب الرخصة فى خروج المبتوتة من بيتها فى عدتها لسكناها (رقم-۳۵۴۸) واحمد فى المسند: ۲/۳۴۷

**د اول فريق د دليل ځواب:-** ① امام مالک چه د حضرت جابر د روايت نه استدلال کړې دې هغه روايت د نورو روايتونو هم خلاف دې او يخپله هم د حضرت جابر د رواياتو هم خلاف دې لهذا هغه قابل د استدلال نه دې.

② هغه د حضرت جابر خپل قول او اجتهاد دې مرفوع حديث نه دې. لهذا د نورو مرفوع احاديثو مقابله نه شي کولې.

**د دويم فريق دلائل:-** د حضرت جابر حديث نمبر (۳۰۰۰) د دويم فريق مستدل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه باندې "العمري ميراث لاهلها" الفاظ موجود دی.

② د حضرت جابر حديث نمبر (۳۰۰۱) هم د دويم فريق مستدل دې په کوم کښې چه د مسئلې هم ذکر دې د دې د حکم هم ذکر دې او د دې د علت هم ذکر دې چه ډير واضح دليل دې.

③ د حضرت جابر حديث نمبر (۳۰۰۳) هم د دويم فريق مستدل دې چه په خپله مدعا باندې صريح دليل دې.

④ د فصل الثالث حضرت جابر حديث نمبر (۳۰۰۵) هم د دويم فريق مستدل دې.

**تعارض:-** په زيربحث حديث کښې "العمري جائزة" الفاظ دی او د فصل ثانی حديث نمبر (۳۰۰۳) کښې هم د حضرت جابر روايت کښې "لاتُعْمِرُوا عمري" سره د نهی روايت دې. دا واضح تعارض دې د دې څه حل دې؟

**د تعارض حل :-** اصولاً خو هم هغه حکم دې چه "العمري جائزة" دا جائز دی منع نه دی ليکن چرته چه د ممانعت حديث راغلې دې نو هغه نهی ارشادی ده چه په دې مصلحت باندې مبنی ده چه خپل کور ته عمری ونيلو سره چاته مه ورکوه څکه چه عمری خو نافذ ده بيا به پريشان شې. په دې وجه دا اقدام مه کوه ليکن که چا عمری اوکړه نو هغه به نافذ او جائز وی.

### [۲۰۱۰] په عمرٰی کښې د وراثت جواز

۳۰۰۰-[۲] (۱) ①وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②«إِنَّ الْعُمْرَى مِيرَاثٌ لِأَهْلِهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** او حضرت جابر د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل عمری د خپل مالک (يعني معمر له) د وارثانو ميراث دې، (مسلم)

**حل لغات:-** ①الْعُمْرَى: عمری د فُعلی په وزن باندې دې چاته د تول عمر د پاره خپل کور ورکول،

۱) اخرجه مسلم في باب العمری (رقم-۳۱ - (۱۶۲۵)

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ الْعُمْرَى مِيرَاثٌ لِأَهْلِهَا:**

**په عمرئ سره ورکړې شوی څيز ياندې د ملکيت ثبوت:-** ..معمرله،،هغه کس ته وائی چاته چه په طور د عمرٰی څه څيز ورکولې شی، نو ددې حديث مطلب دادې چه کوم يوکس ته مثلا يو کور په طور د عمرٰی ورکولې شی، دغه کوربه دهغه د ژونده پورې دهغه ملکيت وی او دهغه دمرګ نه پس دهغه د وارثانو ملکيت جوړيږی، ګويا دا حديث دخپل ظاهری مفهوم په اعتبار سره د جمهور علماؤ دمسلک دليل دې.

**[۲۰۱۱] دعمرٰی د يو صورت بيان**

۳۰۰۳-[۶] (۱)① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:② «أَيُّمَا رَجُلٍ أُعْمِرَ عُمْرَى لَهُ وَلِعَقِبِهِ ③ فَإِنَّهَا لِلَّذِي أُعْطِيَهَا ④ لَا تَرْجِعُ إِلَى الَّذِي أَعْطَاهَا؛ ⑤ لِأَنَّهُ أَعْطَى عَطَاءً وَقَعَتْ فِيهِ الْمَوَارِيثُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت جابر رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل② که يو سړی او د هغه وارثانو ته څه څيز په طور عمرٰی ورکول شي③ نو هغه عمرٰی د هغه سړي شی چاته چې هغه څيز ورکول شوی دی (يعني هغه څيز چې د هغه په ملکيت کې شي)④ د عمرٰی ورکونکي په ملکيت کې واپس نه راځي،⑤ ځکه څه چې ورکونکی دغه شان ورکړې دې په هغه کې ميراث جاري کيږي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①أُعْمِرَ: چه په طور د عمرٰی ورکړې شی، ②عُمْرَى: ټول عمر دپاره ورکول، ③لِعَقِبِهِ: وروستو دده دپاره، وارثانو دپاره، ④عَطَاءً: عطيه، بخشش.

**تسهيلات: قوله: أَيُّمَا رَجُلٍ أُعْمِرَ عُمْرَى لَهُ وَلِعَقِبِهِ**

**دعمرٰی په درې صورتونو کښې يو صورت:-** د ابو هريره رضي الله عنه په حديث کښې چه کوم درې صورتونه د عمرٰی بيان شوی د هغې نه يو صورت په دې حديث کښې ذکر دې په دې کښې چه کوم اختلاف دې نو هغه هم هغه حديث کښې بيان شوې دې.

**[۲۰۱۲] دَ عمرٰی باره کښې دَ امام مالک رحمه الله دليل**

۳۰۰۴-[۵] (۲)① وَعَنْهُ قَالَ: «إِنَّمَا الْعُمْرَى الَّتِي أَجَازَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -② أَنْ يَقُولَ: هِيَ لَكَ وَلِعَقِبِكَ،③ فَأَمَّا إِذَا قَالَ: هِيَ لَكَ مَا عِشْتَ④ فَإِنَّهَا تَرْجِعُ إِلَى صَاحِبِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب ما قيل فی العمری والرقبی (رقم-۲۶۲۵) باب العمری (رقم-۲۰ - (۱۶۲۵) واخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب من قال فيه ولعقبه (رقم-۳۵۵۳) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی العمری (رقم-۱۳۵۰) وابن ماجه فی کتاب الهبات /باب العمری (رقم-۲۳۸۰)

۲) اخرجه مسلم فی باب العمری (رقم-۲۳ - (۱۶۲۵) واخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی العمری (رقم-۳۵۵۱) واحمد فی المسند: ۳/۲۹٤

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ د عمرې كوم صورت جائز كرځولى دى هغه دا دى ۲ چې مالك (يعني وركونكى) داسې اووايي چې دا شى ستا د ژوندې پورې ستا دى او ستا د مرګ څخه وروسته ستا د وارثانو دى. ۳ او كه يواځى دا اووايي چې دا عمرى يواځې ستا د ژوندې پورې ستا د پاره ده ۴ نو په دې صورت كې (د هغه سړي د مرګ څخه وروسته) هغه عمرى د مالك (يعني د وركونكي) په ملكيت كې واپس راځي. (بخاري مسلم)
جمهور علماء د دې حديث په باره كې دا وايي چې دا حديث مرفوع نه دى يعنى د رسول الله ﷺ ارشاد نه دى بلكه خپله د حضرت جابر رضي الله عنه قول دى، چې د ده په خپله رايه مبنى دى.
**حل اللغات:** - ① لِعَقِبِكَ: ستا د وارثانو دپاره. ② مَاعِشْتَ: ترڅو چه ته ژوندې يې.
**تسهیلات: قوله:** فَإِنَّهَا تَرْجِعُ إِلَى صَاحِبِهَا:
**دحديث څخه د امام مالک استدلال:** -داحديث دَ امام مالك رحمه الله مستدل دې چه عمرى واپس دَمعمر ملكيت كنبې لاړه شي.
**داستدلال څخه جواب:** - دَامام مالك رحمه الله روايت دَهغوى خپل قول دې مرفوع حديث نه دې دَهغه خپل اجتهاد دې لهذا دا روايت دَمرفوع احاديثو مقابله نه شي كولې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۰۱۲] د عمرى او رقبى دَممانعت وجه

[۱) ۱ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «لَا تُرْقِبُوا وَلَا تُعْمِرُوا، ۳ فَمَنْ أُرْقِبَ شَيْئًا أَوْ أُعْمِرَ فَهِيَ لِوَرَثَتِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت جابر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ مه رقبى كوى مه عمرى كوى ۳ څكه چې كوم څيز (يعني مثلًا مكان يا زمكه) په طور د رقبى يا په طور د عمرى وركول كيږي هغه د وارثانو ملكيت ته ځي. (ابوداؤد)
**حل اللغات:** - ① لَاتُرْقِبُوا: رقبى مه كوئ، دمرګه پورې كور چاته وركولو ته رقبى وائي. ② لَاتُعْمِرُوا: عمرى مه كوئ، تول عمر دپاره كور وركولو ته عمرى وائي.
**تسهیلات: قوله:** لَاتُرْقِبُوا:
**د رقبى مفهوم او معنى:** -رقبى هم دَعمرى په شان ده. دَ باب افعال نه استعماليږي. ارقاب او رقوب دَ انتظار اونګرانئ په معنى كنبې دې. دَ رقبى مفهوم اوتعارف دادې چه مثلاً يو سړې وائي چه داكور زه تاته دركوم كه چرې ته مخكښې مړ شوې نودا كور به واپس زما وى او كه چرې زه مخكښې مړشوم نوداكور به بياستا وى.نوپه داسې صورت كنبې هريو

۱) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب من قال فيه ولعقبه (رقم-۳۵۵۶) والنسائي في كتاب العمرى/باب ذكر إختلاف ألفاظ الناقلين لخبر جابر في العمرى (رقم-۳۷۳۱)

ملګرې دَبل ملګرې دَ مرګ انتظار کوي چه دې به کله مړ کيږي چه دا کور زما شي

**په روايتونو کښې تعارض:** - په دې حديث کښې رسول الله ﷺ دَ رقبٰى او عمرىٰ نه منع کړې ده حالانکه دَدې نه مخکښې احاديثو کښې دَ عمرىٰ دَ جواز بيان دې؟

**دتعارض جواب:** - دلته نهي ارشادي ده کومه چه دَ يو مصلحت لاندې ده هغه دا چه رقبٰى او عمرىٰ سره بالکليه کور دَ انسان دَ لاس نه اوځي نو حضور پاك دا لا رخودنه اوکړه چه تاسو به رقبٰى او عمرىٰ دَ تادني نه کار مه اخلئ ځکه چه رقبٰى کوني نو کوربه دَهميشه دَپاره ستاسو دَ لاس نه اوځي که صبا ضرورت شي نو تاسو به پريشان شئ په دې وجه ښه به سوچ اوفکر سره دَ رقبٰى عمرىٰ باندې اقدام کوئ. راتلونکي حديث نمبر(۳۰۱۵) کښې دا علت ومصلحت مذکور دې.

**دحکم په اعتبار سره په رقبٰى او عمرىٰ کښې اقوال:** - دَ رقبٰى حکم هم دَعمرىٰ په شان عطيه اوهبه ده. ليکن په فقهي تناظر کښې رقبٰى دَعمرىٰ نه څه مختلف ده

① د امام شافعي رحمه الله امام احمد رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله په نيز رقبٰى دَعمرىٰ په شان ده چا چه خپل کور بل چاته په توګه دَ رقبٰى ورکړو هغه به دَ هغه سرې اودَ هغه دَ وارثانو شي واپس کيږي به نه.

② امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام مالك رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نيز رقبٰى باطل ده يعنى هغه څيزدَ رقبٰى کونکي ملکيت کښې به وي.

۳۰۱۴-[۷] (۱)[۱] وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۲] قَالَ: «الْعُمْرَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا، وَالرُّقْبَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت جابر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] عمرىٰ د عمرىٰ والاوو د پاره جائز ده (يعني کوم سړي ته چې څه څيز په طور د عمرىٰ ورکول شي هغه، د هغه د پاره جائز دى) او رقبٰى د رقبٰى والاوو د پاره جائز دى (يعني کوم څيز چې په طور د رقبٰى چاته ورکول شي هغه، دهغه د پاره جائز دى) احمد ترمذي ابوداود.

**حل اللغات:** - ① الرُّقْبٰى: رقبٰى دَ باب افعال نه دَ انتظار په معنى کښې دې په اصطلاح کښې رقبٰى دې ته وائي چه مثلا يو سړې وائي چه دا کور زه تاته درکوم که چرې ته مخکښې مړ شوې نو دا کور به واپس زما وي او که چرې زه مخکښې مړ شوم نو دا کور به بيا ستا وي.

**تسهيلات:**

**نوټ:** - ددې حديث شرح ددې څخه وړاندې حديث نمبر (۳۰۱۴) کښې تيره شوې ده.

---

۱) اخرجه ابو داود فى السنن أبواب الإجارة/باب فى الرقبى (رقم-۳۵۵۸) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرقبى (رقم-۱۳۵۱) وابن ماجه فى كتاب الهبات /باب الرقبى (رقم-۲۳۸۳) واحمد فى المسند: ۳۰۳/۳

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۰۱۵] د عمرٰی د جواز په ظاهره مخالف يو بل حديث**

۳۰۰۵-[۸] (۱) ۱ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "۲ «أَمْسِكُوْا أَمْوَالَكُمْ عَلَيْكُمْ لَا تُفْسِدُوْهَا، ۳ فَإِنَّهُ مَنْ أَعْمَرَ عُمْرٰى ۴ فَهِيَ لِلَّذِيْ أُعْمِرَ حَيًّا وَمَيِّتًا وَلِعَقِبِهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ تاسو خپل مالونه د خپل خان سره ساتي په هغه کې نقصان مه پيدا کوئ ۳ ځکه چې کوم سړی چاته څه څيز د عمرٰی په طور ورکړي ۴ نو هغه څيز (مکان يا زمکه) چې په طور د عمرٰی ورکول شوی وي په ژوند او مرګ دواړو حالتونو کې د هغه سړي ملکيت شي چې هغه څيز په طور د عمرٰی ورکول شوی وي (په دې طور چې د څو هغه ژوندی وي نو خپله د هغه شي مالك وي او هغه د مرګ ځخه وروسته) بيا د هغه اولاد يې مالك شي، (مسلم)

**تسهيلات:-**

**نوټ:**- د دې حديث شرح د دې ځخه وړاندې حديث نمبر (۳۰۱۴) کښې تيره شوې ده.

# بابٌ (من الملحقات)

**دَ تير شوي باب دَ متعلقاتو بيان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① الترغيب في قبول العطايا والهدايا: ۱، ۲، ۱۴، ۱۵.
② قباحة العود في الهبة والمنع عنه: ۳، ۵، ۶.
③ جواز العود في بعض صور الهبة: ۴، ۵، ۶، ۱۶.
④ قباحة الهبة بنية الزيادة في العوض: ۷.
⑤ الترغيب في جزاء العطية والهدية: ۸، ۹، ۱۰، ۱۱.
⑥ الترغيب في التهادى: ۱۲، ۱۳، ۱۷.
⑦ تسوية العطايا بين الأولاد: ۴، ۱۶.

.....

۱) اخرجه مسلم في باب كراهة تفضيل بعض الأولاد في الهبة (رقم-۲۶ - (۱۶۲۵)) واحمد في المسند: ۳۱۲/۳

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۰۱٦] دَ خوشبوؤاوګل تحفه واپس کولو ممانعت**

۳۰۰۰-[۱] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «مَنْ عُرِضَ عَلَيْهِ رَيْحَانٌ فَلَا يَرُدُّهُ ③ فَإِنَّهُ خَفِيفُ الْمَحْمَلِ طَيِّبُ الرِّيحِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړي ته چې خوشبوداره ګلونه (د تحفې په طور) وركول شي هغه دې واپس نه وركوي، ③ ځكه چې (اول خو) هغه ډير معمولي احسان دى او (دويم دا چې هغه يوه ښه خوشبويي ده) مسلم

**حل اللغات:** ① رَيْحَانٌ: خوشبودار ګلونه، يو قسم خوشبو والاګل، ② خَفِيفٌ: سپک، معمولي، ③ اَلْمَحْمَلُ: برداشت، احسان،

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ عُرِضَ عَلَيْهِ رَيْحَانٌ فَلَا يَرُدُّهُ فَإِنَّهُ خَفِيفٌ:**

**د ګل تحفه نه واپس كولو وجه:** - دَ خوشبو او ګل تحفه وړه غوندې هم ده او مزيداره هم ده او چاته چه پيش كولې شي دَهغه اعزاز هم دې نو داسې څيز واپس كول نه دي پكار.

**[۲۰۱۷] دخوشبوئۍ نه واپس كول**

۳۰۰۱-[۲] (۲) ① وَعَنْ أَنَسٍ ② «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ به د خوشبويي هديه نه واپس كوله، بخاري.

**نوټ:** - د حديث مطلب د ترجمې څخه واضح دې.د اضافي تشريح ضرورت نشته.

**[۲۰۱۸] په هبه كښې د رجوع كونكي سپي سره تشبيه**

۳۰۰۲-[۳] (۳) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «الْعَائِدُ فِي هِبَتِهِ كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ ③ لَيْسَ لَنَا مَثَلُ السَّوْءِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

۱ ) اخرجه مسلم فى باب استعمال المسك وانه أطيب الطيب وكراهة رد الريحان والطيب (رقم-۲۰ - (۲۲۵۳) واخرجه ابو داود فى السنن كتاب الترجل /باب فى رد الطيب (رقم-۴۱۷۲) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى كراهية رد الطيب (رقم-۲۷۹۱) والنسائى فى كتاب الزينة /باب الطيب (رقم-۵۲۵۹)

۲ ) اخرجه البخارى فى كتاب اللباس /باب من لم يرد الطيب (رقم-۵۹۲۹) والنسائى فى كتاب الزينة /باب الطيب (رقم-۵۲۵۸)

۳ ) اخرجه مسلم فى كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها /باب لا يحل لأحد أن يرجع فى هبته وصدقته (رقم-۲۶۲۲) واخرجه ابو داود فى السنن أبواب الإجارة /باب الرجوع فى الهبة(رقم-۳۵۳۸)والنسائى فى كتاب الهبة /باب ذكر الإختلاف على طاوس فى الراجع فى هبته (رقم-۳۷۰۱) والنسائى فى كتاب الهبة /باب ذكر الإختلاف على طاوس فى الراجع فى هبته (رقم-۳۷۰۱) وابن ماجه فى كتاب الهبات /باب الرجوع فى الهبة(رقم-۲۳۸۵)

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس ﷠ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② خپله هبه واپس کونکې (يعني يو چاته يو څيز په طور د هديې او د تحفې ورکولو سره بيا هغه واپس اخستونکې) د هغه سپي په شان دی چې خپل قې واپس څټي ③ او زمونږ د پاره دا مناسب نه دی چې زمونږ د څه خراب مثال سره تشبيه ورکول شي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① اَلْعَائِدُ: واپس کونکې، ② مَثَلُ السُّوْءِ: خراب مثال، نمونه.

**تسهيلات:**

**قوله: كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ:**

**په هبه کښې رجوع کولو کښې مذاهب:-**

چا ته چې څه څيز په هديه او هبه کښې ورکړې شي نو په هغې کښې رجوع کولو کښې د فقهاؤ اختلاف دې

① دَ ائمه ثلاثه په نيز په هبه کښې رجوع کول نه قضاءً جائز دی اونه ديانةً جائز دی البته امام شافعي ﷫ فرمائي که چرې پلار خپل خوئي ته هبه اوکړه اوبيائي واپس کول غواړي نودهغه دپاره په وخت دَ ضرورت رجوع کول جائز دی.

② امام ابوحنيفه ﷫ فرمائي په هبه کښې رجوع کول جائز مع الکراهة ده يعنی ديانةً رجوع نه شی کولې قضاءً رجوع کولې شی. البته که چرې خوئي ته ئي هبه کړې ده نو په وجه دَ قرابت رجوع کول جائز نه ده.

**په اووه مواقعو کښې په هبه کښې د رجوع کولو عدم جواز:-** دَاحنافو په نيز اووه مواقع داسې دی چه په هغې کښې دَ هبه کولونه پس دَ رجوع کولوګنجائش نشته دې. دَدې مواقع طرف ته "دمع خزقه" دَ حروفوپه مجموعه سره اشاره کولې شی

① چنانچه حرف دال سره په موهوب څيز کښې دَمتصله زيادت طرف ته اشاره ده يعنی موهوب له په هغې کښې خپل مال شامل کړې دې اوس واهب رجوع نه شی کولې

② حرف ميم سره واهب يا موهوب له دَ مرګ طرف ته اشاره ده دَدغه مرګ په صورت کښې رجوع نه شی کولې

③ حرف عين سره هبه بالعوض طرف ته اشاره ده يعنی واهب دَ هبه په عوض څه معاوضه واخستنه نواوس رجوع ممکن نه ده

④ حرف خاء سره دَ خروج طرف ته اشاره ده چه هبه کړې شوې څيز دَ موهوب دَ لاس نه اووتلو اوس رجوع نه شی کولې.

⑤ حرف زاء نه دَ زوجين هبه طرف ته اشاره ده چه ښځې خاوند يويل ته هبه اوکړه په دې صورت کښې رجوع نه شی کيدې.

⑨ حرف قاف نه قرابت طرف ته اشاره ده او قرابت نه دَ محرمیت قرابت مراد دي لکه پلار
خونی مور خونی رور اوخور په دې صورت کښې دَ هبه طرف ته رجوع کول جائزنه دی
⑥ حرف ه نه دَهلاکت طرف ته اشاره ده چه موهوب کړې شوې څیزهلاك شو اوس رجوع
ممکن نه ده دَدې اووه صورتونونه علاوه دَ احناف په نیز هبه کښې رجوع کول جائز دی
لیکن مکروه دی

**د اول فریق دلائل:-** د اول فریق دپاره مستدل زیربحث دَ حضرت ابن عباس رضی الله
عنهما حدیث دې په کوم کښې چه دَ رجوع والو تشبیه دَ سپی قی او دَ هغې ځټلو سره
ورکړې شوې ده ښکاره خبره ده چه دا یوقبیح او حرام کاردې لهذا رجوع فی الهبه حرام ده

**دا اول فریق د دلیل ځنځه جواب:-** دا حدیث په دیانت باندې حمل دې په دې کښې رجوع
فی الهبه نهی او ممانعت نه دې صرف دَدې قباحت طرف ته اشاره کړې شوې ده اودا
قباحت د دویم فریق په نیز هم دې مګر کراهت تحریمی صورت کښې دې. بالکل دَ حرام
صورت کښې نه دې ځکه چه په دې حدیث سره حرمت ځنګه ثابتولې شی. حال دادې چه دَ
سپی دَپاره دَحرمت اوحلت څه ضابطه نشته دې دا صرف دَ خاربوالی او قباحت طرف ته
اشاره ده بهرحال په دې حدیث باندې دویم فریق احناف هم عمل کوی. صرف په اجتهادی
رنګ دهنګ کښې فرق دې هغوی حرام وائی دوی مکروه تحریمی وائی

**د دویم فریق دلائل:-** ① دَدوی مستدل د حضرت ابوهریره ﷺ مرفوع حدیث دې دکوم
الفاظ چه دادی :«الرجل احق بهبته مالم یثب منها» (رواه ابن ماجه والدارمی) یعنی که چرې
هبه بالعوض نه وی نوواهب په خپله هبه کښې دَ رجوع کولوزیات حق لری
② دحضرت سمره بن جندب مرفوع حدیث دې دَ کوم الفاظ چه دادی «اذاکانت الهبة لذی
رحم محرم لم یرجع فیها» (مستدرك حاکم بیهقی) دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ قرابت
نسبی په صورت کښې هبه کښې رجوع جائز نه ده ګنې ګنجائش شته دې

**[۳۰۱۹] اولاد ته دَ یوڅیز په ورکولوکښې د فرق کولوعدم جواز**

۳۰۱۹-[۳] (۱) ① وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ ② «أَنَّ أَبَاهُ أَتَى بِهِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ فَقَالَ: إِنِّي نَحَلْتُ ابْنِي هَذَا غُلَامًا ④ فَقَالَ: أَكُلَّ وَلَدِكَ نَحَلْتَ مِثْلَهُ؟ ⑤ قَالَ: لَا ⑥ قَالَ: فَأَرْجِعْهُ». ⑦ وَفِي رِوَايَةٍ أَنَّهُ قَالَ: «أَيَسُرُّكَ أَنْ يَكُونُوا إِلَيْكَ فِي الْبِرِّ سَوَاءً؟ ⑧ قَالَ: بَلَى، قَالَ: فَلَا إِذًا»،

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الهبة وفضلها والتحریض علیها/باب الإشهاد فی الهبة (رقم-۲۵۸۷) ومسلم فی باب کراهة تفضیل بعض الأولاد فی الهبة (رقم-۹ - (۱۶۲۳) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی النحل والتسویة بین الولد (رقم-۱۳۶۷) والنسائی فی کتاب النحل/باب ذکر إختلاف ألفاظ الناقلین لخبر النعمان بن بشیر فی النحل (رقم-۳۶۷۲) وابن ماجه فی کتاب الهبات /باب الرجل ینحل ولده (رقم-۲۳۷۵) ومالک فی الموطا کتاب الاحکام (رقم-۳۹) واحمد فی المسند: ۲۶۹/۴

ترجمه: ① او د حضرت نعمان ابن بشير رضي الله عنه په باره کې منقول دی ② چې (یوه ورځ) د هغه پلار (حضرت بشير رضي الله عنه) هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوستی ③ او عرض یې وکړي چې ما دي خپل خوی (نعمان رضي الله عنه) ته یو غلام عطا کړي دی، ④ حضور ﷺ ورته وفرمایل چې آیا تا خپلو ټولو ځامنو ته دغه شان یو یو غلام ورکړي دی؟ ⑤ هغه اوویل چې نا، ⑥ نو حضور ﷺ ورته وفرمایل چې بیا د نعمان څخه هم هغه غلام واپس واخله، ⑦ او په یو روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ د نعمان رضي الله عنه پلار ته وفرمایل چې آیا ته دا خوښوې چې ستا ټول ځامن ستا په نظر کې د نیکۍ په اعتبار سره یوشان وي؟ (یعنی آیا ته دا غواړې چې ستا ټول ځامن تاسره ښه سلوك وکړي او ټول ستا فرمانبرداري او تعظیم کوي؟) ⑧ هغه اوویل چې هو، نو حضور ﷺ ورته وفرمایل په دي صورت کې (چې ته خپلو ځامنو څخه د ښه سلوك خواهشمند یې نو) یواځې یوه خوی (نعمان رضي الله عنه) ته غلام مه ورکوه.

حل اللغات: - ① نَحَلْتُ: عطيه کړي مې دي، هبه کړي مې دي.

① وَفِي رِوَايَةٍ: أَنَّهُ قَالَ: «أَعْطَانِي أَبِي عَطِيَّةً ② فَقَالَتْ عَمْرَةُ بِنْتُ رَوَاحَةَ: لَا أَرْضَى حَتَّى يَشْهَدَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَأَتَى رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: إِنِّي أَعْطَيْتُ ابْنِي مِنْ عَمْرَةَ بِنْتِ رَوَاحَةَ عَطِيَّةً ④ فَأَمَرَتْنِي أَنْ أُشْهِدَكَ يَا رَسُولَ اللهِ ⑤ قَالَ: أَعْطَيْتَ سَائِرَ وَلَدِكَ مِثْلَ هَذَا؟

ترجمه: ① او په یو بل روایت کې دا الفاظ دي ② چې (زما مور) زما پلار (حضرت بشير رضي الله عنه) ته اوویل زه په دي د هغه وخته رضامند نه یم د څو چې ته په دي (هبه) رسول الله ﷺ شاهد جوړ نه کړي، ③ نو حضرت بشير رضي الله عنه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړي، چې یا رسول الله! ﷺ ما خپل خوی (نعمان رضي الله عنه) ته چې د بي بي عمره بنت رواحه د خیټې څخه دی، یو څیز ورکړي دی ④ او عمره بنت رواحه ماته ویلی دی چې په دی هبه رسول الله ﷺ گواه جوړ کړه ⑤ رسول الله ﷺ (د دي اوریدو سره) وفرمایل څنگه چې تا خپل دي خوی ته یو غلام ورکړي دی دغه شان خپلو ټولو ځامنو ته دي یو یو غلام ورکړي دی؟

① قَالَ: لَا، قَالَ: فَاتَّقُوا اللهَ وَاعْدِلُوا بَيْنَ أَوْلَادِكُمْ ② قَالَ: فَرَجَعَ فَرَدَّ عَطِيَّتَهُ». ③ وَفِي رِوَايَةٍ أَنَّهُ قَالَ: «لَا أَشْهَدُ عَلَى جَوْرٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ① هغه اوویل چې نا، نو حضور ﷺ ورته وفرمایل چې د الله ﷻ څخه ویریږي او د خپل اولاد په منځ کې انصاف کوي ② حضرت نعمان رضي الله عنه وایي چې زما پلار (د حضور ﷺ دا ارشاد مبارك اوریدو سره) واپس راغلو او ماته چې یې کوم څیز راکړي وو هغه یې واپس واخستلی، ③ په یو بل روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ (د حضرت بشير رضي الله عنه دا خبره اوریدو سره) وفرمایل چې زه په ظلم شاهد نه جوړیږم، (بخاري مسلم)

حل اللغات: - ③ جَوْرٍ: ظلم.

**تسهيلات:**

**قوله: نحلت ابنی:**

**د حضرت بشیر خپل ځوی ته د هبې کولو واقعه:-** نحل دعطیه اوهبه په معنی کښې دې دلته عطیه کونکې پلار حضرت بشیر ﷺ دې او کوم ځوئی ته چه هبه کول غواړی دهغه نوم نعمان دې. هغه پخپله خپله قصه په دې حدیث کښې بیانوی. دَ بشیر دَ بی بی نوم عمره بنت رواحه دې نعمان دَ هغې دَ خیټې نه وو. دَ بشیر دَ دویمې بی بی نه دنعمان میرنی رونړه وو. حضرت عمرة ﷺ غوښتل چه دهغې دَ ځوئی په عطیه باندې دَ حضورپاك تصدیق او تصویب وی په دې وجه حضرت بشیر دَ حضورپاك نه په دې باره کښې تپوس اوکړو. حضورپاك دهغه نه معلومه کړه چه نور اولاد ته ئی هم داسې عطیه ورکړې ده؟ کله چه پته اولګیدله چه نه ئی ده ورکړې نو حضورپاك دَ تصدیق او تصویب نه انکار اوکړو. د دې حدیث څخه معلوه شوه چې اولاد ته څه څیز ورکولو کښې برابری کول مستحسن اومستحب کاردې. امتیازی فرق نه دی کول پکار. لیکن آیا امتیاز کول حرام دی که مکروه دی؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د اولاد په مینځ کښې د فرق کولو په حکم کښې مذاهب:-**

① دَ امام احمدبن حنبل ﷺ مسلك دادې چه داسې امتیاز کول حرام دی.

② جمهور فقهاء کرام فرمائی داسې امتیاز کول حرام نه دی بلکه مکروه دی.

**داول فریق دلائل:-** زیر بحث حدیث داول فریق مستدل دې طریقه د استدلال دا ده چې حضورپاك اوفرمائیل "لااشهدعلی جور" یعنی جور اوظلم ته وائی اوظلم حرام دې لهذا دا امتیاز حرام دې.

**داول فریق د دلیل څخه جواب:-** علامه طیبی ﷺ او علامه نووی ﷺ فرمائی چه په کوم حدیث کښې دَ جور لفظ راغلې دې نودا دَ حرمت دَ پاره متعین نه دې بلکه په کوم حرام باندې چه ددې اطلاق کیږی هم دغه شان په مکروه باندې هم ددې اطلاق کیدې شی.

**د دویم فریق دلائل:-** ① دویم فریق په دې واقعه کښې نبی کریم ﷺ د دې جملې څخه استدلال کوی "فاشهدعلیه غیری" یعنی زما نه علاوه بل څوك په دې باندې ګواه جوړ کړه که چرې دا امتیاز حرام وی نو حضورپاك به قطعاً اجازت نه ورکولو.

② بل علامه طیبی ﷺ لیکلی دی چه حضرت ابوبکر ﷺ خپل اولاد کښې حضرت عائشه ﷺ ته په نور اولاد باندې ترجیح ورکړه بل حضرت عمر ﷺ خپل ځوئی عاصم ته ترجیح ورکړه. دغه شان عبدالرحمن بن عوف ﷺ دَ ام کلثوم ځوئی ته په نور اولاد باندې ترجیح ورکړه که چرې دا بالکل حرام وې نودې جلیل القدر صحابه کرامو چرې هم داسې نه کول.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۰۲۰] د پلار دپاره خپل بچي ځنه په هبه کښې د رجوع جواز**

۲۰۲۰-[٥] (١) ① عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «لَا يَرْجِعُ أَحَدٌ فِي هِبَتِهِ ③ إِلَّا الْوَالِدُ مِنْ وَلَدِهِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هيڅوك دي خپله هبه واپس نه اخلي (يعني هبه واپس اخستل مناسب نه دي) ③ هو پلار د خوی ځنه (هبه) واپس آخستی شي. (نسائي ابن ماجه)

**تسهيلات:** **قوله:** لَا يَرْجِعُ أَحَدٌ فِي هِبَتِهِ:

**د شوافعو مستدل:-** حديث الباب د شوافعو مستدل دې چه مطلقا هبې نه رجوع کول درست نه دی البته پلار لره د بچی د هبې نه رجوع جائز ده.

**نوټ:-** د رجوع في الهبه مسئله په تفصيل سره په بل مقام کښې ذکر کښې شوې دې

**[۲۰۲۱] د هبه کړی څيز واپس کول او عدم مروت**

۲۰۲۱-[٦] (٢) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② «لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ أَنْ يُعْطِيَ عَطِيَّةً ثُمَّ يَرْجِعَ فِيهَا ③ إِلَّا الْوَالِدَ فِيمَا يُعْطِي وَلَدَهُ، ④ وَمَثَلُ الَّذِي يُعْطِي الْعَطِيَّةَ ثُمَّ يَرْجِعُ فِيهَا كَمَثَلِ الْكَلْبِ ⑤ أَكَلَ حَتَّى إِذَا شَبِعَ قَاءَ ⑥ ثُمَّ عَادَ فِي قَيْئِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ وَصَحَّحَهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما راويان دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل د ② هيڅ سړي د پاره دا حلال نه دی (يعني د مروت له مخه دا خبره مناسب نه ده) چې هغه چاته خپل څه څيز ورکړي، او بيا هغه واپس اخلي، ③ البته پلار خپل شی واپس آخستی شي. کوم چې يې خپل خوی ته ورکړي دی، ④ او کوم سړی چې چاته څه ورکولو سره بيا يې واپس خني اخلي، نو د هغه مثال د هغه سپي په شان دی ⑤ چې هغه (په ډك نس) خوراك وکړي، او هر کله چې د هغه خيټه ډکه شی، نو قی يې کړي، ⑥ او بيا هغه قی ختل شروع کړه. (ابوداود ترمذي نسائي ابن ماجه) امام ترمذي رحمه الله دي حديث ته صحيح ويلي دي

**حل اللغات:-** ① الْعَطِيَّةَ: هبه. ② شَبِعَ: موړ شی. ③ قَاءَ: قی اوکړی

---

١) اخرجه النسائي في السنن كتاب الهبة/باب رجوع الوالد فيما يعطى ولده وذكر إختلاف الناقلين للخبر في ذلك (رقم-٣٦٨٩) وابن ماجه في كتاب الهبات /باب من أعطى ولده ثم رجع فيه (رقم-٢٣٧٨) واحمد في المسند: ١٨٢/٢

٢) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب الرجوع في الهبة (رقم-٣٥٣٩) والترمذي في كتاب الولاء والهبة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية الرجوع في الهبة (رقم-٢١٣٢) والنسائي في كتاب الهبة/باب رجوع الوالد فيما يعطى ولده وذكر إختلاف الناقلين للخبر في ذلك (رقم-٣٦٩٠) وابن ماجه في كتاب الهبات /باب من أعطى ولده ثم رجع فيه (رقم-٢٣٧٧) واحمد في المسند: ٢٣٧/١

**تسهيلات: نوټ:**- دا حديث د احنافو مستدل دې چه هبه کړې شوې څيز پلار د بچی نه واپس اغستلې شي

**[۲۰۲۲] دَ تحفې بدله کښې تحفه ورکولو ترغيب**

۳۰۲۳- [۶] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، «أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَهْدَى لِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَكْرَةً ② فَعَوَّضَهُ مِنْهَا سِتَّ بَكَرَاتٍ فَتَسَخَّطَ، ③ فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ④ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ فُلَانًا أَهْدَى إِلَيَّ نَاقَةً ⑤ فَعَوَّضْتُهُ مِنْهَا سِتَّ بَكَرَاتٍ فَظَلَّ سَاخِطًا، ⑥ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ لَا أَقْبَلَ هَدِيَّةً إِلَّا مِنْ قُرَشِيٍّ أَوْ أَنْصَارِيٍّ أَوْ ثَقَفِيٍّ أَوْ دَوْسِيٍّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو هريره ﷺ وايي چې حضور ﷺ ته يو باندچي (کليوال) په طور د تحفې يوه خوانه اوښه راوسته، ② نو حضور ﷺ هم هغه باندچي (کليوال) ته د هغه يوې اوښې په بدله کې شپږ اوښې ورکړې، ليکن هغه باندچي (کليوال) بيا هم خوشحاله نه شو، ③ حضور ﷺ ته چې کله د دې علم وشو نو مخکې يې د الله ﷻ حمد وثناء بيان کړل (څنګه چې د حضور ﷺ معمول وو چې کله به يې خطبه ويله يا يو خبره به يې شروع کوله، نو مخکې به يې د الله ﷻ حمد وثناء بيانوله) ④ بيا يې وفرمايل چې فلانی سړی په طور د هديې زما د پاره يوه اوښه رااوستلې وه، ⑤ ما هم د هغه په بدله کې شپږ اوښې ورکړې، خو هغه بيا هم خوشحاله نه شو، ⑥ نو ما دا اراده کړې ده چې اوس به زه د قريشي انصاري ثقفي او دوسي څخه علاوه د بل هيچا هديه قبوله نه کړم، (ترمذي ابوداود نسائي)

**حل اللغات:**- ① بَكْرَةً: خوانه اوښه، ② فَتَسَخَّطَ: نو هغه خفه شو، ③ نَاقَةً: اوښه، ④ فَظَلَّ اوګرځيدل ⑤ سَاخِطًا: خفه، ⑥ هَمَمْتُ: قصد کړې دې ما،

**تسهيلات:**

**قوله: لَا أَقْبَلَ هَدِيَّةً:**

**تحفې د سوداګرۍ ذريعه جوړولو حکم:**- دَ حضور پاك ښکلې عادت مبارك وو چه دَ تحفه په بدله کښې به ئې تحفه ورکوله بلکه اکثر به ئې زياتی ورکول. يوځل يوکلی وال حضورپاك ته يوه څوانه اوښه په تحفه کښې ورکړه نو حضورپاك شپږ څوانې اوښې په بدله دَ تحفه کښې ورکړې. ليکن هغه کلی وال خوشحال نه شو. کله چه حضورپاك ته دَ دې علم اوشو نوخطبه ئې ورکړه چه ما اراده کړې ده چه دَ چاهديه هم قبوله نه کړم (ځکه چه خلقو دادَ تجارت ذريعه جوړه کړه) او يوڅو قبائل دی چه هغوی په اخلاص دَ زړه نه بغيردَ څه

۱) اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی قبول الهدايا (رقم-۳۵۳۷) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی ثقيف وبنی حنيفة (رقم-۳۹۴۵) والنسائی فی کتاب العمری/باب عطية المرأة بغير إذن زوجها (رقم-۳۷۵۹)

حرص او لالچ تحفه ورکوی چه صرف دَ هغوی نه قبلوم په هغوی کښې یودَ قریشو خاندان دې کوم چه فیاض دی. بل انصار دی اودریم دَ دوس قبیلې خلق دی داد اوچت همت والا د ی چه په ﴿وَلَا تَمۡنُن تَسۡتَكۡثِرُ﴾ باندې کلك ولاړ دې

**[۲۰۲۲] دَمحسن شکریه اداکولو ترغیب**

—[۱](۱)[۱]عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ:[۲]«مَنْ أُعْطِيَ عَطَاءً فَوَجَدَ فَلْيَجْزِ بِهِ،[۳]وَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُثْنِ[۴]فَإِنَّ مَنْ أَثْنَى فَقَدْ شَكَرَ،[۵]وَمَنْ كَتَمَ فَقَدْ كَفَرَ[۶]وَمَنْ تَحَلَّى بِمَا لَمْ يُعْطَ[۷]كَانَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**:[۱]او حضرت جابر ﷺ د حضور ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]کوم سړي ته چې څه څیز (په طور د هدیې) ورکول شي او د هغه په بدله ورکولو قادر وي، نو هغه ته پکار دی چې د هغه بدله ورکړي،[۳]او کوم سړی چې په بدله ورکولو قادر نه وي، نو هغه ته پکار دی چې د هدیې ورکونکو تعریف او توصیف وکړي (او هغه د ورکړي هدیې اظهار دې وکړي)[۴]څکه چې کوم سړی د خپل محسن تعریف وکړي هغه لکه چې د هغه شکر ادا کړي (یعني في الجمله د هغه بدله یې خلاصه کړه) [۵]او کوم سړی چې د چا احسان پټ کړي (یعني نه خو د څه ورکولو سره او نه د تعریف کولو سره د هغه بدله یې ور کړه) نو هغه کفران نعمت (یعني ناشکري وکړه)[۶]او (یاد لرئ) کوم سړی چې خپل ځان په څه داسې شي سره ښائسته کړي چې هغه ته نه وي ورکول شوی،[۷]نو د هغه مثال د دروغو د دوو کپړو د اغوستونکي په شان دی، (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات**:- ①فَلْيَجْزِ: نو بدله دې ورکړی، ②فَلْيُثْنِ: نو ثنا او تعریف دې اوکړی، ③كَتَمَ: پټ نې کړو. ④كَفَرَ: ناشکری، ناقدری نې اوکړه، ⑤تَحَلَّى: ځان نې ښائسته کړو، ⑥كَلَابِسِ: په شان د اغوستونکی، ⑦زُور: دروغ

**تسهیلات**: **قوله**: فَوَجَدَ فَلْيَجْزِ بِهِ:

**د مالی احسان بدله په مالی احسان ورکول**:- یعنی که چرې مالی وسعت وی نو هغه له پکاردی چه دَ مالی احسان بدله دې هم په مالی احسان سره اداکړی څکه چه ﴿ هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ﴾ الرحمن الایه: ۶۰ راغلې دې او که چرې مالی وسعت نه وی نو په خله دې دَخپل محسن تعریف اوتوصیف اوکړی داهم دَشکریه ځانی دې. څکه چه دَ شکرمفهوم دا دې چه په زړه کښې دې محبت وی په ژبه دې تعریف وی او په لاس دې خدمت وی نوزبانی تعریف هم دَ شکر یوڅانګه ده.

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی شکر المعروف (رقم-۴۸۱۳) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التشبع بما لم یعطه (رقم-۲۰۳۴)

**قوله:** وَمَنْ كَتَمَ:

**د کتم مفهوم:** -یعنی نه ئې تعریف اوکړو اونه ئې دَ محسن شکریه اداکړه اونه ئې دَ هغه دَ احسان چرته تذکره اوکړه نوهغه په حقیقت کښې دَهغه دَ احسان ناشکري اوکړه.

**قوله:** وَمَنْ تَحَلّٰى:

**کلابس ثوبی زور سره د تشبیه ورکولو وجه:** -دَ ښائسته کولوپه معنی کښې دې یعنی خپل خان ښکلې کړه په هغه څیزسره کوم چه هغه ته نه دې ورکړې شوې مثلاً عالم نه دې لیکن هغه دَعلماؤ په شان رنګ اولباس وغیره اختیاروي. یا پیر جوړشوې دې خو پخپله تهګ دې یا ان پړه دې مګر شان اوشوکت ئې داسې دې چه پوره تعلیم یافته ښکاري. یعنی دینی اودنیاوی صفت اوکمال داسې ظاهره وي چه لکه هغه په دې سره متصف دې حالانکه هغه دَدې صفت نه بالکل خالي دې. په حقیقت کښې هغه یودهوکه باز دې. ونیلی شي په عربو کښې یوسړې وو چه ډیر ښه لباس به ئې اچولو ښکته پورته به ئې دوه قمیصونه اچول دې دَپاره چه خلق دَدې خبرې ښه یقین اوکړي مګر وو دروغژن. حضورپاك هم دغې سره تشبیه ورکړې ده.

**[۲۰۲٤] تحفه ورکونکي ته د دعا کولو حکم**

[۱] (۱) [۱] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَنْ صُنِعَ إِلَيْهِ مَعْرُوفٌ [۳] فَقَالَ لِفَاعِلِهِ: جَزَاكَ اللهُ خَيْرًا [۴] فَقَدْ أَبْلَغَ فِي الثَّنَاءِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسامه ابن زید ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د کوم سړي سره چې څه احسان وشي [۳] او د هغه احسان کونکي په حق کې دا دعا وکړي جَزَاكَ اللهُ خَيْرًا (یعنې الله ﷻ دي تاته د دې ښه بدله درکړي) [۴] نو هغه د خپل محسن کامل تعریف وکړي، (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① صُنِعَ: چې اوکړې شوه ② مَعْرُوفٌ: نیکی، ③ أَبْلَغَ: زیاتوالې ئې اوکړو، مبالغه ئې اوکړه.

**تسهيلات: قوله:** فَقَدْ أَبْلَغَ فِي الثَّنَاءِ:

**په تعریف کښې اعتدال:** -یعنی دَ ورکولودَپاره هیڅ نشته نودَ محسن په حق کښې خودعاکول پکاردي لیکن دَ تعریف پل تړل نه دي پکار دَ اعتدال په لار باندې قائم پاتې کیدل پکاردي.

**قوله:** جَزَاكَ اللهُ خَيْرًا

**احسان کونکي ته بدله ورکول:** - که یوسړې شکریه هم نه اداکوي دعاهم نه کوي نوهغه په

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناسک ،باب فی تحریم المدینة (رقم-۲۰۳۵)

حقيقت کښې ناشکري کوي اوکوم سړي چه دَ خلقو شکريه نه اداکوي هغه دَ الله تعالى هم شکريه نه اداکوي لکه چه په راتلونکي حديث کښې راځي

**[۲۰۲۵] دخلقو د شکر ادا کولو تاکيد**

۳۰۲۵ـــ[۰] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللهَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د خلقو نه شاکر کېږي هغه د الله ﷻ هم شکر نه ادا کوي. (احمد ترمذي)

**قوله:** مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللهَ:

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:-**

① کوم کس چې د خلقو شکريه نه ادا کوي نو هغه د الله تعالى هم شکر ګزار نشي کيدې ځکه چه دا کس د ناشکرئ عادي شوې دې ده ته د الله شکر ګزاري کله نصيب کيږي.

② الله تعالى د خلقو د شکريه ادا کولو حکم کړې دې نو چه کله داکس دا حکم نه پوره کوي نو هغه د الله تعالى شکر ګزار نشي جوړيدې ځکه چه د الله نعمتونه د بندګانو په واسطه رسيږي نو چه کله د واسطې شکريه نه ادا کوي نو د الله شکر به څنګه ادا کړي.

**[۲۰۲٦] دَ انصارو احسان اودَ مهاجرينو بدله**

۳۰۲٦ـــ[۰] (۲) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: [۲] «لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ [۳] أَتَاهُ الْمُهَاجِرُونَ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ مَا رَأَيْنَا قَوْمًا أَبْذَلَ مِنْ كَثِيرٍ [۴] وَلَا أَحْسَنَ مُوَاسَاةً مِنْ قَلِيلٍ مِنْ قَوْمٍ نَزَلْنَا بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ [۵] لَقَدْ كَفَوْنَا الْمُؤْنَةَ وَأَشْرَكُونَا فِي الْمَهْنَإِ حَتَّى لَقَدْ خِفْنَا أَنْ يَذْهَبُوا بِالْأَجْرِ كُلِّهِ [٦] فَقَالَ: لَا مَا دَعَوْتُمُ اللهَ لَهُمْ وَأَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِمْ». [۷] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي کوم وخت چې رسول الله ﷺ (د مکې څخه هجرت کولو سره) مديني ته تشريف راوړو، [۲] نو (يوه ورځ) د مهاجرينو يو جماعت د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړې چې يا رسول الله! ﷺ مونږ داسې هيڅ قوم نه دی ليدلی دی چې په زيات مالدارې کې ډير زيات خرڅ کونکی [۳] او په کمې مالدارې کې ډير د ښه خدمت او د مدد کولو په وصف کې د دې قوم څخه ښه وي، کوم چې په هغوئ کې مونږ راکوز شوي يو، [۴] دوی (يعني انصارو) مونږ د محنت څخه سبکدوش (سپك) کړي يو، او په ټول تر منفعت کې يې مونږ شريك کړي يو، [۵] او اوس (د دوی دا جذبه سخاوت او ايثار ليدو سره) مونږ ته خودا انديښنه ده، چې ټول تر ثواب چرته د دوی په حصه کې

---

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب/باب في شكر المعروف (رقم-۴۸۱۱) والترمذي في كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الشكر لمن أحسن إليك (رقم-۱۹۵۵) واحمد في المسند:۲/۲۵۸

۲) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة القيامة/باب دعا الله والثنا عليه ... رقم الحديث ۲٦۷۵

رانشي، [٦] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې نا ، (تول تر ثواب به د دوئ په حصه کې نه راځي) د څو پورې چې تاسو د دوئ د پاره د الله ﷻ څخه دعاغواړې او د دوئ تعريف (يعني شکرد نعمت ادا) کوئ، [٧] امام ترمذي عليه الرحمه دا حديث نقل کړي دی او دي ته يې صحيح ويلی دی

**حل اللغات:-** ① أَبْذَلَ : زيات خرچ کوی، ② مُوَاسَاةً : خدمت کول، ③ الْمُؤْنَةَ : محنت، مشقت، ④ الْمَهْنَأ : گټه او منفعت، ⑤ مَهْنَأ : مونږ ته ويره ده، خطره ده،

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ: لَا مَا دَعَوْتُمُ اللهَ لَهُمْ وَأَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِمْ**

**په دعاګانو سره د احساناتو بدله ادا کول:-** په مدينه منوره کښې انصارو د مهاجرينو پرخدمت اوکړو هم د دې اظهار مهاجرينو د حضورپاك په وړاندې اوکړو اودا پريشاني ښکاره کړه چه د دې احساناتو د وجې نه به زمونږ د هجرت وغيره نيکئي ټولې د هغوی په حق کښې اونه ليکلې شي. حضور پاك تسلی ورکړه چه داسې به نه کيږی ترکومې پورې چه تاسو د هغوی تعريف کوئی او د هغوی په حق کښې دعا کوئی او جزاك الله وايئی نود هغوی د احساناتو بدله به کوزه شي. تاسوته به ستاسو د عبادت ثواب ملاويږی اوهغوی ته به ستاسو د نصرت ثواب ملاويږی. الله تعالی خو کريم دې تاسو ته به هم درکړی او هغوی ته به هم ورکوی.

**د حديث د بعضې جملو مطلب:-** ① اشركونا في المهنأ: يعنی په راحت آسانئی او سهولت کښې نی مونږ شريك کړو چه د خپلو پټونصف حصه ئی بغير د مشقت نه تيارولوسره مونږ ته راکړه ② مهنأ: ميم او نون دواړو باندې زبردې په آخره کښې همزه دې بغير د څه محنت مشقت چاته يوڅيز حاصليدو ته وائی دلته غله اوميوه مراد ده.

**[۲۰۳۷] د تحفه ورکولوسره عداوت لرې کيدل**

۲۰۳۷-[۳] (۱) [١] عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «تَهَادُوا فَإِنَّ الْهَدِيَّةَ تُذْهِبُ الضَّغَائِنَ»، رَوَاهُ.

**ترجمه:** [١] او د مؤمنانو مور بي بي عائشه رضي الله عنها څخه نقل دي [٢] چې حضور ﷺ وفرمايل په خپلو کې د تحفې راکړه ورکړه کوی ځکه چې د تحفې اخستل ورکول کينې لرې کوي، (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① تَهَادُوا : يوبل ته هديه تحفه ورکوئ، ② الضَّغَائِنَ : د ضغينة جمع ده، کينې، حسد او عداوت ته وائی.

---

(۱) ترمذی لم اجده

**تسهيلات:**

**قوله** رَوَاهُ: دلته دَ رواه نه پس بياض دي بعضې عالمانو الترمذى لګولې دې

**د هديه ورکولو فوائد:** - هديه ورکولو سره خپل مينځ کښې لين دين زياتيږي او بغض او عداوت لرې کيږي او خپل مينځ کښې محبت زياتيږي د مشکات په اصل نسخو کښې رواه نه پس خالي ځائ دې ددې مطلب دا وی چه صاحب مشکات ته ماخذ نه دې ملاو شوې او بيا روستو چا د ترمذى لفظ زيات کړو

## [۲۰۲۸] معمولي تحفې لره د سپک نه کتلو حکم

۲۰۲۸—[۳] (۱)[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] تَهَادَوْا فَإِنَّ الْهَدِيَّةَ تُذْهِبُ وَحَرَ الصَّدْرِ [۳] وَلَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ شِقَّ فِرْسِنِ شَاةٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په خپلو کې تحفه ورکوی او آخلي يې ځکه چې تحفه د سيني کدورت (خيرن والی) لرې کوی او (ياد لرئ) يو ګاونډنه دې د خپلې دويمې ګاونډۍ (د څه کمتر شي) تحفه حقيره نه ګڼي [۳] اګر چې د بزې (چيلۍ) د نوك په قدرولې نه وي، (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① تَهَادَوْا: يوبل ته هديه تحفه ورکوئ، ② وَحَرَ: سخته کينه، خيرې، ③ الصَّدْرِ: سينه (زړه)، ④ جَارَةٌ ګاونډۍ ⑤ وَلَوْ شِقَّ: اګرکه برابر وی، شِق حصه او مقدار ته وائی ⑥ فِرْسِنِ: د خپې نوک، ⑦ شَاةٍ: بزه، چيلۍ

**تسهيلات: قوله** فِرْسِنِ:

نوکې ته وائی دَ چيلنی او اوښ دَپاره فرسن هم داسې دې لکه دَ اس دَپاره چه حافر دې نوکې سره معمولی شان غوښه وی دَهغې ذکرکړې شوې دې مراد معمولی عطيه ده **د تحفې سپک نه ګڼل:** - مطلب دا چه تحفه هرڅومره معمولی وی هغه دې نه ورکونکې سپکه ګڼړی اونه دې اخستونکې سپکه ګڼړی ځکه چه تحفه خو يواعزاز اواکرام دې په دې سره دزړونو سخت غصه اوغضب لرې کيږی که دا غيظ اوغضب دَ دوو بنو په مينځ کښې ولې نه وی

## [۲۰۲۹] د درې څيزو لورد کولو ممانعت

۲۰۲۹—[۳] (۲)[۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «ثَلَاثٌ لَا تُرَدُّ [۳] الْوَسَائِدُ وَالدُّهْنُ وَاللَّبَنُ.» [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، قِيلَ: أَرَادَ بِالدُّهْنِ الطِّيبَ

۱) اخرجه الترمذ ی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الظلم (رقم-۲۰۳۰) واحمد فی المسند: ۲/۲۶۴

۲) اخرجه الترمذ ی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية رد الطيب (رقم-۲۷۹۰)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] دري څيزونه داسې دي چې د هغه د قبلولو څخه انکار نه دی پکار [۳] ① تکيه ② تيل ③ شيدي، امام ترمذي رحمه الله دا حديث نقل کړي دی او ويلې يې دی چې د تيل څخه د حضور ﷺ مراد خوشبوده.

**حل اللغات:** - ① الْوَسَائِدُ: د وِسد جمع ده، بالخت، ② الدُّهْنُ: تيل، ③ اللَّبَنُ: پئ، شيدې.

**تسهيلات:** **قوله:** ثلاثة لاتُرَدُّ:

**د دري څيزونو واپس کولو حکم:** - يعنی دري څيزونه داسې دی چه که څوك دې سره ستا اکرام کوی نوته دغه مه واپس کوه څکه چه ردکول خپل اعزاز اواکرام نه پخپله انکارکول دی کوم چه مناسب نه دی. يو تکيه ده دويم په سر کښې دَ اچولودپاره تيل يا عطر اودريم پينی دی. دا معمولی شان عطيې دی په دې کښې دَ انسان اعزاز اواکرام دې لهذا ردکول نه دی پکار. دهن نه تيل او خوشبوئی دواړه مراد اخستې شی.

**[۲۰۲۰] د خوشبوئې د هديه واپس کولو مما نعت**

۲۰۲۰-[۵] (۱) [۱] عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِذَا أُعْطِيَ أَحَدُكُمُ الرَّيْحَانَ فَلَا يَرُدُّهُ [۳] فَإِنَّهُ خَرَجَ مِنَ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابو عثمان نهدي (تابعي رحمه الله) څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کښې چاته خوشبودار گُل (په طور د تحفې او هديې) درکول شی نو د هغه د قبلولو څخه انکارمه کوئ، [۳] څکه چې هغه گل د جنت څخه راغلی دی، دا روايت امام ترمذي رحمه الله په طور د ارسال نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① الرَّيْحَانَ: دا يو قسم خوشبودار گل دې.

**تسهيلات:** **قوله:** الرَّيْحَانَ:

**د ريحان مصداق:** - مطلق خوشبوئی دار گل باندې دَ ريحان اطلاق کيږی اودَ ريحان گل هم مراد اخستې شی. دا يوبوټې دې دکوم تخم ته چه تخم ملنگا وائی. دا تخم دَ اسپغولو خاصيت لری. وړې وړې تورې دانې وی دَدې بوټی پاڼې مړلوسره عام خوشبوئ خوريږی.

**قوله:** مِنَ الْجَنَّةِ:

**د من الجنة په مصداق کښې دوه اقوال:** -

① يعنی دَ هرگل خوشبوئی دَ جنت دَ خوشبوئی په شان ده.

② دَهرگل جرړه او اصل بنياد جنت کښې دې. دا دَ جنت نمونې دی انکار کول ترې کم ظرفی ده.

۱) اخرجه الترمذ ى فى السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى كراهية رد الطيب (رقم-۲۷۹۱)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۰۲۱] خپلو ځامنوته په هبه کښې د فرق کولو ممانعت**

۳۰۲۱—[۱۰] (۱)[۱] عَنْ جَابِرٍ قَالَ: [۲] «قَالَتِ امْرَأَةُ بَشِيرٍ: انْحَلِ ابْنِي غُلَامَكَ وَأَشْهِدْ لِي رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَأَتَى رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: إِنَّ ابْنَةَ فُلَانٍ سَأَلَتْنِي أَنْ أَنْحَلَ ابْنَهَا غُلَامِي وَقَالَتْ: أَشْهِدْ لِي رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] فَقَالَ: أَلَهُ إِخْوَةٌ؟ قَالَ: نَعَمْ [۵] قَالَ: أَفَكُلَّهُمْ أَعْطَيْتَهُمْ مِثْلَ مَا أَعْطَيْتَهُ؟ قَالَ: لَا [۶] قَالَ: فَلَيْسَ يَصْلُحُ هٰذَا وَإِنِّي لَا أَشْهَدُ إِلَّا عَلَى حَقٍّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر ﷺ وايي [۲] چې د يو صحابي حضرت بشير ﷺ ښځې هغه ته اوويل چې ته زما خوى نعمان ته خپل غلام هبه کړه او په دې زما د اطمينان د پاره رسول الله ﷺ شاهد جوړ کړه، [۳] نو بشير ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړي چې د فلاني لور (يعني عمره بنت رواحه چې زما ښځه ده) ماته دا خواهش کړي دى چې زه د هغه خوى نعمان ته خپل غلام هبه کړم، او دا يې هم ويلي دي چې (په دې باره کې) زما د اطمينان د پاره رسول الله ﷺ شاهد جوړ کړه، [۴] حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې آيا د دې خوى نور وروڼه هم شته؟ هغه اوويل چې هو، [۵] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې آيا تا هغه ټولو ته دغه شان يو يو غلام ورکړي دى؟ څنګه چې يې ته نعمان ته ورکوي، هغه اوويل چې نا، [۶] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې دا مناسب نه دى او زه يواځې په حق خبره ګواه جوړيږم، (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَنْحَلَ: دا د هبه دپاره استعماليږي.

**د امرأة بشير تعارف:** - د بشير د ښځې نوم عمره بنت رواحه دې او د هغې د خوى نوم چه د عمره د بطن نه وو هغه نعمان دې او د بشير نور اولاد د بلې ښځې نه وو

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنِّي لَا أَشْهَدُ إِلَّا عَلَى حَقٍّ

**د حق په مفهوم کښې دوه اقوال:** -

① دحق نه مراد دادې چه زه صرف په هغه معامله کښې ګواه جوړيږم چه هغه بغير د شک او شبهې نه اوبغير د کراهت نه خالص طورسره حق او صحيح وى،

② نبي کريم ﷺ عمومي طور باندې دا اوفرمائيل چه زه په حق باندې ګواه جوړيږم په باطل باندې ګواه نه جوړيږم. بهرحال په دې سلسله کښې تفصيلي بحث دړومبي فصل په حديث نمبر (۳۰۱۹) کښې تيرشوې دې.

۱) اخرجه مسلم في باب كراهة تفضيل بعض الأولاد في الهبة (رقم-۱۹ - (۱۶۲۴)) واحمد في المسند: ۳/۳۲۶

**[۲۰۳۲] دَ نوې ميوې تحفه کول**

۲۰۳۲-[۶] (۱) ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أُتِيَ بِبَاكُورَةِ الْفَاكِهَةِ ② وَضَعَهَا عَلَى عَيْنَيْهِ وَعَلَى شَفَتَيْهِ وَقَالَ: اللَّهُمَّ كَمَا أَرَيْتَنَا أَوَّلَهُ فَأَرِنَا آخِرَهُ ③ ثُمَّ يُعْطِيهَا مَنْ يَكُونُ عِنْدَهُ مِنَ الصِّبْيَانِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي ماليدلي دي چې رسول الله ﷺ ته به څه نوي ميوه پيش شوه ② نو مخکې به يې هغه ميوه (قبلولو سره) په خپلو سترګو او شونډو ايښودله، بيا به يې فرمايل چې اې الله ﷻ څنګه چې تا مونږ ته د دې ميوې ابتداء وښودله، دغه شان د دې انتهاء هم راته وښايه، ③ د دې څخه وروسته به حضور ﷺ هغه ميوه هغه و ړو ته ورکوله چې د حضور ﷺ سره به نزدې وو، (بيهقي)

**حل اللغات:** - ① بَاكُورَةِ: تازه ميوه، د موسم رومبۍ ميوه،

**تسهيلات:**

**قوله: وَضَعَهَا عَلَى عَيْنَيْهِ:**

**د يوڅيزد قدر کولو دپاره هغه په سترګو کيخودوحکم:-** دَالله تعالى دَ نعمتونو اظهاراودَهغې دَ قدر کولو په توګه به حضورپاك په سترګو باندې کيخودله. که څوك قرآن پاك په سترګوکيږدی نود ددې حديث په وجه دا څه ناجائزعمل نه دې.

**قوله: مِنَ الصِّبْيَانِ:**

**ماشوم ته د ميوې ورکولو دوه وجوهات:-** ① دَ ماشومانو په طبيعت کښې دَ ميوو وغيره طرف ته زياته مينه او محبت وی څکه به نې هغوی ته ورکولو

② په دې وجه به نې ميوه ماشوم ته ورکوله چه ماشوم هم دَ دغه ميوې په شان راغلې دې چه دَ چا دَ زړه ميوه ده.

**قوله: اللَّهُمَّ كَمَا أَرَيْتَنَا أَوَّلَهُ فَأَرِنَا آخِرَهُ:**

**د مذکوره دعا په معنی کښې دوه اقوال:-** ① که په دې جمله کښې صرف دَ دنياوی ميووبيان مقصود وی نو دَ آخره نه به دَ ميوو آخری حصه مراد وی لکه څنګه چه دَ ميوو شروع خودلې ده اې الله هم په دنياکښې دَدې انتهاء هم راوښايه چه تر ډيره وخته پورې په مزه کښې پاتې شو

② که دَ آخره تعلق دَ آخرت نعمتونوسره وی نومطلب به دا شی چه الله رب العزت لکه څنګه چه دې په دنياکښې دا نعمتونه رااوخودل دغه شان په آخرت کښې هم رااوښايې.

۱) اخرجه في كتاب الدعوات الكبير / باب ما يقول اذا اتى بباكورة... رقم الحديث ۴۳۹

# [۱۴]بَابُ اللُّقَطَةِ

## دَلقطه بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية احاديث مشتملة على ست مسائل:**

① وجوب تعريف اللقطة سنة: ۱، ۴.

② الزجر بعدم تعريف اللقطة: ۲، ۶.

③ النهي عن لقطة الحاج: ۳.

④ ضمان اللقطة : ۸.

⑤ الإشهاد وقت اللقطة: ۷.

⑥ الرخصة في الانتفاع باللقطات الرخيصة: ۸.

**د لقطه معنی :-** لقطه دَ لام پیښ اوقاف زبر او جزم دواړو سره لوستلې کیږي. دَ محدثینو حضراتو په نیزقاف ساکن لوستل زیات مشهوردی. غورزیدلی شوی څیزته لقطه وائی یولفظ لقیط دې هغه دَ لاوارث بچی اوچتولو او ساتلوته وائی.

دلته دَلقطه فقهی څلور مسائل ذکر کولی شی

### [۱]د تشهیر په موده کښې مذاهب:-

دَ غورزیدلی څیز اوچتول مستحب دی په دې شرط چه په خپل ځان باندې دَ تشهیر باور اویقین وی کنی هم په هغه ځائی باندې پریخودل بهتردی. خوکه دَ دغه څیزدَ ضائع کیدو خطره وی نوبیا اوچتول واجب دی کنی ګناهګارکیږی به. هم دغه حکم دَ لقیط بچی هم دې اودځناور هم دې دَ لقیط خرچه په بیت المال هم ده اودَ ځناور خرچه دَ ځناور دَ منافع نه ده

① دَامام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله په نیز دَتشهیرځه موده مقررنه ده بلکه دَ مبتلی به سری په رائې باندې موقوف ده.

② دَ ائمه ثلاثه اوامام محمد رحمه الله په نیزدَ تشهیرموده یوکال ده که لږ مال وی اوکه ډیرمال وی. دواړو فریقو دَ احادیثونه استدلال کړې دې.

### [۲]دَ لقطې په استعمال کښې مذاهب:-

که دَ تشهیرنه پس هم دَمالك پته اونه لګیده او اوچتونکی فقیردې ① نودَ امام ابوحنیفه رحمه الله او سفیان ثوری رحمه الله په نیزئی هغه پخپله استعمالولې شی اوکه غنی اومالدار وی نو په یوغریب دې صدقه کړی

② دَامام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز که اوچتونکې مالداروی که غریب هغه لقطه په ذاتی توګه استعمالولې شی دَ دواړو فریقو دَاحادیثونه استدلال کړې دې.

**[۳] د حیوان په لقطه کښې مذاهب:-**

دَ چیلئی وغیره ساتلو او تشهیرکولو کښې خوځه اختلاف نشته دې خوکه چرته اوښ ملاؤشی نوهغه ساتل او دَ هغې لقطه جوړول څنګه دی؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز که دَ ورك شوی اوښ دَ ضائع کیدو خطره وی نو دَهغې التقاط مستحب دې.

② دَ ائمه ثلاثه په نیز دَ اوښ لقطه جوړول خلاف اولی دی.

دا اختلاف دومره سخت نه دې چه دَدې دَپاره احادیث یا قیاس استعمال کړې شی البته دومره خبره یقینی ده چه نن صبا اوښ خو څه خلق دَ دې نه هم لوئی څیز پته وی او اوړی

**[۴] دَ حرم په لقطه کښې مذاهب:-**

① دَ امام شافعی رحمه الله په نیز دَ حرم لقطه نه اوچتول بهتر دی که چرې اوچت ئې کړه نو دائمًا تشهیرلازم دې.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز که لقطه دَ حرم وی اوکه دَ حل وی دَ دواړو حکم یوشان دې دَ ضائع کیدو دَ ویرې اوچتول او تشهیرکول پکاردی.

**داول فریق دلیل:-** د دوی دلیل دَ مسلم شریف حدیث دې "ان رسول الله صلی الله علیه وسلم نهی عن لقطة الحاج" یعنی نبی کریم ﷺ د حاجیانو د لقطې اوچتولو څخه منع فرمائیلې ده د دې څخه معلومه شوه چې د حرم لقطه اوچتول نه دی پکار.

**د دویم فریق دلیل:-** دویم فریق چې احنافو دی د دوی دلیل د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما او حضرت عائشه رضی الله عنها روایت دی کوم کښې چه دا دې "ان حکم لقطة مکة کحکم سائر البلدان" (زجاجه المصابیح ج۲ص۲۰۰) بهرحال دَاحوالو فساد ته کتلوسره فیصله کول پکاردی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۰۲۲] دَملتقط دَپاره جامع ضابطه**

۲۰۲۲-[۱] (۱) ① عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ: ② «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَسَأَلَهُ عَنِ اللُّقَطَةِ، ③ فَقَالَ: اعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً، ④ فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلَّا فَشَأْنَكَ بِهَا، ⑤ قَالَ: فَضَالَّةُ

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب إذا لم یوجد صاحب اللقطة بعد سنة فهی لمن وجدها (رقم-۲۴۲۹) ومسلم فی کتاب اللقطة (رقم-۱ - (۱۷۲۲))واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الزکاة/باب التعریف باللقطة (رقم-۱۷۰۴) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی بیع فضل الماء (رقم-۱۲۷۲) وابن ماجه فی کتاب اللقطة/باب ضالة الإبل والبقر والغنم (رقم-۲۵۰۴) ومالک فی الموطا کتاب الاقضیة/باب القضاء فی اللقطة (رقم-۴۶) واحمد فی المسند: ۱۱۶/۴

الْغَنَمِ؟ قَالَ: هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ [٦] قَالَ: فَضَالَّةُ الْإِبِلِ؟ قَالَ: مَا لَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَاؤُهَا وَحِذَاؤُهَا [٧] تَرِدُ الْمَاءَ وَتَأْكُلُ الشَّجَرَ حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**حل اللغات:** - ① اعْرِفْ: اوپیژنه، معلوم کړه. ② عِفَاصَهَا: ای دعاءها عقاص علامې او نښانې ته وائی یعنی لقطه په نښه کښې ساته. ③ وِكَاءَ: سربند، سرپوخ. ④ عَرِّفْهَا: معلومات ئې ورکوه، تشهیر ئې کوه. ⑤ الذِّئْب: شیرمغ، لیوه. ⑥ رَبُّهَا: پالونکې یا مالک دهغې. ⑦ سِقَاء: مشکیزه. ⑧ حِذَاؤُهَا: حذاء موزې او څپلی ته وائی.

**ترجمه:** [١] حضرت زید ابن خالد ﷺ وایی [٢] چې یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او د لقطه په باره کې یې د حضور ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې (که لویدلی شی پیدا شي نو څه کول پکار دی؟) [٣] حضور ﷺ ورته وفرمایل چې مخکې خو د هغه طرف وپیژنه (یعني که هغه څیز په څه کپړی یا د څرمني تهیلی وغیره کې دی نو هغه په شناخت کې ساته) او د هغه سر بند هم وپیژنه، بیا یو کال پورې د هغه تشهیر کوه (د یو کال په موده کې) [٤] که د هغه مالك راشي، نو هغه څیز هغه ته حواله کړه، او که هغه رانشي نو بیا هغه په خپل استعمال کې راوله. [٥] بیا هغه سړی د ورکې شوی بزي (چیلۍ) په باره کې پوښتنه وکړه (که د چا ورکه شوي بزه یو سړی نیولی راولي نو د هغه سره څه وکړي؟) حضور ﷺ ورته وفرمایل چې هغه ستا ده یا ستا د ورور ده یا د شرمښ ده. [٦] د دې څخه وروسته هغه سړي پوښتنه وکړه چې د ورك شوي اوښ په باره کې څه حکم دی؟ حضور ﷺ خنې پوښتنه وکړه چې ستا د هغه څه کار دی (یعني هغه مه نیسه ځکه چې هغه ضائع کیدونکی شی نه دی، ځکه د هغه د نیولواو راوستو ضرورت نشته) د هغه مشك او موزې د هغه سره دی [٧] چې هغه د څو خپل مالك ته ونه رسیږي تر اوبو تلی شي او د وني پاڼي خوړلی شي، (بخاري مسلم)

[١] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: «عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ اعْرِفْ وِكَاءَهَا وَعِفَاصَهَا ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا [٢] فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ»

**ترجمه:** [١] او د مسلم په یو روایت کې داسې دي چې (هغه سړی د لقطه په باره کې پوښتنه وکړه، نو) حضور ﷺ ورته وفرمایل چې تر یو کال پورې د هغه تشهیر کوه، او د هغه سربند او ظرف (تیلی وغیره) بیان که (د تشهیر په دې موده کې که د هغه مالك رانشي، نو) بیا هغه په خپل استعمال کې راوله. [٢] او که د دې څخه وروسته د هغه مالك راشي نو هغه ته د هغه څیز (مثل په شرط د دې چې ستا سره هغه شان وي) ورکړه (کني د هغه قیمت ورته ادا کړه)

**حل اللغات:** - ① اسْتَنْفِقْ: خپل استعمال کښې ئې راوله، یا خرچه پرې کوه.

**تسهيلات: قوله: عَرِّفْهَا سَنَةً:**
د لقطه د تشهير مسئله ددې باب په اول کښې په تفصيل سره تيره شوې ده

**قوله: وَإِلَّا فَشَأْنُكَ:**
يعنى بيا ته پوهه شه اوستاكار پوه شه پخپله ئى خورې كه بل ته ئى وركوې په دې مسئله كښې تحقيق هم د قطه د استعمال مسئله هم ددې باب په اول كښې په تفصيل سره تيره شوې ده

**قوله: هِيَ لَكَ:**
**دچليې د تشهير حکم:** - يعنى چيلئى يوكمزورې خناوردې كه چرې تاورته خيال اونه كړو نو ستا بل يو رور به ئى اونيسى يا به ئى ليوه ماته كړى. مطلب دا چه دا لكه دَ لقطه په توگه باندې محفوظ اوساته.

**قوله: مَعَهَا سِقَاؤُهَا:**
كه لقطه اوښ وى نو ددې تفصيل هم ددې باب په اول كښې تيرشوې دې

**قوله: وَحِذَاؤُهَا:**
**د اوښ د مضبوطتيا اوقوت بيان:** --حذاځپلئى اوموزې ته وائى مراد دَ اوښ مضبوط تلى دى. لهذا هغه دَ خوراك څښناك او درندگانونه په بچ كيدلو كښې پوره دې. گرمى يخنى برداشت كوى دَ ريگستان جهاز دې او ښه لوئى دې هيڅ يوځناور هغه شلولې نه شى

**قوله: فَأَدِّهَا إِلَيْهِ:**

**د لقطه د واپس كولو په طريقه كښې مذاهب:-**

① كه څيز موجود دې نو وركړه گنى قيمت وركړه. امام مالك رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمائى چه لقطه دَهغې دَمالك په مطالبه باندې وركول واجب دى دَ هيڅ گواه ضرورت نشته دې صرف علامات او نشانات خودل ضرورى دى.

② احناف او شوافع وائى كه چرې ملتقط ته يقين راغلو نو وركول جائز دى مگر واجب نه دى. وركول هله واجب دى چه كله مالك په داسې مال باندې گواه پيش كړى.

**[۳۰۲٤] دَ تشهير په ليت سره د لقطه اوچتول**

۳۰۳۲-[۲] (۱) ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "② «مَنْ آوَى ضَالَّةً فَهُوَ ضَالٌّ مَا لَمْ يُعَرِّفْهَا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت زيد رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② څوك چې د چا ورك شوي څيز پورته كولو سره د ځان سره وساتي نو هغه گمراه دى د څو پورې چې هغه د هغه

۱) اخرجه مسلم فى كتاب اللقطة /باب [ص:۱۳۵۱] فى لقطة الحاج (رقم-۱۲ - (۱۷۲۵))واحمد فى المسند: ۱۱۷/٤

تشهیر ونه کړي. (مسلم)

**حل اللغات** - ① آوَی: محفوظ کړی، اوچت کړی، ② ضَالَّةً: ورک شوې څیز

**تسهیلات: قوله**: مَنْ آوَی ضَالَّةً:

**د لقطه د اوچتولو غرض**:- کوم ځاني چه دَ لقطه نه اوچتولو حکم په احادیثو کښې راغلې دې دَهغې نه مراد هم دغه دی چه یوسړې پخپله دَ خوړلو پتهولو دَ پاره اودَ دباوولودَپاره اوچته وی نوداګناه ده لیکن که دَ حفاظت په توګه دَ تشهیرپه غرض سره نې اوچته وی نوبیاجائزدی

## [۲۰۳۵] حاجی دلقطه نه اوچتولو حکم

۲۰۳۵ــــ[۳] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② نَهَى عَنْ لُقَطَةِ الْحَاجِّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① او حضرت عبد الرحمٰن ابن عثمان تیمي ﷺ وایي ② چې رسول الله ﷺ د حاجیانو د لویدلی شی پورته کولو څخه منع فرمایلي ده. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① لُقَطَةِ: لویدلي څیز.

**تسهیلات**:

**قوله**: نَهَى عَنْ لُقَطَةِ الْحَاجِّ:

**د حرم د لقطه په اوچتولوکښې اختلاف**:- د احنافو په نزد د حل او د حرم لقطې حکم یوشان دې لیکن د امام شافعی په نزد د حرم لقطه نه اوچتوی څکه کیدې شی چه مالک نې په لټولو لټهولو دې ځاي ته راورسی نو خپل څیز به ورته ملاؤ شی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۰۳۶] د زوړندې قجورې د اخستلو حکم

۲۰۳۶ــــ[۴] (۲) ① عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ «عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ ③ فَقَالَ: مَنْ أَصَابَ مِنْهُ مِنْ ذِي حَاجَةٍ ④ غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ ⑤ وَمَنْ خَرَجَ بِشَيْءٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ وَالْعُقُوبَةُ ⑥ وَمَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينُ ⑦ فَبَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ،

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب اللقطة/باب [ص:۱۳۵۱] فی لقطة الحاج (رقم-۱۱ - (۱۷۲٤) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الزکاة/باب التعریف باللقطة (رقم-۱۷۱۹) واحمد فی المسند: ۴۹۹/۳

۲) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الزکاة/باب التعریف باللقطة (رقم-۱۷۱۰) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی أکل الثمرة للمار بها (رقم-۱۲۸۹) والنسائی فی کتاب قطع السارق/باب الثمر یسرق بعد أن یؤویه الجرین (رقم-٤٩٥٨) وابن ماجه فی کتاب الحدود/باب من سرق من الحرز (رقم-۲۵۹۶) واحمد فی المسند: ۱۸۰/۲

**ترجمه:** [۱] حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار (د حضرت شعيب ) څخه او شعيب د خپل نيکه (يعني حضرت عبد الله ابن عمرو ) څخه نقل کوي [۲] چې د رسول الله ﷺ څخه (په ونو کې) د خړيدلو ميوو په باره کې پوښتنه وشوه. [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل چې که يو ضرورتمند سړی څه ميوه (پريکولو سره) وخوري [۴] خو په خپله جولۍ کې ډکولو سره يې نه يوسي نو په هغه څه گناه نشته. [۵] او کوم سړی چې يې وخوري هم او خولۍ هم ډکه کړي نو په هغه دوچنده تاوان دی، او سزا ده [۶] او کوم سړی چې د هغه ميوو څخه غلا وکړي کوم چې په درمن کې ايښودل شوی وي [۷] او هغه غلا کړي مقدار يې د يو سپر د قيمت برابر وي، نو د هغه د پاره د لاس پريکولو سزا ده.

[۱] وَذَكَرَ فِي ضَالَّةِ الْإِبِلِ وَالْغَنَمِ كَمَا ذَكَرَهُ غَيْرُهُ [۲] قَالَ: وَسُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ [۳] فَقَالَ: مَا كَانَ مِنْهَا فِي الطَّرِيقِ الْمِيتَاءِ وَالْقَرْيَةِ الْجَامِعَةِ [۴] فَعَرِّفْهَا سَنَةً [۵] فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ، وَإِنْ لَمْ يَأْتِ فَهُوَ لَكَ. [۶] وَمَا كَانَ فِي الْخَرَابِ الْعَادِيِّ فَفِيهِ وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ». [۷] رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ عَنْهُ مِنْ قَوْلِهِ: وَسُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:** [۱] راوي د ورك شوي اوښ او بزې (چيلۍ) په باره کې د هغه سوال او جواب ذکر وکړي، کوم چې نورو راويانو بيان کړي دی (چې مخکې تير شوی دی) [۲] د دې څخه وروسته راوي وايي چې بيا د رسول الله ﷺ څخه د لقطه په باره کې پوښتنه وشوه. [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل کومه لقطه چې په داسې لار پيدا شي چې په هغه تله راتله کيږي (آمد ورفت وي) او کلي او آبادۍ ته نژدې وي. [۴] نو د هغه په باره کې تر يو کال پورې تشهير او اعلان کوي. [۵] او بيا چې کله هغه راشي نو هغه لقطه ورته حواله کړي، او که مالك رانشي نو بيا هغه لقطه ستا ده (چې ته يې په خپل کار کې راوستی شې) [۶] او هغه چې په قديم ويرانه کې پيدا شي د هغه او زمکې څخه د راختونکي دفينې دا حکم دی چې د هغه پنځمه حصه دې د الله ﷻ په لار کې ورکول شي. [۷] نسائي، او ابوداود دا روايت د عمرو بن شعيب څخه تر وسئل عن اللقطة پورې نقل کړي دی

**حل اللغات:** - ① الْمُعَلَّقِ: زوړنده. ② خُبْنَةً: جولۍ يا جيب ډکول ③ غَرَامَةُ: تاوان. ④ مِثْلَيْهِ: دوچند. ⑤ الْعُقُوبَةُ: عذاب. سزا. تعزير. ⑥ أَنْ يُؤْوِيَهُ: چه راوړلو سره ئې محفوظ کړی. ⑦ الْجَرِينَ: درمن. ⑧ الْمِجَنَّ: ډهال. ⑨ الطَّرِيقِ: لار ⑩ الْمِيتَاءِ: د تګ راتګ عام لاره. ⑪ الْخَرَابِ: خرابه. شاړه. غيرآباد ځائې ⑫ الْعَادِيِّ: تر ډيرې زمانې نه. د قوم عاد د زمانې راهسې. ⑬ الرِّكَازِ: دفينه. خزانه. ⑭ الْخُمُسُ: پنځمه حصه

**تسهيلات:** قوله: الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ:

**د زوړندې ميوې څخه د خوراک کولو محمل:** - يعني په ونوپورې زوړندشوې ميوې که يو مضطرسړي دَ مخمصه په حالت کښې اوخوری دې دپاره چه ځان ئې بچ شی نو اجازت دې

بيا به روستو قيمت اداكوى ياد اسلام په شروع كښې داسې اجازت وو.

**د غير مضطر د پاره زوړند ميوې د خوراک حکم:-** ذکرشوې حکم په هغه صورت کښې دى چه دا سړې ئې جمع کوى نه که ذخيره کوى يا کور ته اوړى نو په هغه به ډبل تاوان هم راځى اوهغه ته به سزا هم ورکولې شى د ډبل تاوان حکم په توګه د تغليظ تشديد تهديد او تنبيه دې يا داهم د اسلام د شروع حکم وو بيا منسوخ شو اګرچه حضرت عمر رضي الله عنه به د دې ظاهرى حديث مطابق فيصله کوله اود امام احمد رحمه الله مسلك هم دغه دې په لمن وغيره کښې پټول اوړل غلا ده

**قوله:** وَالْقَرْيَةِ الْجَامِعَةِ:

**د مذکوره جملې مطلب:-** يعنى چه د ښارپه آبادئى کښې ملاؤشى نودا د لقطه په حکم کښې دې د دې تشهيرضرورى دې.

**قوله:** وَمَا كَانَ فِي الْخَرَابِ:

**د مذکوره جملې مطلب:-** يعنى بالکل ويران اوغيرآباد ځنګل چه د قوم عادزمانې نه ويران پروت وى په هغې کښې خزانه ملاؤشى نو په هغې کښې خمس دې او په رکاز کښې هم خمس دې.

**[۲۰۳۷] د لقطه د استعمالولوځخه روسته د مالک د راتلو په صورت کښې د لقطه حکم**

٢٠٣٧-[د] (١)[١]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ[٢]«أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ وَجَدَ دِينَارًا فَأَتَى بِهِ فَاطِمَةَ[٣]فَسَأَلَ عَنْهُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: هَذَا رِزْقُ اللهِ[٤] فَأَكَلَ مِنْهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: " وَأَكَلَ عَلِيٌّ وَفَاطِمَةُ،[٥] فَلَمَّا كَانَ بَعْدَ ذَلِكَ أَتَتِ امْرَأَةٌ تَنْشُدُ الدِّينَارَ،[٦] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: يَا عَلِيُّ أَدِّ الدِّينَارَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[١]او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي[٢]چې (يوه ورځ) حضرت علي کرم الله وجهه (په يوه لار کې په طور د لقطه) يو دينار بياموندو هغه يې بي بي فاطمي رضي الله عنها ته راوړو[٣]او بيا چې حضرت علي رضي الله عنه په دې باره کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم ځخه پوښتنه وکړه، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې دا د الله تعالى ورکړي رزق دی،[٤]بيا د هغه دينار خريد شوي څيز حضور صلى الله عليه وسلم هم وخوړلو او حضرت علي رضي الله عنه او بي بي فاطمي رضي الله عنها هم وخوړلو،[٥]د دې ځخه وروسته چې يوه ښځه خپل دينار لټولو د پاره راغله،[٦]نو حضور صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل چې اې علي رضي الله عنه دې ښځې ته دينار ورکړه، (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① تَنْشُدُ: لټولو ئې، ② أَدِّ: ادا کړه (صيغه د امر ده)

---

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الزكاة/باب التعريف باللقطة (رقم-١٧١٤)

**تسهیلات:**

**قوله: يَا عَلِيُّ أَوِالدِّيْنَارَ:**

**د موندلي څيز د اعلان نه پس د استعمالولو جواز:-** د روایت د مفهوم نه دا بالکل نه ظاهرېږي چه حضرت علي ﷺ د تشهیر او اعلان نه بغیر دا دینار خرچ کړو، بلکه احتمال همدا دې چه اول هغوی تشهیر (اعلان) اوکړو بیا ئې روسته خرچ کړو

**بغیر د ګواه څخه ښځې ته د څیز په ورکولو کښې دوه اقوال:-**

① نبی کریم ﷺ چه دغه ښځې ته صرف دهغې په ونیلو باندې هغې ته دینار ورکړو نو ددې وجه داده چې دغه ښځې ددې دینار علامت بیان کړې وی

② به نبی کریم ﷺ ته په بل څه ذریعه علم شوې وی چه دا دینار ددغه ښځې وو

**[۲۰۳۸] په خراب نیت د لقطه اوچتولو وعید**

۳۰۳۸-[۶] (۱)[۱] وَعَنِ الْجَارُوْدِ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲] «ضَالَّةُ الْمُسْلِمِ حَرَقُ النَّارِ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت جارود ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] د مسلمان ورك شوي څیز (د دوزخ) د اور یوه شعله ده، (دارمي)

**حل اللغات:-** ① ضَالَّةُ: ورک شوې څیز، ② حَرَقُ: أور، شغله.

**تسهیلات:**

**قوله: ضَالَّةُ الْمُسْلِمِ حَرَقُ النَّارِ:**

**د حدیث مفهوم:-** مطلب دادې چه که څوک یو لقطه په دې بد نیت سره راوچته کړی چه زه به ددې مالک شم، او دې هغه احکام پوره نه کړی کوم چه د لقطه په سلسله کښې لکه تشهیر وغیره شریعت نافذ کړی دی نو دغه لقطه به دغه سړې اور ته حواله کړی

**[۲۰۳۹] په لقطه اوچتولو ګواه جوړول**

۳۰۳۹-[۷] (۲)[۱] وَعَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲] «مَنْ وَجَدَ لُقَطَةً فَلْيُشْهِدْ ذَا عَدْلٍ أَوْ ذَوِي عَدْلٍ[۳] وَلَا يَكْتُمْ وَلَا يُغَيِّبْ[۴] فَإِنْ وَجَدَ صَاحِبَهَا فَلْيَرُدَّهَا عَلَيْهِ[۵] وَإِلَّا فَهُوَ مَالُ اللّٰهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْ دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت عیاض بن حمار ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] کوم سړی

١ ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن الشرب قائما(رقم-١٨٨١) واحمد فی المسند: ٨٠/٥

٢ ) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الزکاة/باب التعریف باللقطة (رقم-١٧٠٩) وابن ماجه فی کتاب اللقطة/باب اللقطة (رقم-٢٥٠٥) واحمد فی المسند: ١٦١/٤

چې په يو خای کې يو لويدلی شی پيدا کوي، نو پکار دی چې هغه يو عادل سړی يا وي فرمايل چې دوه عادل سړي شاهدان جوړ کړي (د هغه تشهير او اعلان نه کولو سره)③ هغه لقطه دې نه پټوي او نه دې هغه (بل خای ته ليږي سره) غائبه کړي.④ بيا که د هغه مالك راشي نو هغه ته دې حواله کړي.⑤ او که مالك يې نه وي نو بيا هغه د الله ﷻ ورکړي مال دی چې الله ﷻ چاته غواړي (د غيب څخه) مال ورکوي. (احمد ابوداود دارمي)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عياض بن حمار:-** نوم عياض دَ پلارنوم حمار يا حماد وو. دَ جاهليت دَ زمانې نه دَ رسول الله ﷺ دوست وو (۱) دَ بعثت نبوی ﷺ نه پس دَ خپل زړو تعلق په وجه ئی حضور ﷺ له تحفه ورکول غوښتل نوحضور ﷺ قبوله نه کړه (۲) غالباً دَ مکې دَ فتح نه وړاندې مسلمان شوې وو. بصره کښې اوسيدلو.علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی په عربوکښې يوه ډله داسې وه چه دَ تبرك په توګه به ئی دَ قريشو کپړې اغوستې اودَ بيت الله شريف طواف به ئی کولو.عياض هم په دغه ښکلې عقيدت مندو خلقو کښې وو اوهغه سره دَ رسول الله ﷺ لباس مبارك موجود ووکله چه به مکې ته راتلونودَ رسول الله ﷺلباس مبارك کښې به ئې طواف کولو. (۳)

**مرويات:-** دَ هغه نه ديرش (۳۰) احاديث نقل دی. (۴) دَ نوروحالاتودپاره اوګورئی استيعاب۲/ ۵۱۰

② مسنداحمد جلد۵ ③ تهذيب التهذيب ۸/ ۲۲۰ ④ تهذيب الکمال ص ۳۱۰.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ وَجَدَ لُقَطَةً فَلْيُشْهِدْ:**

يعنی ګواه قائم کړئی چه دومره مال دې فلانکی تاريخ باندې ماته په فلانکی خائی کښې ملاؤشوې دې بيا تشهيراوکړه

**دګواهانو جوړولو حکم:-**

بعض علماء وائی دا ګواه جوړول مستحب دی بعض ورته واجب وائی

**د ګواه جوړولو فائدې:-**

① که چرې مالك راغلو دَ زياتې دعویٰ ئی اوکړه يا دَواکئی اوغلا دعویٰ اوکړی نو تاسره به ګواه وی هيڅ پريشانی به نه وی ګنی پريشان به شې

② دغه شان ګواه جوړولو سره به ته پخپله هم دَهغې دَ خوړلواو هضمولو په چکر کښې نه پريوځې

۱) طبقات ابن سعد ۲/ ۵۱۰). (۲)مسنداحمد) (۳)استيعاب ۲/ ۵۳) (۴)تهذيب الکمال ۳۱۰) (۵)مسلم فی البر باب إستحاب العفو والتواضع) (۶)روضة المتقين ۲/ ۱۵۲. (۷)(۸)

### [۲۰٤۰] په معمولی څيز کښې عدم تشهير

۔۔۔[۸] (۱) ۱ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: ۲ «رَخَّصَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْعَصَا وَالسَّوْطِ وَالْحَبْلِ وَأَشْبَاهِهِ ۳ يَلْتَقِطُهُ الرَّجُلُ يَنْتَفِعُ بِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ ۴ وَذُكِرَ حَدِيثُ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيكَرِبَ "أَلَا لَا يَحِلُّ" فِي بَابِ الِاعْتِصَامِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر ﷺ وايي ۲ چې رسول الله ﷺ مونږ ته د امسا (لکړی) دُرې، رسۍ او د دی په شان د نورو څيزونو په باره کې (چې په عام طور سره کمتر ګڼل کيږی) دا اجازت راکړي وه ۳ چې کوم سړی غواړي، پورته دي کړي، او هغه دي په خپل کار کې راولي، (ابوداؤد)

۴ او دحضرت مقدام ابن معدی کرب روايت په باب آ لا لايَحِلّ الخ په باب الاعتصام بالکتاب والسّنة کې نقل شوی دی.

**حل اللغات:** - ① السَّوْط: دُوره، ② الْحَبْل: رسۍ.

**تسهيلات:**

**قوله:** رَخَّصَ لَنَا:

**په کم قيمته څيز کښې د تشهير موده:** - يعنی بالکل کم ترمال مثلاً همسا پړي يا دَ چابك چوکه يا کهجوره دا حقير څيزونه دی کوم سړې چه دَدې اعلان کوی ګرځی هغه په حقيقت کښې رياکار دې دَ خپلې تقوىٰ تشهيرکول غواړی. دَ امام ابوحنيفه ﷫ نه يو روايت دې چه دَ لس درهم نه په کم مال کښې يوڅو ورځې تشهيردې په لس درهم کښې دَ يوې مياشت تشهيردې اودَ لس درهم نه زيات کښې دَ يوکال تشهيردې.

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الزكاة/باب التعريف باللقطة (رقم-۱۷۱۷)

# [۱۷] بَابُ الْفَرَائِضِ

## فرائض يعنى د ميراث بيان

**خلاصة الباب :-**

**فيه ثمانية وعشرون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① حق التوريث بطريق الإسلام: ۱، ۲۶.

② الترغيب في تعلم علم الفرائض: ۲۸.

③ موانع الإرث: ۳، ۶، ۷، ۱۳.

④ ذكر الفروض المعينة للوارثة: ۸، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱.

⑤ ۲، ۴، ۴،۵، ۶، ۹، ۱۱،۱۰، ۱۲، ۱۵، ۱۶، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۷، ۲۸.

**د ميراث د فرضيت ثبوت :-** ﴿ يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِيٓ أَوۡلَٰدِكُمۡۖ لِلذَّكَرِ مِثۡلُ حَظِّ ٱلۡأُنثَيَيۡنِۚ ﴾ [سورت النساء الايه:۱۱]

**د فرائض لغوى وضاحت :-** فرائض جمع ده دَدې مفرد فريضة ده فريضه دَ فرض نه مشتق ده چه دَ قطع او پرې كولو په معنى كښې هم راځى اودَ مقدر اومقرركولو په معنى كښې هم راځى

**ميراث باندې د علم الفرائض د اطلاق وجه :-** دَالفرائض نه علم الميراث مراد دې په قرآن پاك كښې دا دَ فريضه په نوم سره ياد كړې شوې ده او په حديث كښې دى "وافرضكم زيد رضي الله عنه اى اعلمكم بعلم الميراث" په دې وجه دې علم ته علم الفرائض وائى

**د فرائض يعنى علم الميراث اصطلاحى تعريف :-** "المقدرات الشرعية في المتروكات المالية" يعنى دَميراث هغه حصه كومه چه قرآن اوحديث مقرركړې ده

**ترتيب وار د مړى څلور حقوق :-** ① دَټولونه اول دَ مړى تجهيز اوتكفين دې په دې چه كوم خرچ راځى هغه دَ قرض نه مقدم دې

② دَ تجهيز او تكفين نه پس كه په مړى باندې دَ چاقرض وى يا څه مطالبه وى نودَهغې اداكول ضرورى دى

③ دې نه پس چه كوم مال بچ شى بيا په هغې كښې دَ دريمې حصې نه دَ مړى وصيت پوره كول دى كه چرې هغه وصيت كړې وى

④ دې نه پس چه كوم مال بچ شو هغه به تول په تول دَمړى په وارثانو كښې تقسيم كولې شى

**د ميراث د تقسيم ترتيب :-** ① اول به ذوى الفروض ته دَهغوى مقرركړې شوې حصې

ورکولې شي اودوی دَ اولې درجې وارثان دي او ذوی الفروض تول دولس دي

② دَ مړی دَ ترکه نه دَ ذوی الفروض حصې ورکولونه پس څه چه بچ شي هغه به په عصبات کښې تقسیم کولې شي دوی عصبات دَ دویمې درجې وارثان دي

③ که دَ یومړی په وارثانوکښې نه ذوی الفروض موجود وی اونه عصبات موجود وی نوبیابه دَ هغه ترکه په ذوی الارحام کښې تقسیم کولې شي لکه چه ذوی الارحام دَ وراثت دریمه درجه ده

**ه ارث څلور موانع:-** ① غلامی مانع د ارث ده غلام نه دَ چا وارث کیدې شي اونه دَ ده څوك وارث کیدې شي ځکه چه غلام په شرعی توګه دَ څه څیزمالك کیدې نه شي

② ناحق قتل مانع د ارث دې که یووارث خپل مورث قتل کړی نو شرعًا قاتل دَ میراث نه محروم کیږی

③ اختلاف مذهب مانع د ارث دېچه دَ دوو مذهبونو اختلاف هریودَ بل مذهب والادَ میراث نه محروم کوی مثلاً مسلمان اویهودی یا عیسائی یا قادیانې یا رافضی

④ اختلاف دارین مانع د ارث دې یعنی دَ مړی اووارث دَ ملك اووطن مختلف کیدل دَ میراث نه محروم کوی مثلاً یوسړې په دارالاسلام کښې اوسیږی او بل په دارالحرب کښې اوسیږی نودواړه به دَ یوبل دَ میراث نه محروم پاتې کیږی

**نوټ:-** خودا حکم دَ غیرمسلم دَپاره دې په مسلم وارث اومورث کښې اختلاف دَ دارین هیڅ اعتبارنشته دې په قرآن کښې دَالله تعالی صریح حکم دې چه دَښځو په میراث کښې حق شته سره دَدې چه نن صباهریومسلمان داحکم نظرانداز کوی خو په قیامت کښې به حساب کیږی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۰٤۱]دَمړی د ترکې مستحقین

۲۰٤۱—[۱] (۱)① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② «أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ ③ فَمَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ وَلَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ ④ وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ». وَفِي رِوَايَةٍ: «مَنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضِيَاعًا فَلْيَأْتِنِي فَأَنَا مَوْلَاهُ، وَفِي رِوَايَةٍ: مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ، وَمَنْ تَرَكَ كَلًّا فَإِلَيْنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**① او حضرت ابوهریره ﷛ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل② زه د مسلمانانو په

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب من تکفل عن میت دینا، فلیس له أن یرجع (رقم-۲۲۹۸) ومسلم فی کتاب الفرائض/باب من ترک مالا فلورثته (رقم-۱۵ - (۱۶۱۹) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی أرزاق الذریة (رقم-۲۹۵۵) والنسائی فی کتاب الجنائز/باب الصلاة علی من علیه دین (رقم-۱۹۶۳) وابن ماجه فی کتاب الصدقات/باب من ترک دینا أو ضیاعا فعلی الله وعلی رسوله (رقم-۲٤۱۵) واحمد فی المسند: ٤۵۶/۲

حق کې په خپله د هغوئ څخه هم زیات عزیز یم (یعني د دین او د دنیا په هره معامله کې یو مسلمان په خپل ځان چې څومره شفیق او مهربانه کیدی شي زه په هغه د هغه څخه هم زیات شفیق او مهربانه یم څکه چې د هغوئ د قرضونو د اداکولو هم زه زیات حقدار یم)[۲] نو کوم سړی چې مسلمان مړ شي او په هغه قرض وي او هغه دومره مال نه وي پریښی، چې د هغه سره د هغه قرض ادا کیدی شي، نو د هغه د قرض ادائیګی زما په ذمه ده.[۳] او کوم سړی چې دومره مال پریږدي (چې د هغه قرض ادائیګی او د هغه د کړي د شرعي وصیت د تکمیل څخه وروسته هم څه پاتې شي) نو د هغه مال د وراثانو دی

د یو روایت الفاظ دا دي چې کوم سړی قرضدار یا عیالدار مړ شي، او هغه دومره مال نه وي پریښی چې په هغه سره د هغه د قرض آدائیګی وشي یا د هغه د اهل وعیال پرورش اوسی، نو د هغه وکیل یا وصي دي ماته راشي، زه به د هغه انتظام وکړم (یعني زه به د هغه قرض ادا کړم، او د هغه د اهل وعیال پرورش به کوم)

او په یوه بل روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمایل کوم سړی چې مال پریښودلو سره مړ شي، نو هغه مال د هغه د ورثاء دی، او کوم دروند څیز (یعني قرض او عیال) پریښودلو سره چې مړ شي نو د هغه انتظام کول زما په ذمه دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ①أَوْلَى: زیات نږدې، زیات حقدار، ②وَفَـاءً: پوره، برابر، (قرض پوره کونکې مال) ③ضَيَاعًا: عیال والا، بال بچ والا، ④مَوْلَاهُ: کارساز او انتظام کونکې دهغه ⑤كَلًّا: بوج، دروند څیز (مراد قرض او عیال دی).

**تسهیلات:**

**قوله: أَنَا أَوْلَى بِالمومنين:**

**په حدیث کښې داولی مفهوم:-** دَ احق او اقرب په معنی کښې دې یعنی حضورپاك فرمانی چه زه په هرڅیزکښې که هغه دَ دین متعلق وی اوکه دَ دنیامتعلق وی دَمسلمانانودَ ځانونونه زیات دَ هغې حقدار یم لهذا زما شفقت په هغوی باندې دَ دې نه زیات دې کوم شفقت چه دَهغوی په خپلو ځانونوباندې دې نوزه دَهغوی دَ قرض دَ اداکولوهم زیات حقداریم

**قوله: ومن ترك كَلًّا:**

**دنبی علیه السلام په خپل امت باندې شفقت:-** بې یار اومددګار اولاد دلته دَ کلاً په نوم سره یادکړې دې. دې عظیم شفقت او محبت ته اوګورئی اوبیاپه نبی اکرم ﷺ باندې درود اووایئی. حضورپاك فرمائی چه ګټه دَ مړی دَ وارثانوده اوچه کوم بوج دې په هغې کښې به زه امدادکوم "سبحان الله" په امت باندې دَ شفقت انتهاء ده.

**[۲۰٤۲] ترکه کښې اولنی حقداران**

۳۰۴۲-[۲] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَلْحِقُوا الْفَرَائِضَ بِأَهْلِهَا [۳] فَمَا بَقِيَ فَهُوَ لِأَوْلَى رَجُلٍ ذَكَرٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د ميراث حصې چې په قرآن کريم کې مقررې شوې دي، حصه دارو ته ورکړې، [۳] بيا چې څه پاتې شي هغه د مړي د هغه مرد وارث (عصبه) حق دی چې د مړي د ټولو څخه زيات نږدې عزيز وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَوْلَى: زيات نږدې، زيات حقدار.

**تسهيلات: قوله: ألحقوا الفرائض بِأَهْلِهَا:**

**داهل څخه مراد:** - د أهل نه مراد ذوی الفروض دی چه په قرآن کښې دَهغوی دَ حصو واضح بيان کړې شوې دې. دَ ذوی الفروض نه چه کوم مال بچ شو هغه دَ اقرب عصبات دې دَ نيزدې عصبه په موجودګئ کښې به بعيد عصبه ته څه نه ملاويږی هغه حاجب دې

**د رجل څخه روسته د ذکر، په ذکر کولو د تکرار اعتراض:** - د "رجل" ذکر کولو نه پس "ذَكَرٍ" ذکر کول بې موقع دې ځکه چه رجل هم مذکر وی.

**د اعتراض درې جوابونه:** - ① دَ رجل اطلاق عموماً په بالغ سړی باندې کيږی حالانکه دَميراث تعلق دَ ماشومانو بچوسره هم وی. دَدې وهم لرې کولودَپاره دَ رجل نه پس دَ ذَكَرٍ تاکيد او وضاحت اوکړې شو.

② دا لفظ صرف دَتاکيد دَپاره دې.

③ دَ ذکر لفظ زياتولوسره دَخنثی نه احتراز مقصود دې.

**[۲۰٤۳] د اختلاف دين په وجه د ميراث څخه محروم ليدل**

۳۰۴۳-[۳] (۲) [۱] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ [۳] وَلَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

۱ ) اخرجه البخاري في كتاب الفرائض/باب ميراث الولد من أبيه وأمه (رقم-۶۷۳۲) ومسلم في كتاب الفرائض/باب ألحقوا الفرائض بأهلها، فما بقي فلأولى رجل ذكر (رقم-۲ - (۱۶۱۵) واخرجه ابو داود في السنن كتاب الفرائض/باب في ميراث العصبة (رقم-۲۸۹۸) والترمذي في كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في ميراث العصبة (رقم-۲۰۹۸)

۲ ) اخرجه البخاري في كتاب الفرائض/باب لا يرث المسلم الكافر ولا الكافر المسلم (رقم-۶۷۶٤) ومسلم في كتاب الفرائض (رقم-۱ - (۱۶۱٤) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الفرائض/باب هل يرث المسلم الكافر؟ (رقم-۲۹۰۹) والترمذي في كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إبطال الميراث بين المسلم والكافر (رقم-۲۱۰۷) وابن ماجه في كتاب الفرائض/باب ميراث أهل الإسلام من أهل الشرك (رقم-۲۷۲۹) ومالك في الموطا كتاب الفرائض/باب ميراث أهل الملل (رقم-۱۰) واحمد في المسند: ۲۰۹/۵

**ترجمه:** [۱] اسامه بن زيد ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] نه خو مسلمان د كافر وارث دى [۳] او نه كافر د مسلمان وارث دى. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ:**

**مسلمان او كافر په خپل مينځ كښې د ميراث اوړلو حكم:** - ① په اتفاق سره كافر دَ مسلمان وارث نشي جوړيدې اوددې په عكس چې مسلمان دكافر څخه ميراث يوسى نو ائمه اربعه اوجمهور علماء په نيز مسلمان هم دكافر وارث كيدې نه شي لكه څنګه چه زير بحث حديث كښې دى چه نه كافر دَ مسلمان وارث كيدې شي اونه مسلمان دكافر وارث كيدې شي.

② حضرت معاذ ﷺ اوحضرت معاويه ﷺ او بعض تابعين لكه سعيدبن مسيب رحمه الله او ابراهيم نخعي رحمه الله په نيز مسلمان دَ كافر وارث كيدې شي زير بحث حديث دَ جمهورو دليل دې

**د مرتد څخه د ميراث اوړلو په حكم كښې مذاهب:** -

① دَ مرتد دَ مال ده چه دَهغه وارث به څوك وى. نو دَ امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز دَ مرتد په حالت دَ اسلام كښې ګټلې شوې ټول مال به بيت المال ته خي بيت المال دَهغه وارث دې

② دَ صاحبينو دې چه كوم مال هم دَ مرتد وى كه هغه ئى دَ اسلام په حالت كښې ګټلې وى اوكه دَ ارتداد په حالت كښې ګټلې وى ټول مال دَهغه دَ وارثانو حق دې

③ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دې هغه فرمائى چه په حالت دَ اسلام كښې ګټلې شوې مال دَ وارثانو دې اوپه حالت دَ ارتداد كښې ګټلې شوې مال دَ بيت المال دې

**[۳۰۴۴] آزادونكى مالك د غلام د ميراث مستحق كيدل**

۳۰۴۳ - [۴] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د يو قوم آزاد كړي غلام د هغه قوم څخه دى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① مَوْلَى: آزادونكې يا آزاد كړې شوې غلام دواړه مراد كيدې شي

**تسهيلات: قوله: مَوْلَى الْقَوْمِ:**

**دمولى په اطلاق كښې دوه احتمالات:** - دَ مولى اطلاق په آزادونكى باندې هم كيږى او په آزاد كړې شوى غلام باندې هم كيږى

۱) اخرجه البخارى فى كتاب الفرائض /باب مولى القوم من أنفسهم. وابن الأخت منهم (رقم-۶۷۶۱)

① دلته که چرته دَمولی نه معتق آقا مراد دي نودَ حديث مطلب به داشی چه آزادنکي سري دَ خپل آزاد کړي شوی غلام وارث دي دا مسئله واضحه ده

② که چري دَ مولی نه مراد آزادکړي شوي غلام واخستي شی نودَ حديث مطلب به داشی چه کم قوم يوغلام آزاد کړو نودَ آزاد کړي شوی غلام حيثيت هم دَهغه قوم په شان کيږی که چري آزادونکي سيد دي دَچا دَپاره چه صدقه اخستل حرام دی نوغلام هم دَ سيد په حکم کښي کيږی دهغه دَپاره به هم صدقه اخستل حرام وی

**د دويمي معنی ترجيح:-** ملاعلی قاری رحمه الله او نورشراح دَدي حديث په تشريح کښي داسي ليکلی دی. اودَ حديث دَ سياق اوسباق اودَ الفاظو دَ اطلاق نه داسي محسوس کيږی چه دَدي حديث هم دا دويم مفهوم مقصود دي. چنانچه دي سره امت ته يوضابطه ملاويږی په نورو احاديثوکښي دَدي حکم تفصيل هم دي

**[۲۰۴۵] خوريئی دَماما دَترکي وارث جوړيدو صورت**

۲۰۴۵-[د] (۱)[۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲] «ابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[۳] وَذُكِرَ حَدِيثُ عَائِشَةَ: "«إِنَّمَا الْوَلَاءُ»" فِي بَابٍ قَبْلَ بَابِ السَّلَمِ[۴] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ الْبَرَاءِ: "«الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ»" فِي بَابِ بُلُوغِ الصَّغِيرِ وَحَضَانَتِهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى.

**ترجمه:**[۱] او حضرت انس رضی الله عنه راوی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل[۲] د يو قوم خوريي د هغه قوم څخه دی، (بخاري مسلم)[۳] اودبی بی عائشی رضی الله عنها روايت ،إِنَّمَا الْوَلَاءُالخ د باب السلم څخه په مخکي باب کی نقل شوی دی [۴] او د حضرت براء رضی الله عنه روايت الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ به انشاء الله په باب بلوغ الصغير وحضانته کی ذکر شي.

**حل للغات:-** ① الْوَلَاءُ: که يو کس خپل غلام آزاد کړل او بيا دغه غلام مړ شو نو دهغه څخه چي کوم ميراث پاتي شي هغي ته ولاء وائي ② الْخَالَةُ: تـرور (د مـور خـور)، ③ وَحَضَانَتِهِ، دهغي تربيت، پرورش.

**تسهيلات:**

**قوله:** ابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ:

**دمذکوره جملي مطلب:-** دَقوم خور خو مور شوه اودَ هغي ځوئی دَ دي قوم خوريئی شو مطلب دا شو چه خوريئی دَ خپل ماما وارث کيږی اودا خلق دَ ذوی الارحام نه دی. لهذا په دي سره ثابته شوه که چري ذوی الفروض او عصبه معدوم وی نوبيا دَ مړی دَ ميراث حصه به ذوی الارحام ته ملاويږی

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الفرائض/باب مولی القوم من أنفسهم، وابن الأخت منهم (رقم-۶۷۶۲) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب إعطاء المؤلفة قلوبهم علی الإسلام وتصبر من قوی إيمانه (رقم-۱۳۳ - (۱۰۵۹)

**د ذوي الفروض او عصبه د عدم وجود په وخت کښې ذوي الارحامو ته د ميراث په ملاويدو کښې مذاهب:-**

① دَامام مالك رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله په نيزبه ذوي الارحام وارث نه شي جوړولې

② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله هم دغه مسلك دې

ددويم فريق دلائل - ① زير بحث حديث د دوى مستدل دې

② دمشکاة حديث نمبر(۳۰۵۲)د دوى مستدل دې په كوم كښې چې ((الخال وارث)) څخه استدلال كولې شي

③ دغه شان دَحضرت بريده رضي الله عنه حديث نمبر(۳۰۵۶)هم د دوى مستدل دې ٥ كوم كښې چه اوذارحم الفاظ دى. مستدل دې.

④ قرآن آيت (وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ) هم د دوى مستدل دې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۰٤٦] دَمختلف ملتونو خلقو خپل مينځ كښې يوبل څخه د ميراث اوړلو حكم**

۳۰۴۶-[۱] (۱)[۱] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲] «لَا يَتَوَارَثُ أَهْلُ مِلَّتَيْنِ شَتَّى». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱] حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه وايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل[۲] د دوو مختلفو ملتونو خلقو په منځ كې وراثت نه جاري كيږي، (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:**- ① شَتَّى: دَ شيّت جمع ده مختلف اومتفرق.

**تسهيلات:**

**قوله** لَا يَتَوَارَثُ أَهْلُ مِلَّتَيْنِ شَتَّى:

**د كافرانو خپل مينځ كښې د ميراث اوړلو په حكم كښې مذاهب:-**

يعني دَ متفرق اومختلف مذاهب خلق دَ يوبل وارثان نه شي كيدې

① دَائمه ثلاثه په نيز دَمختلف مذاهب سره متعلق كافران دَ يوبل وارثان نه شي كيدې مثلاً يهود دَ عيسايانو وارثان نه شي كيدې اونه هندو دَهغوى وارثان كيدې شي.

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرماني چه يهود اونصارىٰ اوسيكان اوهندوان دَيوبل وارثان كيدې شي

**داول فريق دليل:**- زيربحث حديث د دوى مستدل دې

---

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الفرائض/باب هل يرث المسلم الكافر؟ (رقم-۲۹۱۱) وابن ماجه في كتاب الفرائض/باب ميراث أهل الإسلام من أهل الشرك (رقم-۲۷۳۱) واحمد في المسند: ۱۹۵/۲

**دویم فریق دلیل:** - احناف دَ دوی مستدل دا حدیث دې «عن عمر رضي الله عنه قال المشرکون بعضهم اولیاء بعض لانرثهم ولا یرثونا» (رواه احمد)

**قوله لَا يَتَوَارَثُ أَهْلُ مِلَّتَيْنِ شَتّٰى:**

**د ملتین څخه مراد:** - زیر بحث حدیث کښې "ملتین" نه مسلم او غیرمسلم دَ دوو ملتونو تعین مقصود دې تول ملتونه مراد نه دی لهذا دا حدیث دَ جمهورو نه بلکه زمونږ دلیل دې

٢٠٤٧ - (١) وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ عَنْ جَابِرٍ.

**ترجمه:** امام ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا روایت حضرت جابر رضي الله عنه نقل کړي دی.

**[۲۰۴۸] دقاتل دَمیراث څخه محروم ليدل**

٢٠٤٨ - [٧] (٢) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] الْقَاتِلُ لَا يَرِثُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [٢] قاتل د مقتول د میراث څخه محروم دی ، (ترمذي ابن ماجه)

**تسهيلات: قوله: الْقَاتِلُ لَا يَرِثُ:**

**د میراث څخه د قاتل محرومه کیدل:** - په دې کښې دَ اسلام لوئی حکمت پټ پروت دې چه قاتل دَ میراث نه محروم دې ګنی خلقو به خپل بوډاګان مورثان دَمیراث دَ وجې نه ډیر زر خانی ته رسول او قتل عام به شروع کیدو.

**[۲۰۴۹] په ترکه کښې دَ نیا (جدة) شپږمه حصه**

٢٠٤٩ - [٨] (٣) [١] وَعَنْ بُرَيْدَةَ [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] جَعَلَ لِلْجَدَّةِ السُّدُسَ إِذَا لَمْ تَكُنْ دُونَهَا أُمٌّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت بریده رضي الله عنه راوي دی [٢] چې رسول الله ﷺ د انا (جده) شپږمه مقرره کړي ده، هر کله چې مور هغه محجوبه نکړي (یعني د مړي مور موجود نه وي)، (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: جَعَلَ لِلْجَدَّةِ السُّدُسَ:**

**د جده څخه مراد:** - دَ جدة نه دلته دواړه نیاګاني مراددی یعنی که دَ مړی مور ژوندی وی نونیاته به ئی هیڅ نه ملاویږی خو که مور ئی ژوندئی نه ده نو بیابه دَ مړی په میراث کښې

---

١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب لا يتوارث أهل ملتين (رقم -٢١٠٨)
٢) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی إبطال میراث القاتل (رقم-٢١٠٩) وابن ما جه فی کتاب الفرائض/باب میراث القاتل (رقم-٢٧٣٥)
٣) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب فی الجدة (رقم -٢٨٩٥)

نیاته شپږمه حصه ملاویږي

**[۲۰۵۰] د ژوندی پیداکیدونکي ماشوم د میراث حکم**

۳۰۵۰-[۹] (۱) ۱ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ إِذَا اسْتَهَلَّ الصَّبِيُّ صُلِّيَ عَلَيْهِ وَوُرِّثَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ که وړوکی څه آواز وخکلي وی نو د هغه دجنازي مونځ دی کیږی او هغه دي وارث ګرځول کیږی. (ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** - ① اِسْتَهَلَّ: آواز ئې اوویستلو

**تسهیلات:** **قوله:** اِسْتَهَلَّ:

**د ماشوم د مرګ صورتونه:** - ① ماشوم چه کله دَ پیدائش په وخت دَ ژړا آواز اوکړی هغې ته استهلال وائی دلته مراد دَ ژوند څه علامت دې که ماشوم دَ پیداکیدو په وخت ژوندې وو او بیا مړ شو، نه آواز اوکړی یا خپه لاس اوخوزه وی یا سا واخلی نو هغه ته به دَ قاعدې مطابق غسل ورکولې شی او دَ هغه دَ جنازې مونځ به هم کولې شی او هغه به دَ خپل مال مالك تصور کیږی. بیا دَ مرګ نه پس به دَ قاعدې مطابق دَ هغه میراث تقسیمیږی. مثلاً یوسړې مړشو دَ هغه حامله ښځه پاتې شوه او څه ځامن اولونړه ترې پاتې شو کله چه دا ماشوم ژوندې راپیداشو نو پیداکیدوسره دې دَ خپل پلار په مال کښې نورو رونړو خوئیندوسره وارث جوړشو او بیا مړشو. دَ مرګ نه پس به دَ هغه په خوئیندورونړو کښې دَ هغه دَ میراث حصه تقسیمیږی. دغه شان دا ماشوم وارث هم جوړشو او مورث هم جوړشو ② که هم دغه ماشوم دَ پیدائش په وخت مړپیداشو نو نه دې وارث جوړیدې شی او نه مورث جوړیدې شی دَ دې حدیث هم دغه مطلب دې

**[۲۰۵۱] دَ اسلام دَ ابتدائی دور د میراث اوړلو یو حکم**

۳۰۵۱-[۱۰] (۲) ۱ وَعَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ ۳ وَحَلِيفُ الْقَوْمِ مِنْهُمْ ۴ وَابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت کثیر ابن عبد الله د خپل پلار (حضرت عبد الله تابعي) او هغه د کثیر د نیکه یعنی د خپل پلار حضرت عمرو ابن عوف مزني صحابي رضي الله عنه څخه نقل کوي، چې هغه اوویل رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د یو قوم مولی د هغه قوم څخه دی، ۳ د یو قوم حلیف د هغه قوم څخه دی ۴ او د یو قوم خوریي د هغه قوم څخه دی، (دارمي)

**حل اللغات:** - ① حَلِيفُ: معاهده کونکي، ملګري.

۱) اخرجه ابن ماجه فی کتاب الفرائض/باب إذا استهل المولود ورث (رقم - ۲۷۵۰)
۲) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۲۵۲۷

**تسهيلات:**

**قوله مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ:**

**د حليف مطلب:-** دلته خبري اتري حليف القوم منهم باندي دی ددي وضاحت دادي چه په عربوکښي دا رواج وو چه دوو کسانو به په خپل مينځ کښي په قسم باندي معاهده اومعاقده کوله چه مونږ دواړه به د يوبل په غم درد مرګ اوژوند کښي شريك يو يوسره جنګ به د بل سره جنګ ګڼړلې شی اود يوصلح به د بل صلح ګڼړلې شی هرقسم تاوان نقصان کښي به دواړه شريك وی اود يودمرګ نه پس به دويم دهغه په ميراث کښي وارثانوسره شريك وی

**په اسلام کښې د حليف حکم:-** دَ اسلام په شروع کښي دَ ميراث باره کښي حکم داسې ووچه دَ يوپه مرګ به بل دَ هغه دَميراث وارث وو بيا چه کله دَ ميراث حکم او دَ ميراث دَتقسيم ضابطه قرآن کښي بيان کړې شوه نودَ حليف داحکم منسوخ شو اوپخواني رواج اودستور هم ختم شو.

**[۲۰۵۲] دوارث دعدم وجود په صورت کښې د خورئي ميراث اوړل**

۳۰۵۳-[۱] (۱) [۱] وَعَنِ الْمِقْدَامِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَنَا أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ [۳] فَمَنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضَيْعَةً فَإِلَيْنَا، [۴] وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ، [۵] وَأَنَا مَوْلَى مَنْ لَا مَوْلَى لَهُ أَرِثُ مَالَهُ وَأَفُكُّ عَانَهُ، [۶] وَالْخَالُ وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ يَرِثُ مَالَهُ، وَيَفُكُّ عَانَهُ» [۷] وَفِي رِوَايَةٍ: وَأَنَا وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ أَعْقِلُ عَنْهُ وَأَرِثُهُ، [۸] وَالْخَالُ وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ يَعْقِلُ عَنْهُ وَيَرِثُهُ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت مقدام ﷺ وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زه د هر مؤمن په حق کې خپله د هغه ځخه زيات عزيز او خير خواه يم، [۳] کوم سړی چې په خپله ذمه عيال يا قرض پريږدي. نو د هغه د قرض آدائيګی او د هغه د عيال پرورش زما په ذمه دی. [۴] او کوم سړی چې د مال پريښودلو سره مړ شي، نو هغه د هغه د وارثانو دی [۵] او زه د هغه سړي کار ساز (يعني منتظم) يم، چې د هغه څوك کار ساز نه وي، نو زه د هغه د مال وارث کېږم، او د هغه قيدي ته نجات ورکوم (يعني د هغه په ژوند کې په هغه چې کومه خون بها لازمه شوې وه او هغه د خون بها د ادا کولو ځخه مخکې مړ شو نو په دې وجه د هغه نفس په عالم برزخ کې د يو قيدي په شان په سختيو کې مبتلا دی ځکه زه د هغه خون بها د خپل طرف ځخه ادا کولو سره هغه ته نجات ورکوم) [۶] او ماما د هغه سړي وارث دی چې د هغه هيڅوك وارث نه وي، هغه د مړي ميراث پيدا کوي او هغه قيدی ته نجات ورکوي (يعني د

---

۱ ) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب فی ميراث ذوی الأرحام (رقم-۲۹۰۰) وابن ماجه فی کتاب الفرائض/باب ذوی الأرحام (رقم-۲۷۳۸)

کوم سړی چې ذوی الفروض او عصبي وارث نه وي د هغه ماما چې د هغه د ذوی الارحام
څخه دی د هغه وارث کېږي، نو هغه د مړي ترکه پیدا کوي، او په هغه چې کومه خون بها
وغیره لازم وه هغه اداکولو سره د هغه روح ته د عالم برزخ د عذاب څخه نجات ورکوي [۷]
او په یو دویم روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمایل زه د هغه سړي وارث یم چې د
هغه هیڅوك وارث نه وي، نو زه د هغه د طرف څخه د هغه خون بها ادا کوم او د هغه وارث
جوړېږم (یعني د هغه ترکه په خپله نګراني کې اخستلو سره په بیت المال کې داخلوم [۸] او
د کوم سړي چې (د ذوي الفروض او عصبات څخه) هیڅوك وارث نه وي نو (د ذوی الارحام
څخه) د هغه ماما د هغه وارث کېږی چې د هغه د طرف څخه خون بها اداکوي او د هغه
میراث حاصلوي. (ابوداؤد)

**حل لغات**:- ①أَوْلٰى: زیات نزدي، زیات حقدار، ②ضَيْعَةٌ: عیال، بال بچ، ③مَوْلٰى: سرپرست.
کارساز او انتظام کونکي، ④أَرِثُ: وارث کیږم، ⑤وَأَفُكُّ: فکاك بدله ورکول د یو قیدی خلاصول.
⑥عَانَهُ: عان: نه قیدی او د بوج لاندې ګیرشوي سړي مراددي ⑦أَعْقِلُ: خون بها، دیت اداکوم

**تسهیلات**:

**قوله**: وَالْخَالُ وَارِثٌ:

**د ذوالارحامو د میراث اوړاودلیل**:- داحدیث د احناف اوحنابله دلیل دي که د یوسړی د
وارثانو نه څوك ذوی الفروض وی نه عصبه وی نوبیا د ذوی الارحام ماما وارث جوړیدې شی

**قوله**: أَرِثُ مَالَهُ:

**د مذکوره جملې مفهوم**:- دي نه دامراد نه دي چه د حضورپاك د دغه مال وارث به
جوړېږی خکه چه انبیاء د چا وارثان نه وی بلکه مراددادي چه زه به دا په بیت المال کښې
ایږدم

## [۳۰۵۲] د ښځې د درې کسانو څخه میراث اوړل

۳۰۵۳-[۳] (۱) [۱] وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «تَحُوزُ الْمَرْأَةُ ثَلَاثَ مَوَارِيثَ: [۳] عَتِيقَهَا وَلَقِيطَهَا وَوَلَدَهَا الَّذِي لَاعَنَتْ عَنْهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت واثله ابن اسقع ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] ښځه د درېو
سړو میراث اخلي. [۳] یو د خپل آزاد کړي غلام، دویم د خپل لقیط، او دریم د خپل هغه
وړوکی چې د هغه په وجه ښځې دخاوندسره لعان کړي وی. (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب میراث ابن الملاعنة (رقم-۲۹۰۶) والترمذی فی کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء ما یرث النساء من الولاء(رقم-۲۱۱۵) وابن ماجه فی کتاب الفرائض/باب تحرز المرأة ثلاث مواریث (رقم-۲۷۴۲) واحمد فی المسند: ۴۹۰/۳

**حل اللغات**: - ① تَحُوزُ: دَ حاز يحوز نه دې، جمع كول او يوځاى كول. حاصلول ② عَتِيقَهَا: خپل آزاد كړي غلام. ③ لَقِيطَهَا: دخپل لقيط. لقيط د بل چا غورزولي ماشوم. ④ لَاعَنَتْ: چه لعان ئې كړي دي (لعان يعنى دښځې خاوند يوبل باندې لعنت كول د زنا د تهمت په وجه)

**تسهيلات**:

**قوله**: عَتِيقَهَا:

**د آزاد كړى غلام ميراث مالک ته ملاويدل**: - يعنى دَخپل آزادكړې شوى غلام ميراث اخلى لكه څنګه چه دَ ضابطه لاندې هرسړې دَخپل آزاد كړې شوى غلام ميراث او ولاَ حقدار وى

**قوله**: وَلَقِيطَهَا:

**د لقيط د ميراث حكم**: - يعنى ښځه دَ خپل لقيط ميراث اخلى دَ لقيط نه مراد هغه نامعلومه بچې دې چاچه چرته غورزولې وى اويوښځې تهملاؤ شى اوښځې هغه اوچت كړو او په هغه باندې خرچ اوكړو دا ماشوم لوئى شو بيا مړشو دَ هغه ميراث به هم دغه ښځې ته ملاويږى چاچه دې پاللې دې

**د لقيط د ميراث په حكم كښې اختلاف**: - ① په زيربحث حديث كښې هم دغه حكم دې اودَ اسحاق بن راهويه رحمه الله مسلك هم دغه دې.

② نور علماء فرمائى چه داحكم هم منسوخ شوې دې څكه چه په يوحديث كښې دى ((لاولاء الاولاءالعتاقة)).

**يو ښكلې تطبيق**: - قاضى عياض فرمائى چه دادَ لقيط مال به بيت المال ته ځى نودا ښځه ډيره حقدار ده چه دَ بيت المال نه دَ لقيط مال هم دې ته ملاؤ شى دَدې مفهوم په اعتبارسره به دا حديث منسوخ نه شى

**قوله**: لَاعَنَتْ عَنْهُ:

**په خپله ښځه د زنا تهمت لګولو يو صورت**: - يعنى خاوندخپلې ښځې ته اووئيل چه دا بچې كوم چه تانه پيدا دې دا زما څخه نه دې پيدا شوې دَدې جملې په ضمن كښې په دې ښځه باندې دَ زنا بهتان دې چونكه ګواه نشته نو ښځه خاوند به لعان كوى دَ لعان كولونه پس به ښځه اوخاونددَ هميشه پاره جدا شى اوهغه بچې به ښځې سره وى

**د ذكرشوى بچې د ميراث حكم**: - دا ماشوم چه كله لوئى او مال اوګټى اومړشى نودَ ده مور به دَ ده وارثه وى څكه چه دَهغه نسب ثابت دې او ميراث دَ نسب تابع دې. دغه شان يوه ښځه دَ دريو ځايونو نه ميراث رايوځائى كولې شى باقى دَ لعان تفصيل په باب اللعان كښې ذكر شوې دې.

## [۲۰۵٤] د ولد زنا د میراث حکم

۳۰۵۳-[۳] (۱) وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ «أَيُّمَا رَجُلٍ عَاهَرَ بِحُرَّةٍ أَوْ أَمَةٍ فَالْوَلَدُ وَلَدُ زِنًا لَا يَرِثُ وَلَا يُورَثُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار شعیب او شعیب د خپل نیکه څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړی چې د یوې آزادې ښځې یا وینځې سره زنا وکړي، او د هغه په نتیجه کې چې کوم ورکی پیدا شي هغه ته به ولد الزنا (حرامي ورکی) ویل کېږي هغه ورکی به نه د چا وارث وي او نه به د هغه میراث چا ته حاصلیږي. ترمذی

**حل اللغات** - ① عَاهَرَ: زنا ئې اوکړه.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يَرِثُ وَلَا يُورَثُ:

**د ولد زنا د میراث څخه محرومتیا** - یعنی ولدالزنا ماشوم نه د خپل پلار وارث کیدې شي او نه پلار د هغه وارث کیدې شي ځکه چه د کوم پلار نه دې پیدا شوي دې هغه د ده پلار نه دې یعني شرعی نسب ثابت نه دې او میراث د نسب تابع دې لهذا هیڅ میراث نی نشته دې او د ولدالزنا نسب چونکه د خپلې مور نه ثابت دې لهذا مور به د ده وارثه وی او دې به د هغې وارث وی

## [۲۰۵۵] د آزاد شوی غلام میراث

۳۰۵٤-[٤] (۲) وَعَنْ عَائِشَةَ «أَنَّ مَوْلًى لِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَاتَ وَتَرَكَ شَيْئًا وَلَمْ يَدَعْ حَمِيمًا وَلَا وَلَدًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَعْطُوا مِيرَاثَهُ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ قَرْيَتِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمایې چې د رسول الله ﷺ یو آزاد کړي غلام مړ شو او هغه څه مال پرې ښوولی، لیکن نه خو هغه یو رشته دار پرېښودی او نه فرزند (څوی)، چې د هغه د ترکه وارث شوی وی. نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې د هغه پرېښی مال د هغه د کلی یو سړي ته ورکړیی. (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات** - ① لَمْ يَدَعْ: نه ئې پریخودي. ② حَمِيمًا: رشته دار.

---

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إبطال ميراث ولد الزنا (رقم-۲۱۱۳) وابن ماجه في كتاب الفرائض/باب في ادعاء الولد (رقم-۲۷٤۵)

۲) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الفرائض/باب في ميراث ذوي الأرحام (رقم-۲۹۰۲) وابن ماجه في كتاب الفرائض/باب ميراث الولاء (رقم-۲۷۳۳)

**تسهیلات: قوله مِنْ أَهْلِ قَرْيَتِهِ:**

**د پیغمبره آزاد کړی غلام د میراث حکم:-** یعنی د ده د کلی په خلقو کښې چه څوك فقیر وی یا ده سره نیزدې وی هغه ته د دغه غلام پریخودې شوې مال ورکړئی قاعده خو هم هغه ده چه د آزاد کړې شوی غلام میراث به د هغه آزادونکی آقا ته ملاویږی که چرې څوك عصبه ئی نه وی لیکن د انبیاء کرام علیهم السلام دپاره میراث اخستل جائز نه دی په دې وجه حضورپاك اوفرمائیل چه دا مال د ده د کلی یوغریب ته ورکړئی

**[۲۰۵٦] د وارث دعدم وجود په صورت کښې د میراث حکم**

۳۰۵۲-[۵] (۱) ⑴ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: «مَاتَ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ ⑵ فَأُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمِيرَاثِهِ ⑶ فَقَالَ: الْتَمِسُوا لَهُ وَارِثًا أَوْ ذَا رَحِمٍ. ⑷ فَلَمْ يَجِدُوا لَهُ وَارِثًا وَلَا ذَا رَحِمٍ. ⑸ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : أَعْطُوهُ الْكُبْرَ مِنْ خُزَاعَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ قَالَ: انْظُرُوا أَكْبَرَ رَجُلٍ مِنْ خُزَاعَةَ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت بریده ﷺ وایې چې د قبیله خزاعه یو سړی مړ شو نو ⑵ د هغه میراث رسول الله ﷺ ته راوړل شو، ⑶ حضور ﷺ وفرمایل چې د ده یو وارث ولټوی یعنی اول خو د ذوي الفروض او عصبات څخه څوك وارث تلاش کړي، که په هغوئ کې څوك وارث پیدا نشو نو) خواه څوك ذي رحم دي وارث شي (د تلاش څخه وروسته) ⑷ نه خو په ذوی الفروض او عصبات کې) یو وارث پیدا شو، او نه په ذي رحم کې، ⑸ څکه رسول الله ﷺ وفرمایل چې د ده میراث د قبیله خزاعه یو ډیر بوډا ته ورکړي، (ابوداؤد) او د ابوداود په یو روایت کې داسې دی چې حضور ﷺ وفرمایل د قبیله خزاعه یو ډیر لوی بوډا شړی وګوري (او هغه ته دا میراث ورکړي)

**حل اللغات:-** ① الْتَمِسُوا: اولټوی، تلاش کړی، ② ذَا رَحِمٍ: ذوی الارحام، ③ الْكُبْرَ: مشر، بوډا،

**تسهیلات: قوله: أَوْ ذَا رَحِمٍ:**

**ذوالارحامو ته د میراث ملاویدو دلیل:-** د دې نه په واضحه توګه ثابتیږی که د چا وارث ذوی الفروض یا عصبه کښې نه وی نو ذوی الارحام نه به چاته میراث ورکولې شی اوهم دغه د امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام احمد بن حنبل رحمه الله مسلك دې

**قوله: الْكُبْرَ:**

**بوډا ته د ورکولو په حکم کښې دوه وجوهات:-**

① یعنی د هغه په قوم کښې د ټولو نه بوډا سړی ته د هغه مال ورکړئی د دې وجه داده چه سړې څومره بوډاوی هم دومره به هغه د مړی پلار نیکه ته په خپلوئی کښې نیزدې وی او په میراث کښې به اقرب فالاقرب ته ترجیح ورکولې شی

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب فی میراث ذوی الأرحام (رقم-۲۹۰۴) واحمد فی المسند: ۳٤۷/۵

۞ دا مال اول دَ بيت المال په مصرف کښې راځی ليکن بيت المال دَ مړی دَ قوم دَاسې سړې لټوی چه دَدغه مال دَ ټولونه زيات مستحق وی اودَ ورانديې نه دَ بيت المال مصرف وی په دې وجه بودا ته ترجيح ورکولې شی

**[۲۰۵۷] په وصيت باندې د قرض ادا کولو تقديم**

۲۰۵۷—[۲] (۱) ۞وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: «إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الآيَةَ ﴿مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ﴾ [النساء: ۱۲] ۞وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَضَى بِالدَّيْنِ قَبْلَ الْوَصِيَّةِ ۞وَأَنَّ أَعْيَانَ بَنِي الأُمِّ يَتَوَارَثُونَ دُونَ بَنِي الْعَلَّاتِ ۞الرَّجُلُ يَرِثُ أَخَاهُ لِأَبِيهِ وَأُمِّهِ دُونَ أَخِيهِ لِأَبِيهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ،

**ترجمه:** ۞او د حضرت علي ﷺ څخه منقول دی چې (يوه ورځ) هغه (خلقو ته) اوويل چې تاسو دا آيت وايئ: مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ، ۞خو رسول الله ﷺ د وصيت پوره کولو څخه مخکې د قرض د ادا کولو حکم کړي دی، ۞او دا حکم يې هم فرمايلی دی چې حقيقي ورونه وارث وي، نه چې ميرني ورونه (يعني د حقيقي ورونو په موجودګی کې ميرني ورونو ته هيڅ نه رسيږي) ۞او دا چې سړی د خپل حقيقي ورور وارث وي نه چې د ميرني ورور (دا جمله د مخکې د تاکيد په طور استعمال شوي ده) (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ①أَعْيَانَ: حقيقی رونړه، ②بَنِي الأُمِّ: مورشريک رونړه خوېندې، ③بَنِي الْعَلَّاتِ: ميرنی رونړه، (مور ني يوه وی پلار ني بدل بدل وی)، ④أَخِيهِ لِأَبِيهِ: پلار شريک رونړه.

۞وَفِي رِوَايَةِ الدَّارِمِيِّ قَالَ: ۞«الإِخْوَةُ مِنَ الأُمِّ يَتَوَارَثُونَ دُونَ بَنِي الْعَلَّاتِ إِلَخْ».

**ترجمه:** ۞او د دارمي په روايت کې داسې دی ۞چې حضرت علي ﷺ وفرمايل هغه ورونه چې په مور کي هم شريك وي (يعني په پلار او مور دواړو کې شريك وي چې هغوی ته حقيقي ورونه وايي) وارث وي، چې هغه ورونه چې يواځې په پلار کې شريك وي (يعني ميرني ورونه) د مخکې حديث هغه الفاظ دي کوم چې پورته نقل شو

**حل اللغات:** - ⑤الإِخْوَةُ مِنَ الأُمِّ: مور شريک رونړه حقيقی رونړه.

**تسهيلات: قوله: هَذِهِ الآيَةَ:**

**مشار اليه آيت:** - دَدې آيت نه مراد ﴿ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ﴾ دې دَحضرت علي ﷺ مقصد يوه خدشه لرې کول وو خدشه داوه چه دَ قرآن کريم په آيت کښې وصيت پوره کول مقدم دی حالانکه دَ نبی کريم ﷺ دَ فعل نه ثابتيږی چه حضورپاك دَ قرض ادا کول په وصيت باندې مقدم کړی دی دا په ظاهره دَ قرآن پاك په حکم او دَ رسول الله ﷺ په فعل کښې تضاد دې حضرت علي ﷺ هم دَ دغه خدشه دَ لرې کولو دپاره تنبيه فرمائی چه دَ

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في ميراث الإخوة من الأب والأم (رقم-۲۰۹۵) وابن ماجه في كتاب الفرائض/باب ميراث العصبة (رقم-۲۷۳۹) واحمد في المسند: ۱/ ۱۴

آیت په الفاظو کښې وصیت مقدم دې لیکن په حکم کښې د قرض اداکول مقدم دی نو هیڅ تضاد نشته دې

**د وصیت د تقدیم وجه:-** علماؤ لیکلی دی چه وصیت مقدم ځکه ذکرکړې شو چه دې نه خلق انکار کوی ځکه چه د هغې څوك طالب متعین نه وی مگر قرض داسې یو څیز دې چه دَدې په انسانانو کښې غوښتونکې وی چه د هغه دباؤ راځی نو انکارکول آسان نه وی هم دَدې اهتمام په وجه وصیت مقدم کړې دې.

**قوله: أَعْيَانَ بَنِي الأُمِّ:**

د خویندواو رونړو دپاره درې اصطلاحات - د خور او رونړو دپاره درې اصطلاحی الفاظ د میراث په بحث کښې راځی.

① بنوالاعیان" یعنی سکه رور چه په مورپلار دواړوکښې شریك وی

② "علاتی" رور چه صرف پلارئی شریك وی مئیندې ئی جدا جدا وی

③ اخیافی رور چه صرف په مورکښې شریك وی پلاران ئی جدا جدا وی

یعنی ① عینی ② علاتی ③ اخیافی.

**[۲۰۵۸]دمیراث دآیت شان نزول**

۲۰۵۸—[۷] (۱)[۱] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: «جَاءَتِ امْرَأَةُ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ بِابْنَتَيْهَا مِنْ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۲] فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ هَاتَانِ ابْنَتَا سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ قُتِلَ أَبُوهُمَا مَعَكَ يَوْمَ أُحُدٍ شَهِيدًا [۳] وَإِنَّ عَمَّهُمَا أَخَذَ مَالَهُمَا وَلَمْ يَدَعْ لَهُمَا مَالًا[۴] وَلَا تُنْكَحَانِ إِلَّا وَلَهُمَا مَالٌ. قَالَ: يَقْضِي اللّٰهُ فِي ذٰلِكَ،

**ترجمه:**[۱] او حضرت جابر ﷺ وایې چې (یوه ورځ) د حضرت سعد بن ربیع ﷺ ښځې خپلې دواړې لونې چې د حضرت سعد ابن ربیع ﷺ ځخه وې په اخستو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرې شوی،[۲] او عرض یې وکړې چې یا رسول الله! ﷺ دا دواړې لونې د سعد ابن ربیع ﷺ دی، د دوی پلار چې غزوه احد کې ستاسو سره ملګری وو په میدان جنګ کې شهید شوی دی،[۳] او د هغه مال د دوی تره آخستلو دی (یعنې د دوی د پلار ترکه چې د دې لونړو رسیده. هغه د زمانهٔ جاهلیت د رسم مطابق د سعد ورور واخستې ده) او د دوی د پاره یې هیڅ مال نه دی پرېښی،[۴] اوس د څو پورې چې د دوی سره مال نه وي د دوی سره د نکاح کولو د پاره هیڅوك نه تیارېږي، حضور ﷺ ورته وفرمایل چې (د لږ ورځو د پاره صبر وکړې) د دې لونړو معامله به الله ﷻ فیصله کړي (یعنې د دوی په باره کې چې څه وحي نازله شي نو فیصله به وشي) نو (څو ورځې وروسته)

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب ما جاء فی میراث الصلب (رقم-۲۸۹۲) والترمذی فی کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی میراث البنات (رقم-۲۰۹۲) وابن ما جه فی کتاب الفرائض/باب فرائض الصلب (رقم-۲۷۲۰) واحمد فی المسند: ۳۵۲/۳

(۱) فَنَزَلَتْ آيَةُ الْمِيرَاثِ (۲) فَبَعَثَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى عَمِّهِمَا (۳) فَقَالَ: أَعْطِ لِابْنَتَيْ سَعْدٍ الثُّلُثَيْنِ، وَأَعْطِ أُمَّهُمَا الثُّمُنَ، (۴) وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لَكَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: (۱) آیت میراث یعنی یوصیکم الله في أولادکم الخ، نازل شو. (۲) نو حضور ﷺ یو خوك د هغه لونړو تره ته ولیږلی (راغوښتلو سره) بیا (۳) ورته اوویل چې د سعد رضي الله عنه لونړو ته د سعد رضي الله عنه د ترکه څخه ثلثین ۳/۲ او د دوئ مور ته اتمه حصه ورکړه (۴) او څه چې باقي پاتې شو هغه ستا دی، (احمد ترمذي ابوداود ابن ماجه) او امام ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث حسن غریب دی

**تسهیلات:**

**قوله سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ:**

**په عهد جاهلیت کښې د زنانوه میراث څخه محرومتیا**: - دَ جاهلیت په زمانه کښې به یوې ښځې ته دَ میراث حصه بالکل نه ورکولې کیده. دغه شان دَ یتیمانانو ماشومانو حق هم په میراث کښې نه وو بلکه دَمړی رور تره او دَ جنګ قابل خپلوان به راتلل اومال به ئې اوړلو اوجینکئ کونډې او ښځې به محروم پاتې کیدلې. اسلام دا قبیح رسم ختم کړو

**زنانوته د میراث ورکولو د حکم نزول**: - اولنئ واقعه داسې پیښه شوه چه دَحضرت سعد بن ربیع رضي الله عنه ښځه راغله اودَ حضورپاك په مخکښې ئې شکایت اوکړوچه دَ سعد رضي الله عنه دا ماشومانې لونړه دی دَدوی پلار په میدان احدکښې جهاد کولوسره شهیدشوې دې دَ دوی ترکه اومیراث وغیره ټول دَدوی تربورانو وغیره یوړلو اوس به دې جینکوسره نکاح څوك کوی اودَ دوی دَ واده کولو به څه کیږی؟ حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه الله تعالی به دَدې باره کښې فیصله اوکړی چنانچه دَ قرآن پاك آیت نازل شو اودَمړی دَمال دَ تقسیم حکم ئې ورکړو حضورپاك داسې تقسیم اوکړو چه دَ سعد دوو لونړو ته به دَ پوره مال دوه ثلث ملاویږی اودَ جینکومور یعنی دَ سعد ښځې ته به دَ مال ثمن ملاویږی دې نه پس چه کوم بچ شی هغه به تورګه دَ عصبه دَ رور حصه ده دَ تقسیم صورت داسې دې

مسئله ۲۴ سعد

| اخ | زوجه | بنت | بنت |
|---|---|---|---|
| عصبه | ثمن | ثلث | ثلث |
| ۵ | ۳ | ۸ | ۸ |

**[۲۰۵۹] د لولې عالم په موجودګۍ کښې د ورو کي عالم څخه تپوس نه کول**

۵۰۰۳—[۸] (۱) [۱] وَعَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلَ قَالَ: [۲] «سُئِلَ أَبُو مُوسَى عَنِ ابْنَةٍ وَبِنْتِ ابْنٍ وَأُخْتٍ. [۳] فَقَالَ: لِلْبِنْتِ النِّصْفُ وَلِلْأُخْتِ النِّصْفُ [۴] وَأْتِ ابْنَ مَسْعُودٍ فَسَيُتَابِعُنِي. [۵] فَسُئِلَ ابْنُ مَسْعُودٍ وَأُخْبِرَ بِقَوْلِ أَبِي مُوسَى، [۶] فَقَالَ: لَقَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ أَقْضِي فِيهَا بِمَا قَضَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** [۱] او حضرت هزيل ابن شرحبيل (تابعي) ﷺ وايي [۲] چې د حضرت ابوموسى (صحابي) ﷺ څخه دا پوښتنه وشوه چې (مثلًا زيد مړ شو او د هغه په وارثانو كې) يوه لور، يوه نوسي او يوه خور ده (نو د زيد ميراث به څنګه تقسيمول كيږي) [۳] حضرت ابوموسى ﷺ جواب وركړي، چې (د زيد ﷺ تركه) نيمه به لور ته، او نيمه به خور ته وركول كيږي (نوسي به محرومه وي) [۴] بيا حضرت ابوموسى ﷺ پوښتنه كونكي ته اوويل چې حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ ته ورشه (او د هغه څخه هم دا مسئله وپوښته هغه به هم زما دې جواب سره اتفاق وكړي (يعني د دې مسئلې چې كوم جواب ما دركړي دى، دا جواب به هغه هم دركړي) [۵] نو د حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ څخه هم دا مسئله وپوښتل شوه، او هغه كوم جواب چې حضرت ابوموسى ﷺ وركړي وو هغه هم هغه ته وښودل شو، [۶] حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ (مسئله او د حضرت ابو موسى ﷺ جواب اوريدو سره) اوويل چې په داسې صورت كې (يعني ابوموسى ﷺ چې كومه فتوى وركړي ده كه هغه فتوى زه دركړم نو) زه به ګمراه ګڼلى شم، او خان به د هدايت په لاړ پيدا نه كم. [۷] په دې مسئله كې به زه هغه فيصله كوم كومه چې د رسول الله ﷺ د حكم مطابق ده او هغه دا ده

**حل اللغات:** - ① ضَلَلْتُ: زه به ګمراه ګڼرلى شم،

[۱] لِلْبِنْتِ النِّصْفُ وَلِابْنَةِ الِابْنِ السُّدُسُ تَكْمِلَةَ الثُّلُثَيْنِ [۲] وَمَا بَقِيَ فَلِلْأُخْتِ. [۳] فَأَتَيْنَا أَبَا مُوسَى فَأَخْبَرْنَاهُ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ [۴] فَقَالَ: لَا تَسْأَلُونِي مَا دَامَ هَذَا الْحَبْرُ فِيكُمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] چې لور ته به نيمه وركول كيږي او د ثلثين ۲ ۳ د پوره كولو د پاره نوسى ته به شپږمه حصه حاصليږي (يعني د مړي د تركې څخه دوه يا د دوه څخه زيات لونو ته دوه دريمې حاصليږي ، اوس خو لور يوه ده او هغه ته نيمه حصه حاصله شويده. نو نوسى ته به شپږمه حصه وركولو سره ۲ ۱۳ پوره كولى شي) [۲] او څه چې باقي پاتې شي (يعني ۱ ۱ ۳) هغه د خور ده (يعني په دې حديث كې د لور او نوسى په موجودګۍ كې خور د عصبه ګرځولو مطابق خور عصبه كيدو سره باقيمانده تركه به اخلي او د اكثرو علماؤ دا مسلك

---

۱ ) اخرجه البخاري في كتاب الفرائض /باب ميراث ابنة الابن مع بنت (رقم-۶۷۳۶) والترمذي في كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في ميراث ابنة الابن مع ابنة الصلب (رقم-۲۰۹۳) وابن ماجه في كتاب الفرائض /باب فرائض الصلب (رقم-۲۷۲۱) واحمد في المسند: ۳۸۹/۱

دی، راوي وايي چې (د حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د جواب اوریدو سره)[۳] موږ حضرت ابوموسی رضي الله عنه ته راغلو او هغه مو د حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د جواب څخه خبر کړې[۴] نو حضرت ابوموسی رضي الله عنه وفرمایل چې (ماته د خپلې غلطۍ اعتراف دی. ځکه چې ابن مسعود رضي الله عنه چې کومه فتوی ورکړیده هغه صحیح او حق ده نو، د څو پورې چې په تاسو کې دا عالم (یعنې ابن مسعود رضي الله عنه) موجود وی زما څخه یو مسئله مه پوښتئ، (بخاري)

**حل اللغات:** -④الحَبْرُ: عالم،

**تسهیلات: قوله: فَبَیَّنَّا بَعْنی:**

**د میراث په مسئله کښې د ابوموسی اشعری احتیاط:** - دَحضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه نه چا دَمړی دَ لور نمسئی او خور دَ میراث دَ مسئلې تپوس اوکړو هغوی اوخودله لیکن دا تاکیدئې ورته اوکړوچه زمانه پس لاړشه اودَدې مسئلې دَ ابن مسعود رضي الله عنه نه هم معلومات اوکړه اوبیا راشه ماته هم اوښایه. نیزدې ده چه هغه به هم په دې مسئله کښې زما په شان اوښائی کله چه دا سړې هلته لاړو او پوره قصه ئې بیان کړه نوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل که چرې په دې مسئله کښې دَهغه تابعداری ما اوکړه نوزه به گمراه شم

**دابوموسی د مسئلې صورت:** - مسئله داسې ده حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه چه کومه مسئله خودلې وه هغه داسې وه چه دَ یوې لور حصه نصف مال اودَ یوې خور حصه نصف مال اونمسئی محروم دا غلطه وه دَ هغې نقشه دا وه:

**مسئله ۴**

| بنت | اخت | بنت الابن |
|---|---|---|
| نصف | نصف | محروم |
| ۲ | ۲ | x |

داځکه غلطه وه چه هغه دَ لوردپاره نمسئی حاجب جوړه کړه حالانکه دا حاجب نه ده.

**په مذکوره مسئله کښې ابن مسعود فتوی:** -

اصل مسئله داسې ده دکوم فتوی چه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ورکړه.

**مسئله ۶**

| بنت | اخت | بنت الابن |
|---|---|---|
| نصف | سدس | عصبه |
| ۳ | ۱ | ۲ |

**د ابوموسی اشعری رضي الله عنه کمال عاجزی:** - دَدې صحیح جواب اطلاع چه کله حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه ته اوشوه نوهغوی دا ښکلې جمله اوفرمائیله "لاتسألوني مادام هذا

الصرفيكم" يعنى تركومې پورې چه دَ ابن مسعود ﷺ په شان اوچت شان والا عالم موجود وى تاسو مانه هيڅ كله دَمسئلې تپوس مه كوئى

**د يوې قاعدې استنباط:-** په دې جواب سره دا ضابطه حاصله شوه چه كله لوئى عالم موجود وى وړوكى عالم ته نه مسئله خودل پكاردى اومه خلق دَهغه طرف ته راغب كول پكاردى هم دې نه تقليد شخصى ثابتيږى اودې نه داهم معلومه شوه "الدين كله ادب" مگر افسوس نن صبا معامله اولټه شوې ده

**[۲۰۶۰]په ميراث كښې دَ نيكه (جد) حصه**

۲۰۶۰-[۱۹] (۱)① وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ:② «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَقَالَ: إِنَّ ابْنَ ابْنِي مَاتَ فَمَا لِي مِنْ مِيرَاثِهِ؟④ قَالَ: لَكَ السُّدُسُ،⑤ فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ قَالَ:⑥ لَكَ سُدُسٌ آخَرُ⑦ فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ قَالَ: إِنَّ السُّدُسَ الْآخَرَ طُعْمَةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:**① او حضرت عمران ابن حصين ﷺ وايې ②چې يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شو③ او عرض يې وكړې چې زما نوسى مړ شوى دى، د هغه په تركه كې به ماته څومره حاصليږي ؟④ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې شپږمه حصه (دا جواب اوريدو سره)⑤ چې هغه واپس لاړل نو حضور ﷺ راوغوښتلو⑥ او ورته يې وفرمايل چې تاته به شپږمه حصه نوره حاصليږي ،⑦ز بيا چې هغه واپس لاړل نو حضور ﷺ راوبللو او ورته يې وفرمايل چې دا آخرى شپږمه حصه ستا رزق دى، (احمد ترمذي ابوداود) او امام ترمذي ﷫ فرمايلي دي چې دا حديث حسن صحيح دى.

**حل اللغات:-** ①وَلَّى: واپس شو، ②طُعْمَةٌ: طعام، رزق.

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ السُّدُسَ الْآخَرَ:

**صورت د مسئلې:-** دَمسئلې نوعيت داسې ووچه يوسړې مړشو هغه په تركه كښې مال پريخودو اوپه وارثانوكښې ئې دوه لونړه پريخودې او يوئى نيكه پاتې شو دَ حضورپاك نه هم دغه نيكه دَخپل ميراث دَمسئلې تپوس اوكړو حضورپاك اوفرمائيل چه تاته به يو ثلث ملاويږى. دا سړې لاړو بيا حضورپاك راؤغوښتو ورته ئې اوفرمائيل تاته به يوسدس ملاويږى. دا سړې لاړو بيا حضورپاك راؤغوښتو اوونى فرمائيل دويم سدس ملاؤ شودا په توګه دَعصبه دې چونكه دا سړې دَ ذوى الفروض څخه وو نوده ته دَمړى پلار نه كيدو په وجه يوسدس مال ملاؤ شو حضورپاك ده ته دوباره يو سدس وركړو دا په توګه دَعصبه وو

۱) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الفرائض/باب ما جاء فى ميراث الجد (رقم-۲۸۹۶) والترمذى فى كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ميراث الجد (رقم-۲۰۹۹)

حضورپاك جدا جدا څکه ورکړه چه دې دا اونه ګڼړی چه په دوه سدس میراث کښې دَ هغه حصه په توګه دَ ذوی الفروض ده په دې وجه نې هغه ته په زبانی توګه باندې اوخودل چه دا آخری سدس دَ عصبه په توګه دې دَمسئلې صورت داسې دې

**مسئله ۶ .**

| جدبالفروض والعصبه | بنت | بنت |
|---|---|---|
| دو سدس | ثلث | ثلث |
| ۲ | ۲ | ۲ |

**[۲۰٦۱] په میراث کښې دَ جده حصه**

۳۰۶۰-[۲۰] (۱) [۱] وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ قَالَ: [۲] «جَاءَتِ الْجَدَّةُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا. [۳] فَقَالَ لَهَا: مَا لَكِ فِي كِتَابِ اللهِ شَيْءٌ وَمَا لَكِ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَيْءٌ [۴] فَارْجِعِي حَتَّى أَسْأَلَ النَّاسَ. [۵] فَسَأَلَ فَقَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ: حَضَرْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَعْطَاهَا السُّدُسَ. [٦] فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: هَلْ مَعَكَ غَيْرُكَ؟

**ترجمه:** [۱] او حضرت قبیصه ابن ذویب ﷺ وايي [۲] چې (د یو متوفي سړي) جده د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او هغه ته يې د خپل میراث په ورکولو مطالبه وکړه. [۳] حضرت ابوبکر ﷺ هغه ته وفرمایل چې په کتاب الله کې ستا د پاره هیڅ حصه مقرر نه ده او نه په سنت د رسول الله ﷺ کې ستا د پاره څه حصه مقرره شویده، یعنی ما ته چې کوم حدیثونه یاد دي په هغه کې په هیڅ حدیث کې د انا څه ذکر نشته [۴] حکه اوس ته واپس ولاړه شه. زه به د خلقو (علماء صحابه ﷺ) څخه پوښتنه وکړم شاید په هغوئ کې چاته د جده په باره کې د حضور ﷺ څه ارشاد معلوم وي [۵] حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د خلقو څخه پوښتنه وکړه، نو حضرت مغیره ابن شعبه ﷺ اوویل چې زه (یوه ورځ) د حضور ﷺ په خدمت کې حاضروم (نو ما ولیدل) چې حضور ﷺ یوي انا ته شپږمه حصه ورکړه. [٦] حضرت ابوبکر ﷺ مغیره ﷺ ته اوویل چې ستا څخه علاوه بل یو سړی هم تاسره وو؟ (یعني حضرت ابوبکر ﷺ خني په طور د احتیاط پوښتنه وکړه چې ستا څخه علاوه یو بل سړی هم د رسول الله ﷺ څخه دا حکم اوریدلی یا لیدلی دی؟)

[۱] فَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ مِثْلَ مَا قَالَ الْمُغِيرَةُ [۲] فَأَنْفَذَهُ لَهَا أَبُو بَكْرٍ [۳] ثُمَّ جَاءَتِ الْجَدَّةُ الْأُخْرَى إِلَى عُمَرَ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا. [۴] قَالَ: هُوَ ذَلِكَ السُّدُسُ [۵] فَإِنِ اجْتَمَعْتُمَا فَهُوَ بَيْنَكُمَا وَأَيَّتُكُمَا خَلَتْ بِهِ فَهُوَ لَهَا». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب فی الجدة (رقم-۲۸۹۴) والترمذی فی کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی میراث الجدة (رقم-۲۱۰۰) وابن ماجه فی کتاب الفرائض/باب میراث الجدة (رقم-۲۷۲٤) کتاب الفرائض/باب میراث الجدة (رقم-٤) واحمد فی المسند: ۲۲۵/٤

**ترجمه:** ① نو (يو بل صحابي) حضرت محمد ابن مسلمه ﷺ (د حضرت مغيره ﷺ د قول تائيد وكړي يعنى هغه) هغه اوويل چې څه مغيره ﷺ ويلي وو. ② حضرت ابوبكر ﷺ ته (چې كله اطمينان وشو چې د مړي د تركې څخه د انا هم حصه ده نو هغه) هغه انا ته د مړي د تركې څخه د شپږمې حصه وركولو فيصله وكړه. ③ بيا دويمه انا د حضرت عمر ﷺ په خدمت كې حاضره شوه او د خپل ميراث په وركولو يې مطالبه ترې نه اوكړه. ④ نو حضرت عمر ﷺ ورته اوويل چې هغه شپږمه حصه ستا د پاره هم ده. ⑤ كه تاسو دوى يئ، نو هغه شپږمه حصه ستاسو د دواړو په منځ كې مشتركه ده، او كه ستاسو څخه يوه وې نو هغه شپږمه حصه به د هغه يوې د پاره وي. (مالك احمد ترمذي ابوداود دارمي ابن ماجه)

**حل لغات:** - ① فَأَنْفَذَهُ: نونافذ ئې كړه دا خبره.

**تسهيلات:**

**قوله:** جَاءَتِ الْجَدَّةُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ رضي الله عنه:

**شيخيوته د نياګانو د راتلو مصداقات:** - په عربى لغت كښې جده دَ پلار مور والانيا ته هم وائى او دَ مورمور والانيا ته هم جده وائى. دَ حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه په خدمت كښې چه دَميراث غوښتودَپاره كومه ښځه راغلې وه علماؤ ليكلى دى چه هغه ښځه دَمړى دمور مور وه اودَحضرت عمر رضي الله عنه په خدمت كښې چه كومه ښځه راغلې وه هغه دَ مړى دَ پلار مور وه لكه څنګه چه په بعض رواياتوكښې دَدې فرق ذكرهم كړې شوې دې.

**دحديث مفهوم:** - دَدې حديث مطلب دادې چه دَ پلاردَمور والانيا شپږمه حصه ده كه هغه يوه وى كه دوه وى اوكه شپږ وى دَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه په علم كښې دا خبره وه چه يوه نيانى ده لهذا دَ هغې شپږمه حصه ده. ليكن چه كله دَ حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كښې دويمه نيا راغله نوحضرت عمر رضي الله عنه هغې ته اوفرمائيل چه دَ پلاردَمور والانيا حصه هم هغه شپږمه ده كه نيا يوه وى اوكه ډيرې وى كه څان له وى نودا حصه هم دَ هغې دَ پاره څان له ده اوكه په يوځائى ډيرې نياګانې راجمع شى نودَ ټولو دَپاره هم هغه يو سدس دې ټولې به په دې كښې شريكې وى خلاصه دا چه دَحضرت ابوبكر رضي الله عنه په علم كښې يوه نيا وه نودَ يوې دَپاره ئى سدس مقرركړوليكن حضرت عمر رضي الله عنه ته معلومه شوه يوه بله نيا ئى هم ده نو دواړه ئى هم په دغه يوه حصه كښې شريكې اوګرځولې.

**[۲۰٦٢] دَمړى دَپلار په موجودګئ كښې جده ته سدس ملاويدل**

۳۰۰۳ـ[۲۱] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: «فِي الْجَدَّةِ مَعَ ابْنِهَا ② أَنَّهَا أَوَّلُ جَدَّةٍ أَطْعَمَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ ابْنِهَا ③ وَابْنُهَا حَيٌّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَالتِّرْمِذِيُّ ضَعَّفَهُ.

---

۱) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ميراث الجدة مع ابنها (رقم-۲۱۰۲)

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې هغه د هغې انا په باره کې چې د هغه خوی موجود وي [۲] دا اوويل چې (ميراث حاصلونکی) هغه مخکنی نيا وه، چې رسول الله ﷺ د هغه د خوی په موجودګی کې هغې ته شپږمه حصه ورکړې وه، [۳] او د هغې خوی ژوندی وو، (ترمذي دارمي) او امام ترمذي رحمه الله دي حديث ته ضعيف ويلي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** مَعَ ابْنِهَا:

**صورت د مسئلې:-** دَمسئلې صورت داسې دې چه يوسړی پخپله مړشو هغه يوپلار پريخودو او يوه نيا چه په خپل مينځ کښې مور اوخوئې وو. حضورپاك دَمړی نياته په ميراث کښې شپږمه حصه ورکړه اودَ دغه نيا خوئې هم ژوندې وو چه دَ مړی پلار وو. په دې صورت کښې دَعلماؤ مسلك دادې چه دَ مړی دَ پلار په موجودګئی کښې به نيا ته څه نه ملاويږی بلکه هغه دَ نمسی دَ ميراث نه محروم پاتې کيږی. مذکوره حديث متروك العمل دې اودا حديث ضعيف هم دې کوم چه دَ استدلال قابل نه دې ياخو حضورپاك نيا ته دَ تبرع او احسان په توګه شپږمه حصه ورکړه په توګه دَ ميراث ئې نه ده ورکړې لهذا دا ضابطه نه ده

**[۲۰۶۲] دَ خون بها په مال کښې د ميراث نفاذ**

۳۰۰۳-[۲۰] (۱) [۱] وَعَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ سُفْيَانَ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَيْهِ [۲] أَنْ وَرِّثِ امْرَأَةَ أَشْيَمَ الضِّبَابِيِّ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا» [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** او د حضرت ضحاك رضي الله عنه ابن سفيان څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ هغه ته وليکل چې د أشيم ضبابي ښځي ته دی د هغه د خاوند د خون بها څخه ميراث ورکول شي. (ترمذي ابوداود) امام ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی

**تسهيلات:**

**قوله:** الضَّحَّاكِ بْنِ سُفْيَانَ:

**د ضحاک بن سفيان تعارف:-** حضرت ضحاك بن سفيان رضي الله عنه دَ عربودَبهادرانونه وو. وئيلی شی چه دَ سلو بهادرانو برابر وو. حضورپاك سره به ئې برښنده توره اوړلوسره دَ پهره دار په توګه اوسيدلو. حضورپاك هغه دَ هغه په قوم اسلم باندې ګورنرمقررکړې وو. هم هغه وخت هغوی له دَ حضورپاك خط راغلې وو

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب فی المرأة ترث من دیة زوجها (رقم-۲۹۲۷) والترمذی فی کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی میراث المرأة من دیة زوجها (رقم-۲۱۱۰) وابن ماجه فی کتاب الدیات/باب المیراث من الدیة (رقم-۲۶۴۲) ومالک فی الموطا کتاب العقول/باب ما جاء فی میراث العقل والتغلیظ فیه (رقم-۹) واحمد فی المسند:۴۵۲/۳

**قوله: امْرَأَةَ أَشْيَمَ الضِّبَابِيِّ:**

**په دیت کښې د میراث اجراء:** - اشیم ضبابی صحابی دي دې د حضورپاك په زمانه کښې قتل کړي شوې وو مکردا قتل خطاء وو په دې وجه قاتل سره خون بها اوکړې شوه په وارثانوکښې د اشیم ﷺ بی بی هم وه حضورپاك هم په دې سلسله کښې ضحاك ﷺ ته خط اولیکلو چه اشیم ضبابی ته دهغې د خاوند د دیت نه میراث ورکړنې دې حدیث نه معلومه شوه چه میراث دمرې په دیت کښې هم چلیږی لکه چه دهغه په نورو مالونوکښې چلیږی. وئیلی شی چه د حضرت عمر ﷺ اوحضرت علی ﷺ خیال وو چه دمرې په دیت کښې د ورثاء دیت نه چلیږی په دې وجه حضرت ضحاك ﷺ هغوی ته د حضورپاك د حدیث حواله ورکړه اومسئله ئې ثابته کړه.

**[۲۰٦٤] د موالات اسلام په ارث باندې عدم اثر**

۳۰۰۳-[۳] (۱) ① وَعَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ قَالَ: «سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② مَا السُّنَّةُ فِي الرَّجُلِ مِنْ أَهْلِ الشِّرْكِ يُسْلِمُ عَلَى يَدَيْ رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ؟ ③ فَقَالَ: هُوَ أَوْلَى النَّاسِ بِمَحْيَاهُ وَمَمَاتِهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① اوحضرت تمیم داري ﷺ وايې چې ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ② چې د هغه سړي په باره کې څه حکم دی چې د یو مسلمان په لاس یې ایمان راوړي وي (یعنې هغه مسلمان د هغه نوی مسلم مولی دي که نه؟) ③ حضور ﷺ وفرمایل چې هغه مسلمان (چې د هغه په لاس هغه مشرك اسلام راوړي دی) د هغه په ژوند کې د ټولو څخه زیات حقدار دی، او د مرګ څخه وروسته هم د ټولو څخه زیات حقدار هغه دی (یعنې هغه مسلمان د هغه نوی مسلم مولی دی) ترمذي ابن ماجه دارمي.

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت تمیم اوس الداری ﷺ:** نوم تمیم، ابورقیه کنیت داری نسبت د شام اوسیدونکې وو. د قبیله تمیم سره ئې نسبی تعلق وو. د اسلام نه وړاندې ئې عیسائی مذهب سره تعلق وو. په ۹هـ کښې خپل رور نعیم سره مسلمان شو. (اصابه) د حضورپاك ﷺ په زمانه کښې د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ او حضرت عمر ﷺ په زمانه کښې هم په مدینه منوره کښې اوسیدو خوچه کله د حضرت عثمان په زمانه کښې فتنه شروع شوه نو د زړه د ناخوښئ باوجود خپل وطن شام ته لاړو. (۴)

۱ ) اخرجه البخاري في كتاب الفرائض/باب إذا أسلم على يديه واخرجه ابو داود في السنن كتاب الفرائض/باب في الرجل يسلم على يدي الرجل (رقم-۲۹۱۸) والترمذي في كتاب الفرائض عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في ميراث الذي يسلم على يدي الرجل (رقم-۲۱۱۲) وابن ماجه في كتاب الفرائض/باب الرجل يسلم على يدى الرجل (رقم-۲۷۵۲) واحمد في المسند: ۱۰۳/۴

هم دې صحابي ﷺ په جمات کښې چراغ اولګولو په کوم سره چه حضورپاك ﷺ خوشحاله شو (۵) ښه پیزار ښه لباس او ښکلې ښائسته سړې وو.(۶)

**وفات**- ترآخرعمر پورې پرهيزګاره او ملنګی ژوند تیرکړو.(۷) ۴۰هجری کښې دَ دې دنیا نه رخصت شو او په بيت حبرون کښې خښ کړې شو.(۸)

**مرويات**- دَ هغوی نه ۱۸ روايات نقل دی.په دې کښې يوپه مسلم شريف کښې او باقی په سنن کښې دی په بخاری شريف کښې دَ هغوی نه يوروايت هم نشته.

**حل للغات**- ①السُّنَّةُ: حکم، شريعت.

**تسهيلات:**

**قوله: هُوَأَوْلَى النَّاسِ بِمَحْيَاهُ وَمَمَاتِهِ:**

**د موالات اسلام اصطلاح:**- يوسړې چه کله دَ بل سړی په لاس باندې اسلام قبلوی نوهغه سړې دَ دغه نوی مسلمان آقا کيږی دې ته مولات اسلام وائی. دَ اسلام په شروع کښې په داسې صورت کښې حکم دا وو چه داخلق به دَ يوبل وارثان کيدل روستو بيا داحکم منسوخ شو

**قوله: هُوَأَوْلَى النَّاسِ بِمَحْيَاهُ وَمَمَاتِهِ:**

**د مولی په جوړيدو کښې اختلاف:**- نه هم دغه مراددې چه دَ ژوند اومرګ دواړو صورتونو کښې دا سړې دَ دغه نوی مسلمان آقادې. ملاعلی قاری رحمه الله په حواله دَ مظهر رحمه الله ليکلی دی چه داسې سړې دَ عمربن عبدالعزيز رحمه الله اوسعيدبن مسيب رحمه الله وغيره په نيزدَ نوی مسلمان آقا جوړيږی ليکن دَ امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله په نيز دَهغه مولی نه جوړيږی. مولی هم هغه وی چاچه څوك آزاد کړې وی

**په حديث کښې دوه احتمالات:**- ① زير بحث حديث يا منسوخ دې

② مطلب دادې چه اوس ژوند اودَ ژوند نه پس دَ دغه نوی مسلمان امداد په دې سړی باندې لازم دې لهذا دَدې حديث دَمولی جوړيدو اونه جوړيدو سره هيڅ تعلق نشته دې

**[۲۰۶۵]دَآزاد شوی غلام دخپل مالك څخه د ميراث اورلو حکم**

> ۳۰۶۵-[۲۳] (۱)①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ② «أَنَّ رَجُلًا مَاتَ وَلَمْ يَدَعْ وَارِثًا إِلَّا غُلَامًا كَانَ أَعْتَقَهُ③ فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- هَلْ لَهُ أَحَدٌ؟④ قَالُوا: "لَا" إِلَّا غُلَامًا لَهُ كَانَ أَعْتَقَهُ⑤ فَجَعَلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مِيرَاثَهُ لَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**①او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما راوي دی② چې يو داسې سړی مړ شو ، چې هغه د

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الفرائض/باب فی ميراث ذوی الأرحام (رقم-۲۹۰۵) والترمذی فی کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی ميراث المولی الأسفل (رقم-۲۱۰۶) وابن ماجه فی کتاب الفرائض/باب من لا وارث له (رقم-۲۷٤۱)واحمد فی المسند: ۲۲۱/۱

خپل يو غلام څخه علاوه چې هغه يې آزاد کړي وو بل هيڅ وارث نه وو پريښی.[۳] رسول الله ﷺ وفرمايل د ده يو وارث شته که نه؟[۴] صحابه وو ﷺ عرض اوکړو چې وارث يې نشته، البته يو غلام شته چې هغه آزاد کړي وو.[۵] نو حضور ﷺ د هغه سړي ميراث هغه آزاد شوی غلام ته ورکړي،

**تسهيلات:**

**قوله فَجَعَلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِيرَاثَهُ لَهُ:**

**د مالک ميراث غلام ته د ملاويدو صورت:-** يعنی د يوآقا انتقال اوشو مګر دهغه په وارثانو کښې څوك نه وو صرف دهغه په پسمانده ګانو کښې يو غلام وو حضورپاك دهغه سړي ميراث دغه غلام ته ورکړو ملاعلی قاری رحمه الله ليکلی دی دامعامله دَ احسان او تبرغ په توګه وه لکه څنګه چه دې نه مخکښې دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په روايت کښې تيرشوی دی شيخ مظهر رحمه الله ليکلی دی چه دَ حضرت شريح رحمه الله اوطاؤس رحمه الله په نيزداحديث په خپل ظاهرباندې معمول به دې لکه څنګه چه آزادکونکې دخپل آزاد کړی غلام وارث وی دغه شان غلام هم دَخپل آزادکونکی وارث کيدې شی

**[۲۰۶۶]دَولاء دوراثت مسئله**

۳۰۶۶-[د-](۱)[۱]وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ[۲] أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۳]«يَرِثُ الْوَلَاءَ مَنْ يَرِثُ الْمَالَ»". [۴]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه:**[۱]او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه څخه نقل کوي[۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۳]کوم سړی چې د مال وارث وي هغه د ولاء هم وارث وي.[۴] امام ترمذي رحمه الله دا حديث نقل کړي دی او ويلي يې دي چې د دې حديث اسناد قوي نه دي

**حل اللغات** - ①الْوَلَاءَ: دَ آزادکړ ... لام متروکه مال ته ولاء وائی

**تسهيلات:**

**قوله: يَرِثُ الْوَلَاءَ مَنْ يَرِثُ الْمَالَ:**

**د غلام ميراث مالک ته ملاويدل:-** دَ آزادکړې شوی غلام دَمرګ نه پس به ولاء دَ هغه آزادونکی ته ملاويږی په دې شرط چه دَ غلام خپل وارث نه وی په دې حديث کښې چه کوم صورت بيان کړې شوې دې هغه داسې دې چه مثلاً دَزيد پلار مړشو بيا دَ هغه نه پس دَ زيد دَ پلار آزادکړې شوې غلام مړشو نواوس به زيد دَدغه غلام دَ ولاء وارث وی ځکه چه څنګه زيد دَ خپل پلار دَ مال وارث دې هم دغه شان دَ خپل پلار آزادکړې شوی غلام هم

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفرائض عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن يرث الولاء (رقم-۲۱۱٤)

وارث دې کوم ته چه ولاء وانی یادلرنی چه داحکم صرف دَعصبه بنفسه دې کوم چه خونی وی لهذا لونړوته به په دې میراث کښې هیڅ نه ملاویږی څکه چه هغوی عصبه بنفسه نه دی هغوی به دَ خپل پلار دَ مال وارث وی لیکن دَهغه دَ غلام دَ ولاء وارث نه شی کیدې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۰۶۷] په جاهلیت کښې دَتقسیم شوی میراث حکم

۲۰۶۷—[۳] (۱) [۱] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ—رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللهِ—صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ—[۲] قَالَ: «مَا كَانَ مِنْ مِيرَاثٍ قُسِمَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَهُوَ عَلَى قِسْمَةِ الْجَاهِلِيَّةِ، [۳] وَمَا كَانَ مِنْ مِيرَاثٍ أَدْرَكَهُ الْإِسْلَامُ فَهُوَ عَلَى قِسْمَةِ الْإِسْلَامِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**توجمه**: [۱] حضرت عبدالله ابن عمر ﷠ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم میراث چې په زمانه د جاهلیت کې تقسیم شوی دی هغه به د زمانهٔ جاهلیت د تقسیم مطابق وي [۳] او کوم میراث چې د اسلام زمانه پیدا کړي هغه به د اسلام مطابق تقسیمیږی. (ابن ماجه)

**تسهیلات**:

**قوله** فَهُوَ عَلَى قِسْمَةِ الْجَاهِلِيَّةِ:

① دَنبی کریم دَ دې ارشاد مطلب دادې چه کوم میراث دَ جاهلیت په زمانه کښې په وارثانو کښې تقسیم شوې دې په هغې کښې به ترمیم اوزیاتوالي نه کیږی چاته چه دَهغه دور مطابق څومره ملاؤشوې هم هغه دَ هغه حصه ده که کم ملاؤشوې

② که زیات او په کوم مال چه دَ اسلام دور راغلې دې دَهغې تقسیم به دَ اسلام دَ اصولو اوقواعدو مطابق کیږی. دَدې حدیث نه "ابقاءماکان علی ماکان" ضابطه راؤخی

## [۲۰۶۸] د ترور خپل وراره څخه د میراث اونه اخستو عدم صحت

۲۰۶۸—[۴] (۲) [۱] وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَاهُ كَثِيرًا يَقُولُ: [۲] كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَقُولُ: عَجَبًا لِلْعَمَّةِ تُورَثُ وَلَا تَرِثُ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**توجمه**: [۱] او د حضرت محمد ابن ابي بکر ابن حزم ﷬ څخه روایت دی چې هغه د خپل پلار څخه واوریدل. اکثره به یې دا ونیل [۲] چې حضرت عمر فاروق ﷛ به فرمایل چې د عمه په باره کې تعجب دی چې د هغه وراره خو د هغه وارث کېږي خو هغه د خپل وراره نه وارثه کېږي. (مالك)

**حل اللغات**: - ① عَجَبًا: تعجب دې. ② الْعَمَّة: ترور (د پلار خور)

---

۱) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الفرائض /باب قسمة المواريث (رقم-۲۷۴۹)

۲) اخرجه مالک في الموطا كتاب الفرائض /باب ما جاء في العمة (رقم-۹)

**تسهیلات: قوله: تعجبًا للعمة:**

**متعجب یو صورت:-** حضرت عمرفاروق رضی الله عنه فرمانی په ترور باندې تعجب دې چه دَ هغې وراره خودَهغې وارث دې مګر هغه دَ وراره وارث نه ده دَ حضرت عمر رضی الله عنه دا تعجب دَ قیاس په بنیاددې ګنې دَ شریعت دَ حکم علت لټول ضروری نه دی دَالله تعالی حکم دې که په عقل کښې راځی اوکه نه راځی

**[۲۰٦٩] دَ میراث علم دَ زده کولو حکم**

۳۰۰۳-[۸] (۱) [۱] وَعَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ. [۳] وَزَادَ ابْنُ مَسْعُودٍ: وَالطَّلَاقَ وَالْحَجَّ. [۴] قَالَا: فَإِنَّهُ مِنْ دِينِكُمْ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه څخه روایت دی چې هغه وفرمایل [۲] د فرائض (میراث) احکام او مسائل زده کړي، [۳] او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه د دې الفاظو اضافه کړیده، د طلاق او حج احکام او مسائل هم زده کړي، [۴] هغه اوویل چې (د دې زده کول ځکه ضروري دی چې) دا علم ستاسو د دین د ضروریاتو څخه دی، (دارمي)

**حل اللغات:-** ① الْفَرَائِضَ: میراث،

**تسهیلات:**

**قوله: قَالَا: فَإِنَّهُ مِنْ دِينِكُمْ:**

**په مذکوره څیزونو دَدین اطلاق:-** یعنی ابن مسعود رضی الله عنه او عمر فاروق رضی الله عنه دواړو اوفرمائیل "فانه" یعنی داعلم اوزده کول بعض نسخوکښې "انها" دې یعنی دا مذکورات ستاسو دَ دین نه دی یعنی دَ دین اهم اهم مسائل دی په دې صورت کښې من دَ تبعیض دَپاره دې یامن بیانیه دې یعنی دا مذکورات ستاسو دین دې

**علم الفرائض ته د نصف العلم ولیلووجه:-** دې ته نصف علم ځکه وائی چه دَ انسان دَ ژوند دوه حالتونه دی یا حالت حیات دې چه نیمه حصه ده اویاحالت ممات دې چه دویمه نیمه حصه ده دَعلم الفرائض تعلق دویم حالت سره دې په یوحدیث کښې دی تعلموا الفرائض وعلموه الناس فانی امرؤ مقبوض" په یوروایت کښې دَدې حدیث په آخره کښې داسې دی "فانها اول قضیة تنسی" یعنی دا ړومبې علم دې چه دَ انسانانونه به هیرولې شي

چنانچه په علوم اسلامیه کښې علم میراث ړومبې علم دې چه دَ علماؤ نه به پاسی اودادَ قیامت دَ نښونه دی نن په ځانی باندې وئیلی شی چه ۸۰ فیصد علماؤ نه داعلم پاسیدلې دې په کوم کښې چه دَتولونه وراندې زه پخپله یم الله تعالی دې دَعلم اوعلماؤ حفاظت اوکړی.

(۱) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۲۸۵۱

# [۱۸]بَابُ الْوَصَـايَا]

## دَ وصيتونوبيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية احاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① الترغيب على الإيصاء: ۱، ۶.
② جواز الوصية في الثلث فقط: ۲، ۳، ۸.
③ عدم جواز الوصية للوارث: ۴.
④ عدم الإضرار في الوصية: ۵.
⑤ عدم جواز الوصية للكافر : ۷.

**د قرآن څخه د وصيت ثبوت :-** ﴿ مِنۢ بَعۡدِ وَصِيَّةٖ تُوصُونَ بِهَآ أَوۡ دَيۡنٖ ﴾ [سورت النساء الايه:۱۲]

**د وصيت لغوي معنى:-** وصايا جمع ده دَدې مفرد وصية دې.

**د وصيت اصطلاحي تعريف:-** وصيت دې تـه وائـي چه يوسړې په خپـل ژوند کښې خپلو وارثانوته اووائي چه زما دَ مرګ نه پس فلانکې فلانکې کاراوکړئی مثلاً مدرسه يا جمات يا خانقاه يا سرائې يا پل يا هسپتال جوړکړئی يا کوهی اوباسئی يا زما پـه ذمـه فلانکی فلانکی عبادتونه پاتی دی دَدې انتظام اوکړئی

**د وصيت په حکم کښې مذاهب:-**

① داؤد ظاهری اواسحاق بن راهويه او اهل ظواهر په نيز وصيت کول واجب دی

② دَ جمهورو په نيز وصيت کـول مـستحب دی. اګرچه دَ احتيـاط تقاضـاهم دغـه ده چـه هر مسلمان سره دَهغه وصيت موجود وی يا دَ تکيه لاندې ئی کيخودې وی مګر واجب نه دې

**اول فريق دلائل:-** ① د اول فريـق مـستدل دَ قـرآن کـريم دا آيت دې ﴿ كُتِبَ عَلَيۡكُمۡ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلۡمَوۡتُ إِن تَرَكَ خَيۡرًا ٱلۡوَصِيَّةُ لِلۡوَٰلِدَيۡنِ وَٱلۡأَقۡرَبِينَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ ﴾ [البقره الايه، ۱۸۱]

په دې دې کښې ښکاره د وصيت دپاره د کتب لفظ اسـتعمال شـوې دې او کتـب د فرضـيت دپاره راځی نو وصيت کول فرض او واجب شو.

② دَ باب الوصايا ړومبې فصل ړومبی هم د اول فريق مـستدل دې

**د اول فريق د دلائلو څخه جوابونه:-** اهل ظواهر چه دَ کوم آيت دَ وصيت نـه اسـتدلال کـړې دې يـا دَ دې بـاب دَحـديث نمبـر(۳۰۷۰) نـه ئـی اسـتدلال کـړې دې نـودَدې جـواب دادې چـه دا صورت يادَ قـرض پـه وصـيت بانـدې محمـول دې يعنـی کـه دې مقـروض وی نـو ده بانـدې د قرض ادا کولو وصيت واجب دې

④ یادَ امانت په وصیت باندې محمول دې یعنی که ده سره د چا امانت پروت وی نو په ده باندې واجب دی چې وصیت اوکړی دا ما سره فلانې څیز د فلانی امانت دې هغه ته ئې واپس کړئ
⑤ دَ وصیت نه استحبابی وصیت مراددې اودَ وصیت په استحباب کښې دَ چا اختلاف نشته دې
⑥ دا دَ ابتداء اسلام کښې دَ وصیت دَ وجوب حکم وو بیا منسوخ شو

**د دویم فریق دلائل:**- ① د میراث په آیت سره دَ وصیت پوره نظام منسوخ شوې دې اوس دَ وارثانودَ شریعت دَ طرف نه حصې مقرردی دَ سړی دَ وصیت څه ضرورت باقی پاتې نه شو ② دغه شان "لاوصیة لوارث" مشهور حدیث دې په دې سره هم آیت میراث متاثر کیدې شی. دَ اسلام په شروع کښې سره دَدې چه دَ وصیت نظام قائم وو لیکن روستو منسوخ شو. او دَ آیت میراث نه پس هم دَ مال په دریمه حصه کښې مالك ته دَ وصیت حق حاصل دې دې دپاره که یوسړې دَ ژوند په آخری وخت کښې وصیت کول غواړی یاصدقه کول غواړی نودَ نیکئی تولې دروازې په هغه باندې کولاؤدی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۲۰۷۰] د وصیت نامې د لیکلې ساتلو حکم

۲۰۷۰-[۱] (۱) [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] مَا حَقُّ امْرِءٍ مُسْلِمٍ لَهُ شَيْءٌ يُوصَى فِيهِ [۳] يَبِيتُ لَيْلَتَيْنِ إِلَّا وَوَصِيَّتُهُ مَكْتُوبَةٌ عِنْدَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د کوم مسلمان سړی چې (په مال یا په خپلو کې د تعلقاتو) په معامله کې څه خبره د وصیت قابل وي، [۳] نو هغه ته پکار دی، چې هغه دوه شپې هم د لیکلو څخه بغیر تیرې نکړي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① يَبِيتُ: شپه تیره کړی، ② مَكْتُوبَةٌ: لیکلې شوې،

**تسهیلات:**

**نوټ:** د وصیت په باره کښې تفصیل د مذاهبو وړاندې تیرشوې دې

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الوصایا/باب الوصایا وقول النبی صلی الله علیه وسلم: «وصیة الرجل مکتوبة عنده» (رقم-۲۷۳۸) ومسلم فی کتاب الوصیة (رقم-۱ - (۱۶۲۷) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الصید/باب ما جاء فی ما یؤمر به من الوصیة (رقم-۲۸۶۲) والترمذی فی کتاب الوصایا عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحث علی الوصیة (رقم-۲۱۱۸) والنسائی فی کتاب الوصایا/باب الکراهیة فی تأخیر الوصیة (رقم-۳۶۱۵) وابن ماجه فی کتاب الوصایا/باب الحث علی الوصیة (رقم-۲۷۰۲) کتاب الوصیة/باب الأمر بالوصیة (رقم-۱)واحمد فی المسند:۲/۴

## [۲۰۷۱] د خپلې ترکې په دريمه حصه کې وصيت کيدی شي

۳۰۷۱-[۲] (۱) [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «مَرِضْتُ عَامَ الْفَتْحِ مَرَضًا أَشْفَيْتُ عَلَى الْمَوْتِ، [۲] فَأَتَانِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعُودُنِي، [۳] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ: إِنَّ لِي مَالًا كَثِيرًا [۴] وَلَيْسَ يَرِثُنِي إِلَّا ابْنَتِي، [۵] أَفَأُوصِي بِمَالِي كُلِّهِ؟ [۶] قَالَ: "لَا" [۷] قُلْتُ: فَثُلُثَيْ مَالِي؟ قَالَ: "لَا"

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعد ابن ابي وقاص ﷺ وايې چې زه د مکې د فتح په کال دومره سخت ناجوړه شوم چې مرګ ته نږدې شوم، [۲] کوم وخت چې رسول الله ﷺ زما پوښتنې ته تشريف راوړو، [۳] نو ما عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ زما سره ډير مال دی [۴] خو د يوې لور څخه سوا بل څوک وارث مې نشته، [۵] نو آيا زه د خپل ټول مال په باره کې وصيت وکړم؟ [۶] حضور ﷺ وفرمايل چې نا، [۷] بيا ما عرض اوکړو چې آيا د دوو دريمو حصو مال په باره کې وصيت وکړم؟ حضور ﷺ وفرمايل چې نا،

**حل اللغات:** - ① أَشْفَيْتُ: أَشْفَيْتُ د قاربت په معنی کښې دی. "اشفيت، اي قاربت".

[۱] قُلْتُ: فَالشَّطْرِ؟ قَالَ: "لَا" [۲] قُلْتُ: فَالثُّلُثِ؟ قَالَ: "الثُّلُثُ" وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ [۳] إِنَّكَ إِنْ تَذَرْ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ، [۴] وَإِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ إِلَّا أُجِرْتَ بِهَا [۵] حَتَّى اللُّقْمَةَ تَرْفَعُهَا إِلَى فِي امْرَأَتِكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بيا ما عرض اوکړو چې آيا د نيمه وصيت وکړم؟ حضور ﷺ وفرمايل چې نا، [۲] بيا ما عرض اوکړو چې آيا د دريمې وصيت وکړم؟ حضور ﷺ وفرمايل چې هو، د يوې دريمې مال په باره کې وصيت کولی شې، اګر چې ډير دی، [۳] او ياد ساته که ته خپل وارثان مالدار او خوشحاله پريږدې، نو دا ستا د پاره د دې څخه ښه ده چې ته هغه مفلس پريږدې. او هغه د خلقو په مخکې لاس غزولې ګرځوي (يعني سوال کوي) [۴] پوهه شه چې ته د خپل مال په کومه حصه کې هم د الله ﷻ د رضا او خوشنودی په جذبه کې خرڅ کوې. نو د په هغه خرڅ به درته ثواب حاصليږي، [۵] ددې پورې چې تاته په هغه نمړئ هم ثواب حاصليږي چې ته يې د خپلې ښځې تر خُلې ورسوې، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ② الشَّطْر: نصف، نيمه، ③ إِنْ تَذَرْ: که ته پريږدې، ④ عَالَةً: مفلس، محتاجه، ⑤ يَتَكَفَّفُونَ: لاسونه ني نيولی وی، سوال کوی، ⑨ اللُّقْمَةَ: نمړئ، ⑥ فِي: فِيْ فم کښې يو لغت دی کوم چه مشدد دی خلې ته وائی

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الوصايا/باب أن يترک ورثته أغنياء خير من أن يتكففوا الناس (رقم-۲۷٤۲) ومسلم فی کتاب الوصية/باب الوصية بالثلث (رقم-۵ - ۱٦۲۸) والترمذی فی کتاب الوصايا عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الوصية بالثلث (رقم-۲۱۱٦) والنسائی فی کتاب الوصايا/باب: الوصية بالثلث (رقم-۳٦۲٦) وابن ماجه فی کتاب الوصايا/باب الوصية بالثلث (رقم-۲۷۰۸)

**تسهيلات:**

**قوله عَامَ الْفَتْحِ:**

**دعام الفتح تغليط:-** ميرك شاه ليكلى دى چه دعام الفتح الفاظ صحيح نه دى بلكه "عام حجة الوداع" الفاظ دى دَ يو راوى نه سهوشوې ده

**قوله إِلَّا ابْنَتِي:**

مطلب داچه دَ ذوى الفروض نه زما وارث دې وخت كښې صرف زما لور ده

**اشكال:-** حضرت سعد ﷺ يومالدار صحابى وو اودَهغه څو خامن وو اوپه عصبه كښې ډيرزيات وارثان وو بيا هغوى دا څنګه اوفرمائيل چه زما په وارثانو كښې صرف يو لور ده نورڅوك نشته دې؟

**داشكال درې جواب:-**

① ملاعلى قارى رحمه الله دَ علامه طيبى رحمه الله نه نقل كړې دې. دَدې خلاصه داده چه زما وارثان خو ډير دى ليكن دَچا باره كښې چه زما ويره ده اوزه په هغې كښې پريشان يم هغه صرف زما لور ده ځكه چه دا عاجز خاتون ده چه زما په وارثانو كښې دَ ټولو نه زياته كمزورې ده

② ملا على قارى فرمائى دَحضرت سعد ﷺ ذوى الفروض نه صرف يولور خودل چه دَ ذوى الفروض نه يولور ده دامطلب نه دې چه نور وارثان نى نشته دې ځكه چه په عصبه كښې دَهغوى ډيرزيات وارثان وو پخپله هم دې حديث كښې "ورثتك" لفظ راغلې دې او "يتكففون" دَ جمع صيغه ده دكوم نه چه صفا پته لګى چه نور وارثان وو مګر هغه په عصبه كښې وو بلكه دې سره حديث نمبر (۳۰۷۲) كښې "ولدك" سره دَ اولاد ذكر موجود دې

③ حضرت سعد ﷺ خپل مالونه په خپلو ټولو خامنو باندې تقسيم كړې وو صرف يو لورنى وه چه هغې ته دَميراث حصه تردغه وخته پورې نه وه وركړې شوې په دې وجه هغوى دَدې ذكر اوكړو. دا جواب ډير ښه دې او واضح دې ماته يادېږى چه دا ما چرته ليدلې دې

**قوله: الى فِيّ:**

**په مباح عمل كښې دنيكۍ په نيت د ثواب ملاويدل:-** مطلب دادې چه دَ الله تعالى دَ رضان دَپاره څوك عمل كوى هغه ته ضرور ثواب ملاويږى دَ بى بى په خوله كښې نوروئى وركول دَمينې په وخت كيخودې شى دا څه عبادت نه دې بلكه عادت اوشهوت دې. ليكن چه كله په دې كښې دَ الله تعالى دَ رضا تصور وى نوداهم په عبادت كښې شميرلې كيږى او ثواب ملاويږى.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۰۷۲] د ټول مال د وصيت کولو څخه ممانعت

۲۰۷۲-[۲] (۱) عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «عَادَنِي رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَنَا مَرِيضٌ، فَقَالَ: "أَوْصَيْتَ؟" قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: "بِكَمْ؟" قُلْتُ: بِمَالِي كُلِّهِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ. قَالَ: "فَمَا تَرَكْتَ لِوَلَدِكَ؟" قُلْتُ: هُمْ أَغْنِيَاءُ بِخَيْرٍ. فَقَالَ: "أَوْصِ بِالْعُشْرِ" فَمَا زِلْتُ أُنَاقِصُهُ، حَتَّى قَالَ: "أَوْصِ بِالثُّلُثِ، وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه وايي زه چې ناجوړه وم نو رسول الله ﷺ زما پوښتنې ته راغلی، وي فرمایل چې آیا تا د وصیت کولو اراده کړېده؟ ما اوویل چې هو. نو حضور ﷺ وفرمایل چې د څومره مال د وصیت اراده دې کړېده؟ ما عرض اوکړو چې ما خو د الله ﷻ په لار کې د ټول مال د وصیت کولو اراده کړېده. حضور ﷺ وفرمایل چې ت دخپل اولاد د پاره څه پرېښي دي؟ ما عرض اوکړو چې هغه خپله مالدار او خوشحاله دي. حضور ﷺ وفرمایل (که وصیت کول غواړې نو) د خپل مال د لسمې حصې په باره کې وصیت وکړه، حضرت سعد رضي الله عنه وايي هر کله چې ما د حضور ﷺ نبودل شوی دا مقدار مې بار بار کمولی نو (زما په اصرار) حضور ﷺ وفرمایل چې ښه د دریمې حصې مال په باره کې وصیت وکړه، اګر چې دا دریمه هم ډېره ده

**حل اللغات:** - ① عَادَنِي: بیمار پرسي اوکړه زما، زما پوښتنه ئې اوکړه ② فَمَا زِلْتُ: همیشه ووم زه، بار بار کونکې ووم زه ③ أُنَاقِصُهُ: ما کمولو هغه

**نوټ:** -د حدیث تشریح د ترجمې نه ظاهره ده او ددې حدیث نه معلومه شوه چه په ثلث کښې به وصیت جاري کېږي.

## [۲۰۷۳] ذ وارث ذ پاره د وصیت عدم صحت

۲۰۷۳-[۲] (۲) ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ: ② إِنَّ اللّٰهَ قَدْ أَعْطَى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ، فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ: "«الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ، وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللّٰهِ»".

**ترجمه:** ① او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي چې ما د حضور ﷺ څخه د حجة الوداع په کال په خطبه کې واورېدل ② چې الله ﷻ هر حقدار ته د هغه حق ورکړي دی نو د وارث د پاره

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی الوصیة بالثلث والربع (رقم-۹۷۵) والنسائی فی کتاب الوصایا/باب: الوصیة بالثلث (رقم-۳۶۳۱)

۲) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الصید/باب ما جاء فی الوصیة للوارث (رقم-۲۸۷۰) والترمذی فی کتاب الوصایا عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء لا وصیة لوارث (رقم-۲۱۲۰) وابن ماجه فی کتاب الوصایا/باب لا وصیة لوارث (رقم-۲۷۱۳) واحمد فی المسند: ۲۶۷/۵

وصيت نشته، ابوداؤد ابن ماجه، او امام ترمذي ﷫ دا مزيد نقل كړي دي چې وړوكى دصاحب فراش د پاره دى او د زنا كونكي د پاره كاڼي دي او د هغوئ معامله الله ﷻ ته حواله ده

**حل اللغات** - ① الْفِرَاشِ: بستره (مراد ترې ښځه ده)، ② الْعَاهِرِ: زناكار، ③ الْحَجَرُ: كاڼړى، محرومتيا، سنګسار كول

**تسهيلات:**

**قوله: أَعْطَى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ:**

**دوارث دپاره د وصيت نشته:** - يعنى دَ هرصاحب حق مقرره حصه الله تعالى وركړې ده دَ ذوى الفروض دَپاره جدا حصې مقرردى دَ اعصاب دَپاره جدا حصې مقرردى لهذا دَ يووارث په حق كښې دَ وصيت ضرورت نشته كه څوك وصيت هم اوكړى نودَهغې هيڅ اعتبارنشته دې اوكه ټول وارثان په دې باندې متفق شى اودَ يوكس په حق كښې دَ مړى دَ وصيت دَ نفاذ اجازت وركړى نودا جائز دى په دې شرط چه په هغوى كښې څوك وړوكې ماشوم نه وى

**قوله: الولد لِلْفِرَاشِ:**

**د الفراش څخه مراد:** - دَ فراش اطلاق په ښځه باندې كيږى ليكن دلته په الولدللفراش كښې صاحب فراش مراددې چه دَ ښځې دَپاره خاوند يا دَ وينځې دَپره آقا اومالك مراددې

**قوله: وللعاهر الْحَجَرُ:**

**د الحجر دوه مطلبونه:** - ① يعنى هغه ته به كاڼړى ملاويږى چه په هغه باندې كاڼړى اووره وى سنګسار نى كړى كه چرې واده كړې وى

② يا دَ الحجر لفظ كنايه ده دَحرمان او محرومتيانه چه زناكار ته به هيڅ هم نه ملاويږى هغه محروم دې

٣٠٧٣ - (١) [١] وَيُرْوَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] قَالَ: «لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ، إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْوَرَثَةُ». [٣] مُنْقَطِعٌ، هَذَا لَفْظُ الْمَصَابِيحِ. وَفِي رِوَايَةِ الدَّارَقُطْنِيِّ: قَالَ: «لَا تَجُوزُ وَصِيَّةٌ لِوَارِثٍ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْوَرَثَةُ».

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس ﷠ د رسول الله ﷺ څخه دا نقل كړي دى [٢] چې حضور ﷺ وفرمايل د وارث د پاره وصيت نشته خو كه وارث وغواړي، [٣] دا حديث منقطع دى او دا د مصابيح الفاظ دي

۱) اخرجه الدارقطني في السنن ۴/ ۳۷ رقم الحديث ۸۹

او د دار قطني په روايت کې دا الفاظ دي، چې (حضور ﷺ وفرمايل) دوارث په حق کې وصيت جائز نه دی خو هر کله چې نور وارثان وغواړي

**[۲۰۷۵] وارثانو ته د نقصان رسولو وعيد**

۳۰۷۵—[۵] (۱) ⑴ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ⑵ «إِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ وَالْمَرْأَةُ بِطَاعَةِ اللّٰهِ سِتِّينَ سَنَةً ⑶ ثُمَّ يَحْضُرُهُمَا الْمَوْتُ، فَيُضَارَّانِ فِي الْوَصِيَّةِ، فَتَجِبُ لَهُمَا النَّارُ». ثُمَّ قَرَأَ أَبُو هُرَيْرَةَ ﴿مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَارٍّ﴾ [النساء: ۱۲] ⑷ إِلَى قَوْلِهِ ﴿وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾ [النساء: ۱۳] ⑸ رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت ابوهريره ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⑵ سړی او ښځه تر شپيتو کلو د الله ﷻ عبادت کوي، ⑶ خو کله چې د هغوی د مرګ وخت نژدې راشي، ⑷ نو د وصيت په ذريعه وارثانو ته نقصان رسوي، نو د هغوی د پاره دوزخ ضروري کېږي. ⑸ د دې څخه وروسته حضرت ابوهريره ؓ دا آيت کريمه وويلو: وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَارٍّ يعني (ورثاء د خپلې حصې) وصيت پوره کولو څخه وروسته د چا د پاره چې وصيت شوی وي يا د دين (قرض) څخه وروسته په شرط د دې چې (وصيت کونکي) چاته ضرر ونه رسوي

حضرت ابوهريره ؓ دا آيت تر ارشاد رباني: وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (او دا لويه کاميابي ده) پورې تلاوت کړي. (احمد ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① يُضَارَّانِ: نو يوبل ته ضرر رسوی دوی، ② دَيْنٍ: قرض

**تسهیلات:**

**قوله: سِتِّينَ سَنَةً:**

**د آخري خاتمې اعتبار:** - دَحديث تعليم دادې چه اعتبار آخری خاتمې له دې يوسړې مثلاً دَ شپيتو کالو نه په عبادت کښې لګيادې ښځه هم لګياده ليکن دَمرګ نه مخکښې ناجائز وصيت کولوسره خپلو وارثانوته نقصان رسولو نه هغه دَ اور مستحق کيږی لهذا په هرمسلمان باندې لازم دی چه هغه دې دَ خپلو وارثانو په حق کښې نقصان نه کوی ګنی دَ عذاب دَپاره دې تيارشی

۱) اخرجه ابو داود في السنن کتاب الصيد/باب ما جاء في کراهية الإضرار في الوصية (رقم-۲۸۶۷) وابن ماجه في کتاب الوصايا/باب الحيف في الوصية (رقم-۲۷۰٤)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۰۷٦] په جائز وصیت دَ ثواب ملاویدل

۳۰۷۶-[۱] (۱) ① عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "② «مَنْ مَاتَ عَلَى وَصِيَّةٍ مَاتَ عَلَى سَبِيلٍ وَسُنَّةٍ، ③ وَمَاتَ عَلَى تُقًى وَشَهَادَةٍ، وَمَاتَ مَغْفُورًا لَهُ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړی چې د وصیت کولو سره مړ شي (یعني کوم سړی چې د خپل مرګ په وخت د خپل مال یو حصه د الله ﷻ په لاز کې مثلًا فقراء ته د ورکولو وصیت وکړي) نو هغه په صراط مستقیم او ښه طریقه مړ شو ، ③ او په تقوی او شهادت مړ شو (یعني په متقیانو او شهیدانو کې دا خل شو) او په داسې حال کې مړ شو چې د هغه مغفرت وشو (یعني وبخښل شو) (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① سَبِيلٍ: لاره (د شریعت)، ② سُنَّةٍ: طریقه (د دین)، ③ عَلَى تُقًى: په تقوی باندې، په خوف خدا باندې، ④ شَهَادَةٍ: حکمی شهادت (د شهادت ثواب به ملاویږي)، ⑤ مَغْفُورًا: بخښلې شوې،

**تسهیلات:** **قوله:** مات علی سَبِيلٍ:

**د سبیل څخه مراد:** - یعنی په لویه لارکښې دې اولګوی چه کوګ نه وی بلکه نیغ به وی نه به خفګان وی اونه به دَ چا جګړه. په دې حدیث کښې دَ وصیت ترغیب دې چه هوښیار اوسیږنی وصیت ځان سره ساتنی داحکم دَ اسلام په شروع کښې واجب وو بیا دَ میراث په آیت سره منسوخ شو. اوس مستحب دې اوکه دَ چا رشته دار غریب دې او په میراث کښې دَهغه څه حق نشته دې که دَهغه دَپاره یوسړې دَخپل دریمې حصې دَمال نه وصیت کوی نودا جائز بلکه مستحب دی.

**قوله:** وَسُنَّةٍ:

**د سنت څخه مراد:** - یعنی په خوښه کړې شوې لار به مری او دَ خو سنتو په لار به اچولې څی "علی تُقًى" یعنی دَ خوف خدا اودَتقوی په اوچت مقام باندې به مری په علم اوعمل به دَهغه خاتمه وړی او ډیر به ښه وی.

**قوله:** مَغْفُورًا:

**د وصیت فائدې:** - یعنی بخښنې سره به دَ دنیا نه اوچتیږی څی به. داټول فوائد دَ وصیت دی دَدې فوائدو تعلق دَ آخرت سره دې لیکن په وصیت کښې دَ دنیاهم بې شمیره فائدې دی کله چه سړې وصیت نه کوی او مال په بینکونو کښې یا نورکاروبارکښې لګیدلې وی دکور خلقوته هم معلومه نه وی چه مشرسره څومره مال دې اوکوم کوم ځائی کښې دې. دَ وصیت نه بغیر مړکیدو سره لاکهونه ډوب شی دغه شان ډیر واقعات شوی دی.

۱) اخرجه ابن ما جه فی السنن رقم الحدیث ۲۷۰۱

**[۲۰۷۷] کافرانو ته د نیکو اعمالو ثواب نه رسیدل**

۲۰۷۷ — [۸] (۱) ① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: ② «أَنَّ الْعَاصَ بْنَ وَائِلٍ أَوْصَى أَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ مِائَةُ رَقَبَةٍ ③ فَأَعْتَقَ ابْنُهُ هِشَامٌ خَمْسِينَ رَقَبَةً، ④ فَأَرَادَ ابْنُهُ عَمْرٌو أَنْ يُعْتِقَ عَنْهُ الْخَمْسِينَ الْبَاقِيَةَ، ⑤ فَقَالَ: حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-

**ترجمه:** ① او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار (حضرت شعیب) او شعیب د خپل نیکه حضرت عبد الله ﷺ څخه نقل کوي ② چې عاص بن وائل وصیت کړي وو چې زما د طرف څخه دې سل غلامان آزاد کړل شي، ③ نو پنځوس غلامان خو د هغه خوی هشام ﷺ آزاد کړل. ④ بیا چې د هغه دویم خوی عمرو دا اراده وکړه چې باقي پنځوس غلامان هغه آزاد کړي ⑤ نو هغه اوویل (یعني په خپل زړه کې یې سوچ وکړو) چې زه دا پنځوس غلامان د هغه وخته نه آزادوم د څو پورې چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه ونه کړم په خپل زړه کې یې سوچ وکړي چې آیا دا پنځوس غلامان او پنځوس غلام آزادول مقید هم دي که نه؟ نو عمرو د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو

① فَأَتَى النَّبِيَّ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّ أَبِي أَوْصَى أَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ مِائَةُ رَقَبَةٍ، ② وَإِنَّ هِشَامًا أَعْتَقَ عَنْهُ خَمْسِينَ، وَبَقِيَتْ عَلَيْهِ خَمْسُونَ رَقَبَةً، أَفَأُعْتِقُ عَنْهُ؟ ③ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: إِنَّهُ لَوْ كَانَ مُسْلِمًا فَأَعْتَقْتُمْ عَنْهُ أَوْ تَصَدَّقْتُمْ عَنْهُ أَوْ حَجَجْتُمْ عَنْهُ، ④ بَلَغَهُ ذَلِكَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او عرض یې وکړي چې یا رسول الله! ﷺ زما پلار (عاص) دا وصیت کړي وو، چې د هغه د طرف څخه دې سل غلامان آزاد کړل شي، ② او بیشکه هشام اذاد کړی او دهغه د طرفه نه پنځوس غلامان نو اوس په هغه (یعنی د هشام ﷺ په ذمه) پنځوس غلامان باقي پاتې دي. نو آیا زه د خپل پلار د طرف څخه (هغه پنځوس غلامان آزاد کړم. ③ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې هغه (ستا پلار عاص) که مسلمان وې او تاسو د هغه د طرف څخه غلامان آزاد کړي وی، یا صدقه کړي وی. یا مو د هغه د طرفه حج کړي وې نو هغه ته به د هغه ثواب رسیدی (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① حَجَجْتُمْ: حج کړي وې تاسو. ② بَلَغَهُ: رسیدلې به وې هغه ته.

**تسهیلات:**

**قوله** أَنَّ الْعَاصَ بْنَ وَائِلٍ:

**د عاص بن وائل د دوه ځامونو تعارف:** - عاص بن وائل دَ نبوت په زمانه کښې وو لیکن دَ بدقسمتئ نه ئې اسلام قبول نه کړې شو او په کفریاندې مرشو دَهغه دوه ځامن وو یو هشام بن عاص ﷺ او بل عمرو بن عاص ﷺ وو دواړو ته الله تعالی دَ اسلام قبلولو

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الجهاد . باب في إباحة الطعام في أرض العدو (رقم-۲۷۰۱)

توفيق ورکړې وو مکه کښې اسلام قبول کړو اوبيا د حبشه طرف ته هجرت اوکړو د حبشه نه واپس مکې ته راغلل نوپلار قيد کړل او درې څلورکاله د پلار په قيد کښې تکليفونه تيرول بيا په غزوه خندق کښې مدينې منورې ته حضوراکرم ﷺ له هجرت اوکړو راغلل د لوئي شان والاصحابي وو په جنګ يرموك کښې شهيد شو حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه د فتح مکه نه لږ شان وړاندې حضرت خالدبن وليد رضي الله عنه سره مدينې ته اورسيدل او اسلام ئې قبول کړو دځه لوئي شان والاصحابه کرام وو فاتح مصر وو د حضورپاك په زمانه کښې دحضورپاك دَ طرف نه ګورنروو بيا دَ حضرت صديق اکبر رضي الله عنه په زمانه کښې هم ګورنروو بيا دَ عمر فاروق رضي الله عنه په زمانه کښې دَمصر ګورنر پاتې شو بيا دحضرت معاويه رضي الله عنه دَ طرف نه ګورنر پاتې شودَ ۹۹ کالو په عمر کښې ۴۳هجری کښې وفات شو

**قوله: إِنَّ أَبِي أَوْصَى أَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ مِائَةُ رَقَبَةٍ:**

**دعمروبن عاص د پلار وصيت:** - په زيربحث حديث کښې حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه دَحضورپاك نه تپوس اوکړو چه زما پلاردَ مرګ نه وړاندې وصيت کړې ووچه زمادَ طرف نه سل غلامان آزاد کړه زما رور هشام پنځوس غلامان آزاد کړل باقي پنځوس زما په :مه دی زه دَهغه دَطرف نه دا غلامان آزادولې شم. يعنی هغه ته به څه فائده اورسی اوځه سخی نه هغه ته اورسی؟

**قوله: إِنَّهُ لَوْ كَانَ مُسْلِمًا:**

**کافرمړی ته ثواب نه رسيدل:** - حضورپاك په جواب کښې اوفرمائيل که هغه مسلمان وو نودَغلام آزادولو ثواب به هغه ته رسيدلو ليکن چونکه هغه په اسلام باندې نه دې مړ لهذا دَ کافردَپاره هيڅ ايصال ثواب نه وررسی حضورپاك په عجيبه طريقه سره جواب ورکړو حضورپاك دا اونه فرمائيل چه غلام مه آزاده وه بلکه اشاره ئې اوفرمائيله چه دَ غلام آزادولو ثواب خو ضرور ملاوېږی غلام آزادول پکاردی دادَ ثواب کاردې ليکن هغه ته ثواب ځکه نه رسی چه هغه مسلمان نه وو يوکافرته دَهغه دَ هريو عبادت ثواب دَهغه دَ مرګ نه پس هغه ته نه رسيږی لهذا دَ هيڅ نيکئی فائده به نه وی که غلام آزادول وی اوکه حج کول وی اوکه زکوة ورکول وی اومسلمانانوته دَدې قسم نيکو ثواب ملاوېږی

**[۲۰۷۸] دَوارث حق لوه د ضائع کولو ګناه**

۳۰۷۸ - [۸] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ قَطَعَ مِيرَاثَ وَارِثِهِ، قَطَعَ اللَّهُ مِيرَاثَهُ مِنَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت انس رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د خپل وارث ميراث قطع کړي، نو الله ﷻ به د قيامت په ورځ د هغه د جنت ميراث قطع کړي. (ابن ماجه)

۱) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الوصايا/باب الحيف فی الوصية (رقم-۲۷۰۳)

۵۰۸۰–( )[۱۰][۱] وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-.

**ترجمه:** [۱] او بيهقي دا روايت د حضرت ابوهريره ﷺ څخه نقل کړي دی

**حل اللغات** - ① قَطَعَ: ضائع کړی، ختم کړی.

**تسهيلات: قوله**: مَنْ قَطَعَ مِيرَاثَ وَارِثِهِ:

**د ميراث څخه د وارث محرومه کولوسزا:** – يعنی دَخپل وارث ميراث په هيڅ شان سره مه ضائع کوه اوکه هغه ئی دَ ميراث نه محروم کړو نو دَقيامت په ورځ به دغه ظالم سړی دَ جنت دَ ميراث نه محروم کړی دَ جنت دَ ميراث طرف ته دَ قرآن کريم طرف نه اشاره ده ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيٓ أُورِثْتُمُوهَا﴾ دَميراث دَ دې اطلاق نه معلوميږی چه دَهرانسان دپاره په جنت کښې سيټ او خائی متعين دې اودغه شان په دوزخ کښې هم يوسيټ اوخائی متعين دې که دا سړې جنت ته لاړنه شو نودَ بل سړی سيټ هغه ته ملاويږی دا لکه چه دَ جنت ميراث دې [اشعة اللمعات]

**د هر انسان دپاره په جنت او جهنم کښې ځائي:**–شيخ عبدالحق محدث دهلوی ﷫ دَهر انسان دَ دوو سيټونوذکر کړی دی "ولما کان لکل مکلف مقعد فی الجنة ومقعد فی النار الخ" [اللمعات حاشيه مشکوة ص ۲۸۵]

بهرحال کوم سړې چه په دنيا کښې دَ يورشته دار ميراث خرابوی الله تعالی به دَ قيامت په ورځ دَدغه سړی ميراث خراب کړی. [اشعة اللمعات]

**په عمل او سزاء کښې مناسبت:**–علامه طيبی ﷫ په دې سزاکښې دَ ربط اومناسبت طرف ته داسې اشاره کړې ده دَهغه دَعربی عبارت ترجمه اوګورئی په قيامت کښې دَ جنت نه دَ دغه سړی ميراث ختمول دَ دغه سړی ډيره ناکامی اودنااميدئی طرف ته اشاره ده په دواړو کښې مناسبت داسې دې مثلاً په دنياکښې دَ يوسړی وارث دَ اوږدې مودې راسې په دې انتظارکښې دې چه زه دَ خپل مورث ميراث ته اورسيږم کله چه ورنيزدې شی نومرګ دَ دغه سړی ميراث کټ کړی اوهغه نااميده کړی دغه شان چه کله دا مورث دَ جنت په انتظارکښې وی او په طمع وی چه اوس به ماته زما مقام ملاؤشی او په جنت کښې به زما ميراث ماته ملاؤشی نوالله تعالی دَهغه نه دَ جنت ميراث کټ کړی نودَ ډير اميد اوانتظارنه پس هغه پوره نااميده شی اوناکام شی اودَ کماتدين تدان مکافات عمل مزه هغه ته وراوڅکی اوهغه ته "جزاء الفعل بمثل ما فعل" پوره پوره حساب ملاويږی او "جزاء سيئة سيئة بمثلها" مکمل نقشه دَهغه مخې ته راځی حالانکه هغه ته بار بار ونيلې شوی وو چه ﴿هَلْ جَزَآءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ﴾ په ضابطه باندې کاربند اوسيږه دې دپاره چه ته کامياب شې [الکاشف، ۲۳۳/۶]

---

[۱] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان

# [۱۳]كِتَابُ النِّكَاحِ

## دنكاح كتاب

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على اربع مسائل:**

① الترغيب في النكاح: ۱، ۲، ۱۰، ۱۱، ۱۴، ۱۵، ۱۷۔

② صفات الزوجة : ۳، ۵، ۹، ۱۲، ۱۳، ۱۸۔

③ الترغيب في تزويج المرأة الصالحة: ۴، ۱۶۔

④ كون النساء سبب الفتنة : ۶، ۷، ۱۸۔

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**د نكاح ثبوت د قرآن نه:-** قال الله تعالى ﴿ فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ﴾ [سورت النساء ايت: ۳.]

**د كتاب البيوع نه روسته د كتاب النكاح ذكر كولو وجه:-** نكاح من وجه عبادت دې او من وجه معامله ده په دې وجه دَ عباداتو او معاملاتو نه پس ذكر كړې شوه

**دنكاح لغوي معنى:-** لفظ نكاح په لغت كښې ضم او ملاويدلو ته وائي او "تقب" سورى ته هم وائي په نكاح كښې دواړه مفهومونه موجود دي.

**دَ نكاح اصطلاحي تعريف:-** دَ فقهاء كرامو په نيز دنكاح تعريف داسې دې "اَلنِّكَاحُ هُوَ عَقْدٌ وُضِعَ لِتَمْلِيْكِ الْمُتْعَةِ بِالْاُنْثٰى قَصْدًا" په اردو كښې دَنكاح تعريف داسې كيږي چه نكاح دَهغه عقداو معاهده نوم دې چه دَ ښځې او سړي په منيځ كښې كيږي په كوم سره چه دَ دغه دواړو په مينځ كښې دَ زوجيت تعلقات قائميږي.

**د اصل وضعي په اعتبار سره د نكاح په حيثيت كښې مذاهب:-**

دنكاح لفظ داصل وضع اعتبار سره عقد دپاره دې يا وطى دپاره ، په دې سلسله كښې دعلماؤ درې قولونه دي.

① دحضرات شوافع قول اصح او د حضرات مالكيه راجح مذهب دادې چه لفظ دنكاح په عقد كښې حقيقت دې او وطى كښې هم مجاز ده.

② دحضرات حنفيه مسلك دادې چه لفظ دنكاح دوط الراجحى په معنى كښې حقيقت دې او په عقد كښې مجاز ، دحضرات شوافعو نه هم دا يو روايت دې .

③ لفظ دنكاح وطى او عقد دواړو دپاره على السواء استعماليږي. او دواړو كښې بالاشتراك حقيقت دي

حنابله كښې قاضي ابويعلى هم دا اختيار كړې دې ، شوافع نه هم يو روايت هم د نقل شوې دې او حافظ ابوالقاسم زجاجي هم ددې تائيد كړې دې.

**دنكاح د عباداتويا مباحاتو په حيثيت كښې مذاهب:-**

① دمالكيه نه دوه قولونه منقول دى. يو دا چه نكاح ((اقوات" كښې نه ده ، (قوت) هغه څيز ته وئيلې شى چه دهغې نه بغير ژوند تيرول مشكل وى او نكاح داسې څيز دې چه ددې نه بغير ژوند مشكل دى ، دويم قول دادې نكاح دتفكهات دقبيل نه ده او دفواكه شان داوى كه استعمال شى نو ډيره ښه ، كه نه وى نو هيڅ حرج نشته.

② حضرات حنفيه او حنابله په نيز داپه عبادات كښې شامل دى. او حضرات شوافع دا په مباحات كښې شميرى.

**دنكاح په حكم كښې مذاهب:-**

① اود داود ظاهرى رحمه الله ، علامه ابن حزم رحمه الله اوامام احمد بن حنبل رحمه الله يو قول دادې چه نكاح كول واجب دى.

② دجمهور علماء كرام مسلك دادې چه نكاح كول سنت دى . خودا سنتيت دعامو حالاتوپه اعتبار سره دې ، كله چه انسان ته په زنا وغيره كښې دمبتلا كيدو ويره نه وى. كه ددې ويره وى نو (عندالتوقان) بيا دټولو دپاره نكاح كول واجب دى. البته حضرات شوافع په دې صورت كښې هم دوجوب قائل نه دى،بلكه هغوى ورته صرف مستحب وائى.

**داول فريق اول دليل:-** ①دقران عظيم الشان دا آيت مبارك ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ﴾ د دوى مستدل دې. چه (فَانْكِحُوْا) دامر صيغه ده ،

**داول فريق دويم دليل:-**② په حديث كښې (تزوجوالولودالودودفانى مكاثربكم الامم) كښې واردشوى دى او په دې كښې هم (تزوجو) دامر صيغه ده.

**داول فريق دريم دليل:-**③ په بخارى شريف كښې يو حديث رازى ، ددې په آخر كښې دى چه (فمن رغب عن سنتى فليس منى) ، ددې نه هم وجوب ثابتيږى.

**داول فريق د اول دليل جواب:-** دا دليل دوجوب دپاره كافى نه دى ، آيت كريمه چه ((فَانْكِحُوْا)) دامر صيغه دې ليكن امر هر ځائې كښې دوجوب دپارهٔ نهٔ رازى،د آيت كريمه سياق وسباق هم په دې باندې دلالت كوى چه نكاح واجب نه ده،

**داول فريق د دويم دليل جواب:-** په ((تزوجواالولودالودود)) ، كښې دامر صيغه خوده ليكن مخكښې چه په (مكاثربكم الامم) سره كوم علت بيان شوې دې ،دې نه متبادر هم دا كيږى چه وجوب لره بيانول مقصود نه دې.

**د اول فریق د دویم دلیل جواب:** - او ((من رغب عن سنتی فلیس منی)) دهغه سړی دپاره بیان فرمائیلي شوی دی چه د حضرت نبی کریم دسنتومبارك نه اعراض اوکړی ، بیا هم که یوسړي دسنت نه اعراض نه کوی اوهغه نکاح صرف په دې وجه نه کوی چه ده ته دنکاح کولو ضرورت او حاجت نشته نو دا وعیددهغه دپاره نه دې

**علمی مصروفیاتوته په تزوج ترجیح ورکونکی عالمان:** - دشام مشهور عالم شیخ عبدالفتاح ابوغده په یوکتاب د ((العلماء العزاب الذین آثروالعلم علی الزواج)) نوم سره تحریر فرمائیلی دی ، په دې کښې هغوی دهغه عالمانو مختصر حالات جمع کړی دی چه هغوی دعلمی مصروفیاتو په وجه د ازواج ضرورت محسوس نه کړو . اوپه دې کښې هغوی تقریبًا د شپږدیرشو (۳۶) عالمانو ذکر فرمائیلې دې چه په هغوی کښې ابن تیمیه رحمه الله او علامه نووی رحمه الله پشان اساطین علم نومونه شامل دی. ظاهره ده چه ددې اهل علم متعلق خودا نشی وئیلې کیدې چه هغوی یو واجب عمل پریښودو.

**دامام بخاری د طرز عمله دعدم وجوب نکاح قرینه:** - پخپله دامام بخاری رحمه الله دصنیع او طرزنه معلومیږی چه هغه هغوی مطلقًا دنکاح دوجوب قائل نه دې خکه د ((فَانْكِحُوْا)) والآیت هغوی په ((باب الترغیب فی النکاح)) لاندې ذکرکړې دې. دې خبرې طرفته داشاره ده کولو دپاره دا په وجوب باندې دال نه دې ، صرف دترغیب دپاره دې.

**د تخلی للعبادة النافلة اونکاح په افضلیت کښې مذاهب:** -

① دَ شوافعوو په نیز "تخلی بالعبادة النافلة" دَنکاح نه غوره دې

② امام ابوحنیفه رحمه الله دَ خپل ژور نظر او شرعی نقطه نګاه په بنیادباندې فرمائی چې نکاح د عبادت نفلیه څخه غوره او افضله ده

**داول فریق دلیل:** - حضرت یحیٰی علیه السلام ته الله تعالی (سَيِّدًا وَّحَصُوْرًا) فرمائیلی دی او "حصور" هغه وی چه واده خادی اونه کړی او یوشان په عبادت کښې اخته وی هرکله چې د پیغمبر د تجرد ژوند تیروی نودا د دې د افضلیت دلیل دې

**داول فریق د دلیل جواب:** - دحضرت یحي علیه السلام شریعت زمونږ شریعت نه دې د هغوی عمل زمونږ دپاره حجت نشی جوړیدې

**د دویم فریق اول دلیل:** - په نکاح باندې دَ نوع انسانی دارومدار دې. داَدَ انسان دَ توالد اوتناسل ذریعه ده داَ دوو کسانوپه مینځ کښې ذاتی تړون یا صرف شخصی اوطبعی خواهش نه دې بلکه داَ عمل انسانی دَمعاشرې دَ وجود دَدې دَ تشکیل اودَدې دَترقئ بنیادی ستن ده. هم دغه وجه ده چه دَ تخلیق آدم علیه السلام نه واخله تر دَ شریعت محمدی پورې په ټولو آسمانی مذاهب او شریعتونوکښې نکاح یوشان راروانه ده. هیڅ یوشریعت داسې

نه دي راغلي چه ددي نکاح د عمل نه خالي پاتې وي سره ددې چه په بعضې شریعتونو کښې بعضې عباداتو کښې بدلون راغلې دې لیکن د شرائطو او ضوابطو تغیر پریخودو سره د نفس نکاح وجود په هرمذهب کښې پاتې دې یوآسماني مذهب دا اجازت نه دې ورکړې چه بغیرد عقداونکاح اوبغیرد معاهدې اومعاقدې نه د ښځې اوسړي جنسي تعلق قائم وي

**د دويم فريق هويم دليل:**- نکاح کول سنت نبوي دې اوپه نکاح نه کولو کښې د خپل پیغمبر د سنت ترک دې ددې وجې نکاح کول افضل شو

**د نکاح د ضرورت اووه وجوهات او فوائد:**-

① **د افرادي قوت اضافه:**- یوسړي کمزوري دې دهغه افرادي قوت د نشت برابردې په واده کولو سره هغه ته افرادي قوت حاصلیږي د نوي خپلوانود طرف نه هغه ته پشتی امداداونصرت ملاویږي نوهغه ته حوصله ملاویږي د بزدلئ نه بچ کیږي اوس دا سړې نه ظالم پاتې کیږي اونه مظلوم بلکه ددې په مینځ کښې د بهادرئ په مطلوبه مقام باندې قائم پاتې کیږي

② **په انساني قوتونو کښې اعتدال پیدا کیدل:**- په انسان کښې دوه طاقتونه په ښکاره توګه موجوددي چه دهغې په افراط اوتفریط اوبې قاعده ګئي سره انسان بربادیږي قوت غضبیه قوت شهویة قوت غضبیه کښې افراط او زیاتې "تهور" اوظلم دې او په دې کښې تفریط اوکمې "جُبُن" اوبزدلي ده او په دې کښې توسط او اعتدال شجاعت اوبهادري ده کومه چه شرعاً مطلوب او مقصود ده.

قوت شهویه کښې افراط فسق اوفجور اوزناده او په دې کښې تفریط خمود اوجمود اونامردي ده اوددې وسط "عفت" دې کوم چه مطلوب اومقصوددې په نکاح کښې دانسان هم دغه دوه بنیادي قوتونه په قابواوکنترول کښې راځي اود انسان په ژوند کښې د اعتدال لار پیداکیږي

③ **د شرمګاه د تخلیقي عمل بحالي پاتې کیدل:**- جالینوس لیکلي دي چه د انسان یواندام د هغې دتخلیقي عمل نه تردیرې مودې پورې منع کړې شي نوهغه خپل تخلیقي عمل پریخودو سره بیکاره کیږي ددې نه ثابته شوه چه نکاح کولوسره سړي خپل اصلي صفت اواعتدال او عفت باندې قائم پاتې کیږي نه په فسق اوفجور او زناکښې پریوځي او د نامردئ ښکار کیږي خلاصه دا چه نکاح سره په جنسي خیالاتو کښې مکمل سکون راځي

④ **د زنا مخه د حفاظت ذریعه:**- نکاح شهواني قوت په اعتدال کښې راولي. مثلاً د قضاء شهوت دپاره چه کله سړي ته صحیح او جائزمحل ملاویږي نوهغه د فسق اوفجور اوخناورتوب نه محفوظ پاتې کیږي حضرت مولانا مفتي محمدشفیع رحمه الله به فرمائیل که

دَ خوارلسو کالو جینني او دَ پنځلسو کالو هلك دَ نکاح پابند کړې شي نوتر ډيره حده پورې په دَ زنا وجود ختم شي دغه شان دَ ډيره موده دَنکاح نه کولو په وجه په خاص اندام کښې تذابل خمود اوجمود اونامردي پيدا کيږي په صحيح نکاح کولوسره سړې دَ دې مصيبت نه محفوظ پاتې کيږي

⑤ **د نيک اولاد د پيدا کيدو ذريعه:**- نکاح دَ صالح اولاد واحد ذريعه ده او په صالح اولاد کښې دَدين اودنيالوئي لوئي فائدې دي دغه شان دَ تيزمزاج والا سړي په مزاج کښې په مزه والې راځي دَ ښځې فرمائشونه اوريدوسره په مزاج کښې اعتدال راځي

⑥ **په سړي کښې عاجزي پيدا کيدل:**- دَ قوم نمائنده او مشرچه کله کورته راځي نو ښځه هغه دهنيه او کورکمان راوړلودَپاره بازارته په منډه کوي دې په منډه ځي اوسامان پخپله اخلي راوړي په دې سره په ده کښې عاجزي راځي اودَ نخوت اوکبرنه بچ کيږي اودَ هغه روحاني اصلاح کيږي دَ مرزامظهرجان جانان رحمه الله دَ مزاج حال په واقف حال باندې ښکاره دې چه هغه څومره نازك مزاج وو نودَهغوي بي بي هم دومره بداخلاق وه څومره چه داحضرت نازك مزاج وو. هغوي به فرمائيل چه الله تعالى زما دَ اصلاح دَپاره ماله داسې ښځه راکړې ده

⑦ **په انساني ارادو کښې اوچتوالې پيدا کيدل:**- دَ نکاح په فائدو کښې داهم ليکلي دي چه په دې سره دَ انسان ارادو اوحوصلو کښې اوچتوالي راځي ځکه چه دَ خاوند جوړيدو نه پس سړې سوچ کوي چه پخپله به خورم په ښځه بچو او خپلوانوباندې به هم خورم په دې سره په انسان کښې ښه صفات مثلاً همت سخاوت او عزيمت او بهادري راځي بل دَ نکاح کونکې دَ مجاهداتو عادت کيږي ځکه چه پوره کورنۍ انتظام دَ هغه په سرباندې راځي په دې سره هغه دَ سستي بې پرواهي اوغفلت غوندې خرابوصفاتونه بچ کيږي

**د نکاح د فرضيت صورتونه:**- ① نکاح هغه وخت فرض کيږي چه دَ نکاح نه کولوپه صورت کښې دَ جنسي خيالاتودَوجې نه په زنا کښې پريوتل يقيني کيږي اوکه په دې صورت کښې په ښځه باندې دَ ظلم کولوويره وي نو بيافرض نه ده

② حق مهر اداکولوباندې خاوند قادروي

③ ښځې ته نان نفقه ورکولو باندې خاوند قادر وي

**د نکاح د مسنونيت صورتونه:**- په دې دغه پورتني صورتونو کښې چه کله اعتدال وي نو نکاح سنت مؤكده کيږي دَ اعتدال مطلب دادې چه دَ جنسي خيالاتو غلبه نه وي او په نان نفقه باندې سړې قادر وي په عامو حالاتوکښې نکاح دَ احنافو په نيز هم مباح ده لکه څنګه چه دَ شوافعو په نيز نکاح مطلقاً مباح ده. په دې صورت کښې شريعت مطهره دَ نکاح ډير ترغيب ورکړې دې اودې ته ئې نصف ايمان وئيلې دې اودَ صالح مستقبل ضامن

نی گرځولې دې

**دنکاح د کراهت صورتونه:** - نکاح هغه وخت مکروه کیږی کوم وخت چه په ښځه باندې د ظلم کولو ویره اوخطره وی مزاج نی دومره سخت وی که نکاح نی اوکړه نو د ظلم خطره د، نکاح هغه وخت حرام دهس کله چه د نکاح کولو په وجه د بدمزاجنی نه په ښځه باندې د ظلم کولویقین وی

**نتیجه د بحث:** - د پورتنی صورتونو په رڼا کښې هرسړې دا فیصله کولې شی چه په کوموحالاتو کښې نکاح کول فرض کیږی او په کومو حالاتوکښې واجب کیږی یا سنت اویا مستحب کیږی او په کومو حالاتوکښې نکاح نه کول ضروری کیږی

**دَ نکاح اته اقسام سره د تعریف او حکم:** -

**دنکاح اته قسمونه:** - په عربوکښې دَ جاهلیت په دورکښې به اته قسمه نکاح کیدله اسلام په هغې کښې صرف یوقسم جائزاوګرځوله او باقی ټولې نی رد کړې

① **نکاح استبضاع:** ښځه چه به کله دَ ماهوارئی نه پاکه شوه نو خاوند به نی ونیل چه فلانکی سردار له لاړه شه جماع اوکړه دې دَپاره چه شریف بهادر او نجیب بچې پیدا شی ښځې به داسې کول اوخاوند به دَ حمل دَ ظهورپورې به نی خپلې ښځې سره صحبت نه کولو

② **نکاح الرایات:** دادَ بازاری او فاحشه ښځونکاح وه په دوی کښې به هرې یوې ښځې په خپل کورباندې جهنډا لګوله اوکوم سړی چه به هم زنا کول غوښتل هغه ته به معلومه شوه اوهغه به دې له راتللو کله چه به ماشوم پیدا کیدلو نودې خلقو به قیافه شناس راغوښتلو هغه به په کتلوسره فیصله کوله چه دا ماشوم دَ فلانکی سړی په شان دې لهذا داهم دَهغه بچې دې

③ **د لسوکسانو هغه جماع کول:** ښځې به نمبر په نمبر لسوکسانوسره جماع کوله کله چه به هلك پیدا کیدلو نودې ښځې به هغه ټول سړی راغوښتل هیچابه انکارنه شو کولې بیا به دغه ښځې هغوی ته ونیل تاسو چه ماسره څه کړی دی هغه تاسوته معلوم دی اې فلانکیه دا هلك ستا دې هغه سړی به دَهغې نه انکارنه شوکولې اودغه هلك به په دغه نامزدګئی او تعین سره دَهغه سړی کیدلو

④ **نکاح متعه:** دا به موقته نکاح وه یوسړې به چرته یوښار یا کلی ته لاړو هلته دَ حصاریدو او سامان کیخودو او دَ جنسی خواهش پوره کولوپه غرض بغیردَ څه ګواه په څه معاوضه به نې یوې ښځې سره نکاح کوله اوهغې سره به حصاروو نن صبا شیعه او روافضو سره دَدې پوره انتظام او سهولیات موجود دی اسلام دا ناجائز ګرځولې ده.

⑤ **نکاح الخدن:** داد یارباشنی پته نکاح وه د دوستنی اویاري په توګه به نی پته زنا کوله اسلام دي ته ﴿ وَلَا مُتَّخِذٰتِ اَخۡدَانٍ ﴾ ونیلی دی او رد کړي نی دي [ سورت النساء ۲۵.]

⑥ **نکاح شغار:** داد دوو جینکود بدلون صورت دي په کوم کښي چه مهرنه وی مثلاً یوسړی به بل ته وائیل دا زما لور ده ته دا په خپله نکاح کښي د خپلي لور په عوض قبوله کړه هغه بل به ونیل ته زما لور د خپلي لور په عوض کښي قبوله کړه اود دغه دواړو په مینځ کښي به مهر نه وو.

شغر او شغار د سپی د متیازو وخت کښي خپي اوچتولوته وائی لکه چه دلته هریو بل ته اوونیل ته زما د لور اوزه ستاد لور خپي اوچتوم اوهم دغه ددواړو مهردي اسلام دا هم منع کړه (بحواله رسوم جاهلیت)

⑦ **نکاح البدل:** په جاهلیت کښي به یوسړی بل سړی ته ونیل ته زماد پاره د خپلي ښځي نه جدا شه زه به ستاد پاره د خپلي ښځي نه جدا شم داد هغوی په نیزد نکاح یوصورت وو اسلام دا منع کړو خو نن صبا په بي غیرت دنیادارو کښي دا رواج په وقتی توګه نانت کلبونو کښي کیږی.

⑧ **عام شرعي نکاح:** داهغه نکاح وه کومه چه نن صبا په مسلمانانو کښي رائج ده

**په خپل خاندان کښي د واده کیدو په صورت کښي دعا:** - په عربو کښي چه کله به دا نکاح په خاندان کښي کیدله نود جینئی پلاربه د جینئی حق کښي دادعا کوله چه الله تعالی دي تا په دي کورننی کښي خوشحاله اوساتی ستا اولاد دي خورشی تاله دي الله تعالی خامن درکړی او په عزت اوعظمت دي اوساتی

**په پردی خاندان کښي د واده کیدو په صورت کښي دعا:** -که جینئی به په بل خاندان کښي واده کیدله نوپلاربه نی داسي دعا غوښتله الله تعالی دي تاخوشحاله اوساتی ستااوبه دي خوږي وی تاله دي الله تعالی خامن درنه کړی ځکه چه په دي سره به زمونږ دښمنان زیاتیږی ته د خپل خاوند عزت کوه د خپلي سخرګننی خدمت کوه د هغوی د خپلو خپلوانو قدرکوه دا نکاح به په عربو کښي د عامو شریفانو خلقو نکاح وه اود دي نوم نکاح الشرفاء هم وو.

## [۲۰۸۰] ځوانانو ته د نکاح کولو حکم

۳۰۸۰-[۱] (۱) ① عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②: «يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ، ③ فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ، ④ وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ، ⑤ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ای دځوانانو ډلې! په تاسو کې چې کوم سړی د مجامعت لوازمات (يعني د ښځې او و روز نفقې او د مهر ادا کولو) استطاعت لري، نو هغه ته په کار دی چې هغه نکاح وکړي. ③ ځکه چې نکاح کول نظر ډير ټيټوي، او شرمګاه ډيره محفوظ کوي (يعني د نکاح کولو سره د اجنبي ښځې طرف ته نظر نه مائل کېږي، او انسان د حرام کارۍ نه منع کېږي) ④ او کوم سړی چې د جماع د لوازماتو استطاعت (طاقت) نه لري، هغه ته پکار دی چې هغه روژې نيسي. ⑤ ځکه چې روژه ساتل د هغه د پاره د خصي کولو فائده ورکوي (يعني ځنګه چې د خصي کيدو سره جنسي جوش ختميږي، دغه شان په روژو نيولو سره هم جنسي جوش ختميږي) بخاري مسلم.

**حل لغات** - ① مَعْشَرَ: جماعت (وله معشر هغه جماعت ته وائی چه په يوخاص وصف باندې مشتمل وی مثلاً معشر الرجال د سړو جماعت، معشر النساء د ښځوجماعت، معشر الجن د جنات جماعت. معشر الشيوخ د بوډاګانو جماعت اومعشر الشباب د ځوانانو جماعت ته وائی ② الشَّبَاب: دا د شَابٌ جمع ده ددې مفرد شاب دی، ځوان ته وائی. شبان او شبية هم ددې جمع راځی. ③ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ: سترګولره زيات ښکته کونکې ده يعنی نکاح کولوسره سړی دغلط نظرنه بچ کيږی ④ أَحْصَنُ لِلْفَرْجِ: د شرمګاه زيات حفاظت کونکې ده ⑤ وِجَاءٌ: خصيتين ټکول. دې نه مراد د شهوت کم والې اوماتوالې دی ځکه چه خصيتين د شهوت مرکز دی

**تسهيلات: قوله** يَامَعْشَرَ الشَّبَابِ:

**د ځوانئ آخری حد:-** د ځوانئ په آخری عمر اوآخری حد کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې د شوافعو حضراتو په نيز دځوانئ آخری حد ديرش کاله دې د ائمه احناف په نيز يو سړې ترڅلوينښتوکالوپورې دځوان ونيلوحق لری اود بلوغ د وخت نه ځوانی شروع کيږی

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب من لم يستطع الباءة فليصم (رقم-۵۰۶۶) ومسلم في كتاب النكاح/ باب استحباب النكاح لمن تاقت نفسه إليه، ووجد مؤنه، واشتغال من عجز عن المؤن بالصوم(رقم-۱ - (۱۴۰۰))واخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب التحريض على النكاح (رقم-۲۰۴۶) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في شرب أبوال الإبل (رقم-۱۸۴۵) والنسائي في كتاب الصوم/باب ذكر الإختلاف على محمد بن أبي يعقوب في حديث أبي أمامة. في فضل الصائم (رقم-۲۲۴۲) وابن ماجه في كتاب النكاح/باب ما جاء في فضل النكاح (رقم-۱۸۴۵) واحمد في المسند: ۴۳۲/۱

**قوله الْبَاءَةَ**

**په لفظ باءة کښې څلور قسمه لغات:** - اي مؤنة البائة. دا کلمه په څلور لغاتو باندې وئيلې شي

① "بَاءَةٌ" دې کښې مد هم دې او تاء هم ده

② "بَاءٌ" دې کښې مد خوشته ليکن آخره کښې تاء نشته

③ "بَاهة" دې کښې مد نشته مګر آخره کښې يوه هاء او تاء شته

④ "بَاهٌ" دې کښې مد نشته دې مګر آخره کښې هاء موجود ده باه او مباهات دَ جماع او نکاح په معنى کښې راځي چه په اصل کښې همزه سره مباءة دَ مکان ورکولو په معنى کښې دې ځکه چه کوم سړې نکاح کوي هغه ښځې ته ځائي او مکان ورکوي باه، قوت باه ته هم وئيلې شي

**د لفظ باءة معنى او د حديث په مراد کښې دوه اقوال:** - اوس دا کتل دي چه دلته په حديث کښې دَدې لفظ څه مراد او معنى کړې ده.

① شارحين حديث نه علامه طيبي رحمه الله فرمائي دې لفظ نه جماع او نکاح دواړه مراد اخستې شي او جماع مراد اخستل راجح دي. ليکن په دې صورت کښې به مضاف محذوف منلې شي يعنى مؤنة الجماع واسباب الجماع، دَدې محذوف ځکه ضرورت پيښ شو چه روستو "من لم يستطع" جمله راغلې ده دَدې عطف په "باءة" باندې صحيح نه دې ځکه معنى به دا شي چه کوم سړې ستاسو نه دَجماع طاقت نه لري هغه دې روژې ساتي دا معنى غلطه ده ځکه چه کوم سړې په جماع باندې قادر نه وي هغه له دَ شهوت کنټرول کولو دَپاره دَ روژو ساتلو څه ضرورت دې هغه خودَ مخکښې نه په جماع باندې قادر نه دې او که چرې "باءة" دَ لفظ نه نکاح مراد واخستې شي نو بيا به دا عطف صحيح شي [الکاشف ۶/۲۳۵]

② دَمسلم شريف شارح علامه محمد بن خليفه متوفى ۸۲۸هـ دَمسلم شريف شرح أبي کښې فرمائي چه "الباءة" هم دَ نکاح په معنى کښې دې دَ جماع معنى اخستل غلط دي ځکه چه په دې صورت کښې به دَ "من لم يستطع" مفهوم به غلط شي يعنى دَچا چه دَ جماع طاقت نه وي هغه دې روژې او ساتي غلط دي په دې وجه هم نکاح مراد ده. دَعلامه أبي تشريح زياته بهتر او آسانه ده

**د نکاح فائدې:** - دلته نبي کريم ﷺ دَ نکاح دوه لوئي فائدې خودلې دي. يوه دا چه نکاح سره سړې دَ غلط نظربازئي نه بچ کيږي او دويم دا چه دَحرام کارئي نه بچ کيږي.

**قوله: مَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ:**

**د من لم يستطع توجيه:** - دَدې جملې عطف دې نه مخکښې "من استطاع" په جمله باندې

دې او "باءة" دنکاح په معنی کښې دې نوبیا به معنی صحیح شی اوکه چرې باءة د جماع په معنی کښې واخستې شی لکه چه دعلامه طیبی رائې ده نوبیا به مضاف محذوف منلې کیږی دې دپاره چه معنی صحیح شی یعنی "مؤنة الباءة اي اسباب الجماع"

**قوله** فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ:

**په لفظ علی کې باریکه نکته:-** دعلی لزوم او رکوب په مفهوم کښې استعمال شوې دې په کوم سره چه دا اشاره اوکړې شوه چه یودوو روژو سره دامقصد نه حاصلیږی بلکه یوشان روژې ساتلو سره به حاصلیږی څکه چه روژه ساتلو سره په انسانی رګونو کښې وینه مندې وهل بندیږی اوشیطان هم د دغه وینې په لارو سره داخلیږی نود ده داخله په بدن کښې بندیږی په کوم سره چه د مستنی لارې بندیږی ګنی په روژې سره سرې خصی کیږی نه صرف شهوت نی کنترول کیږی.

**د څناورو د خصی کولو حکم:-** دځناور خصی کولو کښې شوافعو حضرات فرمائی چه مأکول اللحم وړوکی څناورو خصی کول جائز دی د غټو جائز نه دې اود حرام څناورو خصی کول مطلقًا ناجائز دی. د احنافو په نیزد څناورو دخصی کولوذکرخوشته مګر نور تفصیل نی نشته دې.

## [۲۰۸۱] دترک نکاح ممانعت

۳۰۸۰—[۲] (۱) [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «رَدَّ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ التَّبَتُّلَ [۳] وَلَوْ أَذِنَ لَهُ لَاخْتَصَيْنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن ابي وقاص ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ حضرت عثمان ابن مظعون ﷺ د تبتل (یعني د نکاح پرینبودلو) نه منع کړي وو، [۳] که حضور ﷺ هغه ته د تبتل اجازت ورکړي وو نو مونږ به هم خانونه خصي کړي وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① التَّبَتُّل: بنخوسره انقطاع او ترک نکاح ته تبتل وائی

**تسهيلات:**

**قوله:** التَّبَتُّل: یعنی محبوب د شپې تیاره داسې روښانه کوی لکه څوک راهب تارک دنیا د زنړا مناره چه وی

**بی بی مریم او فاطمې ته د بتول ولیلو وجه:-** حضرت مریم ته بتول د ترک نکاح د وجې نه

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب ما یکره من التبتل والخصاء(رقم-۵۰۷۳ -) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب التحریم بخمس رضعات(رقم-۲۴ - (۱۴۵۲) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی النهی عن التبتل (رقم-۱۰۸۳) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: النهی عن التبتل (رقم-۳۲۱۳) وابن ماجه فی کتاب النکاح/باب النهی عن التبتل (رقم-۱۸۴۸) واحمد فی المسند: ۱۷۵/۱

واني اوحضرت فاطمه رضی الله عنها ته بتول يا خودې دپاره واني چه هغې دنيا ترک کړې وه اويا په دې وجه چه دَ دې امت دَ ښځونه حسب نسب، دين اودرجه په اعتبار سره خان له جدا او ممتاز وه

## [۲۰۸۲] ديندارې ښځې سره د نکاح کولو ترغيب

۲۰۸۲-[۳] (۱) ۱وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " ۲«تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ: ۳لِمَالِهَا، وَلِحَسَبِهَا، وَلِجَمَالِهَا، وَلِدِينِهَا، ۴فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ۲د يوې ښځې سره د نکاح کولو په باره کې د څلورو څيزونو لحاظ ساتل کېږي، ۳اول د هغې مالدار کيدل . دويم د هغې حسب او نسب والاكيدل، دريم د هغې حسين او جميل كيدل. او څلورم د هغې ديندارہ كيدل، ۴نو دينداره ښځه خپل مطلوب وګرځوه ستا دواړه لاسونه دې په خاورو ككړشي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①حَسَب: حسب نسب، دخاندان ښه صفاتو ته حسب وائي ②ظَفَر: كاميابی. ③تَرِبَتْ يَدَاكَ: لاسونه دې ككړ شه، (دا كلمه د ترغيب ده)

**تسهيلات:**

**قوله: وَلِحَسَبِهَا**

**د حسب نسب تعريف:-** دَ سړی په خپل ذات اودَ هغه پلار نيكه اوخاندان كښې چه شرعاً يا عرفاً كوم ښه صفات وی دَ هغې نوم حسب نسب دې. دَحسب لفظ خاص كر دَښځې دَ خاندان په نسب باندې يادولې شی. دَ خاندان نسبی رفعت اوعظمت اثر په اولاد باندې پريوځی

**د رشتې دپاره د سړو فطری رجحانات:-** ① دَ انسان دا فطری خواهش وی چه هغه دا سې ښځې سره نكاح اوكړی چه دَ خاندان په اعتبارسره اوچت وی عزت والاوی او حيثيت والا وی دې دپاره چه دَ هغوی په اولاد كښې دا خصوصيات راشی

② بعضې خلق غواړی چه دَهغه نكاح ښه مالداره ښځې سره اوشی

③ دَ ډيروزياتو خلقودا هم خواهش وی چه دَهغوی نكاح حسين اوجميل ښځې سره اوشي.

④ بعضې نيك او دينداره خلق دا غواړی چه دَهغوی ښځه نيكه او دينداره شريفه وی

**دااسلام په نظر كښې قابل ترجيح صفت:-** اسلام دا ترجيحات مسترد كړی نه دی بلكه

۱ ) اخرجه البخاری فی كتاب النكاح/باب الأكفاء فی الدين (رقم-۵۰۹۰) واخرجه ابو داود فی السنن كتاب النكاح/باب ما يؤمر به من تزويج ذات الدين (رقم-۲۰۴۷) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب: كراهية تزويج الزناة (رقم-۳۲۳۰) وابن ماجه فی كتاب النكاح/ تزويج ذات الدين (رقم-۱۸۵۸) واحمد فی المسند: ۴۲۸/۲

ددې نه ديندارې او نيکنې ته په باقي صفاتو باندې ترجيح ورکړې ده شريعت ديندارئ ته په دې وجه ترجيح ورکړې ده چه په دې کښې د انسان د دنيا ښيګړه ده او د آخرت هم ښيګړه ده ځکه چه په دينداري کښې پائيداري ده باقي درې ځيزونه عارضي او زوال پذير دی لهذا ديندار او ديانتدار او عقلمند او مروت خلقو له پکاردی چه دهغوی په مخکښې دين په تولو باندې مقدم وی کوم چه نبی کريم دهغوی دپاره خوښ کړی دی

**قوله فاظفر بذات الدين:**

**د مذکوره جملې مفهوم:** – ظفر هغه کاميابئ ته وائی چه د کاميابئ آخری درجه اود خوښې آخری منزل وی په کوم کښې چه د فوائد جليله حصول وی دا امر ارشاد دی دې دين ته اوليت ورکړې شوې دې دباقي ترجيحاتو نفی مقصود نه ده

**قوله تربت يداك:**

**په عربی محاوراتو کښې د لفظ تربت يداک معنی:** – دا کلمه واضع د بددعا دپاره وضع کړې ده ليکن عرب په خپلو محاوراتو کښې دا د نورو معانی دپاره هم استعمالوی

① د زړتې دپاره په يو کارباندې ترغيب ورکولودپاره ② د انکار دپاره

③ د حيرانتيا دپاره هم استعماليږی. دلته بددعا مقصود نه ده بلکه راوچتول مقصود دی کوم ته چه ترغيب هم ونيلې شی. په اردوکښې د دې دپاره "تيرا ناس ہو" الفاظ به مناسب وی په عربی کښې به پوره جمله داسې جوړيږی ((تَرِبَتْ يَدَاكَ ان لم تفعل ما امرتك)).[الكاشف ۲۳۷/۶.]

### [۲۰۸۳] نيکه بی بی که لوئې د نياوی نعمت

۲۰۸۳–[۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «الدُّنْيَا كُلُّهَا مَتَاعٌ [۳] وَخَيْرُ مَتَاعِ الدُّنْيَا الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] پوره دنيا يو متاع ده. [۳] او د دنيا بهترينه متاع نيك عمله ښځه ده. (مسلم)

**حل اللغات** ① مَتَاعٌ: د عارضي فائدې لږ شان سامان

**تسهيلات: قوله: كُلُّهَا مَتَاعٌ:**

**د متاع تشريح:** – د دنيا هغه قليل او کثير سازوسامان د کوم نه چه فائده اوچتولې شی هغې ته متاع وائی په مختصر الفاظو کښې داسې اووايه چه متاع هغه ځيزدې د کوم نه چه لږه شان عارضی فائده اوچته کړې شی اوبيا فناشی [الكاشف ۲/۲۳۸.]

---

۱) اخرجه مسلم فی كتاب الرضاع/باب خير متاع الدنيا المرأة الصالحة (رقم-۶۴ - (۱۴۶۷) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب المرأة الصالحة (رقم-۳۲۳۲) واحمد فی المسند: ۱۶۸/۲

**د مرې څيزونو حقيقت معلومولو دپاره د امام اصمعي د لټون عجيبه واقعه:** -امام لغت شيخ اصمعي رحمه الله باره کښې وينلی کيږي چه هغه د دريو څيزونو يعنی متاع، تبارك او رقيم حقيقت معلومولو تلاش وو چه دا دي درېوارو الفاظو اصلي مفهوم او حقيقت څه دي نو هغه د کلو طرف ته لاړو دي دپاره چه د صحرانشين عربو فصحاء نه د دي حقيقت معلوم کړي کله چه هغه په يو کلي کښې يو کوهي ته اورسيدو نو هغه او کتل چه په کوهي باندي يوه جينئی لوښی وينځی کومې سره چه د لوښو وينځلو دپاره سخا، خيرنه خيځنه غوړه گنده کپړه وه اصمعي رحمه الله دا نظاره کتله چه يوسپي راغلو هم دغه د لوښو وينځلو کپړه ئی په خله کښې اوچته کړه او د غرطرف ته وراوختلو دغه جينئی د فرياد په شکل کښې خپلې مورته دا سې آواز اوکړو "يَا أُمَّاهُ جَاءَ الرَّقِيمُ وَأَخَذَ الْمَتَاعَ وَتَبَارَكَ إِلَى الْجَبَلِ" اصمعي رحمه الله چه کله خپل دريوارو مقاصد په يوه جمله کښې واوريده نو د خوشحالئی نه تاؤ شو مطلب دا چه د متاع حقيقت چيتړه او لاس پناه د لوښو وينځلو گنده کپړه ده. او په سورت کهف کښې چه کوم د رقيم لفظ راغلې دې دې نه سپې مراد دې او په قرآن کښې چرته چه د تبارك لفظ راغلې دې هغې نه د الله تعالی اوچتوالي او عظمت مراد دې. نيکې ښځې ته په دې وجه د متاع او نفع سامان اووئيلې شو چه دا د مفتو څوکيداره ده د خاوند خدمتکاره ده ښه وفادار نسل زياتونکې ده غم شريکه ده خيرخواه ده مشوره ورکونکې ده او هم دغه بهترين روزگار دي.

### [۲۰۸٤] د قريشو نيکو عملو ښځو فضيلت

۳۰۸۳-[۵] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ③ «خَيْرُ نِسَاءٍ رَكِبْنَ الْإِبِلَ صَالِحُ نِسَاءِ قُرَيْشٍ ④ أَحْنَاهُ عَلَى وَلَدٍ فِي صِغَرِهِ، وَأَرْعَاهُ عَلَى زَوْجٍ فِي ذَاتِ يَدِهِ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② چې په اوښانو سوريدونکو ښځو کې ښه ښځې د قريشو نيکې ښځې دي. ③ چې په ورو کوشنيانو ډيري مهرباني وي. ④ او د خپل خاوند د هغه مال چې د هغې په قبضه کې وي ډير زيات حفاظت کوي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① رَكِبْنَ الْإِبِلَ: په اوښانو سوريدونکې ښځې. دې نه د عربو ښځې مراد دی څکه چه په اوښانو باندې سورلی د عربو د ښځو عادت دې. دا د هغوی خصوصيت او د هغوی تعريف دې ② أَحْنَاهُ: په ماشومانو بچو باندې مهربانی کونکې ښځې. ③ أَرْعَاهُ: د خاوند د مال حفاظت کونکې ښځې.

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب إلى من ينكح، وأي النساء خير، وما يستحب [ص:٦] أن يتخير لنطفه من غير إيجاب (رقم-٥٠٨٢) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل نساء قريش (رقم-٢٠٠ - (٢٥٢٧) واحمد في المسند: ٢٦٩٠/٢

**تسهیلات:**

**قوله** أَحْنَاهُ عَلَى وَلَدٍ:

**د حنا د لفظ ضبط:** - حنا یحنو دَ نصر ینصر نه دَ شفقت په معنی کښې دې "ولد" نکره راوړلې شو دې دَپاره چه عموم راشی که دَ چاځوك هم ولد وی که هغه ئې خپل وی یا دَ سابقه ښځې وی چه دَ هغې په تربیت کښې وی په هریوباندې شفقت کونکې ده

**قوله** أَحْنَاهُ:

**د حنا نه مراد:** - هغه ښځه چه څوك یتیم ماشوم اوپالی ګنی حانه نه ده یاکه چرې یتیمانو پریږدی نکاح اوکړی نوبیاهم حانه نه ده په دې حدیث کښې دَعربو او بالخصوص دَ قریشو دَ ښځو تعریف دې

**د حناه په ضمیر اشکال:** - "احناه" کښې ضمیرمذکر ولې راوړلې شو اوحال دادې چه ضمیربه ظاهره دَښځوطرف ته راګرځی؟

**داشکال جواب:** - دَمذکرضمیر دَ الصنف طرف راګرځی مراد "هذا الصنف" دې یا "من یرکب الابل" طرف ته راګرځی کوم چه دکلام په مفهوم کښې موجود دې دغه شان دَ ارعاه ضمیر هم دَمور طرف ته راګرځی کوم چه دَ کلام په مفهوم کښې دې

**[۳۰۸۵] ښځې که لویه فتنه ؟**

[۲] (۱) ۱ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "۲ «مَا تَرَكْتُ بَعْدِي فِتْنَةً أَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت اسامه بن زید رضی الله عنهما وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ ما د خان نه وروسته هیڅ داسې فتنه نه ده پرېښې چې د سړو په حق کې د ښځو د فتنې نه زیاته ضرر رسانه وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① فِتْنَةً أَضَرَّ: ډیره زیاته ضرر رسونکې فتنه

**تسهیلات:** **قوله:** مَا تَرَكْتُ بَعْدِي فِتْنَةً:

**ښځه د فتنې او فساد جوړه:** - ښځه که چرې دَهغې په پیدائشی او تخلیقی فطرت، یا څه ظاهری شریعت قابونه کړی اودا فطری او شرعی څیزونه دَهغې اصلاح اونه کړی نوښځه عین فساد دې اودَ سړو په حق کښې دادَ تولو نه زیاته ضرر رسونکې فتنه ده. اول خودَې

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب ما یتقی من شؤم المرأة (رقم-۵۰۹۶) ومسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب اکثر أهل الجنة الفقراء واکثر أهل النار النساء وبیان الفتنة بالنساء (رقم-۹۷ - (۲۷٤۰) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تحذیر فتنة النساء (رقم--۲۷۸۰) وابن ماجه فی کتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فی صلاة اللیل والنهار مثنی مثنی (رقم-۱۳۲۵) واحمد فی المسند: ۵/۲۰۰

دېره چه په عام توګه بندي د سړو طبائع د ښځو طرف ته مائل کيږي دويمه دا چه سړي د ښځو زيات خواهشات پوره کولوپابندوی او د ښځې توله سرمايه دا ده چه هغه سړي د دنيې ښکلا او ښائست طرف ته رامائل کړي او د دنياپه محبت کښې راګيروي او د دنيې محبت ډېرې براينی اوفتنې جرړه ده لهذا ښځه صرف د فساد ذريعه نه بلکه عين فساد دي

**د دنيا اول قتل د ښځې په وجه:** - په دنياکښې اول قتل قابيل د ښځې د وجې نه کړې وو اوهغه نی هم خپل رور وژلې وو قرآن کريم کښې الله تعالى ﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ﴾ [سورة آل عمران ١٤، الخ] کښې ښځې نفس خواهشات ګرخولوسره په تولو شهواتو کښې په سرفهرست ده خلاصه دا چه که چرې ښځه صالحه وی نو دا دحضرت حواعليها السلام نور او خوره ده اوکه مفسد وی نو دا د شيطان ترور ده

**په حديث کې د بعدي قيد فائده:** - نبی کريم د ښځو دافتنه "بعدي" سره خانی کولوکښې اشاره اوکړه چه ددې فتنه به زماد وفات نه پس زياتيږي

**[٢٠٨٦] د ښځې فتنې څخه د ځان ساتلو حکم**

٣٠٨٠ - [٤] (١) ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ ③ وَإِنَّ اللَّهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا فَيَنْظُرُ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ④ فَاتَّقُوا الدُّنْيَا، وَاتَّقُوا النِّسَاءَ ⑤ فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَانَتْ فِي النِّسَاءِ». "رَوَاهُ مُسْلِمٌ".

**ترجمه:** ①او حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② دنيا شيرينه او شنه (جازب نظره) ده. ③ الله ﷻ تاسو د دې دنيا خليفه جوړ کړي يئ، خکه هغه هر وخت، ګوري چې تاسو په دې دنيا کې څنګه عمل کوئ. ④ نو د دنيا نه ځان اوساتئ، او د ښخو (د فتنو) نه ځان اوساتئ. ⑤ خکه چې د بني اسرائيلو د تباهی باعث د تولو نه مخکې فتنه د ښخو په صورت کې وه. (مسلم)

**حل اللغات:** ① حُلْوَةٌ: خوږه او شيرينه. ② خَضِرَةٌ: شنه او تازه. نظر رابنکونکې. دنيا هم دغسې ده په طبيعت خوږه او په نظرښائسته لګی ③ مُسْتَخْلِفُكُمْ: يعنی الله تعالى تاسو په دې دنياکښې خپل خليفه جوړکړي يئ: تاسو خليفه يئ: اصل مالك الله تعالى دې تاسو صرف د نائب اووکيل په توګه په دې کښې اوسيږئ

**تسهيلات:**

**قوله: فَاتَّقُوا الدُّنْيَا:** يعنی دنيا يود دهوکې نه ډك جال دې په دې کښې مه راګيريږې دنيا فاني او ختميدونکې څيزدې خپله بيړئی په دې خطرناك سمندرکښې مه ډوبه وئې

---

١) اخرجه مسلم فی كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار بباب أكثر أهل الجنة الفقراء وأكثر أهل النار النساء وبيان الفتنة بالنساء (رقم-٩٩ - (٢٧٤٢) والترمذی فی ما جاء ما أخبر النبی صلى الله عليه وسلم أصحابه بما هو كائن إلى يوم القيامة (رقم-٢١٩١) وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب فتنة النساء (رقم-٤٠٠٠) واحمد فی المسند: ٢٢/٣

**قوله** فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِي إِسْرَائِيلَ:

**په بني اسرائيلو کښې د اولنۍ فتنې سبب ښځه :-** په دې حديث کښې په بنی اسرائيلو باندې د ښځو د وجې نه چه کومه فتنه راغلې وه د هغې مصداق دوه واقعې کيدې شي

**د بني اسرائيلو د سړي د قتل وجه ښځه :-** بنی اسرائيل کښې عاميل نومې يو سړی خپل تره يا د تره ځوئی په دې وجه قتل کړو چه د هغه لور يا د هغه ښځې سره نکاح اوکړی . سورت بقره اوړده قصه هم دې واقعه سره متعلق ده کيدې شی چه په دې حديث کښې دې قصې طرف ته اشاره وی.

**د بلعم بن باعوراء د گمراهۍ سبب ښځه :-** حضرت موسیٰ علیه السلام بنی اسرائيل واخستل د جهاد په غرض د شام په علاقه کښې جبارون (د عمالقه وغيره) په مقابله کښې راؤوتل په دې قوم کښې بلعم بن باعور په نوم باندې يو مستجاب الدعوات سړې اوسيدلو قوم هغه ته اوونيل چه د موسیٰ علیه السلام خلاف بد دعا اوکړه دې د پاره چه موسیٰ علیه السلام خپل لښکر سره واپس لاړشی هغه اوونيل تاسو توبه اوکړئی هغه پيغمبر دې که بد دعا مې اوکړه نو هلاك به شم دې خلقو د ښځو اوتحفو په ذريعه تيار کړو. بلعم په خپل خرباندې سور شو د بد دعا د پاره اووتلو نو خر گويا شو اوبلعم ته ئې اوونيل.

اې نادان بلعم! په تا باندې افسوس دې ولې خپل ځان سره ماهم هلاك کوې؟ ته ما وړاندې کوې اوفرښتې ما شاته ديکه کوی. بلعم د خر نه کوز شو پيدل روان شو اولاړو په يو مقام کښې بد دعا اوکړه بد دعا اولټه شوه هغه خپل قوم ته بد دعا کول شروع کړه قوم ونيل بلعم ته څه کوې؟ هغه اوونيل زه څه کوم بې اختيار د ژبې نه ستاسو د پاره بد دعا اوځی دې سره د بلعم ژبه د خلې نه بهر راووتله او په سينه باندې زوړند شوه

**د الله تعالى مدد بندولو د پاره يوه حربه :-** بلعم خپل قوم ته اوونيل زما خو دنيا اوآخرت تباه شو اوس تاسو د موسیٰ او د هغه د لښکرو د منع کولو د پاره خپلې ښائسته ښځې سينگار کړئی او لښکرته ئې ور اوليګئی او د غه ښځوته اووايئې چه د هر يو سپاهی هرخواهش پوره کړی نو دا ښځې لاړې او په اسلامی لښکر کښې فتنه اچول شروع کړه. خو چاهم د هغوی طرف ته اونه کتل مگر زمزم نومې يو سردار يوې ښځې سره زنا اوکړه د کوم په ذريعه چه په بنی اسرائيلو کښې يو وبائی مرض خورشو په کوم سره چه اويا زره فوجيان مړه شو حضرت موسیٰ علیه السلام د دې گناه د لټولو د پاره سړې اوليګل. يو سړی زمزم اوهغه سره يوه اجنبی ښځه قتل کړه نو بيا عذاب اخواشو. کيدې شی چه په دې حديث کښې دې قصې اودې فتنې طرف ته اشاره وی.

### [۳۰۸۷] ددرې څيزونو سپيره والې

۳۰۸۷-[۸] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «الشُّؤْمُ فِي الْمَرْأَةِ وَالدَّارِ وَالْفَرَسِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: «الشُّؤْمُ فِي ثَلَاثَةٍ: فِي الْمَرْأَةِ، وَالْمَسْكَنِ وَالدَّابَّةِ».

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چې په ښځې، کور او آس کې نحوست وي (بخاري او مسلم) [۳] او په يو روايت کې دی چې حضور ﷺ وفرمايل نحوست په درې څيزونو کې وي په ښځو کې، په مکان کې او په حيوان کې

**حل اللغات:** ① الشُّؤْمُ: بدفالي، نحوست، بې برکتي. شُوم دَ برکت ضد دې

**د احاديثو په مينځ کښې د تعارض اشکال:** - دا حديث دَهغه ټولو احاديثو سره معارض دې په کوم کښې چه دَ بدفالي اونحوست نفي کړې شوې ده بلکه "الطيرة شرك" فرمائيلې شوې دی؟

**د اشکال درې جوابونه:** - ① واقعي الله تعالی په دې دريوارو څيزونوکښې دَنحوست خاصيت کيخودې دې. دا تاثير بالخاصه دې په دې وجه دا درې څيزونه دَ بدفالئی او طيره دَ عام احاديثو نه مستثنی دی. "ومامن عام الاوقدخص عنه البعض ى".

② حضرت ابوهريره ﷺ دَدغه نحوست په توضيح اوتشريح کښې فرمائی چه دَ ښځې نحوست دا دې چه بداخلاقه وی، دَاس نحوست دې چه سرکش وی اودَ کور نحوست دا دې چه تنګ وی. نودلته په حديث کښې دَ شوم نه بدفالي نه بلکه بدی اوبرائی مراد ده. بعضو وئيلي دی چه منحوسه ښځه هغه ده چه شنډه وی دَ کور نحوست دا دې چه ګاونډی بيکاره وی اودَ اس نحوست دا چه په هغه باندې جهاد اونه کړې شی.

③ دا کلام دَ فرض اوتقدير په توګه باندې دې چه فرض کړه که نحوست وی نو په هغه دريو څيزونوکښې به وی مګر نحوست نشته دې په دې وجه په دغه دريوکښې هم نشته دې

### [۳۰۸۸] پيغلې ښځې سره د نکاح کولو ترجيح

۳۰۸۸-[۹] (۲) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي غَزْوَةٍ [۲] فَلَمَّا قَفَلْنَا كُنَّا قَرِيبًا مِنَ الْمَدِينَةِ [۳] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ [۴] قَالَ: تَزَوَّجْتَ؟" قُلْتُ: نَعَمْ. [۵] قَالَ: أَبِكْرٌ أَمْ ثَيِّبٌ؟ قُلْتُ: بَلْ ثَيِّبٌ.

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب ما يتقى من شؤم المرأة (رقم-۵۰۹۳) ومسلم في كتاب السلام/باب الطيرة والفأل وما يكون فيه من الشؤم (رقم-۱۱۵ - (۲۲۲۵) واخرجه ابو داود في السنن كتاب الطب/باب في الطيرة (رقم-۳۹۲۲) والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الشؤم (رقم-۲۸۲٤) والنسائي في كتاب الخيل/باب: شؤم الخيل (رقم-۳۵۶۹) ومالك في الموطا كتاب الاستئذان/باب ما ينقى من الشؤم(رقم-۲۲)

۲ اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب تستحد المغيبة وتمتشط الشعثة (رقم-۵۲٤۷) ومسلم في كتاب الرضاع/باب استحباب نكاح البكر (رقم-۵۷ - (۷۱۵) واخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب في تزويج الأبكار (رقم-۲۰٤۸) والنسائي في كتاب الجهاد/باب:على ما تنكح المرأة (رقم-۳۲۲۶) وابن ماجه في كتاب النكاح/ تزويج الأبكار (رقم-۱۸۶۰)

**ترجمه:** [۱] د حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې په يو جهاد کې مونږ د رسول الله ﷺ سره ملګري وو [۲] کوم وخت چې مونږ د جهاد نه واپس راغلو او مديني ته نژدې ورسيدو [۳] نو ما عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ زما نوی نوی واده شوی وو (چې زه جهاد ته ولاړم اوس که حکم وي، نو زه به مخکې ولاړ سم، چې خپل کور ته زر ورسيږم [۴] نو حضور ﷺ وفرمايل چې تا نکاح کړيده؟ ماعرض اوکړو چې هو. [۵] رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې: پيغلې سره که د کُنډې سره؟ ماعرض اوکړو چې د کُنډې سره.

> [۱] قَالَ: فَهَلَّا بِكْرًا تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ. [۲] فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ، [۳] فَقَالَ: أَمْهِلُوا حَتَّى نَدْخُلَ لَيْلًا أَيْ عِشَاءً [۴] لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمايل د پيغلې سره دې نکاح ولې ونه کړه؟ چې تا د هغې سره او هغې تاسره ساتيې کولې. [۲] بيا چې مونږ مدينه ته ورسيدو او مونږ تولو خپلو کورونو ته د تلو اراده وکړه. [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل چې اوس لږ انتظار وکړي. مونږ به د شپې (يعني د ماښام په وخت) په کورونو کې داخليږو. [۴] چې د کومې ښځې ويښتان اږ اوبږ وي هغه سر چوټې ګمنز کړي او هغه ښځه چې د هغه خاوند موجود نه وو (بلکه زمونږ سره جهاد ته تلی وو) خپل ويښتان زيات صاف کړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ①فِي غَزْوَةٍ: دې نه مراد غزه تبوك دې ②قَفَلْنَا: دَميدان جهاد اوغزوه نه واپس کورته راتلوته قفل وائي ③تَمْتَشِطَ: امتشاط ګمنز کولوته وائي ④الشَّعِثَةُ: خيرن ويښتووالا ښځې ته وائي کله چه ترډيره وخته پورې خاوند دکور نه غائب وي نوښځه عموماً دَ ويښتو جوړولونه غافله وي هم دغې ته شعثه وائي ⑤وَتَسْتَحِدَّ: استحداد دَ حديد نه دې دَ اوسپنې استعمالولو په معنی کښې دې ⑥الْمُغِيبَةُ: هغه ښځې ته وائي دکومې خاوندچه دَ ډيرې مودې نه غائب وی ميم باندې ضمه ده

**قوله** تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ:

**د باکرې سره د نکاح مشوره ورکول:** – په دې جمله سره دَ ښځې خاوند په مينځ کښې لوبې توقې اودَ حقوق زوجيت طرف ته اشاره کړې شوې ده حضرت جابر رضي الله عنه ته نبی کريم باکره او پيغلې سره دَ نکاح کولوترغيب ورکړو

**د جابر رضي الله عنه د ثيبې سره د نکاح کولو وجه:** – حضرت جابر رضي الله عنه دَدې يومعقول وجه اوخودله چه زما اته خوئيندې دی که چرې ما پيغلې جينئی سره واده کړې وې نوهغه به هم هغوی سره يوه جينئی جوړيدوسره اوسيدله ما غوښتل چه يوه ثيبې کونډې تجربه کارې ښځې سره واده اوکړم دې دپاره چه هغه دَدوی مور جوړيدوسره تربيت اوکړی.

**قوله** نَدْخُلَ لَيْلًا:

**د تعارض اشکال:** – دلته سوال دادې چه بل حديث کښې دَ شپې وخت کښې داخليدل منع کړی دی اودلته دَ شپې دَداخليدودَ پاره دَ انتظار حکم ورکړې شوې دې. دا تعارض دې؟

**د تعلوطی جواب:** - د شپې داخلیدل هغه وخت منع دی چه اول نې ښځې ته خبر نه وی او کله چه د ښځې د وول سينګار موقع ملاؤ شی نو دا جائز دی ځکه چه دا صورت ددې ممنوع صورت نه جدا دې

**د ویښتو ختمولو دپاره ښځې له د چاړې استعمالولو حکم:** -اوس دلته رومبې سوال دادې چه دلته د ښځې دپاره د چاړې استعمال خودلې شوې دې دا څنګه دې؟

ددې جواب دادې چه د ښځې دپاره د چاړې استعمالول نامناسب هم دی اونه ښخه دا ستعمال په صحيح طریقه سره پوره کولې شی دلته د استحداد لفظ د ویښتو ختمولونه کنایه ده که هغه په نوره سره وی او که په بال صفا وغیره سره وی د ښخو دپاره اصل طریقه "نتف" یعنی د ویښتو راشوکولو یا ویستل دی. لیکن دا لفظ د قباحت د وجې نه نه دې ښکاره کړې نو د استحداد لفظ استعمال کړې شو

**د لفظ المغيبة په تعبير کې یو نکته:** - هم دغه وجه ده چه دلته "المغيبة" لفظ راغلې دې وددې نه مخکښې د الشعثة لفظ راغلې دې حالانکه هغه د ګمنزې کونکې خیرنوویښتوولا ښځه هم المغيبة ده ددې خاوند هم غائب پاتې دې لیکن دلته د ښځې د نامه نه لاندې ویښتو ذکر پریخودو سره دا د مغیبة په نوم سره یاده کړې شوې ده دې دپاره چه د ښخو په پټو خبرو باندې ترممکن حد پورې پرده واچولې شی نو د المغيبة لفظ په حقيقت کښې د ښځې د نامه لاندې ویښته اوږده کیدو سره کنایه ده ددې ذکر د قباحت په وجه پریخودې شوې دې او په الشعثة کښې قباحت نه وو په دې وجه ددې ذکر اوکړې شو دې ته د "المغيبة" ویلو ضرورت نه وو د سرو د نامه لاندې ویښتو صفاکولو کښې د چاړې استعمال زیات بهتر او د مردانه قوت د زیاتیدو سبب دې او د ښخو دپاره "نتف" یعنی راښکل زیات بهتر دی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۰۸۹] د الله تعالی د مدد مستحق درې کسان

۳۰۸۹—[۱۰] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «ثَلَاثَةٌ حَقٌّ عَلَى اللّٰهِ عَوْنُهُمْ: [۳] الْمُكَاتَبُ الَّذِي يُرِيدُ الْأَدَاءَ، [۴] وَالنَّاكِحُ الَّذِي يُرِيدُ الْعَفَافَ، [۵] وَالْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] درې سرې داسې دی

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی المجاهد والناكح والمكاتب وعون الله إياهم (رقم-۱۶۵۵) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: معونة الله الناكح الذي يريد العفاف (رقم-۳۲۱۸) وابن ماجه في كتاب النكاح/ الأكفاء (رقم-۱۹۶۷)

چې د هغوئ مدد په الله ﷻ باندې (د هغه د وعدې مطابق) واجب دی.[۳] يو خو هغه مکاتب چې د خپل بدل کتابت د ادا کولو اراده لري.[۴] دويم نکاح کونکی سړی چې د حرام کارې نه د ځان ساتنې نيت لري [۵] او دريم د الله ﷻ په لار کې جهاد کونکی. (ترمذي، نسائي ابن ماجه)

**حل اللغات** حَقٌّ :واجب او لازم دی. ②عَوْنٌ:نصرت او امداد

**قوله**:حَقٌّ عَلَى اللهِ:

**د لفظ حق اختیارولو وجه**:-لفظ حق ځکه اختيار کړې شوچه راتلونکی درې امور د انسان د پاره ډير سخت او مشکل دی چه د انسان ملا ماتوی. که چرې الله تعالى خصوصي مهرباني نصرت اوامداداونه کړی نو هيڅ يوسړې دا نه شي پوره کولې.

**قوله**: الْمُكَاتَبُ:

**د مکاتب تعريف**:-مکاتب هغه غلام ته وائی چه د هغه مالك هغه ته ونيلی وی که چرې تادومره روپيئ او ګټلې او ماته راکړې نوته به آزاد شې. دې رقم ته بدل کتابت وائی د دې په اداکولوسره غلام آزاديږي. ليکن که د دې يوه روپيئ هم باقي وی نومکاتب به غلام پاتې وی دغه غلام ته زکوة ورکول هم جائز دی اوالله تعالى په خپل ځان باندې د احسان او اکرام په توګه د هغه امدادکول واجب ګرځولی دی.

دغه شان ناکح دې اوهم دغه شان مجاهد فی سبيل الله دې ځکه چه ناکح پاك دامنی غواړی اومجاهدخود الله تعالى د دين د اوچتوالی د پاره د خپل ځان بازی لګوی. په دې وجه الله تعالى د هغه امدادکوی چه دا بې غرضه خلق دی.

**[۲۰۹۰] د ښځې د ولی د پاره يوضروری هدايت**

۳۰۹۰-[۱۱] (۱) [۱]وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲]«إِذَا خَطَبَ إِلَيْكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ دِينَهُ وَخُلُقَهُ فَزَوِّجُوهُ.[۳]إِنْ لَا تَفْعَلُوهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ عَرِيضٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] هر کله چې تاسو ته څوك د نکاح پيغام راوړي او تاسو د هغه سړي د دينداری او د هغه د اخلاقو نه مطمئن او خوشحاله يئ نو (د هغه پيغام منظورولو سره) د هغه سره يې نکاح وکړي.[۳] او که داسې ونکړي نو په زمکه کې به فتنه او لوی فساد پيدا شي. (ترمذي)

**حل اللغات**: ①خَطَبَ:د نيکاح پيغام اوليږلو. ②فَسَادٌ عَرِيضٌ:اوږد او لوئې فساد چه تر ډيره وخته پورې جاري وی.

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء إذا جاءكم من ترضون دينه فزوجوه (رقم-۱۰۸۴)

**تسهیلات:**

**قوله** إِذَا خَطَبَ إِلَيْكُمْ

**د جینئ د رشتې راتلو په وخت اولیاؤ ته هدایت:** - یعنی بو نیك سیرت او نیك صورت سړی دَ نکاح پیغام ورکړو نودَ جینئی اولیاء له پکار دی چه په دغه پیغام باندې عمل کولو سره جینئی دَ هغه په نکاح کښې ورکړی اوبې کاره شرطونه دې نه لګوی لکه چه د دنیا دَخلقو عادت دې چه هغوی دولت مند اومالداران خلق ګوری اوګرځی او ښه اخلاق طورطریقې او دینداری ته نه ګوری بیا قسماقسم شرطونه لګوی په دې وجه دَمرضئی رشته زرنه ملاویږی نوجینئی به ترمرګه پورې په کورکښې ناسته وی جګړې به پیدا کیږی اوارزند فساد به شروع شی په حدیث کښې خطاب دَ ښځې اولیاء ته دې کله کله دَ پیغام رد کولو سره خپل مینځ کښې بغض اوحسد دَ دښمنئی عداوت اوفساد میدان هم ګرمیږی

**د امام مالک رحمه الله په نیز د کفاءت معیار:** -دَدې حدیث دَ وجې نه امام مالک رحمه الله فرمائی چه دَ نکاح پیغام راتلونه پس صرف دین ته کتل پکاردی دې نه علاوه کفوکښې څه شرافت اوخاندانی تناسب ته به نه شی کتلې لیکن جمهور علماء کرام فرمائی چه دکفودپاره دَ څلورو څیزونو کیدل ضروری دی ① دین ② حریت ③ حسب نسب ④ حرفت او پیشه [الکاشف ۲۴۲/۶.]

**[۲۰۹۱] دیرېچی راوړونکی ښځې سره د نکاح کولو ترغیب**

۳۰۹۱-[۱۳] (۱) ① وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «تَزَوَّجُوا الْوَدُودَ الْوَلُودَ، ③ فَإِنِّي مُكَاثِرٌ بِكُمُ الْأُمَمَ.» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت معقل ابن یسار رضی الله عنه وایې ② چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسو د داسې ښځې سره نکاح کوئ، چې خپل خاوند سره محبت کونکې وي، زیات ماشومان ځېنې پیدا کیدونکي وي، ③ ځکه چې زه به د نورو امتونو په مقابله کې ستاسو په کثرت فخر کوم، (ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ① الْوَدُودَ: خاوند سره محبت کونکې ښځه ② الْوَلُودَ: ډیر بچی راوړنکې ښځه ③ مُكَاثِرٌ: په زیاتوالی باندې فخر کول

**قوله:** تَزَوَّجُوا الْوَدُودَ الْوَلُودَ:

**محبت کونکې او بچی راوړونکې ښځې سره د نکاح ترغیب:** - ښځه که کثیرالاولاد وی مګر خپل خاوندسره محبت کونکې نه وی نوداهم دَ زړه دَتسکین او نظر ته نیزدې نه ده اوکه

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح /باب النهی عن تزویج من لم یلد من النساء (رقم-۲۰۵۰) والنسائی فی کتاب الجهاد /باب: کراهیة تزویج العقیم (رقم-۳۲۲۷)

چرې اولاد نې نه وي شنډه وي نو د نكاح مقصد او مطلوب فوت كيږي نو بيا هم د اطمينان سبب ده خو كه دا دواړه صفتونه په يو ښځه كښې راشي نو هغه مرغوبه هم ده او محبوبه مطلوبه هم ده

**ه مذكوره دوو صفاتو معلوموولو طريقه:-** د هرې ښځې د خاندان او خپلوانونه پته لګي چه د دې خاندان جينكئي څنګه وي

**قوله** فَإِنِّي مُكَاثِرٌ بِكُمُ الْأُمَمَ.

**د امت په زيادت د نبي كريم ﷺ فخر:-** دا جمله د ماقبل دپاره علت دې "مكاثر اى مفاخر" يعنې د نورو امتونو په مقابله كښې به ستاسو په كثرت باندې فخر كوم چه زما منونكي زيات دي كله چه تاسو زيات شئي نو زه به په دغه مقابله كښې په هغوى باندې غالب راشم په دې حديث كښې د كثرت اولاد ترغيب دې

**[۲۰۹۲] پيغلې سره د نكاح كولو ترغيب**

حدیث [۱۳] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَالِمِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ عُوَيْمِ بْنِ سَاعِدَةَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " «عَلَيْكُمْ بِالْأَبْكَارِ، ③ فَإِنَّهُنَّ أَعْذَبُ أَفْوَاهًا، وَأَنْتَقُ أَرْحَامًا، ④ وَأَرْضَى بِالْيَسِيرِ» " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الرحمن ابن سالم ابن عتبه رحمه الله ابن عويم ابن ساعده انصاري د خپل پلار حضرت سالم نه او هغه د عبد الرحمن د نيكه (يعني حضرت عتبه تابعي رحمه الله) نه نقل كوي ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو ته د پيغلو ښځو سره نكاح كول پكار دی. ③ خكه چې هغه شيرين دهن وي (يعني پيغلې ښځې شيرين زبانه او خوش كلامه وي او هغه په بد زباني او فحش ګوني كې نه مبتلا كيږي) او زيات ماشومان پيدا كونكي وي. ④ او هغه په لږ څه شي باندې راضي وي (يعني په لږ مال او اسباب پيدا كيدو باندې هم راضي وي) دا روايت ابن ماجه بطريق ارسال نقل كړي دی

**حل اللغات** ① أَعْذَبُ أَفْوَاهًا: د باكرې ښځې د خولې د توكانړو خوږوالی ته وائي (دا كنايه ده د خوږو خبرو او خوش كلامئ نه) ② وَأَنْتَقُ أَرْحَامًا: زيات ماشومان پيدا كونكې. ③ وَأَرْضَى بِالْيَسِيرِ: په لږ څه مال اسباب باندې راضي كيدونكې.

**تسهيلات: قوله** ① أَعْذَبُ أَفْوَاهًا:

**د اعذب افواها په مفهوم كښې اقوال:-**

① "اعذب افواها" د هغې د ژبې او كلام د خوږوالي سره كنايه ده.

② اعذب افواها د ناواده كړې په ژبه د شرم او حيا د وجې ژبه اوږدول نه كيږي خكه چه هغې

۱) اخرجه ابن ما جه في كتاب النكاح/ تزويج الأبكار (رقم- ۱۸٦۱)

دې نه ورانده خاوند سره واسطه نه وي راغلې

④ اعذب افواها: دې نه كنايه ده چه د ناواده كړې شكل او صورت كښې بناوټ او سجاوټ وي كوم چه د عذوبت ذريعه ده دا كيفيت په ثيبه كښې نه وي

⑤ اعذب افواها: حقيقةً د باكره توكانړې د بكارت په وجه مزيدارې وي

**قوله وَأَنْتَقُ أَرْحَامًا:**

**د زيات بچو راوړنكې ښځې فضيلت:** -په دې حديث كښې د باكره دويم خصوصيت دا بيان كړې شوې دې چه باكره د بكارت د وجې نه زيات بچې پيدا كوي

انتق اوسع په معنى كښې دې "اى اكثر اولادا" يعنى په رحم كښې قوت غريزى او حرارت زيات كيدو د وجې نه نطفه زر قبلولو سره زيات بچې پيدا كوي. ناتق هغه ښځې ته وائى د كومې چه زيات اولاد وي.

**قوله: ③وَأَرْضَى بِالْيَسِيرِ:**

**په لږ څيز راضى كيدل:** -په دې جمله كښې د باكره يعنى ناواده كړې دريم خصوصيت دا بيان كړې شوې دې چه باكره ته په هر څيز كښې څومره حصه وركړې شى هغه راضى وي كه هغه جماع وي كه سامان وي كه طعام وي كه سلام كلام وي ځكه چه هغې بل خاوند نه وي ليدلې بلكه د دغه ميدان ړومبې شهسواره وي نو په قليل او كثير دواړو باندې راضى وي په خلاف د كونډې ښځې چه هغې د دې نه ورانده د يو بل خاوند شهسوارى كړې وي نو هغه دا دويم خاوند په هر څيز كښې تلى.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۰۹۳] په محبت پيدا كولو كښې د نكاح اثر

[۱۳]۳۰۹۳ (۱) ①عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "②«لَمْ يُرَلِلْمُتَحَابَّيْنِ مِثْلَ النِّكَاحِ».

**ترجمه:** ①حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل راى سريه ② تا به د نكاح په شان داسې څه څيز نه وي ليدلى، چې د دوو محبت كونكو په منځ كې محبت زيات كړي.

**حل اللغات:** ①اَلْمُتَحَابَّيْنِ: دوه كسان په خپل مينځ كښې محبت كونكى

**تسهيلات: قوله: لِلْمُتَحَابَّيْنِ:**

**د حديث دوه مطلبونه:** -① يعنى د نكاح په ذريعه د ښځې او خاوند په خپل مينځ كښې

---

۱) اخرجه ابن ما جه فى كتاب النكاح/ باب ما فى فضل النكاح... رقم الحديث ۱۸٤۷

محبت دومره زیاتیږي چه په یوبل کښې فنا کیږي دَ دې دوو نه علاوه دَ طرفینو خاندان په خپل مینځ کښې محبت او ترلې کیږي لکه دَ وینې رشتې سره دا رشته په محبت کښې زیاتیږي او په یوبل باندې قربانیږي

② مطلب دا دې چه اول په دواړو کښې صفا محبت وو دَهغې نه پس دَ دواړو په مینځ کښې نکاح اوشوه نودَ نکاح والا محبت دومره زیاتیږي چه چا به داسې محبت نه وی لیدلې او نه به ئې اوریدلی وی دَدې وجه دا ده چه دَ نکاح نه بغیر محبت ناقص دې او په نکاح کښې جماع ده په کوم کښې چه دَ محبت تکمیل دې

### [۲۰۹۴] آزادو ښځوسره دَ نکاح کولو فضیلت

۳۰۹۴—[۱۵] (۱) ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَنْ أَرَادَ أَنْ يَلْقَى اللَّهَ طَاهِرًا مُطَهَّرًا، ③ فَلْيَتَزَوَّجِ الْحَرَائِرَ».

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړی چې د دې خبري خواهشمند وي چې هغه (د زنا د نجاست نه پاك) د پاكي په حالت كي او پاكيزه د الله ﷻ سره ملاقات وكړي ③ نو هغه ته پكار دى چې د آزادو ښخو سره نكاح وكړي

**حل للغات:** ① الْحَرَائِرَ: جمع د حرة ده ، آزاده ښځه، ددې ضد أَمَةٌ (وينځه) راځي

**قوله:** فَلْيَتَزَوَّجِ الْحَرَائِرَ:

**آزاد ښځو سره د نکاح کولو حکمت:** —وجه دا ده چه په وینځه کښې هغه خصوصیات نه وی کوم چه په آزاده کښې وی دَ دې خراب اثر په خاوند باندې هم وی او بیا دَ دې خراب خیالات او دهمت لاندې والی اثر په اولاد باندې هم وی. وینځه پخپله دَ ادب او تهذیب نه خالی وی په دې وجه دَهغې اولاد بې ترتیب او بدتهذیب جوړیدې شی دَ دې برعکس دَ آزادې اوچت صفتونو اثر په خاوند او اولاد باندې پریوځي نو هغه به پاك صفا وی دَ آزادو ښځو په شان طریقه اوسلیقه په وینځو کښې چرته کیدې شی

خلاصه دا چه اسلام خپل منونکی کامل انسان او کامل صفاتو والا لیدل غواړی دا صفات په آزادو شریفو ښځو کښې دی په وینځو کښې نشته دې.

### [۲۰۹۵] خاوند دپاره نیکه ښځه لوئی نعمت

۳۰۹۵—[۱۶] (۲) ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ يَقُولُ: ② «مَا اسْتَفَادَ الْمُؤْمِنُ بَعْدَ تَقْوَى اللَّهِ خَيْرًا لَهُ مِنْ زَوْجَةٍ صَالِحَةٍ، ③ إِنْ أَمَرَهَا أَطَاعَتْهُ، ④ وَإِنْ نَظَرَ إِلَيْهَا سَرَّتْهُ، ⑤ وَإِنْ أَقْسَمَ عَلَيْهَا أَبَرَّتْهُ، ⑥ وَإِنْ غَابَ عَنْهَا نَصَحَتْهُ فِي نَفْسِهَا وَمَالِهِ». رَوَى ابْنُ مَاجَهْ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ.

۱) اخرجه ابن ما جه في كتاب النكاح/ تزويج الحرائر والولود (رقم-۱۸۶۲)
۲) اخرجه ابن ما جه في كتاب النكاح/باب أفضل النساء (رقم-۱۸۵۷)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] مومن بنده د الله تعالیٰ د تقوی نه وروسته د تولو نه ښه شی چې د ځان د پاره منتخب کوي، هغه نيك ښځه او خوبصورته ښځه ده، [۳] د داسې ښځې خصوصيت دا دی که خاوند هغه ته څه حکم ورکوي نو هغه پرځای کوي، [۴] هر کله چې د هغې طرف ته ګوري نو هغه (د خپل حسن، پاکيزګي، خوش سليقګي او پاك سيرتي سره) د هغه زړه خوشحالوي، [۵] هر کله چې هغې ته قسم ورکوي، نو هغه قسم پوره کوي [٦] او هر کله چې د هغه خاوند موجود نه وي نو د خپل نفس او د دمال په باره کې د هغه خير خواهي کوی چې (هغه د ضائع کيدلو او خرابيدلو نه ساتي او په هغه کې څه خيانت نه کوي) مذکوره بالا حديثونه ابن ماجه رحمه الله نقل کړي دي

**حل اللغات:** ① اِسْتَفَادَ: فائده او ګټه ئې واخسته ② أَبَرَّتْ: قسم کښې برى کونکې ښځه ③ نَصَحَتْ: خير خواهي کونکې ښځه يعنی خيانت پکښې نه کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** زَوْجَةٍ صَالِحَةٍ

**د صالحې او نيک عمله ښځې صفات:** - يعني دَ ديندارئی او تقوی نه پس دَ هرڅه نه بهترين خيز صالحه اونيکه بی بی ده چه دَمفت خدمتګاره اوتابعداره ده دَ خاوند دَ تولو احساساتو محافظه ده په کوم کښې چه دَ دين اودنيا دواړو فائده ده په دې حديث کښې تقوی الله" يعنی دَ الله تعالی ويره او دين اسلام په دوو حصو کښې تقسيم کړې شوی نيمه حصه نيکې ښځې سره نکاح ده اوباقی نيمه دَدې نه علاوه ده دَدې حديث مضمون راتلونکې حديث په شان دې چه نکاح کول نيم دين دې په احياء العلوم کښې امام غزالی رحمه الله فرمائی چه انسان تباه کونکی په عمومی توګه باندې دوه څيزونه دی يوبطن دې او دويم فرج دې په نکاح سره دَ فرج مسئله حل کيږی

په دې حديث کښې دَ نيکې ښځې تشريح اوتفصيل دې خلاصه دا چه ښځه که نيکه وی نودَ خاوند اوامر اونواهي اودَهغه دَ اوريخو په اشاره لبيك وائی که خاوندئی موجودنه وی نو بياهم خيرخواه وی اوکه مفسده وی نوبياخو تول فساد دې

**قوله:** أَقْسَمَ عَلَيْهَا :

**دخاوند دقسم پوره کولو خيال ساتل:** - مطلب دا چه خاوند دَ ښځې سره متعلق څه قسم خوړلې وی چه دا کاريه نه کوی يابه کوی نونيکه ښځه دَ خاوند دَ قسم پوره پوره خيال ساتی

**[۲۰۹٦] په نکاح د نيم دين اطلاق**

٣٠٩٦ - [١٧] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «إِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ نِصْفَ الدِّينِ، [٣] فَلْيَتَّقِ اللهَ فِي النِّصْفِ الْبَاقِي».

**ترجمه:**[۱] او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې نكاح وكړه هغه خپل نيم دين پوره كړي[۳] اوس هغه ته پكار دى چې د باقي نيم په باره كې د الله ﷻ نه ويريږي.

**قوله:** نِصْفَ الدِّيْنِ

**په نكاح د نيم دين د اطلاق وجه:**- يعنى په انسان كښې دوه قوتونه او دوه څيزونه داسې دى په كوم سره چه پوره دين كښې دَ فساد راتلو احتمال دې يوشهوت دَ بطن قوت دې او دويم شهوت دَ فرج قوت دې. شهوت بطن دَ شهوت فرج نصف دې نو په نكاح سره دَ شهوت فرج حفاظت كيږي. لهذا دَنصف دين حفاظت نكاح سره اوشو دَباقي نصف حفاظت په نورو خو افعالو اواعمالو اوعباداتو په ذريعه سره كول پكاردى، دې دَپاره چه ايمان مكمل شي.

**[۳۰۹۷]آسانه نكاح بركتي نكاح**

٣٠٩٧-[١٨] (١)[١]وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲]«إِنَّ أَعْظَمَ النِّكَاحِ بَرَكَةً أَيْسَرُهُ مُؤْنَةً».[۳]رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:**[۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] بلا شبه ډيره زياته بركت ناكه نكاح هغه ده، چې د مهراوخرڅونو د لحاظ نه اسانه وي.[۳] دا دواړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان كې نقل كړي دى.

**حل اللغات:** ①أَيْسَرُهُ مُؤْنَةً: كم مَهر او كم خرچ والا نكاح

**تسهيلات:**

**قوله:** أَيْسَرُهُ مُؤْنَةً

**د آسانې نكاح تعريف:**- يعنى آسانه نكاح هغه ده چه دَ ښځې مهردَ كم نه كم وى. دَ نكاح په وخت په خاوند باندې ناجائز شرائط اونه لګوى. دَ خاوند دَ حيثيت نه دَ زيات مال اسباب مطالبه دې ښځه نه كوى دَ جهيزبوج دې په ښځه باندې نه اچوى اودَ نورو رسمونو او بدعتونونه دې نكاح پاكه وى باقي چرته چه جينئي خرڅولوسره دَ مهرپه نوم باندې موريلاركوم مال ګتي دادَ ظلم اوحرام دَ ګټې نه علاوه لويه بې غيرتي هم ده. دَداسې علاقو په علماؤ باندې فرض دى چه هغوى دې پخپله هم دَدې ظلم نه لرې شي اوعوام ته دې هم ښه نصيحت كولوسره منع كړى.

# [۱] باب النظر إلى المَخْطُوبَةِ، وبَيَانُ العَوْرَاتِ

## منسوبې ته د کتلو او دمستورو د اندامونو بیانولو بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① جواز النظر إلى المخطوبة_، الإذن في النظر: ۱- مواضع النظر: ۹. حكمة النظر: ۱۰۔

② منع النظر إلى العورات وما في حكمها وجوبا أو أدبا: ۲، ۳، ۷، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۶، ۱۹، ۲۶، ۲۷، ۲۸۔

③ النهي عن الخلوة بالأجنبية: ۴، ۵، ۲۱، ۲۲۔

④ ذكر من يجب عنه الستر ومن لا يجب عنه: ۵، ۶، ۱۹، ۲۳، ۲۴۔

⑤ الأمر بالستر: ۱۲، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۴، ۲۵۔

⑥ طريق دفع الوسوسة الناشئة من النظر إلى الأجنبية: ۸، ۱۱۔

⑦ تفصيل العورات: ، المرأة كلها: ۱۲ - ما بين السرة إلى الركبة: ۱۴. الفخذ: ۱۵، ۱۶، ۱۷۔ / الرأس والرجلان: ۲۳۔

**حل اللغات:** ①**اَلْمَخْطُوبَةِ:** منسوب کړې شوې او دچا په نامه کړې شوې ښځه، کومې ښځې ته چه د نکاح پیغام ورکړې شوې وی هغې ته مخطوبه وائی، ②**عَوْرَاتِ:** جمع ده، دَدې مفرد عورة دې د انسان شرمګاه او پټو اندامونوته وائی.

**تسهیلات:**

**خُطبه او خِطبه کې فرق:-** خطب، مخاطبه او تخاطب دَ یوبل سره کلام کولوپه معنی کښې دی خُطبه په ضمه دَ خاء دَ وعظ کلام او خِطبه په کسره دَ خاء دَ نکاح پیغام ته وائی دلته هم دغه دَنکاح پیغام مراد دې.

**قوله:** عَوْرَاتِ

**د عورت د لفظ تحلیل:-** جمع ده، دَدې مفرد عورة دې. اصل او حقیقت کښې عورة دَ انسان شرمګاه او پټو اندامونوته وائی دادَعارنه مشتق دې ځکه چه دَ دغه اندامونو ښکاره کیدوسره انسان شرمیږی په دې وجه دَ عورة لفظ دَ مستوراتو دَپاره وئیلې شی [الکاشف ۶/۲۵۰.]

**قوله:** النظر إلى المَخْطُوبَةِ:

**مخطوبه ته د کتلو په حکم کښې مذاهب:-**

کومې ښځې ته د پیغام د نکاح لیکلی شی هغې د نظر کولو په جواز او عدم جواز کښې

اختلاف دې

① دَ اهل ظواهریه نیز مخطوبه په هیڅ صورت کښې لیدل جائز نه دی

② دَ امام مالك رحمه الله په نیز دَ یوقول مطابق مطلقًا ممنوع دی اودَ یوقول مطابق دَ ښځې په اجازت سره جائز دی بغیردَ اجازت نه منع دی

③ جمهور فقهاء اوعام علماء فرمائی چه مخطوبه ته کتل مطلقًا جائز دی که دَهغې اجازت وی اوکه نه وی

**نوټ:** دویم فریق چونکه په عدم جواز کښې داول فریق سره ملګری دی اوپه جواز کښې د دریم فریق سره ملګری دی نوموږ به دلائل صرف داول او دریم فریق ذکر کوو داول فریق د عدم جواز د دلائلو په ضمن کښې به د دویم فریق دلائل هم راشی اود دریم فریق د جواز د دلائلو په ضمن کښې به د دویم فریق دلائل هم راشی.

**داول فریق دلیل:** - دَحضرت علی رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په هغې کښې دا الفاظ دی "یاعلی لاتتبع النظرة النظرة" اهل ظواهروائی دې سره مطلقًا دَ کتلوممانعت ثابتیږی د دویم فریق دعدم جواز دلیل هم داول فریق دلیل دې.

**جواب:** - دا غلط استدلال دې ځکه چه دَدې حدیث تعلق دَاجنبیاتو بدنظرئې سره دې اوزموږ بحث مخطوبه منسوبه سره دې.

**د دریم فریق دلائل:** - ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ. قَالَ: «فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّ فِي أَعْيُنِ الْأَنْصَارِ شَيْئًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

په دې کښې "فانظرالیها" واضحه الفاظ راغلی دی چې په جواز د نظر دلالت کوی

② عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «أَلَا لَا يَبِيتَنَّ رَجُلٌ عِنْدَ امْرَأَةٍ ثَيِّبٍ إِلَّا أَنْ يَكُونَ نَاكِحًا أَوْ ذَا مَحْرَمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

③ «وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ خَطَبْتُ امْرَأَةً فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ نَظَرْتَ إِلَيْهَا؟ قُلْتُ: لَا. قَالَ: فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا»

په دې احادیثو کښې په واضحه توګه دَ مخطوبه دَ کتلو حکم دې اوتاکید دې نوځنګه ممنوع کیدې شی بل دا دَ ژوند مسئله اومعامله ده نوپه تسلی کول پکار دی.

**د توافق صورت:** - اودَ اختلاف نه دَ بچ کیدودَپاره بهتر صورت دادې چه یوه تجربه کاره ښځه دغه جینئی کره اولیګلې شی هغه به په تسلئی سره دکتلونه پس صورت حال اوښائی لیکن یاد ساتل پکار دی چه مخطوبې ته دَ سړودَ کتلوکوم اجازت دې هغه صرف دَ مخ او لاسونو دَ یوځل کتلو اجازت دې نور اندامونه نه اوبار بار کتل هم نشته دې.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۲۰۹۸] مخطوبې ته د کتلو اجازت**

۳۰۹۸-[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] فَقَالَ: إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ. [۳] قَالَ: «فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّ فِي أَعْيُنِ الْأَنْصَارِ شَيْئًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې يو سړی د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو [۲] عرض يې وکړې چې زه د يوې انصارې ښځې سره نکاح کول غواړم (په دې باره کې ستا څه هدايت دی؟) [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ته هغه ښځه وګوره (ښه به وي) ځکه چې (د بعضو) انصارو ښځو په سترګو کې څه خرابي وي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَعْيُنِ: د عين جمع ده سترګې ته وائی، ② فِي أَعْيُنِ الْأَنْصَارِ شَيْئًا: د سترګو خرابی، او عَيب مراد دي، دې نه مراد دا چه دَ انصاری ښځو سترګې شنې وی يا دا مطلب چه هغوی کښې زيروالي وی.

**تسهيلات: قوله:** فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّ فِي أَعْيُنِ الْأَنْصَارِ شَيْئًا:

**د مستشار امانت دار کيدو وجه:-** يعنی دَ مشورې تقاضاهم دغه وه لکه څنګه چه نبی کريم ﷺ دغه سړی ته صفا صفا اوخودل ځکه چه "المستشار مؤتمن" دَ چانه چه مشوره اخستې شی هغه امين جوړولې شی نوهغه له صفا خودل پکار دی.

**د نبی کريم ﷺ د اجنبی ښځو د سترګو په علم اشکال:-** اوس دلته شارحينودا سوال اوچت کړې دې چه نبی کريم ته دَ اجنبی ښځو دَ سترګوعلم څنګه وو؟

**د اشکال درې جوابونه:-** ① ښځې په سړو باندې قياس کولو سره معلوميږی چه دَ سړو سترګې داسې وې نود ښځو سترګې به ئې هم دغه شان وی.

② دَ وحی په ذريعه ورته معلومه شوه.

③ نبی کريم دَ امت روحانی پلار وو دَهغوی نه شرعًا دَ چاپرده نه وه ياداچه دَ پردې دَ حکم راتلونه وړاندې نبی کريم ليدلې وې يا دَ امهات المؤمنين په ذريعه معلومه شوې وه.

**د اشکال حيثيت:-** دا يوځو جوابات شو ليکن حقيقت دادې چه دا سوال بالکل بې وزن او بې ځايه دې ځکه چه په يوماحول اومعاشره کښې اوسيدوسره دَ خپل قوم اوطبقې دَحالاتونه ځوك ناخبره وی. ولې دَ انصارو ښځې تولې بالغې راپيداشوې وې څه؟ په هغوی دَ وړوکوالی زمانه نه وه تيره يا دَهغوی په سترګوکښې دَ پيداکيدونه واخله تر بلوغ پورې پردې پرتې وې دَ چانظرپه هغوی نه وو پريوتلې؟

۱) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب ندب النظر إلى وجه المرأة وكفيها لمن يريد تزوجها (رقم-۷۴ - (۱۴۲۴))واحمد فی المسند: ۲/۲۹۹

**[۲۰۹۹] د يوې ښځې بلې ښځې سره د مباشرت ممانعت**

[۲] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ فَتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا ③ كَأَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هيڅ ښځه دې د بلې ښځې برېنډ بدن نه مسه کوي چې بيا د هغه ښځې د بدن حال د خپل خاوند په مخکې بيانوي ③ په داسې طريقه چې ګويا د هغې خاوند د هغه ښځې بدن پخپلهويني (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① لَاتُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ: تباشر نه إلصاق البشرة بالبشرة مراد دې يعنې يوه ښځه دې برېنډه د بلې ښځې برېنډ بدن سره ځان نه لګوي. ② فَتَنْعَتَ: خپل خاوند ته د پردۍ ښځې صفات بيانوي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَاتُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ:

**بلا حائله د دوو ښځو خپل مينځ کښې د مباشرت د ممانعت وجوهات:** - علامه طيبي رحمه الله فرمائي د لفظ (لَاتُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ) نه کتـل اولاس لګول دواړه مراددي. داحکم د لسو کالو نه پس عمر کښې ښځواوسړو ټولو دپاره دې.

① په دې سره بـه هغـه ښـځه دبلې ښـځې د بدن خصوصيات اوپټ راز وغيـره معلوم کړی اوبيا به ئې د خپل خاوند په وړاندې بيانوی لکه چه هغه دې ته ګوري. دا ډير معيوب عمل دې په دې قبيح فعل کښې يو بې شرمی بې حيائی او بې غيرتی ده

② که په دغه بيانولو دې خاوند په هغه ښځه باندې مئين شی نوهغه به په فتنه کښې پريوځی اوپخپله به دا ښځه په افسوس لاسونه مروړي.

**[۲۱۰۰] د ښځواوسړودپاره دوه حکمونه**

[۳] (۲) ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَى عَوْرَةِ الرَّجُلِ، ③ وَلَا الْمَرْأَةُ إِلَى عَوْرَةِ الْمَرْأَةِ، ④ وَلَا يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، ⑤ وَلَا تُفْضِي الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَرْأَةِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هيڅ نارينه دې د بل نارينه د ستر طرف تـه نه ګوري، ③ اونه دې ښځه د ښځې وبدن تـه ګوري، ④ اودوه

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب : لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها(رقم-۵۲۴۰) کتاب النکاح/باب ما يؤمر به من غض البصر (رقم-۲۱۵۰) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی کراهية مباشرة الرجال والمرأة المرأة (رقم-۲۷۹۲) واحمد فی المسند:۱/۳۸۷

۲) اخرجه مسلم فی کتاب الحيض/باب تحريم النظر إلى العورات (رقم-۷۴ - (۳۳۸) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی کراهية مباشرة الرجال الرجال والمرأة المرأة (رقم-۲۷۹۳) واحمد فی المسند:۳/۶۳

برېنډ سړي دې په يوه کپړه کې نه جمع کېږي، ⑤ او نه دې دوې سرتور سر ښځې په يوه کپړه کې جمع کېږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ①**عَوْرَةِ:** دَ ښځو او سړو دَ بدن کوموحصوته کتل چه شريعت منع کړځولی دی هغې ته عورة (ستر) وائی ②**وَلَا يُفْضِي:** د افضی معنی يوبل ته يوځائې کيدو ته وائی لکه څنګه چې ښځه او خاوند په يوه بستره کښې جمع کيږی.

**تسهيلات:**

**قوله: عَوْرَةِ الرَّجُلِ:**

**دَ ښځې او دَ سړی دَ ستر حدود:** - دَ سړی سترد هغه دَ نامه نه واخله لاندې زنګونوپورې دې دَ سړو دا حصه کتل دَ ښځو او سړو ټولو دَ پاره کتل حرام دی اود هغه دَ ښځې او وينځې دَپاره جائزدی. دَ ښځې ستر دَ بلې ښځې دَپاره دَ نامه لاندې دَ کونډو پورې دې لهذا هيڅ يوه ښځه دې دَ بلې ښځې دا حصه نه ګوری داحرام دی. اوشرعی عذر دَدې نه مستثنی دی دَ ښځې پوره بدن دَ پردی سړی دَپاره ستردې او مخ لاسونه په وجه دَ مجبورئی دَدې حکم نه مستثنی دې دادَ ښځو مجبوری ده دَ سړو دَ کتلودپاره ترغيب نه دې. پردې سړې دَ خوانې جينئی دَ بدن هيڅ يوحصې ته لاس نه شی لګولې. دَ سړی چه خپلې ښځې سره اووينځې سره جماع کول حلال دی نودَهغې ټول اندامونه کتل ئی هم جائزدی. دَ ښځې ستر دَهغې دَ محرم په حق کښې دَ نامه نه لاندې دَ کونډو پورې دې او خيټه او ملا هم په ستر کښې داخل دی دې نه علاوه سترنه دې.

**دَ مذکوره حديث دَ حکم متعلق يو څو مسائل:** - ①ښائسته سړی ته دَ شهوت په نظرسره کتل دَ ښځودپاره حرام دی اودَ سړی بدن ته لاس لګول هم حرام دی

② غلام خپلې مالکې يعنی دَ مالك دَ ښځې په حق کښې دَ پردی سړی په شان دې يعنی دَ غلام نه پرده کول ضروری دی

③ هيجړاګان هم دَ پردو سړو په شان دی.

④ دوه برېنډې ښځې هم په يوه کپړه کښې په يوځائی نه سملی سره دَ دې چه دَ فتنې محل نه وی بياهم دا بې حيايئی ده کومه چه منع ده

⑤ دوه برېنډ سړی دې په يوه کپړه کښې يوځائی نه سملی

**[۲۱۰۱] اجنبي ښځې سره دَ خلوت ممانعت**

---

[۴] (۱) ①وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«أَلَا لَا يَبِيتَنَّ رَجُلٌ عِنْدَ امْرَأَةٍ ثَيِّبٍ ③إِلَّا أَنْ يَكُونَ نَاكِحًا أَوْ ذَا مَحْرَمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب السلام /باب تحريم الخلوة بالأجنبية والدخول عليها (رقم-۱۹ - (۲۱۷۱)

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] خبردار هیڅ سړی دې یوې ثیبې ښځې سره شپه نه تیره وي، [۳] خو دا چې هغه سړی ناکح یعنی خاوند وي یا محرم وي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① لایبیتن: شپه دې نه تیروی، دَ شپې تیریدونه دلته مراد ځان له ملاویدل دی کوم چې شپې وی اوکه دَ ورځې وی دواړه ناجائز دی ② ثیب: هغه ښځه چې جماع ورسره شوې وي ښځه، دلته ترې کونډه او پیغله دواړه مراد دی ③ ذا محرم: دائمی محرم هغه وی چاسره چه دَ ښځې نکاح کله هم په یوصورت کښې هم ممکن نه وی لکه مور لور وغیره

**تسهیلات: قوله:** عِنْدَ امْرَأَةٍ ثَيِّبٍ

**د ثیبه خاص کولو وجه:** -یعنی کونډه ئې ځکه خاص کړه چه باکره کښې حیاء مانع اوحجاب وی نوهلته دَ فتنې دومره خطره نه وی څومره چه په ثیبه کښې وی. بل ثیبه دَ دغه میدان شهسوار او تجربه کار ده دا خپل عادت زر مجبوره کولې شی. یا دَ ثیبه دَ لفظ نه مراد بې خاونده ښځه مراد ده که کونډه وی او که پیغله وی دا تشریح ډیره بهتر ده

**[۳۱۰۲] دَ لیور ځخه دَ پردې حکم**

[٥] (۱) [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ [۳] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ الْحَمْوَ؟ [٤] قَالَ: الْحَمْوُ الْمَوْتُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عقبه ابن عامر رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] (اجنبي) ښځو ته د ورتلو نه پرهیز کوي (هر کله چې هغه په تنهایي کې وي، یا برښنډ خلاصې ناستې وي) [۳] یو سړی (د دي اوریدو سره) عرض اوکړو چې یا رسول الله! ﷺ د حمو (د دیور) په باره کې ستا څه حکم دی؟ (آیا د هغه د پاره هم دا ممانعت دی؟) [٤] رسول الله ﷺ وفرمایل حمو (دیور) خو مرګ دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الحمو: د حمو جمع احماء راځی، دخاوند رشته داران، چې د دې رومبې مصداق: خاوند ورور دې ② الموت: مرګ، په حدیث شریف کښې لیور ته مرګ وئیلوسره دا تنبیه کړې شوې ده چه دا خطرناك څیز دې ده نه بچ اوسیږه

**قوله:** أَرَأَيْتَ الْحَمْوَ

**د حمو نه مراد:** -دا دَ ښځې هغه خپلوانوته وائی کوم چه دَ خاوند دَ طرف نه وی مګر دلته دَ خاوند خوئي اودَ خاوند پلار دې نه مستثنی دې دلته دَدې لفظ رومبې مصداق دَ خاوند رونړه دی چه دَدغه ښځې لیورونه دی.

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب لا یخلون رجل بامرأة إلا ذو محرم، والدخول علی المغیبة (رقم-۵۲۳۲) ومسلم فی کتاب السلام/باب تحریم الخلوة بالأجنبیة والدخول علیها (رقم-۲۰ - (۲۱۷۲) والترمذی فی کتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الدخول علی المغیبات (رقم-۱۱۷۱) واحمد فی المسند: ۱٤۹/٤

**په لیور د مرگ د اطلاق وجه:** - په حدیث شریف کښې لیور ته مرگ ونیلوسره دا تنبیه کړې شوې ده چه دا خطرناك څیز دې ده نه بچ اوسیږه

عرب چه کله څوك د یو څیزنه ویره وي نو هغه څیز سره مرگ یا اور یادوي مثلاً هغوی وائي "الاسدالموت" د ازمري نه بچ کیږه دامرگ دې. "السلطان النار" بادشاه له نیزدې مه ورځه هغه مرگ دې "الحموالموت" یعنی د لیورنه داسې بچ اوسیږه لکه چه د مرگ نه بچ کیږې ځکه چه د دې فتنه د خطرې نه ډکه ده. د کور د کسانونه یوکس دې او د کور رازدان دې

**[۳۱۰۲] سرې دپاره د ښځې علاج ګکولو حکم**

[۲] (۱) [۱] «عَنْ جَابِرٍ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ اسْتَأْذَنَتْ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْحِجَامَةِ [۲] فَأَمَرَ أَبَا طَيْبَةَ أَنْ يَحْجُمَهَا [۳] قَالَ: حَسِبْتُ أَنَّهُ كَانَ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ [۴] أَوْ غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وایې (یو ځل) أم المؤمنین بې بې ام سلمه ﷺ د رسول الله ﷺ نه د ښکر لګولو (د وینې ښکلو) اجازت وغوښتلې، [۲] نو حضور ﷺ ابوطیبه ﷺ ته د ښکر لګولو حکم ورکړې، [۳] حضرت جابر ﷺ وایې زما ګمان دی چې ابوطیبه ﷺ ته د ښکر لګولو د حکم ورکولو وجه دا وه چې هغه د بې بې ام سلمه ﷺ د پینو شریك ورور وو [۴] یا اوس لابالغ شوی نه وو، (مسلم)

**حل اللغات:** ① **الحِجَامَة**: حجامه ښکر او جوکه لګولوته وائي. (یعنی د بدن نه وینه ویستل) ② **غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ**: نابالغ هلک چه احتلام ئې لا نه وي شوې.

**تسهیلات:**

**قوله: فِي الْحِجَامَةِ**

**د حجامه یعنی ښکر لګولو اهمیت او فوائد:** -په احادیثو کښې دې ته ډیر زیات ترغیب ورکړې شوې دې او د دې امت د پاره دا د علاج یوه لویه ذریعه ګرځولې شوې ده. په ښکرلګولوسره د بلډپریشر او د دې نه پیدا کیدونکو ټولو بیمارو مؤثر علاج کیدې شی

**د حضرت ام سلمه رضي الله عنها د اجازت غوښتلو وجه:** -حضرت ام سلمه ﷺ د یو بیمارئ د علاج د پاره د دې اجازت ځکه اوغوښتلو چه د ښکرلګولو دا عمل سړو کولو. نبی کریم اجازت ورکړو او ابوطیبه حجام ئې د دې د پاره متعین کړو.

**د ام سلمې بدن ته د کتلو جوابات:** - باقی د ابوطیبه پردی سړی د حضرت ام سلمه ﷺ بدن ته د کتلو اعتراض لرې کولو دپاره حضرت جابر ﷺ دوه جوابونه ورکوی.

① زما خیال دې چه ابوطیبه د ام سلمه ﷺ د پینوشریك رور وو.

② هغه نابالغ هلك وو.

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب السلام/باب لکل داء دواء واستحباب التداوی (رقم-۷۲ - (۲۲۰۶)

③ که چرې د علاج ضرورت وي او د بیمارنې مجبوري وي نو طبیب د بیمارې ښځې د بدن هغه متاثره حصه کتلې شي او په غیرضروري مقاماتو باندې کېږه اچول پکار دي که ښځه طبیبه او ډاکټره وي نو بیاهم مسئله هم دغه شان ده په افسوس سره وئیلې کیږي چه نن صبا په هسپتالونو کښې ډاکټراني ښځې اوسړي په شوقیه توګه د مریضانو د بدن غیر ضروري مواضع ګوري

**[۲۱۰٤] په پردۍ ښځه ناڅاپه د نظر پریوتو حکم**

**٣١٠٤-[٤] (١) ① «وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ نَظَرِ الْفُجَاءَةِ ② فَأَمَرَنِي أَنْ أَصْرِفَ بَصَرِي». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

**ترجمه:** ① و حضرت جریر ابن عبد الله رضي الله عنه وایې چې ما د رسول الله ﷺ نه په یوې اجنبي ښځې د اچانك نظر پریوتو په باره کې پوښتنه وکړه، ② نو حضور ﷺ ماته دا حکم وکړې چې خپل نظر (سمدستي) وګرځوه، (مسلم)

**حل لغات** ① عَنْ نَظَرِ الْفُجَاءَةِ: ناڅاپه نظر، بغیرد قصد اوارادې ناڅاپي په یو اجنبي ښځه باندې نظر پریوتلو ته "نظرالفجاءة" وئیلې شوي دي.

**تسهیلات:**

**قوله عَنْ نَظَرِ الْفُجَاءَةِ:**

**په پردۍ زنانه باندې د ناڅاپي نظر لګیدلو مفهوم او حکم:**- په شریعت کښې دا ناڅاپي نظر پریوتل یوخل معاف دې لیکن په نظرپریوتونکي سړي باندې واجب دي چه زر دې خپلې سترګې واړه وي که هغه د رومبي خل نظرهم هغه شان ساتي نو په رومبي نظر باندې به هم ګناهګار شي

**ښځې دپاره د مجبورۍ په حالت کې د مخ ښکاره کولو حکم:**- د دې حدیث نه معلومه شوه چه ښځه د مجبورنې د وجې نه خپل مخ ښکاره کولې شي دا د هغې مجبوري ده لیکن یو سړي ته اجازت نشته چه هغه دې د دې د مجبورنې نه فائده اوچته کړي او د هغې مخ ته په ورکړې دې حضرت امام غزالي رحمه الله فرمائي چه نظر د زنابنیاد دې د دې حفاظت دیرضروري دې هم دغه وجه ده چه قرآن کریم کښې الله تعالی مؤمنانو ته د نظرښکته ساتلو حکم ورکړې دې

**په پردۍ ښځه د ناڅاپي نظر لیګدلو علاج:**- د دې حدیث نه پس راتلونکې حدیث نمبر(۳۱۰۵) کښې دي چه په پردئې ښځه باندې د ناڅاپي نظر پریوتلوعلاج دادې که شهوت

١) اخرجه مسلم في كتاب الآداب/باب نظر الفجاءة (رقم-٤٥ - (٢١٥٩) والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في نظرة الفجاءة (رقم-٢٧٧٦) واحمد في المسند: ٣٥٨/٤

نې شوې وي نو لازدې شي خپلې ښځې سره دې کوروالې اوکړي دَ راتلونکې حدیث نه
داهم معلومیږي چه ښځه په فتنه کښې خالص دَ شیطان په شان ده لهذا دې له دَ سخت
ضرورت نه بغیر ګرځیدل راګرځیدل جائزنه دي او په ښکلې او زړه رابنکونکې لباس کښې
خو په یوصورت کښې هم وتل جائزنه دي خکه چه دا دَ شیطان دَ ټولو نه لوئی جال دې په
کوم سره چه دَ سړو ښکارکیږي دَدې حدیث نه داهم معلومیږي چه په سړو باندې لازم دي
چه هغوی دې پردو ښځوته اودَهغوی لباسونوته نه ګوري اودَدې نه داهم معلومه شوه چه
سړې دَ ورځې خپلې ښځې سره کوروالې کولې شي راتلونکې حدیث نمبر(۳۱۰۸) پورې
دَټولواحادیثو تشریح اوتوضیح ضرورت نشته دې دا تشریح دَ ټولودپاره کافي ده.

**[۳۱۰۵] داجنبي ښځې دليدواثر ختمولودپاره خپلې ښځې ته رجوع کول**

—[۸] (۱)[۱]وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«إِنَّ الْمَرْأَةَ تُقْبِلُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ وَتُدْبِرُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ[۳]إِذَا أَحَدَكُمْ أَعْجَبَتْهُ الْمَرْأَةُ فَوَقَعَتْ فِي قَلْبِهِ فَلْيَعْمِدْ إِلَى امْرَأَتِهِ فَلْيُوَاقِعْهَا[۴]فَإِنَّ ذَلِكَ يَرُدُّ مَا فِي نَفْسِهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**:[۱]او حضرت جابر ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] ښځه د شیطان په صورت کې راځي، او د شيطان په صورت کې ځي،[۳] نو په تاسو کې چې چاته يوه اجنبي ښځه ښه ولګيږي، او د هغه زړه ته راشي نو هغه ته پکار دی چې سمدستي خپلې ښځې ته ورشي او د هغې سره مباشرت وکړي،[۴] خکه چې دا مباشرت به هغه څيز ختم کړي کوم چې د هغه په زړه کې پيدا شوی دی (يعني جنسي خواهش) مسلم.

**حل اللغات**: ① تُقْبِلُ: رامخامخ کيږي، ② تُدْبِرُ: واپس کيږي، ③ أَعْجَبَتْهُ الْمَرْأَةُ: حيران کړي ده لره يوه ښځه، يوه پردئ ښځه ورته ښه ښکاره شي، ④ فَوَقَعَتْ فِي قَلْبِهِ: او دده په زړه کښې ورسره مينه پيدا شي ⑤ فَلْيَعْمِدْ إِلَى امْرَأَتِهِ: نو خپلې ښځې ته دې لاړ شي، ⑥ فَلْيُوَاقِعْهَا: نو خپلې ښځې سره دې صُحبت اوکړي، ⑦ فَإِنَّ ذَلِكَ يَرُدُّ مَا فِي نَفْسِهِ: نو دا به هغه څيز ختم کړي کوم چه دده په زړه کښې پيدا شوی وي.

**تسهيلات**:

**قوله**: فَلْيَعْمِدْ إِلَى امْرَأَتِهِ فَلْيُوَاقِعْهَا فَإِنَّ ذَلِكَ يَرُدُّ مَا فِي نَفْسِهِ:

**د مذکوره جملې مفهوم**: – امام نووي رحمه الله فرمائيلي دي د عالمانود تحقيق مطابق په دې حديث کښې فرمائيلي دي چې الله تعالى د سړو په زړونوکښې ښځو ته کوم ميلان اود دوی په زړونوکښې د هغوی محبت کيخودې دې.نوشيطان د وسوسې په ذريعه پردئ ښځه

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب ندب من رای امراة فوقعت فی نفسه. إلى أن يأتي امرأته أو جاريته فيواقعها (رقم-۹ - (۱۴۰۳) واحمد فی المسند: ۳/۳۴۱

سرو ته بنآنسته کوی چې دوی ورته اوګوری نونبی علیه السلام ددې علاج اوخودلو چې کوم شهوت د پردی ښځې څخه پوره کولې شی هم د هغه شهوت پوره کولو یو جائز محل شته چې دده خپله ښځه ده دهغې څخه دې خپل شهوت پوره کړی اوپردې ښځې دې په نظر کښې نه راولی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۱۰۶] د نکاح څخه وړاندې مخطوبې ته د کتلو استحباب

۳۱۰۶—[۹] (۱) [۱] عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ [۳] فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] حضرت جابر ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې په تاسو کې یو سړی یوې ښځې ته د نکاح پیغام لیږلو، [۳] نو که هغه (د ښځې په اعضاء) کتلو قادر وي. چې هغه ته د نکاح رغبت ورکوي (یعني لاس او مخ) نو یو نظر دې وکوري. (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① خَطَبَ: د نکاح پیغام ورکړو ورکول. ② إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا: څه چه ښځې سره د نکاح شوق پیدا کوی یعنی لاس او مخ وغیره.

**تسهیلات**:

**نوټ**:- په راروان حدیث نمبر (۲۱۰۷) کښې د دې حدیث تسهیل راروان دي.

## [۲۱۰۷] مخطوبې ته د کتلو فائده او حکمت

۳۱۰۷—[۱۰] (۲) [۱] «وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ خَطَبْتُ امْرَأَةً [۲] فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ نَظَرْتَ إِلَيْهَا؟ [۳] قُلْتُ: لَا، قَالَ: [۴] فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت مغیره ﷺ ابن شعبه وایې چې ما د یوې ښځې سره د واده کولو اراده وکړه. [۲] نو رسول الله ﷺ ماته وفرمایل چې آیا تا هغه ښځه لیدلې ده؟ [۳] ما عرض اوکړو چې نا، [۴] نو حضور ﷺ وفرمایل چې ته هغه ښځه یونظر وګوره، ځکه چې ستاسو دواړو په منځ کې د الفت او محبت د پیدا کیدو د پاره یو نظر کتل ډیر مناسب او بهتر دی. (احمد ترمذي نسائي ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات**: ① أَحْرَى: ډیر مناسب، ډیر بهتر. ② أَنْ يُؤْدَمَ: چې محبت او مینه پیدا شي.

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی الرجل ینظر إلى المرأة وهو یرید تزویجها (رقم-۲۰۸۲)

۲) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی النظر إلى المخطوبة (رقم-۱۰۸۷) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب إباحة النظر قبل التزویج (رقم-۳۲۳۵) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ النظر إلى المرأة إذا أراد أن یتزوجها (رقم-۱۸۶۵) واحمد فی المسند: ۲۴۶/۴

**تسهيلات:**

**قوله: فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا:**

**د نکاح پیغام لیږلو نه وړاندې د لیدلو فائده:** - یعنی که ته خپله مخطوبه یو نظر او گوري او بیا ورسره نکاح اوکړې نو ستاسو په خپل مینځ کښې به محبت زیات وی ځکه چې کله مخطوبه اوکتلې شی او بیا ورسره نکاح اوکړې شی نو په دې باندې عام طور سړې پښیمانه نه وی او نه په خپل انتخاب باندې شرمنده او پریشانه وی

دا حدیث پاك هم د جمهور آئمه کرامو مستدل دې چې مخطوبه ښځې ته کتل جائز دی او نبی کریم ﷺ پخپله ددې حکم فرمائیلې دې

**[۲۱۰۸] په اجنبي زنانوډ ناڅاپي نظر پریوتلو علاج**

—[۱۱] (۱) ۞ «وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - امْرَأَةً فَأَعْجَبَتْهُ ۞ فَأَتَى سَوْدَةَ وَهِيَ تَصْنَعُ طِيبًا وَعِنْدَهَا نِسَاءٌ ۞ فَأَخْلَيْنَهُ فَقَضَى حَاجَتَهُ ۞ ثُمَّ قَالَ: أَيُّمَا رَجُلٍ رَأَى امْرَأَةً تُعْجِبُهُ فَلْيَقُمْ إِلَى أَهْلِهِ فَإِنَّ مَعَهَا مِثْلَ الَّذِي مَعَهَا». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وایې چې (یوه ورځ) د رسول الله ﷺ نظر په یوې ښځې ولگیدلو ، نو په حضور ﷺ هغه ښه ولگیده، ۞ نو حضور ﷺ (سمدستي) ام المؤمنین بي بي سوده رضی الله عنها ته تشریف راوړو، هغې هغه وخت خوشبو تیاروله، او څو ښځې ورسره ناستې وې، ۞ هغه ښځو خلوت وکړي (یعني د بي بي سوده رضی الله عنها نه پاڅیدلې او بهر ووتلې) بیا حضور ﷺ خپل ضرورت پوره کړي (یعني د بي بي سوده رضی الله عنها سره یې مجامعت وکړي) ۞ او وې فرمایل چې د کوم سړي چې په یوې داسې ښځې نظر پریوځي چې خوښه یې شي، نو هغه ته پکار دی چې هغه (سمدستي) خپلې بي بي ته ورشي او د هغه په ذریعه جنسي تسکین حاصل کړي (چې د هغه جنسي خواهش پوره شي او خراب خیالاتو کې مبتلا نشي) ځکه چې د هغه ښځې سره هم هغه څیز دی کوم چې هغه د بلې ښځې سره دی، (دارمي)

**حل اللغات:** ① فَأَعْجَبَتْهُ: هغه ئې په تعجب کښې اوغورځولو (یو څیز په زړه ښه لگیدل) ② طِيبًا: عطر. خوشبو. ③ فَأَخْلَيْنَهُ: نو هغه ښځو نبی علیه السلام خانله پریښودو او لاړلو. ④ فَقَضَى حَاجَتَهُ: خپلې ښځې نه ئې د شهوت طبعی تقاضا پوره کړه ⑤ فَإِنَّ مَعَهَا مِثْلَ الَّذِي مَعَهَا: پردئ ښځې سره هم هغه څه دی کوم چه خپلې ښځې سره وی. یعنی اصل مقصود شهوت پوره کول دې او هغه خود خپلې ښځې نه هم پوره کیږی په دې کښې هیڅ تفاوت نشته دې، خو په حکم کښې تفاوت ضرور شته دې چه خپلې ښځې سره جماع حلال ده او پردئ ښځې سره حرام ده

(۱) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۲۲۱۵

**تسهیلات: قوله. فَأَعْجَبَتْهُ**

**اشکال:** - نبی کریم ته داسې خیال څنګه اوولې راغلو نبی کریم خو معصوم دې؟

**د اشکال دوه جوابونه:** - ① دَبشری او طبعی تقاضې لاندې نبی کریم ته دَدې ښځې د خوښیدو خیال راغلو دا خیال صرف دَ "هاجس" او "خاطر" په درجه کښې وو په کوم چه هیڅ مواخذه نشته دې لهذا مسئله صفا ده.

② دَ نبی کریم په ذریعه الله تعالی عملاً دامسئله ښکاره کړه دَ دې وجې نه چه دَ امت دَپاره دَ تعلیم اونمونې ذریعه جوړه شي. اودَ امت دَ تعلیم دَ پاره کله کله یومکروه تزیهي فعل ارتکاب هم مباح ګرځولې شوې دې. دریم جواب دادې چه دا دَ ناڅاپي نظر وو په کوم چه څه نیول نشته دې.

**[۲۱۰۹] کتونکوته د ښځې ښاسته ګولو شیطانی حربه**

[۱۲]—(۱) [۱] وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ [۲] فَإِذَا خَرَجَتِ اسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ښځه په پرده کې د اوسیدو څیز دی [۲] هر کله چې یوه ښځه (د خپلې پردې نه) اُوځی نو شیطان د سرو په نظر کې هغه ښائسته ښکاره کوي، (ترمذي)

**حل اللغات:** ① عَوْرَةٌ: د پردې او پټ ساتلو څیز، دکوم په ښکاره کیدو چه شرم محسوسیږی. ② اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ: "استشرف" شیش لګول سره کتلوته وائی خاص کر دَ حیراتیا په وخت سړې چه کله لاس دَ سترګو دَپاسه په اوریځو باندې کیږدی ګوری دغه استشراف دې.

**تسهیلات:**

**قوله: الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ:**

**د لفظ عورت ماخذ او تسمیه:** - یعنی ښځه دَ پردې قابل څیز دې. دادَ عار نه دې دَدې په ښکاره کیدو اوبې پردې کیدو سره سړې عار یعنی شرم محسوس کوی. دَ ښځې بې پردې نودَ ښځې بې پردګی څنګه برداشت کولې شی کله چه دا څوك برداشت کولې نه شی لیکن په حقیقت کښې دَ سړو په غیرت باندې پرده پریوتلې ده

**قوله: اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ:**

**د شیطان د شیش لګولو څلور مطلبونه:** - علامه طیبی ﷫ فرمائی چه دَ دغه شیش لګولوسره کتلو

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۱۱۷۳)

① شيطان بهر وتونكي ښځه باندې شيش لګولو سره خپل خبيث نظر اچوی دې دپاره چه د هغې په اثر سره دا پاکه اوطيبه ښځه رذيله اوخبيثه جوړه شي د علامه طيبي رحمه الله دا آخري توجيه ډيره ښکلې ده [ الكاشف ۲۵/۲.]

② شيش لګولو سره کتلونه د بدکاره خلقو کتل مراد دي يعنی کله چه ښځه د کور نه بهر پردې کيدوسره اوځی نوفاسقان او فاجران هغې ته په شيش لګولوسره ګوری اود هغوی په زړونو کښې دغه وسوسه او خبيثتوب چونکه شيطان پيداکوی په دې وجه ددوی د فعل نسبت دشيطان طرف ته کړې شوې دې، يعنی د شيطان نه مراد فاسقان او فاجران خلق دي

③ شيطان غواړی اوپه دې سره خوشحاليږی چه ښځه ذات کولاؤ ميدان ته راشي دې دپاره چه شيطان هغه په ښه موړ زړه سره اوګوری اوهغه دې د شيطان مخې ته ولاړه وی.

④ شيطان دغه ښځه د سړو مخکښې ښائسته کوی اودهغې په ذريعه خلق ګمراه کوی اوپخپله دغه ښځه هم ګمراه کوی. صاحب آكام المرجان في احكام الجان په خپل کتاب کښې ليکلی دی چه شيطان د ښځې د کوناتو دپاسه د نرئی ملا لاندې کينی اوخلق د هغې طرف ته راغب کوی. دعلامه طيبي رحمه الله په نيزد دې حديث

**[۳۱۱۰] په ښځه اتفاقي نظر پريوتو څخه د دويم نظرعدم جواز**

[۱۳] (۱) ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِعَلِيٍّ: ② يَا عَلِيُّ لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ ③ فَإِنَّ لَكَ الْأُولَى وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت بريده رضي الله عنه راوي دی رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل ② چې اې علي (رضي الله عنه) د نظر پريوتو نه وروسته بيا نظر مه اچوه (يعني که په يوی ښځې ناګهاني نظر پريوځي نو بيا د دې نه وروسته دوباره د هغې طرف ته مه ګوره) ③ ځکه چې ستا د پاره مخکنی نظر خو جائز دی (ځکه چې په هغه کې قصد او ارادې ته قطعًا دخل نه وي) خو دويم نظر جائز نه دی. (احمد ترمذي ابوداود دارمي)

**حل اللغات:** ① لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ: يعنی رومبی نظر پريوتلو سره دويم نظر مه اچوه ② فَإِنَّ لَكَ الْأُولَى وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ: ځکه چه ستا دپاره رومبې نظر جائز دې کوم چه بغير د قصد نه وو. خو دويم نظر جائز نه دې.

**تسهيلات: قوله: لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ:**

**د اول ناڅاپی نظر معاف کيدل:** - الحاصل نبی کريم صلى الله عليه وسلم حضرت علی رضي الله عنه ته اوفرمائيل چې اې علی ! يو نظر نه پس بل نظر مه کوه يعنی اول نظر خو معاف دې ليکن دويم نظر نه دې معاف. ځکه دا ارادې سره وی. او ارادې سره بد نظری معاف نه ده. که اول ځل ئې

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب ما يؤمر به من غض البصر (رقم-۲۱۴۹) والترمذی فی كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی نظرة الفجاءة (رقم-۲۷۷۷) واحمد فی المسند:۳۵۳/۵

خپل نظر مسلسل جاری اوساتلو او نظر ئې ښکته نه کړو نو بیا به هم دا د دویم نظر په حکم کښې وی په دې باندې هم گناه شته دې.
امام طیبی رحمة الله علیه فرمائی چې دا حدیث پاك په دې خبره باندې دلالت کوی چې بغیر ارادې والا نظر ستاسو دپاره مفید دې چې که ته زر نظر ټیټ کړې یعنی سترگې واړوې نو یقینی طور به تاته اجر ملاویږی. لکه څنگه چې د یو حدیث پاك مفهوم دې چې کله تاته ایمانی خوږ والی ملاؤ شی نو لامحاله به دویم نظر نقصانی وی. دحدیث الباب پیش نظر دا مسئله اخذ کیږی چې علماء کرامو او مشائخ لره خپلو ښځو شاگردانو یا ښځو مریدانو ته کتل جائز نه دی او نه بلا حجاب بیعت جائز دې.

**[۲۱۱۱] په نکاح ورکولو ښځه روسته په مولی باندې د وینځې حرمت**

**[۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «إِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ عَبْدَهُ أَمَتَهُ فَلَا يَنْظُرَنَّ إِلَى عَوْرَتِهَا. [۳] وَفِي رِوَايَةٍ فَلَا يَنْظُرَنَّ إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ وَفَوْقَ الرُّكْبَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.**

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعیب علیه الله د خپل پلار نه او هغه د نیکه نه نقل کوي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې په تاسو کې څوك د خپل غلام نکاح د خپلې وینځې سره وکړي، نو بیا د هغه وینځې (عورت) ته دې نه گوري، څکه چې د نکاح نه وروسته هغه دمولي د پاره حرامه شي، [۳] او په یو روایت کې دا الفاظ دي چې ته د هغه وینځې د بدن هغه حصې ته مه گوره چې د نامه د لاندې نه د زنگون تر پورته پورې ده، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① عَبْدَ: غلام، ② أَمَتَهُ: أمةٌ: وینځه ③ السُّرَّةِ: ناف، نوم، ④ الرُّكْبَةِ: ښنډئ.

**تسهیلات:**

**قوله: فَلَا يَنْظُرَنَّ إِلَى عَوْرَتِهَا:**

**خپله وینځه په نکاح ورکولو نه پس خپله هغې ته د نظر حکم:** - یعنی کله چه آقا دَ خپلې وینځې نکاح خپل غلام سره اوکړه نواوس دا وینځه دَ بل سړی ښځه جوړه شوه لهذا اوس دَ آقا دپاره دا وینځه دَ اجنبی ښځې په شان شوه اوس دَ دې دَ کوندونه پورته اونامه نه لاندې اودَ دې نه علاوه نور مستوره اندامونو طرف ته کتل دَ آقا دپاره جائزنه دی اوهم دغه دَ احنافو مسلك دې.
لیکن امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دَ واده کیدونه پس دَ وینځې ستردَ آقا دپاره به دَ سړو دَ ستر په شان شی یعنی دَ کوندونه پورته اونامه نه لاندې پرده اوس ضروری ده. اول دَ آقا دپاره ضروری نه وه څکه چه دَ هغه دپاره دې سره جماع کول جائزوو مگر اوس دَ دې دا حصه

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب اللباس/باب فی قوله عز وجل: {وقل للمؤمنات یغضضن من ابصارهن} [النور: ۳۱] (رقم-۴۱۱۳) واحمد فی المسند: ۱۸۷/۲

ممنوع اوباقي حصې به د سرو په شان شي يعنې د دې خيته اوشا وغيره اندامونه به د ستر نه خارج وي

**[۳۱۱۲] د پتون عورکېدل**

--[۱۵] (۱) ①وَعَنْ جَرْهَدٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②«أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او حضرت جرهد ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② آيا تاسو نه پوهيږئ چې ورون ستر دی(يعني ورون دبدن هغه حصه ده چې د هغه پټول پکار دي) ترمذي ابوداود

**حل اللغات:** ①الْفَخِذَ: پتون، ورون، ، د خپې هغه حصه کوم چه د زنګون نه پورته وي.

**تسهيلات: قوله:** أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ

**د پتون په عورت کېدو کښې مذاهب:-**

د پتون په عورت او عدم عورت کښې د فقهاؤ اختلاف دې.

① د امام مالك رحمه الله او اهل ظواهر په نيز پتون عورت نه دې.

② د جمهورو په نيز پتون عورت دې.

**داول فريق دليل:-** حضرت انس ﷺ فرمائي مونږ د غزوه خيبر د پاره نبی کريم ﷺ سره روان وو. د سحر په وخت کښې ابوطلحه ﷺ پسې شاته نبی کريم سره په اوښه سورشوم زما خپې د نبی کريم خپومبارکوسره لګيدلې يعنی پتون په خپل مينځ کښې لګيدل معلومه شوه چه عورت نه دې.

**جواب:-** د دې نه جواب دادې چه د خيبرپه سفرکښې که چرې د پتون د يوبل سره د لګيدو واقعه پيښه شوې وی نو هغه د مجبورئی او په سورلئی باندې غيراختياری توګه باندې شوی دی کوم چه ضابطه نه شی جوړولې يا هغه د پتون يوبل سره لګيدل حائل سره وو چه په مينځ کښې څه کپړا حائل وه. بهرحال هغه يوجزئی واقعه ده او هغه هم محتمل ده او بل طرف ته په زيات مقدار کښې واضح احاديث دی په دې باندې عمل کول زيات بهتردی

**د دويم فريق دلائل:-** ① وَعَنْ جَرْهَدٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: «أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ. (**د تسهيلات حديث نمبر ۳۱۱۲**)

② وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: «إِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ عَبْدَهُ أَمَتَهُ فَلَا يَنْظُرَنَّ إِلَى عَوْرَتِهَا. وَفِي رِوَايَةٍ فَلَا يَنْظُرَنَّ إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ وَفَوْقَ الرُّكْبَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. (**د تسهيلات حديث نمبر ۳۱۱۱**)

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الصلاة/باب ما يذکر فی الفخذ قال أبو عبد الله: والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الفخذ عورة (رقم-۲۷۹۵ واخرجه احمد فی المسند: ۴۷۸/۳

په دې حديث کښې دی چې د وينځې د زنګونونو نه پورته او د پتون نه ښکته مه ګورئ طرز د استدلال داسې دې چه د وينځې دستر اندامونه هم هغه دی کوم چه د سړی دی لهذا پتون عورت دې دا د جمهورو دويم دليل دې

④ «وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لَهُ: يَا عَلِيُّ لَا تُبْرِزْ فَخِذَكَ وَلَا تَنْظُرْ إِلَى فَخِذِ حَيٍّ وَلَا مَيِّتٍ». د تسهيلات حديث نمبر ۳۱۱۳)

په دې کښې د ژوندی سړی او مړ سړی پتون ته کتل ممنوع ګرځولې شوی دی.

⑤ وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: «لَعَنَ اللهُ النَّاظِرَ وَالْمَنْظُورَ إِلَيْهِ». د تسهيلات حديث نمبر ۳۱۲۵)

## [۳۱۱۳] پتون ته د کتلو څخه ممانعت

—[۱۶] (۱) ① «وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② قَالَ لَهُ: يَا عَلِيُّ ③ لَا تُبْرِزْ فَخِذَكَ ④ وَلَا تَنْظُرْ إِلَى فَخِذِ حَيٍّ وَلَا مَيِّتٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او د حضرت علي ﷺ نه روايت دی ② چې رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل اې علي ﷺ ③ خپل ورون (د خلقو په مخکې) مه ښکاره کوه، ④ او مه د ژوندي سړي ورون ته ګوره. او مه د مړي ورون ته ګوره، (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات** ① لَا تُبْرِزْ: مه ښکاره کوه.

**تسهيلات: نوټ:-** د پتون د عورت په باره کښې تفصيل د حديث نمبر (۳۱۱۲) په تشريح کښې ذکر دې

## [۳۱۱٤] د پتون د عورت کيدو دليل

—[۱۷] (۲) ① «وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَحْشٍ قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى مَعْمَرٍ وَفَخِذَاهُ مَكْشُوفَتَانِ. ② قَالَ: يَا مَعْمَرُ غَطِّ فَخِذَيْكَ فَإِنَّ الْفَخِذَيْنِ عَوْرَةٌ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ① او حضرت محمد ابن حجش ﷺ وايې چې (يو خل) رسول الله ﷺ په حضرت معمر ﷺ په داسې حال کې تير شو چې د هغه دواړه ورونونه ښکاره وو، ② نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې اې معمر! خپل ورونونه پټ کړه خکه چې ورنونه ستر دي، (شرح السنه)

**حل اللغات** ① فَخِذَاهُ مَكْشُوفَتَانِ: دواړه پتونان ئې ښکاره وو ② غَطِّ فَخِذَيْكَ: خپل پتونان دې پټ کړه.

**تسهيلات:**

**نوټ:-** د پتون د عورت په باره کښې تفصيل د حديث نمبر (۳۱۱۲) په تشريح کښې ذکر دې.

---

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الجنائز/باب في ستر الميت عند غسله (رقم-۳۱٤۰) وابن ماجه في كتاب الجنائز / باب ما جاء في غسل الميت(رقم-۱٤٦۰)واحمد في المسند: ۳/۵۰۱
۲) اخرجه احمد في المسند: ۵/۲۹۰

## [۲۱۱۵] بلا ضرورته په تنهائي کښې د عورت ښکاره کولو حکم

٣١١٨ - [١٨] (١) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «إِيَّاكُمْ وَالتَّعَرِّيَ فَإِنَّ مَعَكُمْ مَنْ لَا يُفَارِقُكُمْ إِلَّا عِنْدَ الْغَائِطِ وَحِينَ يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى أَهْلِهِ ③ فَاسْتَحْيُوهُمْ وَأَكْرِمُوهُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② تاسو د برېنډ کېدو نه پرهيز کوئ، اگر چې تنهائي ولې نه وي، ځکه چې د قضاء حاجت او د خپلې بي بي سره د مجامعت د وختونو ماسوا هر وخت هغه فرښتې ستاسو سره وي (کومې چې ستاسو په نگهباني او حفاظت او ستاسو د اعمال په ليکلو مامورې وي) ③ نو تاسو د دې فرښتو نه حياء کوئ، او د هغوئ تعظيم کوئ. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① إِيَّاكُمْ وَالتَّعَرِّيَ: د ځان برېنډ کېدو نه بچ اوسئ. يعنې ځان مه برېنډوئ ② لَا يُفَارِقُكُمْ: چه ستاسو نه نه جدا کېږي، هر وخت تاسو سره وي. ③ الْغَائِطِ: قضائې حاجت. ډک اودس ماتې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِيَّاكُمْ وَالتَّعَرِّيَ:

**بلا ضرورته د عورت ښکاره کولو ممانعت:** - بلا وجه د کشف عورت نه ځان ساتئ. ځکه چې تاسو سره فرښتې هم وی چې کله هم ستاسو څخه نه جدا کيږی خو د وړوکی او لوئې اودس ماتی په وخت کښې.

**د فرښتو په مصداق کښې اقوال:** - ① امام طيبی رحمه الله فرمائی چې ددې نه حفاظت کوونکې فرښتې ② دې فرښتو څخه کراما کاتبين مراد دی.

**د انسانی عورت کتلو څخه د فرښتو حيا کول:** - ابن الملک رحمه الله فرمائی چې کشف عورت دې بغير د څه ضرورت نه اونه کړې شی او ضرورت قضاء حاجت يا مجامعت دې ددې نه معلومه شوه چې فرښتې د انسان د ستر کتلو نه شرم کوی نو ايمانی تقاضا داده چې مونږ دې هم دهغوئ نه شرم اوکړو او بغير د څه ضرورت نه دې ستر نه ښکاره کوؤ دارنګ الله تعالى د شرم وحياء زيات حقدار دې

**اشکال:** - که په دې دواړو وختونو کښې څوک ګناه اوکړی نو د کراما کاتبين د نه نزديوالی په وجه به ددوئ ګناه نه ليکلې کيږی او بيا به مواخذه هم نه وی هرکله ليکلې کيږی نه نو ددې سزا به هم نه وی ؟

**داشکال دوه جوابونه:** - ① الله تعالى فرښتو ته وائی چې دې فلانی کس دا ګناه کړې ده نو هغوئ ئې اوليکی.

---

۱ ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الاستتار عند الجماع (رقم-۲۸۰۰)

⑥ په دې دوارو وخنونو کښې به ددې کس ګناه لیکلې کیږي خکه چې کله یو کس ګناه کوی نو دهغه په بدن باندې یو نجاست اولګی چې دهغې په وجه کراما کاتبین ته معلومیږی چې دې کس څه ګناه کړې ده

**[۲۱۱۶]د ښځې دپاره سړو ته د کتلو ممانعت**

۳۱۱۶-[۱۹](۱)۞«وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَمَيْمُونَةُ۞إِذْ أَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : "احْتَجِبَا مِنْهُ"۞فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَلَيْسَ هُوَ أَعْمَى لَا يُبْصِرُنَا!۞قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**۞ ام المؤمنین بي بي ام سلمه ﷺ روایت کوی چې (یو خل) هغه او ام المؤمنین بي بي میمونه ﷺ د رسول الله ﷺ سره موجودې وې، ۞ اچانك ابن ام مکتوم ﷺ (چې یو نابینا صحابي وو) راغلی، حضور ﷺ (د ابن ام مکتوم ﷺ په لیدو سره) خپلو دوارو بیبیانو ته وفرمایل چې د ده نه پټې شی، ۞ ام سلمه ﷺ وایې چې د حضور ﷺ دا حکم اوریدوسره ما عرض اوکړو چې آیا دی نابینا نه دی؟ دی مونږ نشي لیدلی، ۞حضور ﷺ وفرمایل چې آیا تاسو دواړې هم نابینا یئ ؟آیا تاسو دی نه وینی؟ (یعني که هغه ړوند دی نو تاسو خو ړندې نه یئ) احمد ترمذي ابوداود.

**حل اللغات:** ①احْتَجِبَا:تاسو دواړه پرده اوکړئ، پټې شئ، ②أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا: آیا تاسو دواړه هم ړندې یئ؟. تاسو دې نه وینئ؟

**تسهیلات:** -

**قوله:** أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا

**د ښځې پردی سړی ته د کتلو حکم:** - دَدې حدیث نه معلومه شوه چه ښځه پردی سړی ته نه شی کتې لکه څنګه چه دَ سړی پردئی ښځې ته کتل حرام دی دغه شان ښځې له هم دَ شهوت سره مطلقًا پردی سړی ته کتل حرام دی اوس په دې حکم باندې دَحضرت عائشه صدیقه ﷺ په روایت سره اعتراض راخی په کوم کښې چه حضرت عائشه صدیقه ﷺ فرمائی چه ما هغه وخت تورو حبشیانوته کتل کوم وخت چه هغوی خپلو نیزو اوتورو سره په جماعت کښې لوبې کولې دَدې دوه قسم متعارض روایتونو دَ وجې نه بعضې علماؤ خودَ حرمت خبره کړې ده لیکن عام علماء فرمائی که چرې دَ فتنې نه امن وی نوښځه پردی سړی ته کتلې شی دَحضرت عائشه صدیقه ﷺ روایت په دې باندې دلالت کوی خکه چه

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب اللباس /باب فی قوله عز وجل: {وقل للمؤمنات یغضضن من أبصارهن} [النور: ۳۱] (رقم-۴۱۱۲) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی احتجاب النساء من الرجال (رقم-۲۷۷۸) و اخرجه احمد فی المسند:۶/۲۹۶

دا واقعه دَ ۹ھ ده کوم وخت چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها عمر ۱۴ کاله وو بل قرآن کریم ښځو ته دَ پردې او حجاب حکم ورکړې دې دې دپاره چه سړی هغې ته اونه ګوری اوسړو ته نې دَ پردې اوحجاب حکم نه دې ورکړې که دَ ښځو کتل ناجائز وې نوسړو ته به دَ پردې حکم ورکړې شوې وو

**د شهوت په صورت کښې پردۍ سړی ته د کتلو حرمت:** - بهرحال دَ کتلو دا جواز مشروط دې چه شهوت نه وی اودَفتنې خطره نه وی که چرې شهوت اودَ فتنې خطره وی نوبیا خو کتل حرام دی. اودَ نامه نه لاندې اودَ زنګونونه پورته حصې ته کتل په هرحال کښې حرام دی دَ لویغاړو په لویو کښې که چرې پټون ښکاره وی نودَ سړو او ښځو دواړو کتل حرام دی اوبهتر هم دغه دی چه ښځه دې بغیردَ ضرورت نه سړی ته نه ګوری.

**دحدیث د دوو کلماتو وضاحت:** - ① وَمَيْمُونَةُ: دَدې لفظ عطف "انها" کښې دَان په اسم باندې دې په دې وجه دا منصوب وئیل زیات بهتردی.

② أَفَعَمْيَاوَانِ: داجمله دَدې نه مخکښې جملې استفهام انکاری دپاره په توګه دَتقرر او ثبوت اوفرمائیله. دَدې زجر اوتوبیخ او دَدې روایت ممانعت ته دَ حدیث علماؤ اوفقهاؤ په تقوی او احتیاط باندې حمل کړی دی اودَعدم فتنه اوعدم شهوت په صورت سره نې مربوط کړی دی.

**[۳۱۱۷] په خلوت کښې هم دعورت پټ ساتل**

| [۲۰] - ۳۱۱۷ (۱) ① وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «احْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ، ③ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَرَأَيْتَ إِذَا كَانَ الرَّجُلُ خَالِيًا ④ قَالَ فَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ. |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت بهز ابن حکیم د خپل پلار مکرم (حکیم رحمه الله) نه او هغه د بهز د نیکه (حضرت معاویه رضي الله عنه ابن حیده) نه روایت کوي ② چې رسول الله ﷺ وفرمایل ته خپل ستر پټ ساته، علاوه د خپلې ښځې یا وینځې نه (چې د هغوئ مخکې ستر پټول ضروري نه دي) ③ حضرت معاویه رضي الله عنه وایي چې ما عرض اوکړو چې یا رسول الله! ﷺ سړی چې په خلوت (تنهایي) کې وي نو آیا هلته دي هم خپل ستر پټ ساتي؟ ④ حضور ﷺ وفرمایل چې الله تعالی زیات لائق دی چې د هغه نه شرم وشي، (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ: چه ستا ښې لاس دهغې مالک وی، دې نه مراد وینځه ده. ② إِذَا كَانَ الرَّجُلُ خَالِيًا: کله چه سړې خانله وی، یواځې وی نور هیڅوک نه وی. ③ فَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ

(۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الحمام باب ما جاء فی التعری (رقم-۴۰۱۷) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی حفظ العورة (رقم-۲۷۹۴) وابن ما جه فی کتاب النکاح/ التستر عند الجماع (رقم-۱۹۲۰)واحمد فی المسند: ۳/۵

يُسْتَحْيَا مِنْهُ: الله تعالى زيات لائق دې چې د هغه نه شرم وشي، يعنى په خانله والى كښې هم خپل ستر پټ ساتل پكار دى

**تسهيلات:**

**قوله: فَاللهُ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ:**

**په خلوت كښې هم د عورت ښكاره كولو څخه پرهيز:** - دنبى كريم ﷺ د جواب مطلب دا دې چې چې خلوت كښې اگر چې څوك موجود نه وى خو بيا هم په دې وخت خپل ستر ښكاره كول مناسب نه دى. ځكه الله ﷻ خو هر صورت كښې گورى. او هغه عظيم ذات دانسانانو نه زيات ددې خبرې حقدار دې چې دهغه نه شرم اوكړې شى. نو ددې نه معلومه شوه چې په خلوت كښې هم ستر پټول واجب دى. البته د څه ضرورت په وجه ښكاره كول جائز دى

**دحديث څخه د يوې مسئلې استنباط:** - حديث پاك كښې دستر د پټولو حكم وركړې شوې دې او په دې سلسله كښې چې د ښځې او وينځې كومه استثنى كړې شوې ده چې دخپلې ښځې يا وينځې په وړاندې خپل ستر پټول ضرورى نه دى نو ددې نه دا خبره واضح كيږى چې ملك او نكاح، جانبين (يعنى سړى او ښځې) دپاره د يوبل ستر طرفته كتل مباح گرځوى.

**[۲۱۱۸] پردئ ښځې سره څانله مجلس كښې د شيطان شركت**

[۲۱] (۱) [۱] وَعَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا كَانَ ثَالِثُهُمَا الشَّيْطَانَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې يو سړى د يوې اجنبي ښځي سره په تنهايي كې يو ځاى شي، نو هلته په هغوئ كې دريم شيطان وي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① لَا يَخْلُوَنَّ: خانله والي دې نه كوي، خانله كيږى دې نه.

**تسهيلات: قوله: إِلَّا كَانَ ثَالِثُهُمَا الشَّيْطَانَ:**

**د شيطان د دريم كيدو مطلب:** - ښكاره خبره ده چه شيطان به دَدې دوارو مينځ كښې څه دَ اصلاح دَپاره نه راځى بلكه دَ فساد اوفتنې اچولودَپاره به راځى. دَ ښځودا وينا كول غلطه ده چه زړه صفا ساته هيڅ به نه كيږى كه چرې زړه ئى صفا وي نو پردو سړو سره به ئى ولې خان گډوډ كولو؟ ياد لرئى دَ فتنې نه اصل حفاظت حجاب او پرده ده. بې پردگئى كښې قرآن خودونكي قرآن په طاخ كښې كيخودوسره به گناه شروع كوى. الاماشاء الله.

---

۱ ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية الدخول على المغيبات (رقم-۱۱۷۱) و اخرجه احمد فى المسند: ۲۶/۱

## [۲۱۱۹] په انساني بدن كښې دَ شيطان تصرف

[۲۲] (۱) ۞ وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۞ «لَا تَلِجُوا عَلَى الْمُغَيَّبَاتِ ۞ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنْ أَحَدِكُمْ مَجْرَى الدَّمِ ۞ قُلْنَا وَمِنْكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ۞ قَالَ وَمِنِّي وَلَكِنَّ اللّٰهَ أَعَانَنِي عَلَيْهِ فَأَسْلَمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت جابر ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل ۞ هغه ښځو ته (په تنهايي كې) مه ورځئ، چې د هغوئ خاوندان موجود نه وي، ۞ ځكه چې ستاسو په بدنونو كې د وينې زغليدو پشان شيطان زغلي (يعنى د شيطان تصرف د انسان په ټولو رګونو او چمړه كې سرايت كوي) ۞ مونږ عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ ستاهم داسې دي؟ ۞ هغوى وفرمايل چې زما هم، ليكن الله ﷻ د شيطان په مقابله كې زما مدد كړي دى، نو زه د هغه نه محفوظ يم. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① لَا تَلِجُوْا: په تنهايئ كښې مه ورځئ، ② اَلْمُغَيَّبَاتِ: هغه ښځې چه دهغوى خاوندان موجود نه وى، ③ مَجْرَى الدَّمِ: په شان د زغليدو د وينې، ④ أَعَانَنِي عَلَيْهِ: الله مدد كړې دې زما. په مقابله ددې شيطان كښې، ⑤ فَأَسْلَمَ: نو زه ددې (شيطان) نه محفوظ يم. يا دا شيطان زما تابعدار شوې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: مَجْرَى الدَّمِ:**

**د مجرى الدم په مفهوم كښې دوه اقوال:** - ① دا كلام خو يا په تشبيه او مجاز باندې محمول دې يعنى ځنګه چه وينه په رګونو كښې منډې وهى دغه شان شيطان هم دَ وسوسې په ذريعه په انسانى بدن كښې منډې وهى.

② دا كلام په حقيقت باندې مبنى دې چه كوم كوم ځائى ته وينه ځى هغه ځائى ته شيطان داخليدوسره ځى او په نظرنه راځى لكه ځنګه چه وينه هم نه ښكارى

**قوله: اَلْمُغَيَّبَاتِ:**

**د مغيبات لفظ د تخصيص وجه:** - دَميم ضمه سره دا لفظ دَمغيبة جمع ده. هغه ښځې ته وائى دَ كومې خاوندچه په سفر كښې وى اودَهغې كور خالى وى په حديث كښې داسې ښځې په خاص توګه ځكه يادې كړې شوې چه دَ يوې مودې نه دَ خاوند دَ عدم موجودګئ دَ وجې نه داسې ښځې دَ جماع زيات شوق لرى نودې سره خلوت ساتل زيات دَ فتنې سبب دې او شيطان خو پټ دښمن دې چه هروخت دَ وار كولو په انتظار كښې اوسيږى.

---

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية الدخول على المغيبات (رقم-۱۱۷۲) و اخرجه احمد في المسند: ۳۰۹/۳

**قوله** فَأَسْلَمَ:

**د لفظ اسلم په ضبط کښې دوه احتمالات او د دې معنی :-** ① دا لفظ أَسْلَمَ هم دې ② او أَسْلَمُ هم دې اول صيغه دَ ماضي ده اودويمه دَمضارع متكلم صيغه ده که چرې دَ ماضي صيغه ده نوترجمه به داسې شي چه شيطان تابعداري اختيار کړې ده اوکه چرې دَ متکلم صيغه ده نودې ترجمه به داسې شي چه زه دَهغه نه محفوظ پاتې کيږم بهرحال دا صيغه دَاسلام په معنی کښې نه ده ځکه چه شيطان مردود دې هغه اسلام نه قبلوی

**[۲۱۲۰] دَمالکې دَخپل غلام څخه دَپردې حکم**

[۲۳] (۱) ① وَعَنْ أَنَسٍ: «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَتَى فَاطِمَةَ بِعَبْدٍ قَدْ وَهَبَهُ لَهَا، ② وَعَلَى فَاطِمَةَ ثَوْبٌ إِذَا قَنَّعَتْ بِهِ رَأْسَهَا لَمْ يَبْلُغْ رِجْلَيْهَا، وَإِذَا غَطَّتْ بِهِ رِجْلَيْهَا لَمْ يَبْلُغْ رَأْسَهَا، ③ فَلَمَّا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا تَلْقَى قَالَ: إِنَّهُ لَيْسَ عَلَيْكِ بَأْسٌ إِنَّمَا هُوَ أَبُوكِ وَغُلَامُكِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷺ وايې چې (يو ځل) رسول الله ﷺ د بي بي فاطمه ﷺ په طرف تشريف راوړو، هغه وخت د بي بي فاطمې ﷺ په خدمت کې يو غلام موجود وو، چې حضور ﷺ ورته ورکړې وو، ② او د بي بي فاطمې ﷺ په بدن يو داسې (وړه) کپړه وه چې په هغه سره به يې سر پټوی نو پښې به يې ښکاره پاتې کيدې او که پښې به يې پټولې نو سر به يې ښکاره پاتې کيدی ③ حضور ﷺ چې بي بي فاطمه ﷺ په دې پريشانۍ کې وليده (چې د هغه د شرم او حياء په وجه د خپل پوره بدن پټولو په کوشش کې نه کاميابيږي) نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې (اې فاطمې! ﷺ) دومره ولې پريشانه کيږې، په دې څه حرج نشته، ځکه (د چا نه چې ته دومره شرميږې) هغه يو هم غير نه دی بلکه يوستا پلار دی، بل ستا غلام دی، (ابوداؤد)

**حل اللغات** ① إِذَا قَنَّعَتْ بِهِ رَأْسَهَا: چې کله به نې په هغې سره سر پټولو. ② إِذَا غَطَّتْ بِهِ رِجْلَيْهَا: اوکله چې به نې پرې پښې پټولې ③ إِنَّهُ لَيْسَ عَلَيْكِ بَأْسٌ: په دې کښې په تا هيڅ ګناه حرج نشته. ④ إِنَّمَا هُوَ أَبُوكِ وَغُلَامُكِ: هغه خو ستا پلار دې او ستا غلام دې.

**تسهيلات: قوله** إِنَّمَا هُوَ أَبُوكِ وَغُلَامُكِ:

**د غلام د خپلې مالکې په حق کښې د محرميت باره کښې مذاهب:-**

دَ مالکې ښځې غلام دَ دغه ښځې محرم وی که دَ پردو په شان دې په دې کښې دَفقهاؤ اختلاف دې

① دَ امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيزدَ ښځې غلام دَهغې دَ محارمونه نه دې دَهغه نه هيڅ پرده نشته دې

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب اللباس/باب في العبد ينظر إلى شعر مولاته (رقم-۴۱۰۶)

۲ امام ابوحنيفه رحمه الله امام غزالي رحمه الله اوعلامه نووي رحمه الله په نيزد ښځې غلام دهغې دپاره په منزله د اجنبي دې د کوم نه چه مکمل پرده ده. ددې ښځې د مخ اولاسونو نه علاوه د بدن هيڅ يوه حصه غلام نه شي کتلې.

**داول فريق دلائل:**- ۱ زيربحث د حضرت انس رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې.

**داول فريق داول دليل دوه جوابونه:**- ۱ کيدې شي غلام نابالغ وی

۲ دلته د مظنهٔ شهوت او فتنه احتمال نه وو بهرحال دا يوه جزوني واقعه ده په دې کښې مختلف احتمالات کيدې شي مونږ له قاعده اوضابطه خپلول پکار دی

**داول فريق دويم دليل:**- ۲ د سورت نور آيت ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ [سورت نور الايه: ۳۱.] هم د دوی مستدل دې چه دلته د ما لفظ عام دې لهذا ښځه د خپل مملوك غلام او وينځې دواړو په مخکښې د زينت مواضع نه شي ښکاره کولې.

**داول فريق د دويم دليل جواب:**- د دې نه جينکئی او مملوکې وينځې مراددی هلکان مرادنه دی. حضرت سعيدبن مسيب رحمه الله او حضرت حسن بصري رحمه الله اوحضرت سمره بن جندب رضي الله عنه فرمائي چه "لاتغرنكم سورة النور فأنها في الأناث دون الذكور"

**د دويم فريق دلائل:**-

۱ د مصنف ابن ابی شيبه روايت د دوی مستدل دې چه "تستر المرأة من غلامها"

۲ دغه شان په مصنف عبدالرزاق کښې ذکرشوې د مجاهد رحمه الله اوحضرت طاؤس رحمه الله روايت هم د دوی مستدل دې چه "لاينظر المملوك الى شعر سيدته"

۳ صاحب هدايه عقلي دليل داسې پيش کړې دې چه کله غلام آزاديږی نو دهغه نکاح خپلې سابقه مالکې ښځې سره جائزده که چرې دې د محارم نه وې نونکاح به څنګه جائز کيدله [سورت نور: ۳۱.]

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۱۲۱] د مخنث ښځو مجلس ته دورتلو ممانعت

۳۱۲۳-[۲۳] (۱) ۱ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ كَانَ عِنْدَهَا وَفِي الْبَيْتِ مُخَنَّثٌ، ۳ فَقَالَ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ أَخِي أُمِّ سَلَمَةَ: يَا عَبْدَ اللَّهِ ۴ إِنْ فَتَحَ اللَّهُ لَكُمْ غَدًا الطَّائِفَ فَإِنِّي أَدُلُّكَ عَلَى ابْنَةِ غَيْلَانَ ۵ فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ، ۶ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «لَا يَدْخُلَنَّ هَؤُلَاءِ عَلَيْكُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة الطائف في شوال سنة ثمان. قاله موسى بن عقبة (رقم-۴۳۲۴) ومسلم في كتاب السلام/باب منع المخنث من الدخول على النساء الأجانب (رقم-۳۲ - (۲۱۸۰)

**ترجمه:** [۱] د ام المؤمنين بي بي ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دى [۲] چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ د هغې سره تشريف فرماوو، او په كور كې يو مخنث هم موجود وو، [۳] هغه مخنث حضرت عبد الله ابن اميه ته چې د بي بي ام سلمه رضي الله عنها ورور وو، او ونيل اې عبد الله! [۴] كه الله ﷻ صبا ته تاسو خلقو ته په طائف فتح دركړې، نو زه به تاته د غيلان لور وښايم، [۵] چې د څلورو سره راځي او د اتو سره ځي (يعنى هغه د غيلان لور چې باديه نوميږى دومره څربه ده چې مخامخ را روانه وى نوپرنس يې څلور ګُنجې ښكارې او چې ځى د شا نه آته ګُنجې ښكارى څلوريوارخ ته څلوربل ارخ ته) [٦] رسول الله ﷺ چې د هغه مخنث دا خبره واوريده نو وې فرمايل چې دا مخنث دې تاته نه راځي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① مُخَنَّثٌ: نرښځې، حلق مشكل هغه سړې چه د ښځو سره مشابه وى. ② ابْنَةِ غَيْلَانَ: غيلان د طائف سردار وو دهغه د لور نوم باديه وو. دا د چاقيدو (څرب كيدو) د وجې نه ښه ښكلې او زړه رابنكونكې او چاقه وه. ③ تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ: چه مخې ته ئې د چاقوالى په وجه څلور قطونه جوړ شوى وو. ④ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ: او شاته ئې د چاقوالى په وجه اته قطونه جوړ شوى وو.

**تسهيلات:**

**قوله:** وفي البيت مُخَنَّثٌ:

**د مخنث معنى:** -مخنث د ښځې په شان سړې وى د چا اندامونه چه د ښځوپه شان وى رنګ ډهنګ او آواز د ښځوپه شان وى اودا د ښځو په شان سړې بالكل د ښځو مشابه وى.

**دمخنث قسمونه:** - ① مخنث كيدل او ښځوسره مشابهت كله خلقى اوپيدائشى وى لهذا هغه شرعاً د مذمت قابل نه وى ځكه چه دهغه په اختيار كښې نه وى.

اوكه دا مخنث كيدل ښځوسره د مصنوعى مشابهت په وجه وى چې سړې د څه مقصد اوغرض دپاره خپل ځان دښځو په شان جوړكړې وى نودا موجب لعنت او حرام دى. اودا تصنع د سړو او ښځو دواړو دپاره ناجائز دى.

**دمخنثانو كورونو ته د داخليدو څخه د منع كولو وجه:** -صحابياتو او امهات المؤمنين مخنث (غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ) ګنړلې وو چه داخلق د ښځو خدوخال سره څه رغبت اوخواهش نه لرى ليكن چه كله دې مخنث د ښځوتيك تيك محاسن ذكركړل نونبى كريم دوى كورونوته د داخليدو نه اود ښځو سره ګډود كيدو نه منع كړل ځكه چه معلومه شوه چه داخلق د (غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ) نه نه دى. هم دغه حكم د خصى او مجبوب الذكر سړى هم دې چه هغه هم (غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ) نه نه دې.

**قوله:** تُدْبِرُ بِثَمَانٍ:

**د ادبار بثمان مطلب او تفسير:** -ددې مطلب دادې چه د چاقوالى د وجې نه دهغې په بدن

كښې قطونه جوړشوی وو چه د مخې طرف نه څلور قطه کرښې د شا طرف ته خی یو د وډې ښې طرف ته اویوکس طرف ته خی اوس څلور کرښې د مخې طرف نه خو هم څلور دی مګر شاته تلو سره دملا نه مخکښې مخکښې ختمیږی نو د هریو دوو طرفونه د څلورو په خانی اته قطونه جوړیږی نو د دې ښځې مخې ته راتلوسره څلور او تلوکښې اته قطونه ښکاری هم دغه نقشه دغه مخنث رابنکله چه "تقبل باربع وتدبر بثمان".

**[۲۱۲۲] بلا ضرورته د بربنډ والی ممانعت**

۳۱۲۲—[۲۵] (۱) ① «وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ: حَمَلْتُ حَجَرًا ثَقِيلًا ② فَبَيْنَمَا أَنَا أَمْشِي سَقَطَ عَنِّي ثَوْبِي فَلَمْ أَسْتَطِعْ ③ أَخْذَهُ فَرَآنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ④ فَقَالَ لِي: خُذْ عَلَيْكَ ثَوْبَكَ وَلَا تَمْشُوا عُرَاةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت مسور ابن مخرمه ﷺ وایي چې (یوه ورځ د خپل څه ضرورت تحت) ما یو دروند کاڼی پورته کړې ② او د هغه آخستو سره روان شوم (په لاړ کې) زما کپړه (یعني تهبند (لنګ)) زما د بدن نه ولویدلې (چې د هغه په وجه زما ستر ښکاره شو) خو ما (د بوج په وجه سمدستي) خپله کپړه پورته نه کړی شوه، ③ او په دې دوران کې رسول الله ﷺ زه (په بربنډ حالت کې) ولیدم، ④ نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې (سمدستي) خپله کپړه پورته کړه او ستر پټ که او بیا حضور ﷺ دا عام) حکم وکړې چې بربنډ مه ګرځی، (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: وَلَا تَمْشُوا عُرَاةً:**

**دستر عورت دحکم عموم:** - داد عموم بعد الخصوص قبیل څخه دې چې خذ علیك ثوبك . دا په دې خبرې باندې دلالت کوی چې هیڅ یو بالغ کس دې نه بربنډ اوسی او نه دې بربنډ ګرزی، ستر پټول فرض دی ، دا حکم عام دې دا یو کس سره خاص نه دې (التعلیق الصبیح)

**[۲۱۲۳] د خاوند شرمګاه ته نه کتل**

۳۱۲۳—[۲۶] (۲) ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مَا نَظَرْتُ ② أَوْ مَا رَأَيْتُ فَرْجَ رَسُولِ اللَّهِ —صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ— قَطُّ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او د مؤمنانو مور بي بي عائشه ﷺ فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ ستر خاي طرف ته هیڅ کله نظر نه دی پورته کړې، ② یا داسې یې وفرمایل چې ما (د حضور ﷺ د ستر) حصه هیڅ کله نه ده لیدله، (ابن ماجه)

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب الحیض /باب الاعتناء بحفظ العورة (رقم-۷۸ - (۳٤۱)
۲) اخرجه ابن ماجه فی السنن رقم الحدیث ۱۹۲۲ واحمد فی المسند رقم الحدیث ۶/ ۶۳

**تسهيلات:**

**قوله** مَا رَأَيْتُ فَرْجَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَطُّ:

**د خپلې بى بى شرمګاه ته د کتلو حکم:** - غوره او بهتره دا ده چې خاوند د خپلې بى بى شرمګاه ته اونه ګورى دغه شان چې ښځه د خپل خاوند شرمګاه ته اونه ګورى خوکه دخپلې تسلۍ دپاره ورته اوګورى نه څه ګناه په کښې نشته

**[۲۱۲٤] پردۍ ښځې ته د اچانک نظر څخه پس نظر واپس کولو انعام**

۳۳۳۳-[۲۷] (۱) ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَنْظُرُ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَوَّلَ مَرَّةٍ ثُمَّ يَغُضُّ بَصَرَهُ إِلَّا أَحْدَثَ اللهُ لَهُ عِبَادَةً يَجِدُ حَلَاوَتَهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو امامه ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ② د کوم مسلمان نظر چې په اولني ځل (بلا قصد او اراده) د يوې ښځې د حسن او جمال طرف ته پورته شي، او بيا هغه سمدستي خپل نظر وګرځولو، نو الله ﷻ د هغه د پاره يوداسي عبادت پيدا کوي، چې په هغه سره هغه سړی لذت حاصلوي، (احمد)

**حل اللغات:** ① مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ: د ښځې د حُسن او جمال ځايونه، ② أَحْدَثَ اللهُ: پيدا کوی الله تعالى. ③ حَلَاوَتَهَا: لذت او خوږوالې دهغې،

**تسهيلات:**

**قوله** إِلَّا أَحْدَثَ اللهُ لَهُ عِبَادَةً يَجِدُ حَلَاوَتَهَا

**په عبادت کښې دخوند پيدا کولو طريقه:** - په عبادت کښې حلاوت او خوند پيدا کيدل دا ډير اوچت مقام دې کله چې د سړی په عبادت کښې خوند او لذت پيدا شی نو بيا هغه د عبادت سترې والې نه محسوسوی هم دغه وجه وه چې نبی کريم ﷺ ته به خوشحالی په مانځه کښې حاصليدله ((کما قال جعلت قرة عينى فى الصلاة)) نو دا مقام په مختلفو مجاهداتو سره سړی ته حاصليږی ددې مقام د حاصلولو يوه طريقه دا هم ده چې سړې د خپل نظر حفاظت کوی نو ده ته به دا مقام حاصليږی

**[۲۱۲۵] د مستورالحالو ښکاره کولو حرمت**

۳۳۳۵-[۲۸] (۲) ① وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «لَعَنَ اللهُ النَّاظِرَ وَالْمَنْظُورَ إِلَيْهِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① او د حضرت حسن بصري رحمه الله نه بطريق ارسال روايت دی چې هغه فرمايي ماته (د صحابه وو ﷺ) دا حديث رسيدلی دی، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په هغه سړي

---

۱) اخرجه احمد في المسند: ۵/ ۲٦٤

۲) رواه البيهقي في شعب الايمان (رقم-۷۷۸۸)

چې هغه (بلا عذر او اضطرار) اجنبي ښځې ته وکتل او په هغه چې هغه ته وکتل شو د الله تعالى ﷻ لعنت وي. (بيهقي)

**حل اللغات:** ① اَلنَّاظِرُ: يعنې قصداً او شهوت سره پردئ ښځې ته کتونکې ملعون دې دغه شان مستوره اندامونو ته کتونکې هم ملعون دې ② وَالْمَنْظُورُ إِلَيْهِ: دغه شان دَ چا طرف ته چه کتلې شي هغه هم ملعون دې

**تسهيلات: قوله: وَالْمَنْظُورُ إِلَيْهِ**

**د منظور اليه د ملعون كيدلو وجه:-** سوال دادې چه هغه ولې ملعون دې دَ کتونکی خو قصور دې مکر دَهغه څه قصور دې؟

دَدې جواب دادې چه منظوراليه کښې داقيد دې چه هغه بغيردَ عذر او اضطرار نه خپل ځان بربنډ کړې دې اوځان ښائى که هغه ښځه وى اوکه دَ يوسړى مستور اعضاء وى اوکه منظور اليه بې اختياره وى يا معذوره او مجبوره وى نوهغه دَدې وعيدنه خارج دې

تنبيه دې روايت سره جانګې اچونکې دَ سويمنګ شوقين لويغاړى فلم اوفلم ستهار بربنډ تصويرونه، ټيلى ويژن او وى سى آر ټول دَدې لعنت لاندې راځى. الله تعالى دې دَ دې ټولو بلاګانونه دَمسلمانانو حفاظت اوکړى اودَمسلمانانو په شان منافق حکمرانان دې مسلمانان جوړ کړى او اسلامى ملکونو ته دې دَدې فحاشونه خلاصې ورکړى. آمين يارب العالمين

## [ ۲ ] بَابُ الْوَلِيِّ فِي النِّكَاحِ وَاسْتِئْذَانِ الْمَرْأَةِ

**دَ نکاح دَولى او د ښځې دَ اجازت بيان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① حكم الاستيذان: ۱، ۲، ۸-

② الرجوع وقت عدم الاستيذان: ۳، ۱۰-

③ انعقاد النكاح بالولي: ۵، ۶، ۷-

④ من يصلح للوكالة ومن لم يصلح ، الأب: : ۳، ۴، ۱۰، ۱۲، ۱۳-

**دولى ماخذ او معنى :-** ولى په لغت کښې دَ امورو منتظم او کارساز په معنى کښې دې دادَ ولايت نه ماخوذ دې کوم ته چه "تنفيذ الحكم على الغير" وائى دلته دَ ولى نه مراد هغه سړې دې چه دَ يوې ښځې دَ نکاح اختيارلرى اودَ دغه معامله قانونى ذمه وار وى. دَ ټولو نه اول دَ يوې ښځې دَ نکاح دَ ولايت اختيار دَښځې هغه رشته دار ته حاصل دې کوم چه عصبه بنفسه وى او دَ عصباتو ترتيب به هم هغه وى کوم چه په ميراث اووراثت کښې وى

**د حق ولايت حاصليدلو شرائط :** —دَ ولايت حق حاصليدلو دپاره دَ سړی

① آزاد کیدل شرط دي

② عاقل کیدل ضروري دی

③ بالغ کیدل

④ او مسلمان کیدل لازم دی لهذا غلام مجنون، ماشوم اوکافر ولی نه شی جوړيدي دي دپاره چه دَ کامل شفقت او مکمل حکمت په رڼاکښې دَ ژوند دا اوږده معامله دَ څه نقصان ښکارنه شی دَاسلام په نظرکښې چونکه دَ نکاح اودَ انسانی شرافت ډیر زیات لحاظ ساتلې شوې دې په دې وجه دَ ولی اجازت سره معامله دَ شرافت په رڼاکښې یوځائی کړې شوې ده دې دپاره چه په مناسب ځائی کښې نکاح کولوسره ښځه خپل خاندان رسوا نه کړی اوبل طرف ته ښځه بې وسه کیدوسره دَ ځناورو په صف کښې شامله نه شی. په دې وجه دې "باب ولی النکاح" کښې به هغه ټول احادیث راځی په کوم کښې چه دَ طرفینو احساساتو اوجذباتو پوره پوره لحاظ ساتلې شوی دې. دَ انسانی حق خودداري دَ اصول لاندې په دې معامله کښې دَ ښځې حیثیت لږ شان طاقتور اومستحکم دې لیکن دَ شرافت شرم اوحیا په میدان کښې دَ ولی طرف درونددې. لهذا په دې باب کښې چه په کوموا حادیثوکښې په ظاهره تعارض ښکاری هغې ته هم دَ دغه طرفین دَ حقوق په اندازکښې کتل پکاردی بیا به هیڅ تعارض نه پاتې کیږی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۳۱۳۶] د نکاح دپاره د ښځي څخه اجازت غوښتل

۳۱۳۶—[۱] (۱) ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لَا تُنْكَحُ الْأَيِّمُ حَتَّى تُسْتَأْمَرَ ③ وَلَا تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتَّى تُسْتَأْذَنَ. ④ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ إِذْنُهَا؟ ⑤ قَالَ: أَنْ تَسْكُتَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② أَیِم (یعني د کونډې بالغې) نکاح دي نه کول کیږی د څو پورې چې د هغه حکم حاصل نشي، ③ دغه شان د پیغلې ښځې (یعني د پیغلې بالغې) نکاح دي نه کول کیږی د څو پورې چې د هغه اجازت حاصل کړل نشي (د دي اوریدو سره) ④ صحابه وو رضی الله عنهم عرض اوکړو چې یا رسول الله! صلی الله علیه وسلم د پیغلې ښځې اجازت به څنګه حاصلیږي (ځکه چې پیغله خو ډیر شرم او حیاء

---

۱) اخر جه البخاری فی کتاب الحیل/باب فی النکاح (رقم-۶۹۶۸) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی الاستئمار (رقم-۲۰۹۲) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی استئمار البکر والثیب (رقم-۱۱۰۷) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: إذن البکر (رقم-۳۲۶۷) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ استئمار البکر والثیب (رقم-۱۸۷۱) واحمد فی المسند: ۲/۲۵۰ .

كوي.۵ حضور ﷺ وفرمايل داسې چې هغه چپ شي يعنې د پيغلې نه د هغې د اجازت په غوښتلو باندې كه د شرم او حياء د وجې نه هو ونه كړي، بلكه خاموشه پاتې شي نو داد هغه اجازت گڼل كيږي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ①**الْأَيِّمُ**:هغه ښځه چه د هغې بكارت ختم شوې وى.②**الْبِكْرُ**: هغه ښځه چه د هغې بكارت په نكاح وغيره سره ختم شوې نه وى،

**تسهيلات: قوله**: لَا تُنْكَحُ الْأَيِّمُ حَتّٰى تُسْتَأْمَرَ:

**په ثيبه او باكره كښې فرق :-**

**د ثيبه درې اطلاقات :-** ① دَ ايم لفظ شد سره دې دا هغه ښځې ته وائي چې ثيبه وى.②يا دكومې خاوند چه نه وى ③يا مطلقه وى ④يائى دَ خاوند انتقال شوې وى.

**په حديث كښې مراده معنى :-** ليكن دلته په دې حديث كښې صرف ثيبه مراد ده يعنى دَ چا بكارت چه ختم شوې وى ①كه هغه په نكاح صحيح سره ختم شوې وى ②يا په نكاح فاسد سره ③يا شبه سره ④يا زنا سره ⑤اويا په توپ وغيره سره ختم شوې وى علامه طيبي رحمه الله هم داسې ليكلى دى. دې حديث كښې "الايم" سره دَ امر اوحكم لفظ راغلې دې خكه چه په ثيبه كښې اصل نسوانى حيا باقى پاتې نه وى نوهغه دَ خپلې نكاح پخپله حكم وركولو سره دَ الفاظو قطار به اولگوى.

**دباكره سكوت د ليل د رضا ولې دې؟ :-** او"البكر" سره اذن او اجازت لفظ لگيدلې دې خكه چه هغه پيغله وى په دې ميدان كښې نسوانى حياء په هغې كښې كامله وى نو په ژبه سره حكم نه شى وركولې په دې وجه دَ هغې چپ پاتې كيدل او سكوت دَهغې رضامندئى باندې دلالت كوى

**د ولايت اجبار څلور قسمونه :-** په ولايت اجبار اوعدم اجبار كښې دَ ښخو څلور قسمونه دى

① باكره صغيره ده په دې كښې هم دَتولو علماؤ اتفاق دې چه دَدې دَ نكاح دَپاره دَدې نه دَ اجازت اخستلو ضرورت نشته دې

② ثيبه بالغه ده په دې قسم ښخو كښې دَ تولو فقهاؤ اتفاق دې چه دَ ثيبه اجازت ضرورى دې بغيردَ دې دَ اجازت نه نكاح صحيح نه ده.

③ باكره بالغه ده په دې كښې هم اختلاف دې علماء احناف فرمائى دَدې نكاح دَدې دَ اجازت او رضامندئى نه بغير جائز نه ده خكه چه دا بالغه اختيارمنده ده ليكن جمهور فرمائى چه دَدې دَ اجازت او رضامندئى نه بغيردَ دې نكاح دَ دې ولى كولې شى خكه چه داباكره ده خودمختار نه ده. اوهم دغه مطلب دَ ولايت اجبار دې چه ولى په جبرى توگه باندې دَدې نكاح كوى.

④ ثيبه صغيره ده په دې کښې دَ جمهورو خيال دې چه دَدې دَ اجازت نه بغيرنکاح نه شي کيدې مگر احناف وائي چه دلته دَدې دَ اجازت ضرورت نشته دې دَ ثيبه صغيره صورت دادې چه جينئي وړه ده او دَ بلوغ نه مخکښې کونډه شوه

**په باکره باندې د ولي په ولايت کښې مذاهب او د اختلاف بنياد:-**

① دَ جمهور حضراتو په نيزمداردَ اجبار په بکارت باندې دې ولي ته به دَ جبرحق صرف په هغه صورت کښې حاصل وي کله چه جينئي پيغله يا باکره وي که هغه بالغه وي اوکه نابالغه وي نو په دوو صورتونو يعنې ثيبه بالغه او باکره صغيره کښې دَ ټولو اتفاق دې دغه شان ثيبه صغيره اوباکره بالغه دواړو صورتونوکښې دَ فقهاؤ اختلاف دې دلته چه کله دَ فقهاؤ دَ ا ختلاف خبره راځي نودَهغې نه هم دغه دوه نزاعي صورتونه مراد وي.

② دَ احنافو په نيز دَ ولايت اجبارمدار په صغرباندې دې يعنې نابالغ کم عمره جينئي باندې اولياء ته داحق حاصل دې چه دَهغې دَ مرضئي نه بغيردَ هغې نکاح اوکړي که هغه ثيبه وي اوکه باکره وي.

**د اول فريق دلائل:-** ① دَ ولايت اجباردَپاره خو داسې هيڅ يوصريح حديث نشته دې چه دَ جبردَ ټولو صورتونودَپاره دليل جوړشي. صرف دَ يوحديث دَ مفهوم مخالف نه په خپله مدعاباندې دليل قائموي هغه حديث داسې دې. ((الثيب احق بنفسها من وليها)) (رواه مسلم) په دې روايت کښې دَ ثيب لفظ راغلې دې چه هغه دَخپلې نکاح اختيار پخپله لري نومفهوم مخالف دا شو چه باکره دَخپلې نکاح اختيار پخپله نه لري. بلکه دَهغې ولي دَ هغې دَ نفس زيات حق لري.

② دَ خنساء بنت خذام روايت د دوي مستدل دې چه هغه ثيبه وه نونبي کريم دَهغې نکاح رد کړه کومه چه دَ هغې پلار کړې وه. دَدې نه ئې هم استدلال دَمفهوم مخالف په توګه کړې دې چه دَ ثيب نکاح ئې ردکړه لهذا هغې ته اختياردې اوباکرې ته اختيار نشته

**جوابونه:-** ① مونږ مفهوم مخالف نه منو ځکه چه که مفهوم مخالف که چرته په توګه دَ قاعده او ضابطه اومنلې شي نودَ شريعت بعضې نصوص مفهوم مخالف منلوسره به دَ شريعت بنکاره خلاف ورزي راځي.

② چه کله مفهوم موافق موجود دې اوحکم منطوق ثابت دې نودَ مفهوم مخالف طرف ته اودَ غيرمنطوق حکم طرف ته دَتلو څه ضرورت دې اونه مناسب دی په دې وجه زمونږ دلائل راجع دی

**د دويم فريق دلائل:-** ① زيربحث حديث د دې ((وَلَا تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتّٰى تُسْتَأْذَنَ))

② دَحضرت ابن عباس ﷺ روايت د دويم فريق مستدل دې کوم کښې چه ((وَالْبِكْرُ تُسْتَأْمَرُ وَالْاَيِّمُ اَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا)) وغيره الفاظ راغلي دی.

③ ۳۱۳۳ - وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«الْيَتِيمَةُ تُسْتَأْمَرُ فِي نَفْسِهَا فَإِنْ صَمَتَتْ فَهُوَ إِذْنُهَا، وَإِنْ أَبَتْ فَلَا جَوَازَ عَلَيْهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

④ ۳۱۳۶ - «عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ جَارِيَةً بِكْرًا أَتَتْ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرَتْ أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ كَارِهَةٌ. فَخَيَّرَهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»- . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

په دې کښې چه په واضحه توګه باندې باکرې ته دَ نکاح فسخ کولو اختيار ورکړې شوې دې دا مختلف احاديث په دې باندې واضح دلائل دی چه باکره کله بالغه وی هغه دَ خپلې نکاح اختيار پخپله لری په هغې باندې څوك جبر نه شی کولې اودا جدا خبره ده چه دَ شرافت مروت او حکمت تقاضا داده چه ښځه دَ خپلې نکاح معامله خپلو مشرانوته حواله کړی دَحديث شريف دَ لفظ احق نه دَ اسم تفضيل سره هم اشاره کيږی چه پخپله ښځه زياته حقداره ده اوولی ته هم حق حاصل دې.

**[۳۱۲۷] دَ کونډې اختيار دَ هغې په خپل لاس کښې**

| |
|---|
| ۳۱۲۷ - [۲] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② «الْأَيِّمُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا ③ وَالْبِكْرُ تُسْتَأْذَنُ فِي نَفْسِهَا وَإِذْنُهَا صِمَاتُهَا. ④ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: الثَّيِّبُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا وَالْبِكْرُ تُسْتَأْمَرُ وَإِذْنُهَا سُكُوتُهَا. ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: الثَّيِّبُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا وَالْبِكْرُ يَسْتَأْذِنُهَا أَبُوهَا فِي نَفْسِهَا وَإِذْنُهَا صِمَاتُهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل ② ايم يعنی هغه ښځه چې کُنډه بالغه او عاقله وي، د خپلې نکاح په معامله کې د خپل ولي نه زيات خپله اختيار لري، ③ او پيغله جينۍ (چې بالغه وي) هم د دې حقداره ده، چې د هغې نکاح د هغې د اجازت سره وکړی شي، او د هغې اجازت د هغې خاموشي ده (يعني دا ضروري نه ده چې هغه د خپلې ژبې سره اجازت ورکړي، بلکه د هغه د شرم او حياء له خاطره د هغې خاموشي د هغې د اجازت د پاره کافي دی، ④ په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل ثيب (يعني کُنډه ښځه) په خپل باره کې د خپل ولي نه زيات خپل اختيار لري، او د پيغلې جينۍ نه دی هم د هغې د نکاح اجازت وآخستی شي، او د هغې اجازت د هغې خاموشي ده ⑤ او په يو روايت کې داسې دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ثيبه په خپل باره کې د خپل ولي نه زياته خپل اختيار لري او د پيغلې جينۍ نه دي هم پلار د هغې د نکاح په باره کې اجازت حاصل کړي ، او د هغې اجازت د هغې خاموشي ده. (مسلم)

۱ ) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب استئذان الثيب فی النکاح بالنطق. والبکر بالسکوت (رقم-۶۶ - (۱۴۲۱)واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی الثيب (رقم-۲۰۹۸) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی استئمار البکر والثيب (رقم-۱۱۰۸) والنسائی فی کتاب الجهاد/ باب: استئمار الثيب فی نفسها (رقم-۳۲۶۵) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ استئمار البکر والثيب (رقم-۱۸۷۰) ومالک فی الموطا کتاب النکاح/باب استئذان البکر والأيم فی أنفسهما (رقم-۴) واحمد فی المسند: ۲۱۹/۱

**تسهیلات**

**نوټ**: - د دې حدیث شرح د حدیث نمبر (۳۱۲۶) په تسهیل کښې ذکر شوې دې

**[۳۱۲۸] کونډې ته د نکاح رد کولو اختیار**

۳۱۲۸ - [۳] (۱) ①«وَعَنْ خَنْسَاءَ بِنْتِ خِذَامٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ، ②فَكَرِهَتْ ذَلِكَ، فَأَتَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③فَرَدَّ نِكَاحَهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ مَاجَهْ "نِكَاحَ أَبِيهَا".

**ترجمه**: ① او د بې بې خنساء بنت خذام رضي الله عنها نه روایت دی چې د هغې پلار د هغې نکاح د هغې د اجازت نه بغیر، وتړله، هر کله چې هغه کُنډه (او بالغه، وه، ② هغې هغه نکاح خوښه نه کړه، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې (د خپلې معاملې راوړلو سره، حاضره شوه، ③ نو حضور صلی الله علیه وسلم د هغې نکاح (یعني د هغې د پلار نکاح کول) رد کړله. (بخاري)

**تسهیلات**:

**قوله**: وَهِيَ ثَيِّبٌ:

**د مفهوم مخالف نه استدلال او د هغې جواب**: -جمهوروَ دې نه مفهوم مخالف په توګه بندې دَ خپل مسلك دَ اثبات دپاره استدلال کړې دې چه ثیب ته دَ نکاح رد کولو اختیار دې بـ کرې ته اختیارنشته دې. احناف فرمائی چه دلته دَ ثیب نه بالغه ښځه مراد ده اوهغې ته اختیار په وجه دَ اهلیت ورکړې شو ځکه چه عاقله بالغه ښځه ده. هرقسم عقود اوفسوخ یوې ښځې ته اختیارهغې ته شریعت ورکړې دې نودَعقد نکاح اختیار هم شریعت ورکړې دې اوکله چه یوې ښځې ته اختیارورکړې شو نوبیا دَ کونډې او باکرې فرق نشته صرف دَ بلوغ لحاظ دې

**[۳۱۲۹] دَ نکاح په وخت دَحضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها عمر**

۳۱۲۹ - [۴] (۲) ①«وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهِيَ بِنْتُ سَبْعِ سِنِينَ ②وَزُفَّتْ إِلَيْهِ وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِينَ، ③وَلُعَبُهَا مَعَهَا، ④وَمَاتَ عَنْهَا وَهِيَ بِنْتُ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① او د بې بې عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې سره هغه وخت نکاح وکړه کله چې د هغې عمر اووه کاله وو. ② او کوم وخت چې د حضور صلی الله علیه وسلم کورته ولیږل شوه. نو د هغې عمر نهه کاله وو. ③ او د هغې (د لوبو د پاره، د لوبو ګیزونه هم د هغې سره وو. ④ او کوم وخت چې حضور صلی الله علیه وسلم د دنیا نه تشریف یوړلی، او د بې بې عائشې رضي الله عنها نه د همیشه د پاره جدا شو نو هغه وخت د هغې عمر اتلس کاله وو. (مسلم)

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب إذا زوج ابنته وهی کارهة فنکاحه مردود (رقم-۵۱۳۸) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی الثیب (رقم-۲۱۰۱) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: الثیب یزوجها أبوها وهی کارهة (رقم-۳۲۶۸) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ من زوج ابنته وهی کارهة (رقم-۱۸۷۳) واحمد فی المسند: ۳۲۸/۶
۲) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب تزویج الأب البکر الصغیرة (رقم-۷۱ - (۱۴۲۲))

**حل اللغات** ① وَزُفَّتْ إِلَيْهِ: چه د واده رخصتي ئې اوشوه او د حضور پاک ﷺ کورته اوليږلې شوه ② وَلُعَبُهَا مَعَهَا: او دهغې د لوبو څيزونه هم دهغې سره وو

**تسهيلات:**

**قوله: تَزَوَّجَهَا وَهِيَ بِنْتُ سَبْعِ سِنِينَ:**

**د حضرت عائشه رضي الله عنها د ژوند دابتدائي دور نقشه او درې اهم مراحل:** -دا حديث شريف دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَ ژوندِ دَ شروع دور نقشه وړاندې کوي اودَ هغې دَ کم عمرئي دَ درېو مرحلو خودنه کوي. ① دَ اووه کالو په عمرکښې هغه دَ نبی کریم په زوجيت کښې راغله

② دَ نهو کالو په عمرکښې رخصتي اوشوه

③ نبی کريم سره دَ نهو کالو دَ رفاقت نه پس دَ اتلسو کالو په عمرکښې نبی کريم ﷺ سره دنياوي رفاقت ختم شو او دَ نبی کريم وصال اوشو.

**دنهو کالو په عمر کښې د بلوغت امکان:** -دَ نهو کالو په عمرکښې جينئې بالغ کيدې شي دادَ بلوغ اقل موده ده او په دغه کم عمرکښې دربارنبوی ته رسيدل دَ حضرت عائشه رضي الله عنها دَپاره اعزازدې. نادان دی هغه خلق چه دا صريح او صحيح حديث په دې وجه ردکوی چه دَهغوی په خيال کښې دې سره دَ حضرت عائشه رضي الله عنها شان کميږی په غلطو مفروضوسره يوصحيح حديث ردکول ګمراهي ده. حضرت عائشه رضي الله عنها کم عمره وه په دې وجه ئې خپل دَ لوبو څيزونه ځان سره راوړې وو دا دَ لوبو څيزونه دَ کپړې او لرګی نه جوړې شوې ګډيانې وې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۱۳۰] دولي د اجازت څخه بغير د کم عمره جينۍ د نکاح عدم صحت**

۳۱۳۰-[۵] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "۲ «لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ»" رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوموسیٰ رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي حضور ﷺ وفرمايل ۲ د ولي د اجازت نه بغير نکاح نه کېږي، (احمد ترمذي ابوداود ابن ماجه دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ:**

**د نکاح په فيصله کښې احتياط:** -نکاح دَ ټول ژوندون دَ ترون نوم دې دَ پوره ژوند سودا ده.

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی الولی (رقم-۲۰۸۵) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء لا نکاح إلا بولی (رقم-۱۱۰۱)وابن ما جه فی کتاب النکاح/ لا نکاح إلا بولی (رقم-۱۸۸۱) واحمد فی المسند: ۴/۳۹۴

شریعت په دې کښې په ډیر سوچ اوفکرسره د قدم کیخودو تعلیم ورکړې دې د دې د پاره لازم دی چه د فریقینو رضا اورغبت په دې کښې شامل وی چه روسته څه د فکرخبره رانه شی شریعت په ډیراعتدال سره یوطرف ته اولیاؤته ترغیب ورکړې دې چه هغوی دې د جینئی د مرضئی خیال اوساتی اوبل طرف ته نی جینئی ته ترغیب ورکړې دې چه هغه دې دخپل ولی د رضا نه بغیردې نکاح نه کوی خودا چونکه د ترغیب معامله ده لیکن

**په عبارة النساء سره د نکاح د انعقاد په صحت کښې مذاهب او مسئلې صورت:-**

که څوك عاقله بالغه جینئی په کفوکښې په مهرمثل باندې نکاح کوی اود ولی نه اجازت نه اخلی یاد هغې نکاح بل څوك عاقله بالغه ښځه کوی کوم ته چه "انعقادالنکاح بعبارة النساء" په عنوان سره یادولې شی نو په دې کښې د فقهاء اختلاف دې

① د امام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزد ولی د اجازت نه بغیر نکاح نه منعقد کیږی اود صاحبین مسلك هم دغه دې.

② امام مالك رحمه الله فرمائی که چرې ښځه وضیعه ده یعنی دکمزوری خاندان سره د هغې تعلق دې نوهغه خپله نکاح پخپله کولې شی د ولی ضرورت نشته اوکه د شریف خاندان سره ئې تعلق دې نو هغه خپله نکاح پخپله نه شی کولې.

③ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی که چرې نکاح په کفوکښې شوې ده اومهرمثل مقرر دې نو نکاح منعقد کیږی اوکه چرې په غیرکفوکښې ده یا د مهر مثل نه کم مهر باندې نکاح شوې ده نود امام ابوحنیفه رحمه الله نه دوه روایتونه دی یوظاهرالروایة دې اوهغه دا چه نکاح خو به اوشی مګر ولی ته به دې نکاح د فسخ کولو حق حاصل وی او دویم روایت نادرالروایة دادې چه دا نکاح بالکل صحیح نه ده لهذا د راجح او قابل فتوی قول دادې چه نکاح به نه منعقد کیږی.

**د اول فریق دلائل:-** ① وَعَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ» "رَوَاهُ»(مشكاة رقم ۳۱۳۰)

② وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«أَيُّمَا امْرَأَةٍ نَكَحَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ، فَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَلَهَا الْمَهْرُ بِمَا اسْتَحَلَّ مِنْ فَرْجِهَا فَإِنِ اشْتَجَرُوا فَالسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ»».(مشكاة رقم ۳۱۳۱)

**جوابونه:** ① په کوموا احادیثو کښې چه د ولی د اجازت نه بغیرنکاح ممنوع ګرځولې شوې ده هغه احادیث په صغیره باندې محمول دی

② هغه احادیث په صغیره باندې محمول دی په مجنونه باندې محمول دی ځکه د دوی د اختیار اعتبارنشته بلکه هډو اختیارئې نشته.

③ یا "لانکاح الابولی" کښې دې طرف ته اشاره ده که چرې په غیرکفوکښې نکاح شوې وی نو د ولی اجازت ضروری دې یعنی که په غیرکفوکښې نکاح شوې وی نو ولی دا فسخ کولې شی لکه چه دا نکاح د ولی په اجازت باندې موقوف ده نو "لانکاح الابولی" صحیح شو
④ د منع احادیث د سند په اعتبار سره ناقابل احتجاج دی لکه امام بخاری رحمه الله دې روایت ته ضعیف ولی دی نسائی رحمه الله دامخدوش گرځولې دې امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمانیلی چه دا روایت قوی نه دې.
⑤ د حضرت عائشه رضی الله عنها خپل عمل د خپل روایت برعکس شوې دې ځکه چه هغې د حضرت عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه د لور نکاح پخپله اوکړه په کوم چه عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه خفه وو مګر نکاح نافذ اومنلې شوه. لهذا په دې صورت کښې دا روایت د حجت قابل نه شو
⑥ بعضې وئیلی دی چه د احناف په نیز "لانکاح" کښې لانفی دکمال دپاره ده چه بهترنه ده
**د دویم فریق دلیل:** – دوی په احادیثوکښې د تطبیق نکاح لار راویستې ده یعنی د منع احادیث د شریفې ښځې په حق کښې دی چه دولی د اجازت نه بغیر دې نکاح نه کوی اوهغه احادیث چه په جواز باندې دلالت کوی هغه د وضیعه ښځې په حق کښې دی هغې ته د اجازت اخستو ضرورت نشته.
**د دریم فریق دلائل:** – ① د قرآن کریم په ډیرو زیاتو آیاتونو کښې د نکاح نسبت ښځې طرف ته کړې شوې لکه ﴿ فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ ﴾ [بقره: ۲۳۰.] ﴿ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ ﴾ [بقرة: ۲۳۲.] ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾ [بقره ۲۴۳.]
② په احادیث کښې دی "الایم احق بنفسها من ولیها" د دې نه هم معلومه ده چې ثیبه وی نو هغه دخپلې نکاح په خپله د ولی په نسبت زیاته حقدار ده. یعنی د هغې نکاح د هغې په عبارت سره منعقد کیږی
③ هغه ټول احادیث د دوی مستدل دی په کوم کښې چه د ښځې اجازت ضروری ګرځولې شوې دې.
② وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«أَيُّمَا امْرَأَةٍ نَكَحَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ، فَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَلَهَا الْمَهْرُ بِمَا اسْتَحَلَّ مِنْ فَرْجِهَا فَإِنِ اشْتَجَرُوا فَالسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ» . (مشكاة رقم ۳۱۳۱)

په دې حدیث کښې د "اشتجروا" لفظ راغلې دې دا د تشاجر اومشاجره نه دې کوم چه د جګړې په معنی کښې دې. یعنی چه کله د یوې ښځې اولیاء په خپل مینځ کښې څه جګړه کوی او یو اتفاقی فیصلې ته نه رسی نو بیا به د ولایت حق د وخت قاضی ته وی ځکه چه د

چې ولی نه وی دهغوی ولی قاضی اوحاکم وی

⑤ عقلی دلیل دا دې چه ښځه انسان دې کله چه دې ته دَ تولو فسوخ او عقود حق حاصل دې نونکاح هم یوعقد دې په دې کښې ښځه دَ حیواناتو په شان نه شی ساتلې. لهذا په عبارات النساء سره هم نکاح منعقد کیږی اودَ ولی دَ اجازت نه بغیرهم.

**[۲۱۲۱] د ولی د اجازت څخه بغیرد نکاح فساد**

۳۱۳۱-[۲] (۱) ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ۲ «أَيُّمَا امْرَأَةٍ نَكَحَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا ۳ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ، ۴ فَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَلَهَا الْمَهْرُ بِمَا اسْتَحَلَّ مِنْ فَرْجِهَا ۵ فَإِنِ اشْتَجَرُوا فَالسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کومي ښځي چې خپله نکاح د هغه د ولي د اجازت نه بغير وکړه، ۳ نو د هغي نکاح باطله ده، د هغي نکاح باطله ده، د هغي نکاح باطله ده، ۴ بيا که خاوند د هغي سره مجامعت وکړي، نو هغه به د مهر حقداره وي، ځکه چې خاوند د هغي د شرمګاه نه فائده واخستي ده، ۵ او که د يوي ښځي وليان په خپلو کې اختلاف وکړي نو د چا چې هيڅوك ولي نه وي د هغي ولي بادشاه دی. (احمد ترمذي ابوداود ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** ① فَإِنِ اشْتَجَرُوا: که خلق خپلو کښې اختلاف اوکړی.

**تسهیلات:**

**نوټ:**- د دې حديث شرح د حديث نمبر (۳۱۲۶) په تسهيل کښې ذکر شوې دې.

**[۲۱۲۲] د ګواهانو څخه بغیرد نکاح فساد**

۳۱۳۲-[۷] (۲) ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ الْبَغَايَا اللَّاتِي يُنْكِحْنَ أَنْفُسَهُنَّ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ. ۳ وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ بدکاري ښځي چې په زنا کې مبتلا وي هغه دي چې بي شاهدانو خپله نکاح کوي، ۳ د دې روايت په باره کې زياته صحيح خبره دا ده چې دا په حضرت ابن عباس رضي الله عنهما باندې موقوف دی يعني دا دحضور ﷺ ارشاد نه دی بلکه خپله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول دی، (ترمذي)

**حل اللغات:** ① اَلْبَغَايَا: زناکاري او بدکاري ښځې

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی الولی (رقم-۲۰۸۳) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب (رقم-۱۱۰۲) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ لا نکاح إلا بولی (رقم-۱۸۷۹) واحمد فی السند: ۱۶۶/۶

۲) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء لا نکاح إلا ببینة (رقم-۱۱۰۳)

**تسهیلات: قوله: بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ:**

**په عقد نکاح کې د ګواهانو حیثیت:** -اهل ظواهر او ابن ابی لیلی رحمه الله طرف ته دا منسوب کولې شی چه دَعقد نکاح په وخت دَ دوو ګواهانو او ایجاب اوقبول اوریدل ضروری نه دی دَ جمهور امت په نیز دَ نکاح دَپاره دَ دوو ګواهانو موجود کیدل شرط دي البته امام مالک رحمه الله فرمائی چه دَښځې اوخاوند دَ ملاقات دَ وخت پورې دَ ګواهانو موجودکیدل ضروری دی. دَ جمهورو په نیزدَ عقدنکاح په وخت موجودکیدل کافی دی

**[۲۱۳۲] دَ ښځې خاموشی دَ رضا دلیل ګیدل**

---[۸] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «الْيَتِيمَةُ تُسْتَأْمَرُ فِي نَفْسِهَا فَإِنْ صَمَتَتْ فَهُوَ إِذْنُهَا ۳ وَإِنْ أَبَتْ فَلَا جَوَازَ عَلَيْهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ۲ د بالغي پیغلي ښځي نه دي د هغه د نکاح په باره کې اجازت حاصل کړل شي، او که هغه (د طلب اجازت په وخت) خاموشه شي، نو د هغي خاموشي د هغي اجازت دی. ۳ او که هغې انکاروکړي نو په هغې دي جبر نه کول کیږی. (ترمذي ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ① الْيَتِيمَةُ: بالغه پیغله جینۍ، دلته دَ یتیمې اطلاق په باکره بالغه ښځې باندې په اعتباردَ ما مضی شوي دي چه اول دا یتیمه وه اوس خودَ بلوغ نه پس "لایتم بعدالبلوغ" چه دَ بلوغ نه پس څوك یتیم نه پاتې کیږی.

---(۲) ۱ (وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي مُوسَى).

**ترجمه:** ۱ دارمي رحمه الله دا روایت د حضرت ابوموسٰی رضی الله عنه نه نقل کړي دی.

**تسهیلات: قوله: فَإِنْ صَمَتَتْ فَهُوَ إِذْنُهَا:**

**په نکاح کښې د ښځې د خاموشۍ مسئله:** -دَخاموشئ دَپاره په دې ضابطه باندې خان پوهه کول پکاردی چه دَښځې خاموشی دَ اجازت قائمقام کیدل صرف دَهغې دَولی په حق کښې دی یعنی ښځه به هغه وخت خاموش ګنړلې شی چه کوم وخت دَهغې ولی دَهغې نه دَ نکاح اجازت اوغوښتلو اوهغه چپ پاتې شی. داخاموشی دَ رضا قائمقام ده اوکه غیرولی دَ نکاح مطالبه اوکړه اوښځه خاموش پاتې شوه نودَ دغه چپ پاتې کیدو هیڅ اعتبارنشته دې. که چرې دَ یتیمې نکاح دَ پلار نه غیر اوکړې شوه نودَ بلوغ نه پس دَ احنافو په نیز هغې ته به دَ فسخ حق حاصل وی. فی الحال نکاح موقوف ده دَ شوافعو په نیزدا نکاح صحیح نه ده.

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی الاستئمار (رقم-۲۰۹۳) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی إکراه الیتیمة علی التزویج (رقم-۱۱۰۹) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: البکر یزوجها ابوها وهی کارهة (رقم-۳۲۷۰) واحمد فی المسند: ۲۵۹/۲

۲) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۸۵۲۱

## د مالک دَ اجازت څخه بغیر د غلام د نکاح عدم صحت

۳۳۰۵—[۹] (۱) ۱ وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ سَيِّدِهِ فَهُوَ عَاهِرٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم غلام چې د خپل مالک د اجازت نه بغير نکاح وکړي، هغه زنا کار دی. (ترمذي ابوداود دارمي)

**حل اللغات:** ① عَاهِرٌ: ای زان، زناکار،

**تسهيلات:** **قوله:** أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ:

### دمالک د اجازت نه بغير د غلام د نکاح په صحت کښې مذاهب:-

① دَ امام مالک رحمه الله په نيز دَ عبد نکاح دَ آقا دَ اجازت نه بغير جائز او صحيح ده امام احمد بن حنبل رحمه الله

② دَ امام شافعی رحمه الله په نيز دا نکاح باطل او صحيح نه ده.

③ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز غلام اهليت نه لری لهذا ايجاب او قبول هم موقوف دی او نکاح هم موقوف ده. مولی که چرې اجازت ورکړو نو نکاح نافذ ده ګنی موقوف به وی نو احناف دَ مولی اجازت ملاويدو په صورت کښې چه کومه نکاح نافذ منی په هغې کښې دوی امام مالک رحمه الله سره شوا و دَ عدم اجازت په صورت کښې احناف دا نکاح باطل منی نو په دې صورت کښې هغوی شوافعو سره شو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۱۳۶] دَ خپلې نکاح په معامله کښې د بالغې خودمختاری

۳۳۰۶—[۱۰] (۲) ۱ «عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ۲ إِنَّ جَارِيَةً بِكْرًا أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۳ فَذَكَرَتْ أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ كَارِهَةٌ. ۴ فَخَيَّرَهَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»-. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايې ۲ چې (يوه ورځ) يوه پيغله ښځه (چې بالغه وه) د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره شوه ۳ او هغې دا بيان وکړي چې د هغې پلار د هغې نکاح کړيده، چې هغه يې نه خوښوي، ۴ رسول الله ﷺ هغې ته اختيار ورکړي (که غواړي

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی نکاح العبد بغیر إذن سیده (رقم-۲۰۷۸) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی نکاح العبد بغیر إذن سیده (رقم-۱۱۱۱) وابن ما جه فی کتاب النکاح/ تزویج العبد بغیر إذن سیده (رقم-۱۹۵۹) واحمد فی المسند: ۳۷۷/۳

۲) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی البکر یزوجها أبوها ولا یستأمرها (رقم-۲۰۹۶) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ من زوج ابنته وهی کارهة (رقم-۱۸۷۵)

نکاح دي باقي وساتي که غواړي نو فسخ دي کړي، ابوداؤد

**حل اللغات** ①كَـارِهَةٌ: ناخوښه وه، خفه وه (په خپله نکاح باندې) ① فَخَيَّرَهَـا: نو اختيـار ئې ورکړو هغې ته (چه که باقي ئې ساتي او که فسـخ کوي ئې)

**تسهيلات: نوټ** - ددې حديث تشريح د حديث نمبر (۳۱۳۰) په تسهيل کښې تيره شوې دي

**[۳۱۳۷] د ولي دپاره د بالغې ښځې په نکاح ورکولو استحباب**

۳۱۳۷—[۱۱] (۱) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②«لَا تُزَوِّجُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ وَلَا تُزَوِّجُ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا ③فَإِنَّ الزَّانِيَةَ هِيَ الَّتِي تُزَوِّجُ نَفْسَهَا». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ښځه دې د بلې ښځې نکاح نه کوي او نه دې ښځه خپله نکاح په خپله کوي، ③ ځکه چې هغه ښځه به په زنا کې مبتلا وي، چې خپله نکاح پخپله کوي، (ابن ماجه)

**نوټ:** - د ښځو په عبارت سره د نکاح په انعقـاد کښې اختلاف مذاهب وړاندې تير شوې دې هغې ته رجوع اوکړئ.

**[۳۱۳۸] د اولاد درې حقونه**

۳۱۳۸—[۱۲] (۲) ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②«مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ فَلْيُحْسِنِ اسْمَهُ وَأَدَبَهُ ③ فَإِذَا بَلَغَ فَلْيُزَوِّجْهُ ④ فَإِنْ بَلَغَ وَلَمْ يُزَوِّجْهُ فَأَصَابَ إِثْمًا فَإِنَّمَا إِثْمُهُ عَلَى أَبِيهِ».

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد ﷺ او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د کوم سړي چې څوی پيدا شي، نو پکار دی چې د هغه ښه نوم کيږدي، او نيك آدب ورته وښايي (يعني د شريعت احکام او آداب او د ژوند بهترينې طريقې دې ورته وښايي چې په دنيا او آخرت کې کامياب شي) ③ او بيا چې هغه بالغ شي، نو د هغه نکاح دې وکړي، ④ که هلك بالغ وي (او غير مستطيع وي) او د هغه پلار (د هغه په نکاح کولو د قادر کيدو باوجود) د هغه نکاح ونه کړي، او بيا هغه هلك په بدي کې مبتلا شي (يعني د بدکارۍ بې راه روي ښکار شي) نو د هغه گناه به په پلار وي.

**تسهيلات: قوله:** مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ فَلْيُحْسِنِ اسْمَهُ

**داولاد په حق کښې د والدينو ذمه واري:** - اسلام يو صالح معاشره تشکيل کوي. دَ بچو رومبني مدرسه دَ والـدينو کوروی کـه دَ هغه ځائي نـه ئي ښه بنيـاد واچـولې شـو نـو دَ ژوندترآخره پورې به دا بنياد په کارراځي اوکه چرې دَ ژوند په دې شروع مرحله کښې بنياد

(۱) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب النكاح/ استئمار البكر والثيب (رقم-۱۸۷۲)
(۲) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۸۶۶۶

خراب شو نوبیا به تر آخره پورې داخراب وی او پوره معاشره به په خپله ګیره کښې واخلی

**په والدینو د اولاد دريم قسمه حقوق:** - په دې حدیث کښې والدین ته هم دَدغه بنیادی خیزونونه دَ دریو تعلیم ورکړې شوې دې

① والدین دې دَ پیدائش په وخت دَ ماشوم ښه نوم کیږدی اسلامی نوم کیږدی دَ دې ښه اثر به پوره ژوند کښې وی

② والدین دې ماشوم ته صحیح تعلیم ورکړی دې دَپاره چه ماشوم جاهل پاتې نه شی دَتعلیم مقصد ښه لازخودنه ده چه ماشوم دَ خالق اومخلوق حقوق اوپیژنی. دینی تعلیم هیرول او سکول ونیل دَ بې مقصد تعلیم حاصلولو په شان دې

③ والدین دې دَبلوغ نه پس دَ ده نکاح اوکړه دې سره به دا فائده وی چه بچې به دخرابولارو نه بچ شی اودَ زنا دَ هلاکونکی اثراتو نه به محفوظ پاتې شی

دَ حضرت مولنامفتی محمدشفیع رحمه الله په حواله سره داخبره مشهوره ده هغوی به فرمائیل چه هلك دَ خوارلسو کالووی او جینئی دَ پنځلسوکالو نودَ دواړو دَ پاره په دغه عمر کښې واده کول لازمی اوګرځوئی نوتقریباً زنا به ختمه شی.

**د نبي كريم ﷺ د يو هلك پلار ته زورنه وركول:** -دَدې حدیث په آخره کښې دَ تشدیداوتهدید ،تغلیظ او تویبخ په توګه دااوفرمائیلې شوچه دَ بلوغ نه پس ناواده کړې هلك یا جینئی دَ زنا وغیره فحاشئی ګناه اوکړه نودَدې نقصان به په پلار وی. یعنی پلار به نی په دې ګناه کښې شریك ګنړلې شی په دې شرط چه هغه ته څه شرعی عذرنه وی دَ راتلونکی روایت مضمون هم دا شان دې.

**[۳۱۳۹] په بلوغت سره د جینۍ د نکاح کولو ترغیب**

[۱۳] (۱) ① وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② قَالَ: «فِي التَّوْرَاةِ مَكْتُوبٌ: ③ مَنْ بَلَغَتِ ابْنَتُهُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً وَلَمْ يُزَوِّجْهَا ④ فَأَصَابَتْ إِثْمًا فَإِثْمُ ذَلِكَ عَلَيْهِ» . رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه او حضرت انس ابن مالك رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي ② چې رسول الله ﷺ وفرمایل په تورات کې لیکلي دي ③ چې د کوم سړي د لور عمر چې دولس کاله شي او هغه (د کفو موندلو باوجود) د هغی نکاح ونه کړي، ④ او بیا هغه جینۍ په بدکاري وغیره کې مبتلا شي، نو د هغې ګناه د هغي د پلار په سر ده، دا دواړه روایتونه بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړي دی

**حل اللغات** ① فَإِثْمُ ذَلِكَ عَلَيْهِ: نو ددې ګناه ئې په پلار ده

---

(۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۸۶۶۹

**تسهیلات:**

**قوله** فَأَصَابَتْ إِمَّا فَإِثْمُ ذَٰلِكَ عَلَيْهِ:

**په نکاح کښې د غیر ضروری شرائطو لګولو نتیجه:** -مسلمانانو غیر مسلموته په کتلوسره دغه‌وی رسم اورواج اوغلط رسومات اوبدعات په خپل غم اوخوشحالنی کښې داخلولوسره دخپل خان دپاره مشکلات پیدا کړی دی دَ جهیز جوړولودپاره خیرغوښتلې شی او خانې په خانې دعاګانې کولې شی چه دَ لونړو دَ رشتو انتظام اوشی لیکن دَدغه رشتودپاره چه کوم اوږده اوږده اوبیکاره شرطونه کیخودې شی دهغې پوره کول آسان نه وی نونتیجه دا راؤخی چه ماشومانې په کلونو باندې دَ بلوغت نه پس په کورونو کښې ناستې وی او په قسماقسم ګناهونوسره ګنده کیږی. هم دغه حال دَ هلکانوهم دې اسلام دَ حق مهراداکولونه سوا دَ واده دَ پاره هیڅ قسم تکلف نه دې لازم کړې

# [۳] بَابُ إِعْلَانِ النِّكَاحِ وَالْخِطْبَةِ وَالشَّرْطِ

**دَ نکاح اعلان ، خطبه اوشرائط**

**خلاصة الباب: -**

**فيه عشرون أحاديث مشتملة على ست مسائل:**

① طريق إعلان النكاح- , الدف: ۱، - اللهو: ۲، . في المسجد: ۱۳- / الصوت: ۱۴- الغناء: ۱۵، ۲۰- ، الغزل: ۱۶-

② عدم الاختطاب على خطبة الغير: ۵-

③ الخطبة (بضم الخاء) ۲، ۱۱، ۱۲-

④ الرد على تحريم بعض الأوقات للخطبة والنكاح: ۳-

⑤ شروط النكاح الجائزة وغير الجائزة , الجائزة: ۴- - الغير الجائزة: ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۸، ۱۹-

⑥ إنفاذ إنكاح الولي الأول في صورة إنكاح الوليين: ۱۷-

**د نکاح د اعلان په سلسله کښې شرعی آداب:** - په دې باب کښې دَ نکاح واجبات، آداب، سنن، مستحبات او دَنورو ضروریاتو په ډیرواضحه انداز سره بیان راغلې دې

① دَ ټولونه اول دا اعلان کیدل پکاردی چه نکاح دې دَ دوو ګواهانو په وړاندې وی ګنی صحیح به نه وی

② دَ نکاح دې ښه تشهیراوکړې شی په ښکاره جمات کښې دې وی. دَ جانبین دَ بزرګانو اودَعلاقې دَ معززینو په وړاندې دې وی. په دې کښې دَجائز حده پورې دَعلاقې دَ دستور مطابق دې ډزې وی ځکه چه په دې کښې یوه فائده دَ تشهیر ده او دویمه فائده دَ ښنې

پخولو ده او دريمه فائده دَ جهادي تربيت ده خو دَ اسراف نه بچ كيدوسره دې په ښه نيت سره كوی

③ دَ اعلان نكاح په سلسله كښې تمبل وهل هم شته چه دَ جائزحد پورې وی. په دې كښې يوه فائده دَ تشهيرنكاح ده دې دپاره چه دَ سازشی نكاح نه شرعی نكاح جدا شی دريمه فائده داده چه په ماتم غم او واده كښې فرق راشی چه داواده دې غم نه دې

④ دَ وليمې دعوت هم يو ادب دې دې دپاره چه عام تشهيراوشی او هرسازش بندشی خطبه دَ نكاح هم دَاعلان دَ تشهير ذريعه ده. دا ټول كارونه دَ تشهيرپه غرض سره جائزدي بعضې واجب دی بعضې مستحب او مسنون او يامباح دی.

ليكن ددې باوجود دَ يومسلمان نكاح دَ جاهليت او اهل بدعت دَ ټولو رسوماتونه پاك كيدل پكاردی دَ يهود هنود او اهل باطل دټولو خرافاتو نه ددې پاك كيدل دَ اسلام ايمان شريعت اوشرافت تقاضاده مثلاً ګانې بجانې، آتش بازئی، بې پردګی سهره تړل په اسونو سوريدل دَ بازارونو چكروهل اودَ ناوې اوزلمی غيراخلاقی حركات فضول دی.

**د خطبې شرعی حيثيت:** –دا لفظ په ضمه اوكسره دواړه شان لوستلې شوې دې كه دَ خاء ضمه وی نودَنكاح خطبه به مراد وی اودا خطبه دَ احنافو او شوافعو ټولوپه نيزمسنون ده البته شوافعو دَ هرعقد په موقع خطبې ته مسنون وائی. مثلاً دَ بيع او شراء په وخت هم دَهغوی په نيزخطبه مسنون ده. اوكه چرې دا لفظ دَ خاء كسره سره وی نوبيا دَ نكاح دَپيغام په معنی كښې دې دَ باب په احاديثو كښې دواړه څيزونه دی ليكن خطبه مسنونه مراد اخستل ډير واضح دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۳۱٤۰] دَ نكاح په وخت د تمبل وهلو اجازت

۳۱۴۰–[۱] (۱) ① عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ قَالَتْ: «جَاءَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② فَدَخَلَ حِينَ بُنِيَ عَلَيَّ فَجَلَسَ عَلَى فِرَاشِي كَمَجْلِسِكَ مِنِّي ③ فَجَعَلَتْ جُوَيْرِيَاتٌ لَنَا يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ وَيَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِي يَوْمَ بَدْرٍ ④ إِذْ قَالَتْ إِحْدَاهُنَّ: وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ ⑤ فَقَالَ: دَعِي هَذِهِ وَقُولِي بِالَّذِي كُنْتِ تَقُولِينَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① بې بې روبيع بنت معوذ بن عفراء وايې چې دنكاح نه وروسته چې د خپل خاوند كور ته رخصتولو سره راغلم، ② نو رسول الله ﷺ زمونږ خواته تشريف راوړو، او زما په بستره داسې كيناستلو څنګه چې ته زما په بستره ناست يې (ربيع دا خبره حضرت خالد ابن ذكوان مخاطب كولو سره اوويل كوم چې دا روايت يې نقل كړي دی) ③ او زمونږ د

۱) اخرجه البخاری فی كتاب النكاح رقم الحديث ۵۱۴۷. وابن ماجه فی كتاب النكاح / الغناء والدف (رقم-۱۸۹۷)

شهيدان ورو لونړو (چې هغه وخت زمونږ په کور کې موجودې وې) دريا (تنبل) غړول شروع کړل او زمونږ د پلرونو نه چې کوم خلق په جنګ بدر کې شهيدان شوي وو. د هغوئ په خوبئ او شجاعت مشتمل اشعار يې شروع کړل.④ په دې دوران کې يوې وړوکې جينئ دا اوويل چې او زمونږ په مينځ کې هغه نبي ﷺ دی چې صبا کيدونکي خبره ورته معلومه وي.⑤ حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې دا خبره پريږده (يعني دا قسم خبرې مه کوه) بلکه هغه وايه څه چې دې مخکې ويل. (بخاري) ① حِينَ بُنِيَ عَلَيَّ: کله چه څه ناوې جوړه شوم، يعنی د خپل خاوند کور ته په ناوې توب راغلم.② كَمَجْلِسِكَ مِنِّي: لکه څنګه چه ته اوس ما سره ناست ئې، داخطاب حضرت خالدبن ذکوان ته دې ③ جُوَيْرِيَاتٌ: نابالغې جينکئ.④ يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ: چه تنبل ئې وهلو. دف ډهولکې يا په څه لوښی وغيره باندې څرمن تړلوسره غړونکی څيزته وائی دکوم نه چه دَ دف دف آواز راوځی نودا "تسمية الشئ باسم صوته" دې.⑤ وَيَنْدُبْنَ: او تعريف ئې کولو، بهادری ئې بيانوله

**تسهيلات:**

**قوله: فَجَلَسَ عَلَى فِرَاشِي:**

**د نبی کريم ﷺ ربيع رضي الله عنها سره بغير دَ پردې کيناستو وجوهات:-**

① جلوس حجاب سره وو يعنی دَ سترد اصول مطابق وو.

② دَ اجنبی ښځې مخ او لاسونه په وخت دَ ضرورت کتل جائز دی

③ نبی کريم دَ امت دَ سرو او ښځودپاره په منزله دَ پلار وو نود پردې سوال نه پيداکيږی دا آخری جواب علامه عينی رحمه الله ورکړې دې دَچانه چه په اکثرو موقعو دې قسم سوالونو جوابونه کيږی

**قوله: يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ:**

**د تنبل د جواز حکم:** - په تنبل کښې به باجې سرناګانې چنګ رباب ستار او هارمونيم نه وی که چرې دا څيزونه وی نو په اتفاق سره حرام دی

① بعضې علماؤ مطلقًا هروخت دف غړول منع کړی دی

② بعضې هروخت مطلقًا مباح ګرځولی دی مګر اصل مسئله داده چه په اخترونوکښې سنتونوکښې واده ښادئی په موقعو کښې دَ دف غړولو ذکر په احاديثوکښې په کثرت سره ملاويږی مثلاً يوخو هم دغه زير بحث حديث دې

دې نه پس دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها والا حديث دې. دغه شان په ص ٢٧٢ باندې دَ حضرت عائشه روايت دې. دې نه پس دَحاطب جمعی رضي الله عنه روايت دې، دې نه پس بيادَ حضرت عائشه رضي الله عنها روايت دې. دا ډيراحاديث دَ جواز او اباحت واضح دلائل دی. په دې

مسئله کښې حضرت مولانا محمد شفیع رحمه الله احکام القرآن کښې د سورت لقمان په فوائدو کښې ډير تفصيلي بحث اوتفصيل بيان کړې دې اود غناء اوسماع قواعدنې بيان کړې دی هغه هم هلته کتل پکار دی خلاصه دا چه د مسلمانانو په خوشحالئی او غم کښې فرق کيدل پکاردی واده غم نه دې دا په غم کښې بدلولوسره د ناوې په مجلس کښې قرآن خوانی نه دی کول پکار اونه دعوت وليمه د دعوت خيرات په نوم سره يادول پکار دی لکه چه بعضې خشك صوفيان ئې کوی

**قوله** مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِي يَوْمَ بَدْرٍ:

**په شعرونو کښې د جهاد او مجاهدينو بهادرئ بيانول :-** حضرت معوذ رضي الله عنه د بدر د شهيدانونه وو د آبائي په لفظ سره هم د هغه طرف ته اشاره کړې شوې ده چونکه په دې اشعاروکښې د مجاهدينو، جهاد اوجوش اوشجاعت تذکرې وې په دې وجه نبی کريم خاموش وو

**قوله** وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ

**د نبی کريم ﷺ د علم غيب مسئله :-** ليکن چه کله دغه ماشومانو جينکو "وفينا رسول الله يعلم ما في غد" وئيل نونبی کريم هغوی منع کړې ځکه چه په دې سره د فساد عقيده خطره وه ځکه چه علم غيب د الله تعالى د خصوصي صفاتونه دې علامه طيبی رحمه الله په دې مقام بندې ليکی چه نبی کريم دغه ماشومه د دې شعر وئيلونه ځکه منع کړه چه "لكراهة ان يسند علم الغيب اليه مطلقا لان الغيب لا يعلمه الا الله" (طيبی ج۶ص۲۵۴)

**[۳۰۳] د واده په موقع د تنبل وغيره غږولو اجازت**

۳۰۳- [۴] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: زُفَّتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ ② فَقَالَ نَبِيُّ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «مَا كَانَ مَعَكُمْ لَهْوٌ؟ ③ فَإِنَّ الْأَنْصَارَ يُعْجِبُهُمُ اللَّهْوُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه رضي الله عنها وايې چې يوه ښځه د نکاح نه وروسته رخصتولو سره په انصارو کې يو سړي ته را وستل شوه. ② نو رسول الله ﷺ (هغه سړي ته) وفرمايل چې آيا تاسره لوبه (يعني دريا (تنبل) او سندرې) نشته (يعني شريعت چې په واده او کوژدن کې د کوم دريا (تنبل) غږولو اجازت ورکړي دی او د کوم قسم سندرې چې يې جائز ګرځولې دي ستا واده ددې څيزونونه ولې خالي دي. ③ ځکه چې انصار خودا څيزونه ډير خوښوي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① زُفَّتِ امْرَأَةٌ: يوه ښځه د نکاح نه وروسته رخصتولو سره راوستلې شوه، ② اَللَّهْوُ: د لوبو او سندرې وئيلو آله. تنبل وغيره

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب النسوة اللاتی يهدين المرأة إلى زوجها ودعائهن بالبركة (رقم-۵۱۶۲)

**تسهيلات: قوله: مَاكَانَ مَعَكُمْ لَهْوٌ؟**

**د مذكوره جملې تركيب:** - ما نافيه دې او همزه د انكار دې تقديري عبارت به داشان وي (أي لم يكن معكم ضرب دف وقراءة شعر ليس فيه إثم) يعنى آيا ستاسو سره دف نشته دې او شعر ويونكي چې په كښې څه ګناه نه وي

**[٢١٤٢] د شوال په مياشت كښې د نكاح كولو استحباب**

٣٢٢-[٣] (١)① «وَعَنْهَا قَالَتْ: تَزَوَّجَنِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي شَوَّالٍ وَبَنَى بِي فِي شَوَّالٍ② فَأَيُّ نِسَاءِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ أَحْظَى عِنْدَهُ مِنِّي؟». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي رسول الله ﷺ زما سره د شوال په مياشت كې نكاح وكړه، او بيا (دري كاله وروسته) د شوال په مياشت كې زما رخصتي سره يې خپل كور ته راوستم،② اوس (تاسو وښايئ چې) د رسول الله ﷺ په بيبيانو كې كومه بي بي به زما نه زياته خوش نصيبه وي، (مسلم)

**حل اللغات:** ①وَبَنَى بِي: رخصت كولو سره ئې راوستلم ②أَحْظَى: زياته خوش نصيبه. زياته خوښه

**تسهيلات: قوله: فِي شَوَّالٍ:**

**د شوال په مياشت كې د واده كولو باره كښې د نحوست عقيده ساتلو ترديد:** -دَ جاهليت خلقو به دَ شوال په مياشت كښې واده سپيره ګڼړلو لكه څنګه چه نن صبا بعضې جاهل خلق دَ دوو اخترونو په مينځ كښې يا شعبان يا محرم كښې واده كول بد ګڼړي حضرت عائشه رضي الله عنها هم دَدې ترديد كړې دې كه چرې دا سپيره وې نو زما واده خو په شوال كښې شوې دى رخصتى هم په شوال كښې شوې ده زه څومره خوش نصيبه يم.

**[٢١٤٣] د مهر د اداء كولو تاكيد**

٣٢٣-[٣] (٢)① وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«أَحَقُّ الشُّرُوطِ أَنْ تُوفُوا بِهِ③ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفُرُوجَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**① او حضرت عقبه ابن عامر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② د كومو

---

١) اخرجه مسلم فى كتاب النكاح/ باب استحباب التزوج والتزويج فى شوال، واستحباب الدخول فيه(رقم-٧٣ - (١٤٢٣) والترمذى فى كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى الأوقات التى يستحب فيها النكاح (رقم-١٠٩٣) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ متى يستحب البناء بالنساء (رقم-١٩٩٠)واحمد فى المسند: ٥٤/٦

٢) اخرجه البخارى فى كتاب النكاح/باب الشروط فى النكاح (رقم-٥١٥١) ومسلم فى كتاب النكاح/ باب الوفاء بالشروط فى النكاح (رقم-٦٣ - (١٤١٨) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب فى الرجل يشترط لها دارها (رقم-٢١٣٩) والترمذى فى كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى الشرط عند عقدة النكاح (رقم-١١٢٧) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب:الشروط فى النكاح (رقم-٣٢٨١)وابن ماجه فى كتاب النكاح/ الشرط فى النكاح (رقم-١٩٥٤) واحمد فى المسند: ١٤٤/٤

شرطونو پوره کول چې ستاسو د پاره ضروري دی[۳] په هغوی کې د ټولو نه مهم شرط هغه دی چې د هغه په ذریعه تاسو شرمګاوی وربانده حلال کړي دي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ①أَحَقُّ الشُّرُوطِ: د ټولو نه ډ اهم شرط نه مراد د ښځې مهر دي

**تسهیلات: قوله -أَحَقُّ الشُّرُوطِ:**

**د شرط په مراد کښې دوه اقوال:-**

① د شرط نه مراد یاخومهر دې لکه څنګه چه اولیکلې شو

② اویا د ښځې اوخاوند په مینځ کښې حقوق زوجیت مراددي کوم چه د خاوندپه ذمه وی لکه چه د نان نفقه اومکان وغیره ضروریات دی

**په دې حیزونو د شرط د اطلاق وجه:-** چونکه د عقد نکاح په وخت خاوند صراحةً یا دلالةً اقرار او عهد کوی چه زه به دغه ټول حقوق پوره کوم هم دغه عزم اوعهد د شرط په نوم سره یادکړې شوې دې دې نه علاوه د دورازکار شروطو د اسلام سره هیڅ واسطه نشته کوم چه د روافض وغیره په نیزرائج دی

**د نکاح درې شرطونه:-** په نکاح کښې درې قسمه شرطونه کیدې شی

① هغه شرطونه چه د عقدنکاح د تقاضو موافق وی اود لوازم نکاح نه وی لکه روټئی کپړا مکان وغیره ددې شرطونو پوره کول ضروری دی.

② هغه شرطونه چه د عقدنکاح د تقاضومنافی وی. دا قسم شرط پوره کول ضروری نه دی اونه ددې څه اعتبارشته.

③ هغه جائز شرائط چه نه د عقدنکاح د تقاضو منافی وی اونه د عقدنکاح د لوازماتو نه وی لکه په یوخاص کورکښې د اسولوشرط، په یوخاص علاقه کښې د اوسیدو شرط داسې شرطونه پوره کول د حسن سلوك په بنیادخو صحیح دی لیکن دا څه شرعی ضابطه اوداسې قاعده نه ده دکوم پابندی چه لازم وی "احق الشروط" مبتداء دې او "مااستحللتم" خبر دې او "ان توفوابه" دې شروط سره بدل دي

**[۲۱٤٤] د بل چا مخطوبې ته د نکاح پیغام ورلیږلو ممانعت**

۳۲۳-[۵] (۱)[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا يَخْطُبُ الرَّجُلُ عَلَى

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب لا یخطب علی خطبة أخیه حتی ینکح او یدع (رقم-٥١٤٤) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب تحریم الخطبة علی خطبة أخیه. حتی یاذن أو یترک ٠٥٢ - (١٤١٣) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی کراهیة أن یخطب الرجل علی خطبة أخیه (رقم-٢٠٨٠) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی سؤال النبی صلی الله علیه وسلم ثلاثا فی أمته (رقم-٢١٧٥) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب النهی أن یخطب الرجل علی خطبة أخیه (رقم-٣٢٤١) وابن ما جه فی کتاب النکاح/ لا یخطب الرجل علی خطبة أخیه (رقم-١٨٦٧) ومالک فی الموطا کتاب النکاح/باب ما جاء فی الخطبة (رقم-١)

خِطْبَةِ أَخِيهِ حَتَّى يَنْكِحَ أَوْ يَتْرُكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] هيڅ سړی دي د خپلې نکاح پيغام د خپل يو مسلمان ورور په پيغام نه ليږلو ، ددي پورې چې هغه ورسره نکاح وکړي يا يې ترک کړي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① خِطْبَةِ: داد خاء کسره سره دې ، دنکاح پيغام ته خطبه وائی

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَخْطُبُ الرَّجُلُ:

**د نکاح پيغام ليږلو دپاسه د بل چا د پيغام ليږلو ممانعت:** - اسلام بغض حسد اوتنازعت اودې اسباب ختمول غواړي. نوچه کله يومسلمان په يوعقد کښې لګياوی نوترکومې پورې چه دهغه معامله ختمه نه وی بل مسلمان په دې کښې داخليدې نه شی دې دپاره چه بغض حسد اوعداوت جوړنه شی. هم په دې سلسله کښې دا حديث دې چه دخبرو اترو په وخت اود معامله د فيصلې په وخت مداخلت مه کوئی ترهغه وختـه پورې چه دهغې نکاح اوشی يا مخطوبه پريخودې شی.

**اشکال:** - دلته يو فنی اعتراض دې اوهغه دادې چه "حتی ينکح" جمله "لايخطب" جمله باندې متفرع ده ليکن د دغه نهی دپاره داجمله غايه نه شی جوړيدې ځکه چه په دې صورت کښې به ترجمه داسې شی هيڅ يوسړې دې د خپل مسلمان رور د نکاح په پيغام باندې دې د نکاح پيغام نه ليګی ترهغې پورې چه دغه رور نکاح اوکړی يائی ترک کړی، نوچه کله دغه رور نکاح اوکړه بيا هغه د دغه سړی منکوحه ښځې ته د نکاح پيغام څنګه ورکولې شی؟

**د اشکال دوه جوابونه:** - ① د حتی کلمه په معنی د "کی" ده او "او" کلمه د "الی ان" په معنی کښې ده او د "ينکح" ضمير د دغه نوی سړی طرف ته راجع دې اود "يترك" ضمير دهغه دمسلمان رور طرف ته راګرځی. ترجمه به داسې شی هيڅ يوسړې دې دخپل مسلمان رور د نکاح په پيغام باندې د نکاح پيغام نه ليګی دې دپاره چه هغه ښځې سره هغه پخپله نکاح اوکړی تردې چه دهغه مسلمان رور هغه ښځه ترک کړی. ددې توجيه مطابق په حديث کښې نهی دپاره غايه صرف د يترك جمله ده ينکح به نه جوړيږی.

② علامه طيبی ﷫ دې اعتراض کولوسره بيا دوه جوابونه ورکړی دی. اول جواب دادې چه داکلام د تعليق بالمحال په توګه باندې دې. يعنی فرض کړه که داسې دنکاح پيغام ورکولې شی او ممکن وه نو وردې کړی ليکن د نکاح نه پس بيا پيغام ورکول جائز نه دی لهذا پيغام دې نه ورکوی.

**د ممانعت وخت:** - جمهورعالمان فرمائی چه که ښځې يا د هغې ولی په واضح توګه باندې

دا پیغام قبول کړو او دَدواړو طرفونه رضامندی اوشوه صرف عقد نکاح باقی دې نو دغه وخت کښې دَ بل چا پیغام لیګل ناجائز دی او که په واضحه توګه باندې رد کړو نو اتفاقاً پیغام ورلیګل جائز دی [ الکاشف ۲/۲۸۰.]

**[۲۱٤۵] ښوته په خپل مینځ کښې د محبت تعلیم**

۳۱۴۵–[۲] (۱) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا تَسْأَلِ الْمَرْأَةُ طَلَاقَ أُخْتِهَا [۳] لِتَسْتَفْرِغَ صَحْفَتَهَا وَلِتَنْكِحَ [۴] فَإِنَّ لَهَا مَا قُدِّرَ لَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ښځه دي (يو سړي ته) د خپلې دينې يوې خور په باره کې دا نه وايي، چې هغې ته طلاق ورکړه، [۳] او هغې ښځې ته د طلاق ورکولو مقصد دا وي چې هغه د هغه پيالې خالي کړي (يعني هغې ته طلاق ورکولو سره د هغې ټول حقوق په خپله را ټول کړي) او د هغې د خاوند سره خپل نکاح وکړي، [۴] ځکه چې هغې د پاره هغه دی کوم چې د هغې په مقدر کې ليکل شوی دی. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① لِتَسْتَفْرِغَ: استفرغ دَ فراغت نه دې دَخالی کولو په معنی کښې دې. ① صَحْفَتَهَا: "صحفة" نه مراد لوبه پیاله او کاسه ده په کوم کښې چه پنځه کسان خوراك کولې شي.

**تسهیلات:**

**قوله:** لِتَسْتَفْرِغَ صَحْفَتَهَا:

**د حدیث په مفهوم کښې دوه اقوال:-** ① دَ یوسړی په نکاح کښې دوه ښځې وی مګر یوه بنه وائی چه دا دویمه فارغه کړه، دې دَپاره چه دَدې کاسه زما دَپاره خالی شی "والتنکح" دَدې دویم مفهوم مطابق به دَدې کلمې ترجمه داسې شی چه هغه مطلقه سابقه ښځه چرته بل خوا لاړه شی بل سړی سره نکاح اوکړی. نبی کریم ددې نه مسلمانانې ښځې منع کړی دی ځکه چه هرې یوې ښځې سره خپل قسمت راځی نودَدې بداخلاقئی او بدخواهئی څه فائده ده ② یوسړې دې دَهغه یوه ښځه ده په هغې باندې دې دویمه ښځه کول غواړی لیکن دا نوې راتلونکې ښځه وائی چه زه به هله نکاح کوم چه ته اولې ښځې له طلاق ورکړې کور نه ئې لرې کړی چه انګړ او خانې زما دَپاره خالی شی. "والتنکح" یعنی دَ مخکینې ښځې خاوندسره دا نوې راتلونکې ښځه پخپله نکاح اوکړی.

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب الشروط التی لا تحل فی النکاح (رقم-۵۱۵۲) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب تحریم الجمع بین المرأة وعمتها أو خالتها فی النکاح (رقم-۳۸ - (۱٤۰۸) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/ الرجل یراجع. ولا یشهد (رقم-۲۱۸٦) والترمذی فی کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء لا تسأل المرأة طلاق أختها (رقم-۱۱۹۰) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب النهی أن یخطب الرجل علی خطبة أخیه (رقم-۳۲۳۹) واحمد فی المسند: ۲/۳۱۱

**[۳۱٤٦] دَ نکاح شغار ممانعت**

[۲۱٤٦] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: نَهَى عَنِ الشِّغَارِ ② وَالشِّغَارُ ③ أَنْ يُزَوِّجَ الرَّجُلُ ابْنَتَهُ عَلَى أَنْ يُزَوِّجَهُ الْآخَرُ ابْنَتَهُ وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا صَدَاقٌ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: لَا شِغَارَ فِي الْإِسْلَامِ».

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر ﷠ وايي چې حضور ﷺ د شغار نه منع کړيده. ② او شغار دا دى چې يو سړى (د يو دويم سړي سره) د خپلې لور نکاح په دې شرط وکړي. ③ چې هغه دويم سړي به د خپلې لور نکاح د هغه سره کوي، او په دواړو کې مهر هيڅ نه وي. (بخاري مسلم) ④ او د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل په اسلام کې شغار جائز نه دى.

**حل للغات:** ① اَلشِّغَارُ: اوچتول، مهر ختمول، خپله لور يا خور د بل د لور يا خور په بدل کښې ورکول چه مهر پکښې نه وى. ② صَدَاقٌ: مهر،

**تسهيلات:**

**قوله: نَهَى عَنِ الشِّغَارِ:**

**د لفظ شغار ماخذ او د نکاح شغار وجه تسميه:** - شغار دَ شغر نه ماخوذ دې اوشغر دَ اوچتولو په معنى کښې راځى. چنانچه کله چه سپې خپه اوچتولوسره متيازې کوى نوونيلى شى "شغرالکلب". دلته دَ شغار په دې معامله کښې مهر دَ مينځ نه اوچتولې شى په دې وجه دې ته هم شغر اوونيلې شو يا دا چه هريودَ بل په لور يا خور باندې په خپله خپه اوچتولو سره عقد کوى په دې وجه دا شغارشو او په دې کښې دَهرقسم دَ عار اوشرم طرف ته اشاره ده د شغار صورت خو په دې حديث کښې ترجمه سره بيان شوې دې. لږ شان په نوروضاحت سره داسې اوګنړئى چه شغاردادې چه يوسړې بل سړى ته اووائى ماته خپله لورپه نکاح کښې راکړه هغه ورته اووائى چه ته خپله لور زما دَ لور په عوض کښې ماته په نکاح کښې راکړه دغه شان دَ دواړو په راضى کيدو باندې عقد کيږى او په مينځ کښې مهر نه وى بلکه دَ جينکو دا بدلول مهر منلې شى صرف هم دغه عقد لکه چه دَ يو بل دَپاره مهر دې.

**دشغار د نکاح په حکم کښې مذاهب:-**

دَ شغار د نکاح په جواز او عدم جواز کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې ① جمهور فرمائى دا عقد باطل دې

---

۱) اخرجه البخاری في كتاب النكاح/باب الشغار (رقم-۵۱۱۲) ومسلم فى كتاب النكاح/ باب تحريم نكاح الشغار وبطلانه (رقم-۵۷ - (۱٤۱۵) واخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب فى الولى (رقم-۲۰۸٤) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب:تفسير الشغار (رقم-۳۳۳۷) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ النهى عن الشغار (رقم-۱۸۸۳) ومالک فى الموطا كتاب النكاح/باب جامع ما لا يجوز من النكاح (رقم-۲٤) واحمد فى المسند: ۱۹/۲

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی عقد صحیح دې نکاح خو شوې ده البته مهرمثل به ورکولې کیږی احناف دَ دې حدیث ترجمه داسې کوی "لاشغارفی الاسلام" یعنی په اسلام کښې په یوعقدکښې داسې شرط صحیح نه دې نوشرط باطل دې نفس عقد اوشو مهرمثل ورکول به لازم وی

**د عقد د صحت او د شرط د بطلان صورتونه:-** احناف فرمائی چه په ډیرو مسائلوکښې دَ دې مثالونه موجود دی چه عقد صحیح وی اوشرط باطل وی. مثلاً

① نکاح اوکړې شوه او په مهرکښې شراب یا خنزیر مقررکړې شی نودَ ټولو په نیز عقد صحیح دې لیکن مهر مثل به ورکولې کیږی.

② په خندا قهقه سره د مونځ نه وتل جائز نه دی خو که یوکس د مونځ د وتلو په نیت د سلام په ځائې په مانځه کښې په کړس کړس (قهقه) سره اوخاندل نوناجائزه عمل ئې اوکړلو خو مونځ ئې پوره شو نو په نکاح شغار کښې هم چې په احادیثوکښې چه دکوم شغارنه نهی راغلې ده هغه په خپل ځائی صحیح ده مګر دَدې په ضمن کښې عقد منعقد کیږی.

**خلاصه د بحث:-** خلاصه دا چه دشغار په معامله کښې داطریقه اوطرز باطل دې نفس نکاح صحیح ده نومهرمثل به ورکوی. زیلعی رحمه الله وئیلی دی دا عقد اومعامله مکروه ده لیکن په کراهت سره په یوڅیز کښې فساد خونه راځی او دَمهرمثل ورکولو نه پس بیا شغار نه پاتې کیږی. دا بحث اوتحقیق په خپل ځائی لیکن حکم دادې چه مسلمانانو له دَ دې قسم نکاح کولونه په سختئی سره ځان ساتل پکاردی اونهی هم په دغه کراهت باندې محمول ده.

## [۳۱۴۷] د نکاح متعه ممانعت

۳۱۴۷-[۸] (۱) ۱ «وَعَنْ عَلِيٍّ ۲ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: نَهَى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ يَوْمَ خَيْبَرَ ۳ وَعَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْحُمُرِ الْإِنْسِيَّةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت علي کرم وجهه فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ د ښځو سره د متعه کولو نه منع وفرمايله. ۳ او د کورني خرو د غوښو خوړلو نه يې هم منع وفرمايله (د کورني خرونو نه هغه خرونه مراد دي کوم چې په کور کې ساتل کېږي او د بار برداری وغيره په کار کې راځي، ځنګلي خر چې هغه ته ګور خر وايي حلال دی، د هغه غوښه خوړل کيدی شی، (بخاري مسلم)

۱) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة خیبر (رقم-۴۲۱۶) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب نکاح المتعة. وبیان انه ابیح. ثم نسخ. ثم ابیح. ثم نسخ. واستقر تحریمه إلى یوم القیامة (رقم-۲۹ - (۱۴۰۷) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی تحریم نکاح المتعة (رقم-۱۱۲۱) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب:تحریم المتعة (رقم-۳۳۶۶) ومالک فی الموطا کتاب النکاح/باب نکاح المتعة(رقم-۴۱)

**حل اللغات** ① مُتْعَةٌ: د يوې مقرر مودې دپاره، د مقرر رقم په عوض نکاح کولو ته متعه وائی مثلاً یو سړې یوې ښځې ته داسې اووائی زه د دوو کالودپاره یا د دوو میاشتودپاره په عوض د دومره رقم تاسره نکاح کوم ② الْحُمُرُ الْإِنْسِيَّةُ: کور کښې ساتلی شوی خرونه، کورنی خرونه.

**د متعې د حرمت تاریخی پس منظر:** - متعه یوسازشی نکاح ده ، نه په دې کښې گواه شته نه په دې کښې د ولی اجازت شته او نه دکفو اوخاندان سوال دې نه ایجاب دې نه قبول نه دې متعه د جاهلیت د نکاحونونه یوه نکاح وه د اسلام په شروع کښې دا هم دغه شان روانه وه څه نوې حکم نه وو راغلې د جنگ خیبر په موقع نبی کریم د دې نه منع اوکړه بیا د مکې د فتح نه پس د جنگ اوطاس په موقع باندې د دریو ورځو د اجازت نه پس د قیامته پورې متعه د مسلمانانود پاره همیشه همیشه دپاره حرام اوگرځولې شوه لکه چه د نکاح متعه دوه ځل اباحت راغلو او دوه ځله حرمت، او بیا د همیشه دپاره حرامه کړې شوه د ابوداؤد د یوروایت نه معلومیږی چه د متعه حرمت د حجة الوداع په موقع باندې راغلې وو ممکن ده چه دا اعلان د حرمت نه پس د نور زیات تشهیر تفهیم اوتعمیم دپاره کړې شوې وی.

**د نکاح متعه مفاسد:** - متعه د نکاح د اغراضو اومقاصدو نه بالکل منافی عمل دې اود بې شمیره مفاسدو منبع ده. مثلاً یوې ښځې په یوه میاشت کښې دریو خاوندانوسره د لسو لسو ورځو دپاره متعه اوکړه بیا کال پس بچې پیدا شو نواوس د دریو خاوندانو په اشتراك عمل سره کوم بچې پیدا شوې دې دا بچې به د چا وی؟ د چا وارث به جوړیږی؟ څوك به د ده مشر او وارث وی؟ د متعه په دې بد عمل سره تلبیس نسل او ابطال میراث لازم راځی لهذا د اجماع امت په فیصلې سره متعه حرام ده. د فقهاء اربعه په اتفاق سره متعه حرام ده د شرافت په اصول سره متعه حرام ده. صاحب هدایه په هدایه کښې د امام مالك رحمه الله طرف ته د متعه د جواز نسبت کړې دې لیکن په دې نسبت کښې غلطی شوې ده ځکه چه په مؤطا مالك کښې دا ناجائز لیکلې شوې ده [ نساء الایه ۲۴. ]

**د متعې په حکم کښې مذاهب:** -

① د روافضو په نیز د متعې نکاح جائز ده ② د جمهورو عالمانو په نیز دا حرامه ده.

**د اول فریق اول دلیل:** - ① د قرآن پاك آیت دا آیت د دوی مستدل دې ﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهِ مِنْهُنَّ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةً﴾ [مؤمنون ۷.] کښې د استمتاع ذکر دې کوم چه د متعه نه ماخوذ دې او "اجورهن" کښې د اجرت ذکر دې مهرنه دې لهذا متعه مستقل حکم دې.

**د اول فریق د اول دلیل جواب:** - د "فمااستمتعتم" د آیت نه مخکښې اود آیت نه پس د نکاح ذکر دې نو ﴿أُجُورَهُنَّ﴾ نه مراد مهر دې او ﴿اسْتَمْتَعْتُمْ﴾ نه نکاح مراد ده. د اجور اطلاق په

مهرباندې کیږی لکه چه قرآن پاك کښې دی ﴿فَانْكِحُوْهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ وَآتُوْهُنَّ أُجُوْرَهُنَّ﴾ [سورت نساء ۲۵.] دلته دَ اجور نه مزدوری مراد نه ده بلکه حق دَ بضعه معاوضه مراد دې کوم چه مهردې

**دَاول فریق دویم دلیل:-**

② دوی دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما طرف ته دَ متعه دَجواز قول منسوب کوی

**دَ اول فریق دَ دویم دلیل جواب:-**

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما سره دَدې چه دَ جواز قائل وو لیکن چه کله حضرت علی رضی الله عنه هغوی په سختئی سره منع کړو نوهغوی رجوع اوکړه او ونی فرمائیل "فکل فرج سواهما فهو حرام" دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته دَهغوی شاګرد سعید بن جبیر رحمه الله یوخل اوفرمائیل چه حضرت دَ متعه متعلق ستاسو فتویٰ خو په دنیا کښې خوره شوې ده او په قافلو اومجالسو کښې دَهغې تذکره کیږی. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل چه هغه کومه فتویٰ ده اوڅه تذکرې دی؟ نوشاګرد ورته اووئیل چه خلق ستاسو طرف ته داسې فتویٰ منسوب کوی دکوم ذکر چه په اشعارو کښې یو شاعرې ښځې داسې کړې دې:

قدقلت وللشیخ لما طال مجلسه　　یاصاح هل لك فی فتوی ابن عباس

یعنی چه کله مشرصاحب ترناوخته پورې مونږ کره وو نوما هغه ته اووئیل چه اې زما ملګریه ولې ستا دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَمتعه په فتویٰ کښې څه رغبت نشته.

هل لك فی رخصة الاطراف آنسة　　یکون مثواك حتی مصدر الناس

آیا تاته په نازك اندام محبت کونکی جینئی کښې رغبت نشته چه دَخلقو دَ واپس کیدو پورې ته هم هغوی سره حصار وې.

فقال ابن عباس سبحان الله ما بهذا افتیت وما هي الا کالمیتة والدم والخمر ولحم الخنزیر

بهرحال متعه په نکاح کښې داخلول داسې مشکل دی

**دَاول فریق دریم دلیل:-**

③ په مشکوٰة ص ۲۷۳ باندې دَ ابن مسعود رضی الله عنه دَ روایت نه هم دوی استدلال کوی.

**دَاول فریق دَ دریم دلیل جواب:-** که ابن مسعود رضی الله عنه چرته یووخت کښې دَ متعه په شروع کښې قائل وو نو وو به روستو هغوی رجوع کړې وه

**دَ دویم فریق دلائل:-** ① دَ قرآن کریم آیت ﴿فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ﴾ [سورت مؤمنون ۷. دَمتعه په حرمت باندې داآیت نص قطعی دې.

② دَ مسلم شریف یو روایت دَمتعه په حرمت باندې دغه شان واضح دلیل دې. ((وان الله قد حرم ذلك الی یوم القیامة))

③ مشکوٰة ص ۲۷۲ باندې دَحضرت علی رضی الله عنه روایت په حرمت باندې دال دې.

مشکوٰة ص ۲۷۲ باندې د حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه روايت دې کوم چه د متعه په حرمت باندې دال دې

④ هم دغه شان مشکوٰة ص ۲۷۳ باندې د ابن عباس رضی الله عنهما روايت د متعه په حرمت باندې دال دې. ⑤ اجماع د امت هم د متعه په حرمت باندې قائم ده

**روافض او حضرت علي رضي الله عنه سره د محبت دعوی:** – په شيعه روافض باندې تعجب دې چه حضرت علي رضی الله عنه چه د کوم متعه نه په سختئي سره منع کړې ده د شيعه ګانو محبوب مشغله هم دغه متعه ده.

**[۳۱٤۸] د متعه د حرمت تاريخ**

۳۳۸-[۹] (۱) ۱ «وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: ۲ رَخَّصَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَامَ أَوْطَاسٍ فِي الْمُتْعَةِ ثَلَاثًا ۳ ثُمَّ نَهَى عَنْهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت سلمه ابن اکوع رضی الله عنه وايي ۲ چې حضور صلی الله علیه وسلم د جنګ اوطاس په کال د دريو ورځو د پاره د متعې اجازت ورکړې وو، ۳ بيا يې د هغه نه د هميشه د پاره منع وفرمايله. (مسلم)

**حل اللغات:** ① عَامَ أَوْطَاسٍ: او طاس د يو جنګ نوم دې يعنی د اوطاس جنګ په کال.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَامَ أَوْطَاسٍ:

**د حرمت متعې د تاريخ باره کښې مختلف اقوال:** –

① کښې د متعه حرمت کله راغلې په دې باره کښې مختلف احاديث دی زياته مشهوره خو هم دغه خبره ده چه د جنګ خيبر په موقع باندې د متعه حرمت راغلې وو او د کورنو ساتلې شوې خرو د غوښې د خوړلو ممانعت کړې شوې وو.

② بعضې رواياتو کښې راغلی دی چه د فتح مکه په موقع باندې د متعه د تحريم حکم راغلې

③ بعضې رواياتو کښې راغلی دی چه د جنګ حنين او اوطاس په موقع د احرمت راغلې وو. په دې روايتونو کښې د تطبيق اوترتيب يوخوصورتونه دی.

**د رواياتو د تطبيق صورتونه:** – ① د متعه حرمت خو هم د جنګ خيبر په موقع شوې وولیکن بيا د فتح مکه په موقع باندې رخصت اوشو، دې نه پس د اوطاس په موقع د هميشه د پاره حرمت اوشو نو دوه ځل رخصت او دوه ځل حرمت راغلو.

---

۱) اخرجه مسلم في كتاب النكاح/ باب نكاح المتعة، وبيان أنه أبيح، ثم نسخ، ثم أبيح، ثم نسخ، واستقر تحريمه إلى يوم القيامة (رقم-۱۸۰ - (۱٤۰۵) واحمد في المسند: ٤/٥٥

④ دَ جنګ خيبر په موقع باندې كوم حرمت شوې ووهغه داسې لكه څنګه چه دَ مردار او م شوې حرمت دې چه په حالت اختيار كښې حرام دې او حالت اضطرار كښې جائزدې دَ كومو صحابه كرامو طرف ته چه دَ جواز قول منسوب كولې شي لكه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه نوهغوى هم دغه شان دَ اضطرار په حالت كښې په شروع كښې قائل وو بيانى دَ دې نه هم رجوع اوكړه.

بهرحال كوموخلقوته چه په كوم وخت معلومه شوه چه متعه حرام ده هغوى هم دَهغه وخت طرف ته نسبت كړې دې او دا هيڅ تعارض نه دې فتح مكه او جنګ حنين يوځائى دوه واقعې دى كه چا دَ فتح مكې طرف ته نسبت كړې چه په دغه ورځ متعه حرام شوې وه نو هغه هم صحيح دې اوكومو چه دَ اوطاس دَموقع طرف ته نسبت كړې نوهغه هم صحيح دې خكه چه هم دَ فتح مكه په كال كښې مكه هم فتح شوې ده جنګ حنين، اوطاس او طائف هم دې

⑤ امام حازمى رحمه الله ليكلى دى چه دَ حجة الوداع په موقع باندې هم حضوراكرم ﷺ متعه دَ هميشه دَپاره حرام ګرځولې ده. په ابوداؤد شريف كښې هم يوحديث دې په كوم كښې چه دَ حجة الوداع په موقع باندې دَ متعه دَ حرمت ذكر دې. دَتعميم تفهيم اوتشهيردَپاره هغه وخت هم اعلان شوې وو. نوچاچه په كوم وخت دَ حرمت واوريدل هم دَهغې طرف ته نې منسوب كړودا څه تعارض نه دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## دَنكاح دخطبې مسنونيت

٣١٤٩-[١٠] (١) ① «عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: ② عَلَّمَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - التَّشَهُّدَ فِي الصَّلَاةِ وَالتَّشَهُّدَ فِي الْحَاجَةِ، ③ قَالَ: "التَّشَهُّدُ فِي الصَّلَاةِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، ④ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، ⑤ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ، ⑥ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.

**ترجمه:** ① حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ مونږ ته په مونځ كې ويونكى تشهد هم ښولى ده او د څه حالت او ضرورت په وخت چې كوم تشهد ونيل پكار دي، د هغه تعليم يې هم راكړي دى. ③ نو د مونځ تشهد دادى د ژبې عبادتونه، بدني عبادتونه او مالي عبادتونه ټول د الله جل جلاله د پاره دي. ④ اې نبي (ﷺ) په تا دې سلامتي وي او د الله جل جلاله رحمت او بركت دې وي. ⑤ او مونږ او د الله جل جلاله په نيكو بنده ګانو دې هم

١) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب فى خطبة النكاح (رقم-٢١١٨) والترمذى فى كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى خطبة النكاح (رقم-١١٠٥) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: ما يستحب من الكلام عند النكاح (رقم-٣٢٧٧) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ خطبة النكاح (رقم-١٨٩٢) واحمد فى المسند: ٣٩٢/١

سلامتي وي، [٦] زه شاهدي ورکوم چې د الله ﷻ نه سوا بل معبود نشته او زه د دې خبري هم شاهدي ورکوم چې محمد ﷺ د هغه بنده او د هغه رسول دی

[١] وَالتَّشَهُّدُ فِي الْحَاجَةِ إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ [٢] نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ [٣] وَنَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا [٤] مَنْ يَهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ [٥] وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ [٦] وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ

**ترجمه:** [١] او د حاجت تشهد دا دې ټول تعریفونه الله ﷻ لره دي [٢] مونږ د هغه نه مدد غواړو او د هغه نه د بخښش طلبګار يو، [٣] او مونږ د خپل نفس د هري بدی نه د الله ﷻ پنا غواړو، [٤] چا ته چې الله ﷻ د هدايت توفيق ورکړي، هيڅوك هغه ګمراه کولی نشي يعني نه خو شيطان يې دوکه کولی شي نه نفس يې ګمراه کولی شي، او نه بل څوك يې په ګمراهي کې مبتلا کولی شي) [٥] او الله ﷻ چې څوك ګمراه کړي هغه ته هدايت کونکی هيڅوك نشته، [٦] زه شاهدي ادا کوم چې د الله ﷻ سوا بل معبود نشته او شاهدي ادا کوم چې محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او د هغه رسول دی.

[١] وَيَقْرَأُ ثَلَاثَ آيَاتٍ + يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ _ [آل عمران: ١٠٢]، (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا) ، + يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا - يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا _ [الأحزاب: ٧٠

**ترجمه:** [١] او دري آياتونه دې اولولی ای ايمان والاوو د الله ﷻ نه ويريږئ، څنګه چې د ويريدو حق دی، او چې مري نو مسلمانان مړه شئ. ای ايمان والاوو د خپل رب نه ويريږئ، هغه ذات چې تاسو يې پيدا کړي يئ د يو نفس نه او پيدا کړي ده د هغه نه ښځه د هغه او خواره کړي دي د دوي د دواړو نه خلق ډير او ښځې ډيري، او ويريږئ د الله ﷻ نه هغه ذات چې د هغه په نوم تاسو د يو بل نه غوښتنه کوئ او د صلهٔ رحمی د پريکولو نه ځانونه وساتئ بيشکه الله تاسو ويني ای ايمان والاوو د الله ﷻ نه ويره کوئ او سمه خبره کوئ، هغه به ستاسو ټول اعمال درست کړي، او ستاسو ګناه به وبخښي، او کوم سړی چې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ فرمانبرداري کوي، نو بيشکه لوی مراد به و مومي

-٧١] » . [١] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ. [٢] وَفِي جَامِعِ التِّرْمِذِيِّ فَسَّرَ الْآيَاتِ الثَّلَاثَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَزَادَ ابْنُ مَاجَهْ بَعْدَ قَوْلِهِ إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ، وَبَعْدَ قَوْلِهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا.

**ترجمه:** [١] (احمد ترمذي ابوداود نسائي دارمي) [٢] او په جامع ترمذي کې دا الفاظ هم دي چې دا دري سره آياتونه سفيان ثوري رحمه الله بيان کړي دی ابن ماجه رحمه الله د ان الحمد لله نه وروسته نحمده او من شرور انفسنا نه روسته، ومن سيئات اعمالنا الفاظو اضافه کړيده، او دارمي رحمه الله په خپل روايت کې د عظيمًا نه وروسته دا اضافه کړيده، چې (د دی تشهد

او آياتونو ويلو نه وروسته، خپل حاجت (يعني د عقد الفاظ) دي بيان کړي او په شرح السنه کې د ابن مسعود رضي الله عنه دا روايت نقل کړي دی، په دي کې د خطبهٔ حاجت وضاحت نکاح وغيره سره شوی دی (يعني په شرح السنه کې د لفظ حاجت په توضيح کې من النکاح وغيره د الفاظو اضافه کړيده)

**تسهيلات: قوله التَّشَهُّدَ فِي الصَّلَاةِ وَالتَّشَهُّدَ فِي الْحَاجَةِ:**

د نکاح خطبه مسنون ده او د شوافعو په نيزيه نورو عقود کښې هم خطبه ونيل مسنون دی

**قوله وَالتَّشَهُّدَ فِي الْحَاجَةِ**

**په خطبه کښې د قرآنی آيتونو لوستل:**-د تشهد نه مراد هم دغه نکاح او په دې کښې ايجاب اوقبول دې د قرآن کريم درې آياتونه دلته د نکاح په خطبه کښې راغلی دی ليکن دا يدساتنی چه د سورت نساء آيت ( يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا )نه شروع دې مصحب عثمانی کښې داسې نه دې په هغې کښې ( يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي) دې ( يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ) نه دې نو داکيدې شی چه د کاتب غلطی وی يا دا د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د مصحف يو قرأت دې.

**د نکاح او خطبې په مينځ کښې ترتيب:**-بهرحال کوم خلق چه نکاح کوی هغوی له پکاردی چه خطبه دې د تشهد نه شروع کړی بيا دې درې آياتونه اووائی بيا دې نکاح سره متعلق يوڅو احاديث اووائی اوبيا دې ايجاب اوقبول اوکړی اول دې د جينئی والونه قول او اقرار واخلی اوبيا د هلك نه قول اواقرار او قبول په واضحه الفاظو کښې واخلی داصورت واضح او بهتردې فقهاؤ ليکلی دی چه يوه صيغه دې د ماضی وی اودويمه د مستقبل يعنی حال وی نودې هم خيال ساتل پکاردی بعضې حضرات نن صبا صرف د قبول الفاظ اداکولوسره نکاح کوی نو مناسب دغه دی چه ايجاب اوقبول دې دواړه وی

**[۲۱۵۰] د خطبې څخه بغير د نکاح بې برکتی**

[۱۱] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② په کومه خطبه کې چې تشهد (يعني د الله تعالى حمد وثناء) نه وي هغه د کټ شوي لاس په شان ده، ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دی او ويلي يې دي چې دا حديث حسن غريب دی.

**حل اللغات** ① الْيَدِ الْجَذْمَاءِ: کټ شوي لاس. يعنی يا شل لاس.

---

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الخطبة (رقم-٤٨٤١) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی خطبة النکاح (رقم-١١٠٦) واحمد فی المسند: ٣٤٣/٢

**تسهيلات: قوله: كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ:**

**په نكاح كښي د خطبې په حكم كښې مذاهب:-**

① د اهل ظواهرو په نزد خطبه وئيل شرط دی ، دې نه بغير نكاح نه صحيح كيږي.

② د جمهور علماء كرامو او ائمه اربعه په نزد خطبه وئيل شرط نه دی بلكه مستحب دی . ددې نه بغير نكاح كښې څه فرق نه راځی .

**داول فريق دليل:-** همدا حديثِ باب دې چې په دې كښې نبی كريم ﷺ بغير د نكاح نه خطبې ته (كاليد الجذماء) فرمائيلی دی.

**د اول فريق د دليل جواب:-** حديث الباب نه استحباب مراد دې ځكه چې حديث پاك كښې هيڅ يو لفظ داسې نشته دې چې هغه په وجوب باندې دال وی بلكه په حديث پاك كښې د بې بركتی لفظ استعمال شوې ی ددې څخه وجوب نه ثابتيږي.

**د دويم فريق دليل:-** ابوداؤد شريف كښې يو حديث دې چې (إن رجلا من بني سليم خطب إلى النبي ﷺ أمامة بنت عبد المطلب فانكحه من غير أن يتشهد) ددې نه معلومه شوه چې د خطبې نه بغير نكاح صحيح ده.

**قوله: فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ:**

**د تشهد څخه بغير خطبې د جذامی لاس سره تشبيه:-** مطلب دادې چې لكه څنګه د پريكړې شوې لاس څه فائدې نه وی چې لاس به والا ددې نه څه فائده نشی اخستې دغه شان د خطبې نه بغير نكاح هم فائدې نه خالی ده چې په دې كښې خير او بركت نه وی. ملا علی قاری رحمه الله خپله شرح كښې لفظ د خطبه دخ په زير سره ليكلې دې او ددې معنی ئې تزويج يعنی نكاح كول بيان كړی دی. او حضرت مولانا شاه اسحاق دهلوی رحمه الله فرمائيلی دی چې مونږ د خپلو اساتذه كرامو نه دا لفظ د خ په پيښ سره آوريدلې دې او د حضرت شيخ عبد الحق دهلوی رحمه الله په كلام كښې هم دا مفهوم دې

**[۲۱۵۱] د بسم الله نه وئيلو په وجه بې بركتی**

٣١٥١-[١٣] (١) ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «كُلُّ أَمْرٍ ذِي بَالٍ لَا يُبْدَأُ فِيهِ بِالْحَمْدِ لِلّٰهِ فَهُوَ أَقْطَعُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم اهم او عظيم الشان كارچې د الله تعالى د حمد او ثناء نه بغير شروع كړل شي هغه بې بركته وي، (ابن ماجه.

**حل اللغات:** ① ذِي بَالٍ: عظيم الشان كار، ② أَقْطَعُ: بې بركته، لندې بوچې،

١ ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب الهدى فى الكلام (رقم-٤٨٤٠) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ خطبة النكاح (رقم-١٨٩٤)واحمد فى المسند: ٣٥٩/٢

**تسهیلات:**

**قوله:** كُلُّ أَمْرٍ ذِي بَالٍ:

**د بال لغوی معنی:** – د بال لغوی معنی ده زړه، خیال، توجه،

**د بال اصطلاحی تعریف:** – اصطلاح کښې ددې معنی ده شان، انجام، حال، ښه ځکه چې داسې کار طرفته زړه متوجه کیږی په دې وجه دې ته بال وائی.

**د ذی بال قید لګولو فائده:** – په دې وجه حدیث کښې د ذی بال قید لګولو سره ئې ممنوع کارونه اوویستل، لهذا دممنوع کارونو په وخت کښې بسم الله یا الحمد لله یا ذکر الله ممنوع دې

**[۳۱۵۲] د نکاح داعلان کولو استحباب**

۳۱۵۲ – [۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَعْلِنُوا هَذَا النِّكَاحَ وَاجْعَلُوهُ فِي الْمَسَاجِدِ [۳] وَاضْرِبُوا عَلَيْهِ بِالدُّفُوفِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او ام المؤمنین بي بي عائشه رضي الله عنها وایې [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو د نکاح اعلان کوی نکاح په مسجدونو کې دننه کوی، [۳] او د نکاح په وخت دریا (تنبل) غږوی. ترمذي دا روایت نقل کړي دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات:** ① بِالدُّفُوفِ: جمع د دف ده، طبل، دوړی،

**تسهیلات:**

**قوله:** أَعْلِنُوا هَذَا النِّكَاحَ:

**د نکاح آداب:** – ① دَ نکاح اعلان کوئی یعنی ښه تشهیرئی کوئی.

② هم ددې تشهیر یو صورت دادې چه نکاح دې په ښکاره مجلس او کولاؤ جمات کښې وی په جمات کښې نکاح په تشهیر سره کولو دا دَبرکت سبب هم دې ځکه چه دادَعبادت ځائی دې او نکاح هم عبادت دې

③ دَ طرفین بزرګان دې حاضر وی

④ دَ تنبل غږولو شور او غوغا دې وی مګر په جمات کښې شور یا تنبل وهل منع دی

⑤ دغه شان دَ جمعې ورځ دَ نکاح دَپاره بهتر ده ځکه چه دې کښې زیات تشهیر هم دې او حصول برکت هم دې

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی إعلان النکاح (رقم ۱۰۸۹) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ إعلان النکاح (رقم ۱۸۹۵)

**[۳۱۵۳] د سندرو یا تنبل په ذریعه د واده د تشهیر حکم**

۳۱۵۳ - [۱۴] (۱) [۱] وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَاطِبٍ الْجُمَحِيِّ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «فَصْلُ مَا بَيْنَ الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ الصَّوْتُ وَالدُّفُّ فِي النِّكَاحِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت محمد ابن حاطب الجمحي رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د حلال او حرام په منځ کې فرق په نکاح کې آواز او تنبل (دريا) غږول دي. (احمد ترمذي نسائي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① فَصْلٌ: فرق، جدائي. ② اَلصَّوْتُ: دَ آواز نه مراد خو اشعار دي او يا دَ نکاح تذکرې دي

**تسهيلات:**

**قوله فَصْلُ مَا بَيْنَ الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ الصَّوْتُ:**

**د نکاح د تشهير حکم:** - دَ حديث مطلب دا نه دې چه دَدې څيزونو نه بغير نکاح صحيح نه ده بلکه دَ نکاح دَپاره خو ايجاب اوقبول اودوه ګواهان ضروري دی په دې حديث کښې صرف دا ترغيب دې چه دَنکاح تشهير کيدل پکار دی. دَدې مجلس عام او ښکاره کيدل پکار دی دَ تشهير کم نه کم حد دادې چه ګاونډيانو ته معلومه شی چه دلته واده دې اوس دا علم په آواز سره هم حاصليدې شی او په تنبل وهلو سره هم. دَدې حديث مطلب دا هيڅ کله نه دې چه بازارونو ښارونو اخبارونو او ويډيوګانو وغيره کښې تشهير کول پکار دی اونه دَدې نه دَ باجوسرناګانو او ميوزك خرافات مراد کيدې شی.

**[۳۱۵٤] په واده کې د سندرو ويلو اجازت**

۳۱۵٤ - [۱۵] (۲) [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] كَانَتْ عِنْدِي جَارِيَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ زَوَّجْتُهَا [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: يَا عَائِشَةُ أَلَا تُغَنِّينَ [۴] فَإِنَّ هَذَا الْحَيَّ مِنَ الْأَنْصَارِ يُحِبُّونَ الْغِنَاءَ» رَوَاهُ.....

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] چې زما سره يوه انصاري جينۍ وه، ما چې د هغه نکاح (د چا سره) وکړه. [۳] نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې اي عائشې رضي الله عنها آيا ته د سندرو د پاره چاته نه وايې؟ [۴] ځکه چې انصار قوم سندرې ډيرې خوښوي. دا روايت ابن حبان رحمه الله په خپل صحيح کې نقل کړې دی

**حل اللغات:** ① اَلْغِنَاءَ: لوبې. سندرې

---

[۱] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى إعلان النكاح (رقم-۱۰۸۸) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: إعلان النكاح بالصوت وضرب الدف (رقم-۳۳۶۹) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ إعلان النكاح (رقم-۱۸۹۶) واحمد فى المسند: ۲۵۹/٤

[۲] ) اخرجه صحيح ابن حبان فى كتاب الحظر والاباحة/ باب فضل فى السماع... رقم الحديث ۵۹۷۱

**تسهیلات:**

**قوله: يَاعَائِشَةُ أَلَا تُغَنِّينَ**

① په خطاب کښې دوه احتمالات - په دې کښې دا احتمال شته چې خطاب د غائب په صیغې سره وی یعنی کومې ښځې چې په دې وخت کښې موجود نه دی دهغه ښځو نه مراد وینځې یا لاندې درجې ښځې دی ځکه چې آزادې ښځې په دې کار کولو باندې شرمیږی

② داهم احتمال دې چې صیغه خطاب کښې امهات المؤمنین هم شاملې وی او د فعل اضافت حکم ورکولو والا یا اجازت ورکونکو طرفته وی.

**قوله: فَإِنَّ هَذَا الْحَيَّ مِنَ الْأَنْصَارِ يُحِبُّونَ الْغِنَاءَ**

**د سندرو ولیلو محفل:-** حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چې ما سره د انصارو یوه جینۍ وه اودا زما زیر کفالت وه. ما ددې واده اوکړو نو رسول کریم ﷺ تپوس اوکړو چې ته ددې د واده په موقع باندې سندرې نه وایې ، ښه مضمون والا سندرې اووایه یعنی ماشومانو ته اووایه چې هغوئ راشی او سندرې اووائی ځکه چې دا دانصارو ماشومه ده. او ددې واده هم په انصارو کښې شوې دې. او د انصارو جماعت غناء خوښوی غناء نه مراد ښه مضمون والا سندرې دی کومې چې ورې ماشومانې وائی

**قوله: رَوَاهُ.....**

**د مشکاة په بعضې نسخو کښې بیاض:-** په څینې نسخو کښې دلته بیاض (خالی ځائې) دې لیکن څینو ددې په حاشیه کښې لیکلی دی ابن حبان فی صحیحه.

**[۲۱۵۵] د واده په موقع د حقیقی سندرو ولیلو اباحت**

۳۱۵۵-[۱۲] (۱) [۱] «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَنْكَحَتْ عَائِشَةُ ذَاتَ قَرَابَةٍ لَهَا مِنَ الْأَنْصَارِ [۲] فَجَاءَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقَالَ " أَهْدَيْتُمُ الْفَتَاةَ " . قَالُوا نَعَمْ. [۴] قَالَ " أَرْسَلْتُمْ مَعَهَا مَنْ يُغَنِّي قَالَتْ لَا. [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " إِنَّ الْأَنْصَارَ قَوْمٌ فِيهِمْ غَزَلٌ [۶] فَلَوْ بَعَثْتُمْ مَعَهَا مَنْ يَقُولُ أَتَيْنَاكُمْ أَتَيْنَاكُمْ فَحَيَّانَا وَحَيَّاكُمْ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایې چې ام المؤمنین بي بي عائشې رضی الله عنها خپله یوه رشته داره جینۍ په انصاروکې واده کړه. [۲] (د نکاح نه وروسته) رسول الله ﷺ چې کور ته تشریف راوړو. [۳] نو پوښتنه یې وکړه چې آیا تاسو دې جنۍ ته چې د هغې نکاح شویده د هغې د خاوند کور ته د لیږلو په وخت څه هدیه ورکړې ده؟ کور والا وو اوویل چې هو. [۴] حضور ﷺ وفرمایل چې آیا تاسو د هغې سره سندرو والا هم لیږلی وه؟ بي بي عائشې

۱) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب النكاح/ الغناء والدف (رقم-۱۹۰۰) واحمد في المسند: ۳/۳۹۱

ﷺ اوویل چې نا ،۞ نو حضور ﷺ ورته وفرمایل چې انصار یو داسې قوم دی چې په هغوئ کې د سندرو شوق دی، ۞ آرمان (کاش) چې تا د هغه سره داسې څوك لیږلی وی چې دا سندری یې کولی، أَتَيْنَاكُمْ أَتَيْنَاكُمْ فَحَيَّانَا وَحَيَّاكُمْ یعنی مونږ تاسو ته راغلو، مونږ تاسو ته راغلو، الله ﷻ دې مونږ هم او تاسو هم د سلامتې سره لري، (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① أَهْدَيْتُمُ الْفَتَاةَ: آیا تاسو دې واده شوې ناوې سره څه هدیه لیږلې ده؟ ② مَنْ يُغَنِّي: هغه څوک چه شعرونه او سندرې وائی ③ غَزَل: د سندرو شوق لرونکی

**تسهیلات:**

**قوله: أَتَيْنَاكُمْ أَتَيْنَاكُمْ فَحَيَّانَا وَحَيَّاكُمْ:**

**د انصارو د خوشحالئ په موقع سندرې ویلیل:** د مدینې په انصاروکښې یوپخوانې روایت وو چه د خوشحالئ په موقع باندې به ئې اشعار وغیره ونیل. هم د دغه قومی روایت مطابق نبی کریم د دغه خواهش اظهار اوفرمائیلوچه که تاسو د یوسندرې ویونکې انتظام کړې وې چه د انصارو په خوشحالئ کښې زیاتوالې شوې وې. بیا نبی کریم په دې موقع باندې د یو شعر طرف ته اشاره اوفرمائیله چه د هغې نیمه حصه ئې اوونیله پوره شعرداسې دې

أَتَيْنَاكُمْ أَتَيْنَاكُمْ فَحَيَّانَا وَحَيَّاكُمْ　　　وَلَوْلَا الْحِنْطَةُ السَّمْرَاءُ لَمْ تَسْمَنْ عَذَارَاكُمْ

یعنی مونږ ستاسو خواله راغلو چی راغلو الله تعالی دې مونږه هم اوتاهم ژوندې اوتازه لری، که چرې سره غنم نه وې نوستاسو پیغلې به داسې چاق بدن والاوداسې د ښکلی بدن والانه وې.

یادلرئی دې شعرونوسره باجې وغیره نه وې اوهغه جائزنه دی او په کلوکښې د شعرونو ونیلو رواج اوس هم شته اود پردې اهتمام سره جاری پاتې کیدل مستحب دی. نوره تشریح به ان شاء الله بیان شعرباب کښې راځی څه وضاحت وراندې هم شوې دی.

**[۳۱۵۶] د دوو ولیانو په انکاح کښې د اولنی د انکاح صحت**

۳۱۵۶ — [۱۷] (۱) ۞ وَعَنْ سَمُرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۞ «أَيُّمَا امْرَأَةٍ زَوَّجَهَا وَلِيَّانِ فَهِيَ لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا، ۞ وَمَنْ بَاعَ بَيْعًا مِنْ رَجُلَيْنِ فَهُوَ لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت سمره ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۞ د کومې ښځې چې دوه ولې د هغه نکاح وکړې نو هغه ښځه په هغه دوارو کې د یوه د پاره ده، د کوم یوه سره چې مخکې نکاح شویده، ۞ او کوم سړی چې یو څیز د دوو سړو په لاس خرڅ کړیږ، نو هغه څیز

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب إذا أنکح الولیان (رقم-۲۰۸۸) والنسائی فی کتاب البیوع/باب الرجل یبیع السلعة فیستحقها مستحق (رقم-۴۶۸۲) وابن ماجه فی کتاب التجارات/باب إذا باع المجیزان فهو للأول (رقم-۲۱۹۰) واحمد فی المسند: ۸/۵

په هغه دواړو کې د هغه د پاره دی چې مخکې ورباندې خرڅ شوی وي. (ترمذي ابوداود نسائي دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله: أَيُّمَا امْرَأَةٍ زَوَّجَهَا وَلِيَّانِ:**

**په يو وخت کښې د دوؤ وليانو په نکاح ورکولو کښې دوه صورتونه:-** ① که ديوې ښځې دوه وليان وی او دواړه وليان ددې ښځې نکاح جدا جدا وقتونو کښې دوه سړو سره اوکړی ،داشان چې اول يو ولی يو کس سره ددې نکاح اوکړه او بيا بل ولی د بل کس سره ددې نکاح اوکړه، نو ددې دويم ولی کړې شوې نکاح به باطل وی. اودا به دهغه کس ښځه وی کوم سره چې اول نکاح شوې ده. ليکن دا حکم به په دې صورت کښې وی چې کله دواړه وليان په يوه درجه کښې وی ، ددواړو قرابت ورسره يو شان وی.

② که دواړه وليان د يوې درجې نه وی نو بيا به هغه ولی مقدم وی کوم چې اقرب وی يعنی نزدې رشته دار وی. لهذا دې صورت کښې به دا دهغه کس ښځه وی کوم کس سره چې ددې نزدې رشته دار کړې نکاح کړې ده. که دې اول نکاح کړې وی او که روستو او که د يوې ښځې يو شان درجې والا دوه وليان وی او ددې نکاح په جدا جدا وختونو کښې جدا جدا سړو سره اوکړی. مثلا يو ولی ددې نکاح زيد سره اوکړه او هم په دې وخت کښې بل ولی ددې نکاح بکر سره اوکړه نو په دې صورت کښې متفقه طور د علماء کرامو مسلك دادې چې دواړه نکاح ګانې باطل دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۱۵۷] داسلام په ابتداء کښې د نکاح متعه جواز

۳۱۵۷—[۱۸] (۱) ① «عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كُنَّا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② لَيْسَ مَعَنَا نِسَاءٌ فَقُلْنَا: أَلَا نَخْتَصِي ③ فَنَهَانَا عَنْ ذَلِكَ ثُمَّ رَخَّصَ لَنَا أَنْ نَسْتَمْتِعَ ④ فَكَانَ أَحَدُنَا يَنْكِحُ الْمَرْأَةَ بِالثَّوْبِ إِلَى أَجَلٍ ⑤ ثُمَّ قَرَأَ عَبْدُ اللَّهِ ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ﴾ [المائدة: ۸۷]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايې چې (د يوی غزا په موقع) مونږ د رسول الله ﷺ سره په جهاد کې شريك وو. ② او هغه وخت زمونږ سره زمونږ ښځې (يعني بيبياني او وينځې) نه وی (هر کله چې د ښځو د نه کيدو په وجه مونږ د بشري خواهش نه پريشانه شو) نو مونږ اوويل چې آيا مونږ خانونه خصي نه کړو. (چې د بشري خواهش او د شيطان د

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح /باب ما يکره من التبتل والخصاء (رقم-۵۰۷۵) ومسلم فی کتاب النکاح / باب نکاح المتعة. وبيان أنه أبيح. ثم نسخ. ثم ابيح. ثم نسخ واستقر تحريمه إلى يوم القيامة (رقم-۱۱ (۱۴۰۴) واحمد فی المسند: ۱/۴۳۲

وسوسو نه مونږ نجات تر لاسه کړو،[۲] ليکن رسول الله ﷺ مونږ د دې نه منع کړلو، البته مونږ ته يې د متعه کولو اجازت راکړي،[۴] نو په مونږ کې به بعضې خلقو د کپړې په معاوضه د يوې مقررې مودې پورې د ښځې سره نکاح (يعني متعه) کوله،[۵] د دې نه وروسته ابن مسعود ﷺ دا پورته آيت ووېلو يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا الخ اى ايمان والاوو کوم پاك څيزونه چې الله ﷺ حلال کړي دي، هغه حرام مه ګڼئ، (بخاري)

**حل اللغات:** ① نَخْتَصِي: ځان خصي کول چه شهوت ختم شي او د بشري خواهش نه ځان خلاص کړي ② رَخَّصَ لَنَا: اجازت ئې راکړو، ③ الْمُتْعَة: چه مونږ متعه اوکړو، يو خاص مودې پورې په مخصوص معاوضه سره نکاح کولو ته متعه وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: ثُمَّ قَرَأَ عَبْدُ اللهِ:**

**د ابن مسعود رضي الله عنه نه د متعې د جواز په روايت کې دوه احتمالات:** – دَحضرت ابن مسعود ﷺ په دې روايت سره دَمتعه جواز معلوميږي ① نو ممکن ده چه ابن مسعود ﷺ دَ اسلام په شروع کښې په جواز باندې دَ اضطرار په صورت کښې دَ هميشه دَپاره قائم پاتې شوې وي او دَ نسخ دَ واضحه احکاماتو هغه ته علم نه وي شوې

② او ډير قوي امکان دې چه دَ حضرت ابن عباس ﷺ په شان حضرت ابن مسعود ﷺ هم رجوع کړې وي ځکه چه حضرت عمر ﷺ سرکاري اعلان کړې وو چه په احاديثو کښې دَممانعت نه باوجود اوس هم که يوسړې متعه کوي نوزه به په هغه باندې حد جاري کوم.

**[۲۱۵۸] دَمتعې د حکم منسوخيت**

۳۱۵۸—[۱۹] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّمَا كَانَتِ الْمُتْعَةُ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ [۲] كَانَ الرَّجُلُ يَقْدَمُ الْبَلْدَةَ لَيْسَ لَهُ بِهَا مَعْرِفَةٌ [۳] فَيَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ بِقَدْرِ مَا يَرَى أَنَّهُ يُقِيمُ تَحْفَظُ لَهُ مَتَاعَهُ وَتُصْلِحُ لَهُ شَيْئَهُ [۴] حَتَّى إِذَا نَزَلَتِ الْآيَةُ ﴿إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ﴾ [المؤمنون: ۶] [۵] قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَكُلُّ فَرْجٍ سِوَاهُمَا فَهُوَ حَرَامٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې د متعې جواز يواځې په ابتداء د اسلام کې وو، [۲] او هغه وخت د متعې يو صورت دا وو، چې کله به يو سړی يو ښار ته ورتلی، او هلته به يې د خلقو سره څه پيژندګلوی نه وه (چې د هغوئ سره پاتې کيدو سره د قيام او طعام بندوبست يې کړې وی) [۳] نو هلته به يې د يوې ښځې سره د دومره مودې د پاره نکاح کوله، څومره موده چې به هلته پاتې کيدلی، نو هغې ښځې به د هغه د سامان حفاظت

---

۱) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى تحريم نكاح المتعة (رقم-۱۱۲۲)

کولی، او طعام (دیگ و روټی وغیره) به یې ورلره پخوی.[۴] ددې پورې چې دا آیت نازل شو اِلَّا عَلٰی اَزْوَاجِهِمْ اَوْمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ.[۵] ابن عباس رضي الله عنه فرمایې چې پس د دې دواړو (یعنې ښځې او وینځې) د شرمګاه نه علاوه هره شرمګاه حرامه ده. (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله** اِلَّا عَلٰی اَزْوَاجِهِمْ اَوْمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ

**د آیت مفهوم:-** کوم چې خلق خپل شرمګاهونه دخپلو ښځو او وینځو نه علاوه نورو ښځو څخه محفوظ ساتی نو په دوئ باندې هیڅ ملامتیا نشته دې. خو چې کوم خلق په خپلو ښځو او وینځو باندې قناعت نه کوی یا چې کوم خلق د نکاح په ذریعه په شرعی طور سره د خپل جنسی خواهش تسکین نه کوی بلکه غیر ښځو طرفته مائله کیږی، هغوئ په اصل کښې د حلال نه مخ اړونکی او حرامو طرفته تجاوز کوونکی دی او ددوئ دپاره سخته ملامتیا ده.

**نوټ:-** د حرمت متعه باره کښې تفصیل دحدیث نمبر (۳۱۴۷) په تسهیل اوشرح کښې تیرشوې دې.

## [۲۱۵۹] دواده په موقع د سندرو وئیلو اجازت

۳۱۵۹-[۲۰] (۱)[۱] وَعَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى قَرَظَةَ بْنِ كَعْبٍ وَأَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ فِي عُرْسٍ، [۲] وَإِذَا جِوَارٍ يُغَنِّينَ، [۳] فَقُلْتُ: أَيْ صَاحِبَيْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَهْلَ بَدْرٍ يُفْعَلُ هٰذَا عِنْدَكُمْ؟ [۴] فَقَالَا: اجْلِسْ إِنْ شِئْتَ فَاسْمَعْ مَعَنَا وَإِنْ شِئْتَ فَاذْهَبْ، [۵] فَإِنَّهُ قَدْ رُخِّصَ لَنَا فِي اللَّهْوِ عِنْدَ الْعُرْسِ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او عامر بن سعد (تابعي رحمه الله) وایې چې زه په یو واده کې د شرکت د پاره ورسیدم، چرته چې (دوه صحابه) حضرت قرظه ابن کعب رضي الله عنه او حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه هم موجود وو.[۲] نو ومې لیدل چې څو وړوکی جینکۍ سندرې وایې.[۳] ما اوویل چې اې د رسول الله ﷺ صحابه وو او په جنګ بدر کې شریکیدونکو! آیا ستاسو په مخکې هم دا (سندرې) کیږې؟ (د دې اوریدو سره)[۴] هغه دواړه صحابه وو رضي الله عنهم اوویل چې کینه، که ستا زړه غواړې نو ته یې هم زمونږ سره واوره، او که غواړې نو دې ځای نه ځه.[۵] ځکه چې د واده په موقع مونږ ته د سندرو اوریدو اجازت راکول شوی دې.

**حل اللغات:** (۱)عُرْسٍ: خوشحالی. واده. (۲)جِوَارٍ: نابالغه جینکۍ. ماشومانې. (۳)يُغَنِّينَ: سندرې او شعرونه نې وئیل.

---

۱) اخرجه النسائی فی السنن کتاب الجهاد /باب:اللهو والغناء عند العرس (رقم-۳۳۸۳)

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّهُ قَدْ رَخَّصَ لَنَا فِي اللَّهْوِ عِنْدَ الْعُرْسِ:**

**د ودو ماشوماتوسندرو وئيلوباره كښې د هوؤ صحابؤ نظريه:-** حضرت عامر بن سعد فرمائي چې زه د قرظه بن كعب او د ابو مسعود انصاري رضي الله عنه په خدمت كښې حاضر شوم اوهغوئ دواړه په يو وادهٔ كښې شريك وو. ناګهانه ما اوكتل چې وړې وړې ماشومانې سندرې وائي او دا خلق ناست دي. ماله غصه راغله او ما اووئيل چې د رسول كريم ﷺ صحابه كرامو ،اې اهل بدر،تاسوسندرې آورئ. هغوئ ماته اووئيل چې كينه ته هم زمونږ سره واوره ، اوكه ته تلل غواړې نو لاړ شه ، ځكه چې مونږ ته خو ددې وادهٔ په موقع باندې اجازت ملاؤ شوې دې. يعنې د شريعت په حدودو كښې مونږ ته ددې اجازت دې

# [۴]بَابُ الْمُحَرَّمَاتِ]

## په سړو باندې دَ حرامو ښځوبيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه عشرون حديثاً مشتملة على تحريم أسباب النكاح السبعة.**

① تحريم الجمع بين الأختين: ۱، ۱۰، ۱۷-

② تحريم الرضاع , الحكم العام: ۲- . حرمة عم رضاعي: ۳- . حرمة بنت الأخ الرضاعية: ۴-/ حرمة أم رضاعية : ۱۴- . مقدار الرضاع: ۵، ۶- ؛ إعتبار مدة الرضاع لابعدها : ۷، ۱۲- ؛ إثبات الرضاعة بشهادة مرضعة واحدة:۸ ـ ۳ أداء حق الرضاعة: ۱۳-

③ تحريم المرأة إذا كانت في نكاح مسلم: ۹-

④ التحريم بالنسب: , منكوحة الأب: ۱۱، - المحرمات السبعة لأجل النسب: ۱۹-

⑤ تحريم الزيادة على أربع : ۵، ۱۶-

⑥ التحريم بسبب اختلاف الدين ۱۸-

⑦ التحريم بسبب الصهر: ۱۹، ۲۰-

**د محرماتو نه د نه كيدو شرط:-** نكاح يوه اسلامي رشته ده صرف شهوت پوره كول نه دي. په دې وجه دَ دې دَ صحت اوحرمت ډير ضرورت دې. دَ نكاح دَ صحيح كيدلودَپاره دَ نورو شرطونونه علاوه يوشرط دا هم دې چه ښځې دَ محرماتونه نه وي. پـه دې بـاب المحرمـات كښې هم دغه بيان دې چه كومه يوه ښځه په كوم سړي باندې حرام ده.

**د حرمت اقسام:**

حرمت دوه قسمه دې يوحرمت مؤبده دې يعنې هغه ښځه كومې سره چه هميشه دَپاره

نکاح نه شی کیدلې دویم حرمت غیرمؤبده دې دا هغه ښځه ده چه دَ عارض دَ وجې نه حرامیږی

**دَ حرمت نکاح اسباب:-** دَ حرمت نکاح مختلف اسباب دی دَ ټولو بیانول مشکل هم دی اوطویل هم صرف دَ نهه اسبابو بیان په مختصرتوګه دلته کولې شی.

① رومبې سبب نسبی رشته ده کومې ښځې چه دَ نسبی رشتې دَ وجې نه حرام دی هغه دادی مور، لور، خور، تروریانې،وریره او خورزه. لهذا دې ښخوسره نکاح حرام ده دغه شان دَ والدین اصول دَ بره پورې اودَهغوی فروع لاندې پورې حرام دی.

② دویم سبب دَ سخرګنتی رشته ده لکه خواخې، بهوام مزنیه وغیره.

③ دریم سبب دَ رضاعت اوپینورشته داری ده.

④ څلورم سبب ښځې په نکاح کښې راجمع کولوسبب دې په کوم سره چه حرمت راځی لکه دَ څلورونه زیاتې ښځې په یووخت نکاح کښې یوځائی کول یا دوه خوئیندې یا ترور اودَهغې وریره جمع کول یا داسې دوه ښځې په نکاح کښې رایوځائی کول که په هغوی کښې یوه سړې تصور کړی نوهغه ښځه دَ دغه سړی دَپاره حلال نه وی. خلاصه دا چه یې اجنبیاتې دَ څلورونه زیاتی راجمع کول یا دَ ذوات الارحام نه دوه یا دَ دوو نه زیات یوځائی کول دا ټول حرام دی.

⑤ پنځم سبب دَ ښځې مملوکه کیدل دی یعنی دَ اول نه آزاده ښځه موجود ده نو په هغې باندې وینځې سره نکاح کول حرام دی.

⑥ شپږم سبب تعلق حق الغیردې یعنی دَ بل نکاح کړې ښځې سره نکاح کول دی.

⑦ اووم سبب دَ مذهب اختلاف دې یعنی مشرکه آتش پرست، دهریه، آغاخانیه، قادیانیه یا رافضیه سره نکاح کول حرام دی صرف دَ اهل کتاب ښځې که چرې واقع اهل کتاب وی هغوی سره نکاح جائزده لیکن دَ مسلمانې جینئی اهل کتاب سره نکاح کول حرام دی.

⑧ اتم سبب دَ ښځې مالکه کیدل دی یعنی ښځه مالکه ده هغه خپل مملوك غلام سره نکاح نه شی کولې.

⑨ نهم سبب طلاق دې یعنی درې طلاقه ورکولونه پس بغیردَ حلالې دا ښځه په دغه سړی حرامه شوې ده بل په لعان سره چه ګومه ښځه دَ خاونددَپاره دَ همیشه حرامیږی هغه هم دَ طلاق په زمره کښې راځی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۱۶۰] په خپل مینځ کښې د محرمو ښځو د جمع کولو حرمت**

۳۰۰۰-[۱] (۱) ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«لَا يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا وَلَا بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَخَالَتِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② ښځه او د هغې عمه (د پلار خور) په خپله نکاح کښې يوځاې نشي ساتلی، اونه يوه ښځه د هغې د خاله (د مور د خور) سره په خپله نکاح کښې ساتلی شي، (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ:**

**د دوو ښځو په يووخت په نکاح کښې د ساتلو د حرمت وضاحت او يوه ضابطه:** - په دې حديث کښې يوه ضابطه او يو اصولی قاعده طرف ته اشاره کړې شوې ده او دامت علماؤ دَدغه قاعده تشريح کولوسره واضح کړی دی. هغه قاعده داده چه هرهغه دوه ښځې په کوموکښې چه قرابت دَ محرميت وی که په هغوی کښې يوسړې او بله ښځه فرض کړې شی نودَ دواړو نکاح نه صحيح کيږی داسې دوه ښځې په نکاح کښې يوځائی ساتل حرام دی. دَدې مثال په مذکوره حديث کښې دَ پلارخور (ترور) اووريره ده. که چرې دغه ترور سړې فرض کړې شی نودَ وريرې سره دَ تره نکاح حرام ده اوکه چرې وريره سړې فرض کړې شی نو وراره سره دَ ترور نکاح حرام ده. دَدې قاعده متعلق يوخبره ذهن کښې ياد ساتل پکاردی هغه دا چه داحرمت دَ دواړو طرفونه ضروری دې يعنی دَ جانبين نه چه څوك هم سړې فرض کړې نونکاح حراميږی. که چرې داسې نه وی او دَ يوطرف نه حرمت راځی ليکن دَدې برعکس کښې حرمت نه راځی نودا قاعده دغه صورت ته شامل نه ده بلکه داسې دوه ښځې په يوه نکاح کښې يوځائی ساتلې شی. مثلاً ښځه اودَ هغې دَ مخکينی خاوند لور دَ جمهورو په نيز په يونکاح کښې يوځائی ساتلې شی خوچه هغه جينئی دَ دې ښځې نه نه وی. اوس که چرې دَ مخکينی خاوند دغه لور سړې فرض کړې شی نودا ښځه دَهغې دَ پلار ښځه يعنی زوجة الاب جوړيږی او زوجة الاب سره نکاح حرام ده ليکن که دغه ښځه سړې فرض کړې شی نودَدغه جينئی سره دَ نکاح دَ حرمت هيڅ وجه نه جوړيږی لهذا مذکوره قاعده دَ طرفين په حرمت باندې مبنی ده دَ يوطرف حرمت کافی نه دې.

---

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب لا تنکح المرأة علی عمتها (رقم-۵۱۰۹) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب تحريم الجمع بين المرأة وعمتها أو خالتها فی النکاح (رقم-۳۳ - (۱۴۰۸)واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب ما يکره أن يجمع بينهن من النساء (رقم-۲۰۶۶) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ لا تنکح المرأة علی عمتها. ولا علی خالتها(رقم-۱۹۲۹) کتاب النکاح/باب ما لا يجمع بينه من النساء (رقم-۲۰)

## [۲۱۶۱] د حرمت رضاعت حکم

[۲] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ الْوِلَادَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① اوبي بي عائشه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د پينو څکلو په وجه هغه رشتې حرامې کيږي کومې چې د پيدائش په وجه حرامې دي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الرَّضَاعَةُ: په پينوه دوو شريکو بچو په مينځ کښې د نسبت نوم دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** «يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ:

**د رضاعت سره متعلق يو څو اصطلاحي الفاظ:** رضاعت په اصل کښې د پينو څکلو په معنی کښې دي د رضاعت صيغه د باب فتح کرم اوسمع تولو نه راځي.

رضيع پينې څکونکې بچې ته وائي اومرضعه پينې ورکونکې ښځې ته وائي. د رضاعت موده دوه کاله ده په کوم چه فتوی ده

### د رضاعت په موده کښې مذاهب:-

څومره اندازه باندې پينې څکلوسره د رضاعت حرمت ثابتيږي په کوم سره چه د نسب د حرمت په شان حرمت راځي. ① امام شافعي رحمه الله د رضاعت حرمت پنځو ځل څکلوسره تړلې دي

② د امام احمد بن حنبل رحمه الله او اهل ظواهر په نيز حرمت د رضاعت درې ځل څکلوسره ثابتيږي

③ جمهور يعنی امام مالک رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله اوجمهورعلماء فرمائي که چرې د ښځې د پيشوموده رضاعت په دوو کالوکښې دننه په يقيني توګه باندې د ماشوم د حلق نه تيرشو نوکه دا پينې لږ وي اوکه ډير حرمت د رضاعت به ثابتيږي. په مرضعه باندې به د دغه بچې فروع حرام شي او د رضيع بچې باندې مرضعه او ودې اصول اوفروع ټول حرام شي.

**د اول فريق دليل:** - د حضرت عائشه رضي الله عنها حديث نمبر (۳۶۷) د اول فريق مستدل دي کوم کښې چه ذکر دي چه قرآن کريم کښې اول د لسو رضعاتو سره د حرمت حکم نازل شوې وو بيا هغه حکم منسوخ شو اود پنځو رضعاتو حکم راغلو د رسول الله ﷺ تروفات پورې هغه آيت په قرآن پاک کښې لوستلې شو.

---

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب {وامهاتکم اللاتی ارضعنکم} [النساء: ۲۳] ویحرم من الرضاعة ما یحرم من النسب (رقم-۵۰۹۹)ومسلم فی کتاب الرضاع/باب یحرم من الرضاعة ما یحرم من الولادة (رقم-۲ - (۱٤٤٤) کتاب الرضاع/باب رضاعة الصغیر (رقم-۱)

**داول فریق د دلیل نه جواب:-** دَحضرت عائشه رضی الله عنها حدیث خبر واحد دې او په خبر واحد سره دَ قرآن قرآنیت نه شی ثابتیدې لهذا دَ قرآن دَ آیت په موجودګئی کښې به دا روایت ترك کولې شی یا به تاویل کولې شی ځکه چه قرآن کریم یومحفوظ آسمانی صحیفه ده په دې محفوظ کتاب کښې دَ پنځو رضعاتو والاآیت نشته دې نه په مشهور اومتواتر قرأت کښې دَدې څه ذکر شته اوس که چرته دَ نبی کریم په آخری وخت کښې هغه آیت تلاوت شوې وې اودَ نبی کریم دَ وفات نه پس منسوخ شوې وې نودَدې مطلب خو هم دا شو چه نعوذ بالله دا قرآن محفوظ نه دې اودا نظریه دَ ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ [سورت حجر ۹.] منافی ده.

واصل حقیقت دادې چه دَ لسو رضعاتو والاآیت په پنځو رضعاتو والاآیت سره منسوخ شو دکوم تذکره چه حضرت عائشه رضی الله عنها کړې ده اودَ پنځو رضعاتو آیت ﴿وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ﴾ [نساء ۲۳.] په مطلق آیت سره منسوخ شو اوس دا آیت منسوخ التلاوة والحکم دې. البته حضرت عائشه رضی الله عنها ته دَدې رومبې نسخ علم وشو اوکیدې شی چه دَدویمې نسخ علم ورته نه وی شوې نوهغې دَخپل علم مطابق مذکوره حدیث بیان کړو.

**د دویم فریق دلیل:-** حدیث نمبر(۳۴۳) دَام الفضل روایت د دویم فریق مستدل دې په کوم کښې چه دی په دوو رضعاتوسره حرمت نه راځی لهذا په دریو سره به حرمت راځی لکه چه دوی په مفهوم مخالف باندې عمل کړې دې.

**د دویم فریق د دلیل نه جوابونه:-** ① مونږ دَ مفهوم مخالف هډو قائل نه یو اونه دَدې پابند یو. بل دَ منطوق په مقابله کښې دَ مفهوم طرف ته تلل هم مناسب نه دی اودا منل هم مناسب نه دی.

② دَ ام الفضل روایت دَهغه وخت دې کله چه دَ پنځو رضعاتو خبره مشهوره وه اودَهغې حکم منسوخ شوې نه وو کله چه منسوخ شو نو توله قصه ختمه شوه.

③ اصل حقیقت دادې چه "مصة" چپول دَ بچی فعل دې او "املاجة" دَمور فعل دې نوعادت او تجربه داسې ده چه کله ماشوم تیې په خوله کښې اخلی نو په تیی کښې زر پیئی نه راځی بل یوځل دوه هسې خوله وهی هم دې ته نبی فرمائیلی چه په دې سره رضاعت نه ثابتیږی ځکه چه په دې سره حلق ته پیئی نه ورځی دَ پیئو په ورتللوخو به یقیناً رضاعت ثابتیږی.

④ "مصتان" یا "املاجتان" دا عدد دې او په تعداد اوعدد کښې دَمفهوم مخالف نه شی اخستلې "قال الطیبی ومفهوم العدد ضعیف". [الکاشف ۲/۲۹۳.]

**د دریم فریق دلائل:-** ① دَ قرآن کریم آیت ﴿وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ﴾ [نساء ۲۳.] د دریم فریق مستدل دې. دا حضرات فرمائی چه ارضاع مطلق دې که هغه یوګوټ وی اوکه کم

اوزیات وی حرمت دَ رضاعت به ثابتیږی "ارضاع باب افعال ارضعنکم" مصدر دې

② په احادیث کښې دَ "الرضاعة" لفظ هم راغلې دې کوم چه مصدر دې او په مصدر کښې تکرار نشته نو په یو خل ځکلوسره به هم حرمت راځی که دَ سینې نه چېولوسره ئې ځکلې وی یا په لوښی کښې اچولوسره ئې اوځکی حرمت به ثابتیږی په دې کښې دَ تعداد او شمېر څه قید اوشرط نشته دې

③ عقلی دلیل دادې چه دَحرمت اصل علت جزئیت دې چه دَپیښو په وجه دَ یو بل په بدن کښې اجزاء ګډوډ کیږی اودَ خپل جزء نه استمتاع کول جائز نه دی. په دې وجه نکاح جائز نه ده اودا جزئیت په یو ځاځکی پیئوسره هم حاصلیدې شی. لهذا حرمت به ثابتیږی که هر کم وی اوکه زیات

**دَرضاعت مستثنی صورتونه:-** دلته یو څو صورتونه دی چه دَ رضاعت دَ مسئلې نه مستثنی دی چه په رضاعت کښې جائز او په نسب کښې هلته نکاح منع ده.

① دَ رضاعی رور نسبی خور جائز ده.

② دَنسبی رور رضاعی خور جائز ده.

③ دَ رضاعی خوئی نسبی خور جائز ده.

④ دَ رضاعی رور رضاعی خور جائز ده.

⑤ دَ رضاعی خوئی رضاعی خور جائز ده.

⑥ دَنسبی خوئی رضاعی خور جائز ده.

⑦ دَنسبی خور رضاعی رور سره نکاح صحیح ده.

⑧ دَ رضاعی خور رضاعی رور سره نکاح جائز ده.

⑨ دَ رضاعی خور نسبی رور سره نکاح جائز ده.

دا ټول نهه صورتونه دی کوم چه مستثنی دی. دَ فقه کتابونو کښې څه نور صورتونه هم دی لیکن شارحین حدیث هم دا نهه بیانوی.

[۲۱۶۲] دَرضاعی مور خاوند د پلار په حکم کښې

۳۲۳۳—[۳] (۱)[۱] «وَعَنْهَا قَالَتْ: جَاءَ عَمِّي مِنَ الرَّضَاعَةِ فَاسْتَأْذَنَ عَلَيَّ[۲] فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[۳] فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَسَأَلْتُهُ[۴] قَالَ: إِنَّهُ عَمُّكِ فَأْذَنِي لَهُ[۵]

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب ما یحل من الدخول والنظر إلی النساء فی الرضاع (رقم-۵۲۳۹) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب تحریم الرضاعة من ماء الفحل (رقم-۷ - (۱۴۴۵))واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی لبن الفحل (رقم-۲۰۵۷) والترمذی فی کتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی لبن الفحل (رقم-۱۱۴۸) و ابن ماجه فی کتاب النکاح/ لبن الفحل (رقم-۱۹۴۹) کتاب النکاح/باب ما جاء فی الخطبة (رقم-۲) واحمد فی المسند:۶/۱۹۴

قَالَتْ: قُلْتُ لَهُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّمَا أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ وَلَمْ يُرْضِعْنِي الرَّجُلُ.[٦] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِنَّهُ عَمُّكِ فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ وَذٰلِكَ بَعْدَمَا ضُرِبَ عَلَيْنَا الْحِجَابُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او بي بي عائشه ﷺ وايي چې (يو ورځ) زما رضاعي تره زما کور ته د راتلو اجازت وغوښتلی،[٢] ما د اجازت ورکولو نه انکار وکړي، چې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکرم،[٣] پس پيغمبر راغلی ما په دې باره کې پوښتنه وکره،[٤] حضور ﷺ وفرمايل چې هغه ستا تره دي، هغه ته د راتلو اجازت ورکوه،[٥] بي بي عائشه ﷺ فرمايي چې (د دې اوريدو سره) ما عرض اوکړو چې ماته خوښځي پې راکړي وي سړي خونه وی راکړي.[٦] حضور ﷺ وفرمايل چې په دې کښې شک نشته، چې هغه ستا تره دی، ځکه هغه ستا کره راتلی شي (بي بي عائشي ﷺ بيان وکړي) زما د رضاعي اکا (تره) د راتګ د هغه وخت واقعه ده، کله چې زمونږ د پاره د اجنبي سړو نه پرده کول واجب شوی وو

**تسهيلات:** **قوله:** إِنَّهُ عَمُّكِ:

**د رضاعی ورور کيدو وضاحت:-**

حضرت عائشه ﷺ چه د کومې ښځې پيئی څکلي وو دَهغې دَ خاوند نوم ابوالقعيس وو اوکوم سړي چه دَعائشه ﷺ کورته داخليدلو دپاره راتلو دَهغه نوم افلح وو افلح دَ ابوالقعيس رور وو. دَ ابوالقعيس دَ ښځې دَ پيئو څکلو دَ وجې نه دا دَ حضرت عائشه ﷺ رضاعی پلار شو اودَ هغه رور افلح دَ حضرت عائشه ﷺ رضاعی تره شو

**قوله:** أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ:

**دعائشې مقصد:-** حضرت عائشه ﷺ په دې کلام سره دا خودل غواړی چه پيئی دَ ښځې دی نورضاعت هم ښځې نه ثابتيدل پکاردی. دَ سړی په رضاعت کښې څه دخل دې نبی کريم ارشاد اوفرمائيلو چه نه، دَ ښځې دَ پيئو دَ وجې نه سړي هم رضاعی جوړيږی پيئی سره دَدې چه دَښځې دی ليکن دَ خاوند په جماع سره پيئی پيدا کيږی نوخاوند ته هم په پيئوکښې دخل شته دي.

**[۲۱۶۲] درضاعي ورېري سره د نکاح حرمت**

۳۲۳۳-[۴] (۱)[١] «وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ[٢] هَلْ لَكَ فِي بِنْتِ عَمِّكَ حَمْزَةَ فَإِنَّهَا أَجْمَلُ فَتَاةٍ فِي قُرَيْشٍ، [٣] فَقَالَ لَهُ: أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ حَمْزَةَ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ[٤] وَأَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا حَرَّمَ مِنَ النَّسَبِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] او د حضرت علي کرم الله وجهه په باره کښې منقول دي چې هغه عرض وکړو، يا رسول الله ﷺ[٢] ستا د اکا (تره) (حمزه) لور ستا (د خپلي نکاح د پاره) ولي خوښه نه ده؟

---

۱) اخرجه مسلم في كتاب الرضاع/باب تحريم ابنة الأخ من الرضاعة (رقم-۱۱ - (۱٤٤٦))

هغه خو د قریشو په پیغلو جینکو کښې یوه حسین ترینه جینۍ ده،[۳] حضور ﷺ ورته وفرمایل چې آیا تاته معلومه نه ده چې حمزه ﷺ زما په پیئو کی شریک وررور دی.[۴] اوالله تعالٰی ﷻ چې کومې رشتې د نسب په وجه حرامې کړې دي، هغه رشتې بې رضاعت په وجه هم حرامې کړې دي. (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: هَلْ لَكَ فِي بِنْتِ عَمِّكَ حَمْزَةَ:**

**د مذکوره جملې مفهوم:** - یعنی ولې ستاد حضرت حمزه ﷺ په لورکښې څه دلچسپی نشته حالانکه داپه قریشوکښې د ټولونه زیاته ښائسته ده نو "هل لك" مبتداء "رغبة" خبرمحذوف دي حضرت حمزه ﷺ د نبی کریم تره وو لیکن د دواړو یوعمروو او دواړه رضاعی رونړه هم وو څکه چه دواړو د ابولهب د وینځې ثویبه پیئی څکلې وو په دې وجه: حمزه ﷺ لور د نبی کریم رضاعی وریره وه کومې سره چه نکاح حرام وه.

**د نبی کریم ﷺ رضاعی میاندې:** - رسول الله ﷺ مبارك د څلورو ښځوپیئی څکلې دی ① د خپلې مور محترمې آمنه ② حلیمه سعدیه ③ ام ایمن ④ او ثوبیه.

**[۲۱٦٤] د رضاعت مقدار**

[۵] (۱)[۱] وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ قَالَتْ: إِنَّ نَبِيَّ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[۲] «لَا تُحَرِّمُ الرَّضْعَةُ أَوِ الرَّضْعَتَانِ».

**ترجمه:**[۱] اوبې بې ام فضل ﷺ وايي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [۲] یو خل یا دوه خله پئ څکل نه حراموي (یعني یو خل یا دوه خله رودلو سره نکاح د پاره حرمت رضاعت نه ثابتیږي)

**حل اللغات:** ① الرَّضْعَةُ: یو خل پئ څکل ② الرَّضْعَتَانِ: دوه خله پئ څکل.

(۲)[۱] وَفِي رِوَايَةِ عَائِشَةَ قَالَ: لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ أَوِ الْمَصَّتَانِ.

**ترجمه:**[۱] او د بې بې عائشې ﷺ په روایت کښې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمایل یو خل یا دوه خله رودل (نکاح) نه حراموي

**حل اللغات:** ① الْمَصَّةُ: یو خل پئ رودل ② الْمَصَّتَانِ: دوه خله پئ رودل.

۱) اخرجه مسلم فی كتاب الرضاع/باب فی المصة والمصتین (رقم-۲۱ - (۱٤٥۱) وابن ماجه فی كتاب النكاح/ لا تحرم المصة ولا المصتان (رقم-۱۹٤۰)

۲) اخرجه مسلم فی كتاب الرضاع/باب فی المصة والمصتین (رقم-۱۷ - (۱٤٥۰) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب النكاح/باب هل يحرم ما دون خمس رضعات (رقم-۲۰٦۳) والترمذی فی كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا تحرم المصة ولا المصتان (رقم-۱۱٥۰) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب:القدر الذی يحرم من الرضاعة (رقم-۳۳۰۹) وابن ماجه فی كتاب النكاح/ لا تحرم المصة ولا المصتان (رقم-۱۹٤۱)

٣١٦٦-(١)[١]وَفِي أُخْرَى لِأُمِّ الْفَضْلِ[٢]قَالَ: لَا تُحَرِّمُ الْإِمْلَاجَةُ وَالْإِمْلَاجَتَانِ. هٰذِهِ رِوَايَاتٌ لِمُسْلِمٍ.

**ترجمه:**[١]او دبي بي ام فضل په يو روايت كښې دا الفاظ دي[٢]چې حضور ﷺ وفرمايل يو ځل يا دوه ځله (په خله كښې) تى دا خلول (نكاح) نه حراموي (دا ټول روايتونه مسلم رحمه الله نقل كړي دي)

**حل اللغات:** - ①الْإِمْلَاجَةُ: يو ځل په خوله كښې تى داخلول ②الْإِمْلَاجَتَانِ: دوه ځله په خوله كښې تى داخلول

**تسهيلات:**

**نوټ:** - ددې حديث تشريح د حديث نمبر (٣١٦١) يل كښې ذكرشوې ده

٣١٦٧-[٢] (٢)[١]وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ فِيمَا أُنْزِلَ مِنَ الْقُرْآنِ:[٢] عَشْرُ رَضَعَاتٍ مَعْلُومَاتٍ يُحَرِّمْنَ،[٣] ثُمَّ نُسِخْنَ بِخَمْسٍ مَعْلُومَاتٍ[٤]فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهِيَ فِيمَا يُقْرَأُ مِنَ الْقُرْآنِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١]اوبي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې په قرآن كريم كښې دا حكم نازل شوى وو،[٢] چې لس ځله پې ځكل، هر كله چې د دې د ځكلو كامل يقين وي (نكاح) حراموي،[٣] بيا دا حكم پنځه ځله د ځكلو سره چې د هغه دځكلو كامل يقين وي، منسوخ شو (يعني وروسته چې دا حكم نازل شو چې پنځه ځله پې ځكل چې د هغه د ځكلو كامل يقين وي حرمت رضاعت ثابتوي، نو اولنى حكم منسوخ شو ،[٤] د دې نه وروسته رسول الله ﷺ د دې دنيا نه تشريف يو وړى، اودا آيت په قرآن كريم كښې تلاوت كيدلى، (مسلم)

**تسهيلات:**

**نوټ:** - ددې حديث تشريح د حديث نمبر (٣١٦١) يل كښې ذكرشوې ده

**[٣١٦٨] دَرضاعت موده**

٣١٦٨-[٤] (٣)[١]وَعَنْهَا «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا رَجُلٌ[٢] فَكَأَنَّهُ كَرِهَ ذٰلِكَ فَقَالَتْ: إِنَّهُ أَخِي[٣]فَقَالَ انْظُرْنَ مَنْ إِخْوَانُكُنَّ[٤]فَإِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١]او د ام المؤمنين بي بي عائشى رضي الله عنها نه روايت دي چې يوه ورځ نبي كريم ﷺ

---

١) اخرجه مسلم فى كتاب الرضاع/باب فى المصة والمصتين (رقم-١٨ - (١٤٥١) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب:القدر الذى يحرم من الرضاعة (رقم-٣٣٠٨) واحمد فى المسند: ٣٢/٦

٢) اخرجه مسلم فى كتاب الرضاع/باب التحريم بخمس رضعات(رقم-٢٤ - (١٤٥٢) واخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب هل يحرم ما دون خمس رضعات (رقم-٢٠٦٢) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب:القدر الذى يحرم من الرضاعة (رقم-٣٣٠٧)

٣) اخرجه البخارى فى كتاب النكاح/باب من قال: لا رضاع بعد حولين (رقم-٥١٠٢) ومسلم فى كتاب الرضاع/باب إنما الرضاعة من المجاعة (رقم-٣٢ - (١٤٥٥) واخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب فى رضاعة الكبير (رقم-٢٠٥٨) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب:القدر الذى يحرم من الرضاعة (رقم-٣٣١٢)

هغی ته تشریف راوړو نو هغه وخت یو سړی ورسره ناست وو۲ (د هغه په لیدو سره) حضور ﷺ ته ګویا ناګوار شو ، بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې ما (د حضور ﷺ ناګوارۍ محسوسولو سره) عرض اوکړو چې دي زما د پینو شریک ورور دی.۳ حضور ﷺ وفرمایل ګوره (یعني دا غور او سوچ وکړه) چې ستا ورور څوک کیدی شي.۴ څکه چې په شرعي طور سره د رضاعت اعتبار د لوږي په وخت دي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ①الْمَجَاعَةِ: د ماشوموالی په حالت کښې چه پې خیټې ته لاړ شی کوم وخت کښې چه د دغه ماشوم بل څه خوراک نه وی، هغې ته مجاعت وائی؟

**تسهیلات:**

**قوله**: فَإِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ

**د هذا په طور د پیو څکلو سره د رضاعت د حکم تعلق**:- دَدې حدیث مطلب دا شو چه دَ پینوڅکلواحکام هغه وخت شروع کیږی کله چه دا پینی دَ خوراك په توګه بدن کښې ورکوز شی څکه چه هم په دغه زمانه کښې پینی دَبدن جز جوړیږی اوهم په دې سره دَ رضاعت حرمت ثابتیږی دَ المجاعـة مطلب هم دغه دې چه دا پینـی دَ اولګـې دَ وجـې نـه بـدن تـه کوزشوې وی بـل څـه خوراك نـه وی. حضرت عائشه رضي الله عنها هم دغـه سړې دَ پینوشریك رور ګنړلې وو لیکن چونکه داپینی دَ رضاعت دَ مودې نه پس څکلې شوې وو پـه دې وجـه دې سره رضاعت ثابت نه شو نونبی کریم خفګان ښکاره کړو.

**د رضاعت مدت او مفتی به قول**:- دَ رضاعت موده دَ جمهورو په نیز دوه کاله ده اوصاحبین هم دې طرف ته تلی دی. امام ابوحنیفه رحمه الله دوه نیم کاله وائی لیکن فتوی دَ صاحبین او جمهورو په قول ده

**[۳۱۶۹] دَرضاعت په ثبوت کښې دَیوې ښځې د ګواهی اعتبار**

۳۱۶۹—[۸] (۱)۱«وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ أَنَّهُ تَزَوَّجَ ابْنَةً لِأَبِي إِهَابِ بْنِ عَزِيزٍ۲فَأَتَتِ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ: قَدْ أَرْضَعْتُ عُقْبَةَ. وَالَّتِي تَزَوَّجَ بِهَا۳فَقَالَ لَهَا عُقْبَةُ مَا أَعْلَمُ أَنَّكِ قَدْ أَرْضَعْتِنِي وَلَا أَخْبَرْتِنِي۴فَأَرْسَلَ إِلَى آلِ أَبِي إِهَابٍ فَسَأَلَهُمْ

**ترجمه**:۱ د حضرت عقبه ابن حارث رضي الله عنه په باره کښې منقول دی چې هغه د ابو اهاب ابن عزیز لور سره نکاح وکړه.۲ نو یوه ښځه راغله هغی اوویل چې ما عقبه ته او د ابواهاب لور ته، چې د هغی سره عقبه واده کړي دی، پې ورکړي دي (نو عقبه او د ابواهاب لور چې پې شریک ورور، خور شو ، د هغوئ نکاح باطله شوه)۳ عقبه هغه ښځې ته اوویل چې ماته دا معلومه نه ده چې تا په ما باندې پې څکلی دي، او نه تا ماته (د دې نه مخکې)

---

۱ ) اخرجه البخاري في كتاب الشهادات/باب إذا شهد شاهد. أو شهود بشيء. وقال آخرون: ما علمنا ذلك. يحكم بقول من شهد (رقم-۲۶۴۰)

خبرا کړي دي، [۴] بيا عقبه يو سړي د ابو اهاب د خاندان والاوو ته د دې معلومولو د پاره ولېږلې، چې آيا دې ښځې ستا په لور پۍ څکلې دي؟

[۱] فَقَالُوا: مَا عَلِمْنَا أَرْضَعَتْ صَاحِبَتَنَا، فَرَكِبَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْمَدِينَةِ [۲] فَسَأَلَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: كَيْفَ وَقَدْ قِيلَ [۳] فَفَارَقَهَا عُقْبَةُ وَنَكَحَتْ زَوْجًا غَيْرَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ».

**ترجمه:** [۱] هغوی اوویل چې مونږ ته معلومه نه ده چې دې ښځې زمونږ لور ته پۍ ورکړې دي، د دې نه وروسته عقبه رضی الله عنه سوریدو سره مدینې ته نبی کریم ﷺ ته ورسیدو . [۲] او د حضور ﷺ نه يې د خپلې نکاح په باره کښې پوښتنه وکړه چې (دا صورت پیدا شوی دی آيا زما نکاح باطله شوې ده؟ یا باقي ده؟) حضور ﷺ ورته وفرمایل چې ته هغه جینۍ څنګه په نکاح کښې ساتلې شې، کله چې دا ظاهره شوې ده چې هغه ستا د پیئو شریکه خور ده، [۳] نو عقبه رضی الله عنه هغه جینۍ جدا کړله، او هغه جینۍ د یو بل سړي سره نکاح وکړله، (بخاري)

**حل اللغات:** ① كَيْفَ وَقَدْ قِيلَ: ته هغه جینۍ څنګه په نکاح کښې ساتلې شې، کله چې دا ظاهره شوې ده چې هغه ستا د پیئو شریکه خور ده، ② فَفَارَقَهَا: نو هغه جینۍ نې جدا کړله يعنى د نکاح نه نې اوویستله.

**تسهيلات: قوله:** قَدْ أَرْضَعَتْ عُقْبَةَ

## د یوې ښځې په ګواهۍ سره د رضاعت په ثبوت کښې مذاهب: -

یوه ښځه چې ګواهی ورکړی چه ما فلانکی سړی ته پیئی ورکړي وو نو په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① امام احمد بن حنبل رحمه الله او اسحاق بن راهويه په نيزدَ رضاعت دَحرمت دَپاره دَ یوې ښځې ګواهی کافی ده. ② جمهور علماء فرمائی چه صرف یوه ښځه مرضعه دَ ګواهئی سره دَ رضاعت حرمت نه ثابتيږی.

**د اول فريق دليل:** - د دوی مستدل حديث الباب دې په دې کښې نبی کریم ﷺ د یوې ښځې په ګواهۍ باندې د ښځې او خاوند په مينځ کښې تفریق اوکړو

**داول فريق د دليل نه جوابونه:** - ① کیدې شی نبی کریم ته دَوحی په ذريعه معلومه شوه چه دې ښځې واقعی دواړو ته پیئی ورکړې وو نو نبی کریم دَ فرقت حکم ورکړو.

② دَ پريخودو دا فيصله اوحکم په توګه دَ قاعده شرعيه نه وو او نه په توګه دَ فتوی وو بلکه داحکم په توګه دَ احتياط اوتقوی وو. اودَ حديث دا لفظ کيف وقد قيل په دې باندې صريح دلالت کوی يعنی چه کله یودَ شك والاخبره کړې شوې ده نودې نه پس به ستا زړه څنګه مطمئن وې په دې وجه بهتر ده چه پريږدې.

**د دويم فريق په خپل مينځ کښې اختلاف:** - دَ جمهورو په مینځ کښې لږشان اختلاف دې

① امام مالک رحمه الله فرمائي چه دَ دوو ښخو شهادت کافي کيږي
② امام شافعي رحمه الله دَ څلورو ښخو ګواهي معتبرمني
③ دَ احنافو په نيز په رضاعت کښې هم هغه عام قاعده چليږي چه دَ دين په ټولو شعبو کښې دَ ګواهئ قاعده چليږي چه دوه سړي وي يا يوسړې اودوه ښځې وي داد شهادت نصاب دې په رضاعت کښې به هم په دې باندې عمل کيږي

**[۲۱۷۰] د دارالحرب څخه قيدولو سره د راوستل شوې ښځې حکم**

[۹] (۱) ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ ٢ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ حُنَيْنٍ بَعَثَ جَيْشًا إِلَى أَوْطَاسٍ ٣ فَلَقُوا عَدُوًّا فَقَاتَلُوهُمْ فَظَهَرُوا عَلَيْهِمْ وَأَصَابُوا لَهُمْ سَبَايَا ٤ فَكَأَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَحَرَّجُوا مِنْ غِشْيَانِهِنَّ مِنْ أَجْلِ أَزْوَاجِهِنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ٥ فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى فِي ذَلِكَ ﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ [النساء: ۲۴]» ٦ أَيْ فَهُنَّ لَهُمْ حَلَالٌ إِذَا انْقَضَتْ عِدَّتُهُنَّ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي ٢ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د غزوه حنين په ورځ يو لښکر د اوطاس جانب ته وليږلی (چې طائف ته نژدې واقع دی) ٣ هغه لښکر د دښمن سره وجنګيدلی، او د جنګ نه وروسته هغه فتح ياب شول، او ډير قيديان ورته په لاس ورغلل (چې هغوئ کښې) ښځې هم وې، اوهغه ښځې د وينځو په طور د مجاهدينو په ملکيت کښې راغلې ٤ ليکن د رسول الله صلى الله عليه وسلم بعضې اصحابو رضي الله عنهم هغه وينځو سره په دې وجه د جماع نه پرهيز وکړې، چې هغه د خاوندانو والا وې، او د هغوئ خاوندان مشرکان وو. ٥ نو په دې سلسله کښې الله تعالى جل جلاله دا آيت نازل کړی. وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ. او په تاسو هغه ښځې حرام شوې دې کومې چې د خاوندانو والا دې. ٦ خو هغه ښځې په تاسو حرامې نه دې، کومې چې ستاسو په ملکيت کښې راغلې دې. يعنې هغه ښځې چې تاسو د جنګ نه وروسته د دارالحرب نه د وينځو په طور نيولې راوستلې وې. او د هغوئ خاوندان په دارالحرب کښې پاتې شوې دي، هغه ښځې د عدت تيريدو نه وروسته ستاسو د پاره حلالې دې. (مسلم)

**حل اللغات:** ① جَيْشًا: د جنګيالو جماعت، ډله، لښکر. ② فَظَهَرُوا: هغوی کامياب شو. ③ وَأَصَابُوا لَهُمْ سَبَايَا: دَ مسلمانانو په لاس کښې دَ کافرانو ښځې قيد کښې راغلې ④ تَحَرَّجُوا: هغوی ځان اوساتلو. ⑤ غِشْيَانِهِنَّ: د جماع کولو نه هغوی سره ⑥ وَالْمُحْصَنَاتُ: خاوندانو والا ښځې.

۱) اخرجه مسلم في كتاب الرضاع/باب جواز وطء المسبية بعد الاستبراء. وإن كان لها زوج انفسخ نكاحها بالسبي (رقم-۳۳ - (۱٤٥٦)) واخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب في وطء السبايا (رقم-۲۱۵۵) والترمذي في كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في الرجل يسبي الأمة ولها زوج هل يحل له أن يطأها(رقم-۱۱۳۲) والنسائي في كتاب الجهاد/باب:تأويل قول الله عز وجل {والمحصنات من النساء إلا ما ملكت أيمانكم} [النساء: ۲٤] (رقم-۳۳۳۳)

**تسهيلات:**

**قوله** نُعَرِّجُوامِنْ عِشْيَانِهِنَّ.

**د استبرا رحم حکم:** —دا خو ډیره واضحه مسئله ده چه کومه ښځه د یو سړی په نکاح کښې وی د بل سړی خونه د هغې سره نکاح کول جائز دی اونه په دې باندې تصرف جائزدې اوکه د کافرانو ښځې په میدان جهاد کښې د مسلمانانو لاس ته راغلې اود هغوی خاوندان په دارالحرب کښې پاتې شو نواوس د هغوی څه حکم دې؟ د دې مسئلې حل دا دې چه په دې ښځو باندې استبراء رحم واجب دې یعنی د استبراء رحم نه وړاندې هغوی سره جماع کول جائزنه دی

**د استبرا رحم دوه صورتونه:-** ① د استبراء صورت دا دې چه دغه ښځې باندې یوحیض راشی که چرې حیض پرې نه راځی وړه وی یا آیسه وی نو په دې باندې د یوې میاشتې تیریدل ضروری دی بیابه ورسره جماع جائزوی

② اوکه چرې هغه ښځه حامله وی نود وضع حمل پورې به انتظارکول ضروری وی دا استبراء رحم دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۱۷۱] د محرماتوپه یووخت په نکاح کښې د ساتلو حرمت

[۱۰] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] نَهَى أَنْ تُنْكَحَ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا أَوِ الْعَمَّةُ عَلَى بِنْتِ أَخِيهَا [۳] وَالْمَرْأَةُ عَلَى خَالَتِهَا وَالْخَالَةُ عَلَى بِنْتِ أُخْتِهَا [۴] لَا تُنْكَحُ الصُّغْرَى عَلَى الْكُبْرَى وَلَا الْكُبْرَى عَلَى الصُّغْرَى». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَفِي النَّسَائِيِّ وَرِوَايَتُهُ إِلَى قَوْلِهِ بِنْتِ أُخْتِهَا.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ [۲] د دې نه منع فرمایل ده، چې د یوې ښځې سره د هغې د عمه په موجودګۍ کښې، یا د یوې ښځې سره د هغه د وریرې په موجودګۍ کښې نکاح وشي، [۳] او د دې نه یې هم منع فرمایله ده چې د یوې ښځې سره د هغه د خاله (په موجودګۍ کښې نکاح وکړی شي، یا د یوې ښځې سره د هغې د خورزې په موجودګۍ کې نکاح وکړی شي، [۴] او حضور ﷺ وفرمایل چې) د لوی (مثلاً عمه اوخاله) په موجودګۍ کښې د وړې (مثلاً وریره اوخورزه) سره او د کشنې په موجودګۍ کښې د لوی سره دې نکاح نشي کولی (اوبنت الاخ والاخت ته صغرې اوعمه وخاله ته کبرې پدې وجه اوویل شوه څکه چې وریره اوخورزه دعمه اوخاله دپاره په منزله دلوروې اوعمه وخاله

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب ما یکره ان یجمع بینهن من النساء (رقم-۲۰۶۵) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء لا تنکح المراة علی عمتها ولا علی خالتها(رقم-۱۱۲۶) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب:تحریم الجمع بین المراة وخالتها (رقم-۳۲۹۶)

ددوي دپاره په منزله دموروي (ترمذي ابوداؤد دارمي نسايي)
او نسايي رحمه الله دا روايت تر بنت اختها پورې نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله** نَهَى أَنْ تُنْكَحَ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا:

**دحديث مفهوم:** - دحديث پاك حاصل دادې چې كه د اول نه ترور په نكاح كښې وي ددې په موجودګۍ كښې ددې وريرې سره يا كه وريره په نكاح كښې وي نو ددې ترور سره نكاح كول جائز نه دي خو كه دوئ كښې يوې ته طلاق وركړى او ددې د عدت ورځې تيرې شي نو بيا د بلې سره نكاح كولې شي . يا په دوئ كښې يوه مړه شي نو ددې بلې سره نكاح كول درست دي .

## [۲۱۷۲] د ميرنۍ مور سره د نكاح كولو حرمت

[۱۱] (۱) ۱ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: «مَرَّ بِي خَالِي أَبُو بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ ۲ وَمَعَهُ لِوَاءٌ فَقُلْتُ أَيْنَ تَذْهَبُ؟ ۳ قَالَ: بَعَثَنِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى رَجُلٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةَ أَبِيهِ آتِيهِ بِرَأْسِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ، وَلِلنَّسَائِيِّ، وَابْنِ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيِّ "«فَأَمَرَنِي أَنْ أَضْرِبَ عُنُقَهُ وَآخُذَ مَالَهُ»" وَفِي هَذِهِ الرِّوَايَةِ قَالَ "عَمِّي" بَدَلَ "خَالِي"

**ترجمه:** ۱ او حضرت برا ابن عازب رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ زما ماما حضرت ابو برده رضي الله عنه ابن دينار زما سره په داسې حال كښې تير شو، ۲ چې د هغه په لاس كښې جنډه وه، ما پوښتنه ورنه وكړه چې ته چرته ځې؟ ۳ نو هغه اوويل چې يو سړي د خپل پلار د ښځي سره نكاح كړي ده. رسول الله صلى الله عليه وسلم زه دې سړي ته راليږلى يم چې د هغه سر پريكولو سره د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شم، (ترمذي ابوداؤد)

او دا بوداؤد رحمه الله په يو بل روايت كښې او د نسايي رحمه الله ابن ماجه رحمه الله او دارمي رحمه الله په روايت كښې داسې دي چې ابو برده رضي الله عنه اوويل چې حضور صلى الله عليه وسلم ماته حكم راكړى دى چې زه د هغه څټ ووهم، او د هغه مال اواسباب راوړم، او په دې روايت كښې زما د ماما په ځاى د تره الفاظ دى (نو دا خبره مختلف فيه شوه، چې حضرت ابو برده رضي الله عنه ابن نياز د برا بن عازب رضي الله عنه ماما وو يا اكا (تره) وو)

---

۱ ) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الحدود/باب فى الرجل يزنى بحريمه (رقم-۴۴۵۶) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فيمن تزوج امراة أبيه (رقم-۱۳۶۲) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب:نكاح ما نكح الآباء (رقم-۳۳۳۱) وابن ماجه فى كتاب الحدود/باب من تزوج امراة أبيه من بعده (رقم-۲۶۰۷) واحمد فى المسند: ۲۹۲/۴

**تسهيلات:**

**قوله:** آتِيهِ بِرَأْسِهِ:

**د پلار د منکوحې سره د نکاح کولو سزا:** -په اصل کښې دَ دغه سړی عقیده دَاهل جاهلیت په شان وه چه دَ پلار ښځې سره نکاح کول جائز دی بلکه هغه خلق مشرخونی په توګه دَ حقدار دَپلار ښځه یعنی دَهغه میرنې مور ورکوله او هغه بدبخت به هغې سره نکاح کوله دَدغه سړی چه کله داعقیده وه چه په اسلام کښې یوحرام څیز په حقیقت کښې حرام نه دې بلکه حلال دې نو په دې عقیده سره دا سړې مرتدشو نوواجب القتل شو ځکه چه اسلام یوډیر قانون دې. چرته چه حدود او تعزیرات دی داسې نه ده چه دَ خپل نرم طبیعت دَ وجې نه هم دَ اسلام احکام خراب کړی. اوس اوګوره دا صحابی دَنبی کریم دَ طرف نه یو سړې دَ پوهه کولودَپاره نه بلکه دَ هغه ستې الوزولو دَپاره ځی. دَنبی کریم جهنډا په لاس کښې اخستلوسره په دې وجه خوزوی چه خلقو ته یقین راشی چه دادَ نبی کریم لیګلې شوې سړې دې. "لواء" جنګی جهنډې ته وائی.

**[۳۱۷۴] د رضاعت د مودې تیریدوځخه روسته د حرمت رضاعت عدم صحت**

[۱۲] (۱) ۱ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «لَا يُحَرِّمُ مِنَ الرَّضَاعِ إِلَّا مَا فَتَقَ الْأَمْعَاءَ فِي الثَّدْيِ ۳ فَكَانَ قَبْلَ الْفِطَامِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي ام سلمه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هغه يئ ځکل حرمت رضاعت ثابتوي کوم چې د سيني نه د ځکلو په وجه کولمي خلاصي کي، ۳ او هغه يئ د تي د پريکولو د وخت نه مخکي ځکل شوي وي، (ترمذي)

**حل اللغات:** ① مَا فَتَقَ: مَا موصوله په معنی دَ الذی دې او فَتَقَ نصر ينصر نه دې دَدې معنی کولاوول دی. ② الْأَمْعَاءَ: کولمې. ③ الْفِطَامِ: د تیٔ نه پريکول، ماشوم باندې د مور پیٔ بندول .

**تسهيلات:**

**قوله:** فَكَانَ قَبْلَ الْفِطَامِ:

**د رضاعت وخت:** -دَدې مطلب دادې چه هغه پیئ دَ ماشوم خیټه اوکولمې دا مړې کړی لکه ځنګه چه دَیواوګی سړی خیټه په خوراك سره مړیږی یعنی دَ دغه ماشوم خوراك صرف دَ مور پیئ دی خوراك نه خوری اودا دَ رضاعت په موده کښې کیږی چه دَ مفتی به قول مطابق دَ دوو کالو زمانه ده.

---

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الرضاعة لا تحرم إلا في الصغر دون الحولين (رقم-۱۱۵۲)

**قوله فِي الثَّدْيِ:**

**د لفظ الثدي دو مطلبونه:** -① عربي محاوره کښې دا لفظ د رضاعت موده او د پيئو څکلو زمانې د پاره يادولې شي دلته که چرې هم دغه معنی واخستې شي نو مطلب به داشي چه: پيئو د څکلو په زمانه کښې ماشوم پيئې اوڅکل ② يا د دې لفظ نه امر واقعي بيان کړې شوې دې چه ماشوم عموماً پيئې هم د سينې نه نيغ په نيغه راکاږی څکي نو دا څه قيد احترازي نه دې چه د سينې نه علاوه که چرې د لوښي نه آوڅکي نو رضاعت به نه ثابتيږي

**قوله: فَتَقَ:**

**د رضاعت مودې ته د اشارې الفاظ:** -د فتق د ضمير فاعل نه في الثدي حال مقدره دې او الامعاء مفعول به دې. "اي لايحرم من الرضاع الا الذی فتق الامعاء حال کون اللبن ممتلئاً في الثدي" علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه الثدي لفظ د لوښي په معنی کښې دې لکه چه دا پيئې د سينې په لوښي کښې جمع پراته دي او ماشوم ئې څکي. فتق الامعاء او في الثدي دا ټول الفاظ د رضاعت د مودې طرف ته اشاره ده. [الکاشف: ۶/ ۳۰۰-۲۹۹.]

**قوله: وَكَانَ قَبْلَ الْفِطَامِ:**

**د سابقه کلام تاکيد:** -يعنی د پيئونه ارولو نه مخکښې ئې څکلې وی دا جمله د سابقه کلام د پاره په توګه د تاکيد ده يعنی د رضاعت په موده کښې ئې پيئې څکلې وی او هغه موده دوه کاله دې ځکه چه هم د دغه زمانې پيئې د بدن جز جوړيږی کوم چه موجب حرمت رضاعت دې

**[۲۱۷٤] د رضاعي مور حق ادا کول**

| ۳۱۷۴ -[ ۱۳ ] (۱) ۱ وَعَنْ حَجَّاجِ بْنِ حَجَّاجٍ الْأَسْلَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ ۲ أَنَّهُ «قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، مَا يُذْهِبُ عَنِّي مَذَمَّةَ الرَّضَاعِ؟ ۳ فَقَالَ: غُرَّةٌ عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ. |
| --- |

**ترجمه:** ۱ او حضرت حجاج ابن حجاج اسلمي رضي الله عنه د خپل پلار بزرګوار نه نقل کوي ۲ چې هغه (يعني حجاج اسلمي رضي الله عنه) عرض وکړي چې يا رسول الله ﷺ هغه کوم شی دی، چې په هغه سره د پيئو د حق نه خلاصيدې شم؟ يعني د خپلې رضعي مور حق څنګه اداکړم؟ ۳ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې مملوک ورکول، که غلام وي يا وينځه چې د پيئو ورکونکی ښځی خدمت وکړي چې د هغی د خدمت جبيره وګرځی، (ترمذي ابوداؤد نسايي دارمي)

---

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب في الرضخ عند الفصال (رقم-۲۰۶٤) والترمذي في كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما يذهب مذمة الرضاع (رقم-۱۱۵۳) والنسائي في كتاب الجهاد/باب:حق الرضاع وحرمته (رقم-۳۳۲۹) واحمد في المسند: ۳/ ٤۵

**حل اللغات:** ① مَذِمَّةُ الرِّضَاعِ: د رضاعت د حق ذمه داري پوره كول ② غُرَّةٌ: د اس په تندی باندې سپين داغ ته وائی. هر ښائسته څيز ته وائی. دلته ترې غلام یا وينځه مراد دی

**تسهيلات:**

**قوله:** مَذِمَّةُ الرِّضَاعِ:

**د اجرت نه څه زياتى بدله مرضعې ته وركول:** - مذمة د ذال كسره اوميم فتحه سره دَ حق او ذمه دارئی په معنی كښې دې. الذمام دَ واجب الحفاظت څيز حق اداكولوسره حفاظت كولوته وائی مراد دَ پينو څكلو دَ احسان بدله وركول دی دَ عربو عادت وو چه دَ پينو څكولو دَاجرت وركولونه علاوه دَ احسان په توګه به ئی څه وركول

**د لفظ غرة اصل معنی او مفهوم:** -هم دَ دغه څيزسوال حضرت حجاج اسلمی ﷺ كړې دې نبی كريم په جواب كښې اوفرمائيل غره وركړه غره ښائسته غلام ته وائی اصل كښې دا لفظ دَ اس په تندی باندې سپين داغ ته وئيلی شی بيا دَدې اطلاق په هرروښانه او سردار او شريف سړی باندې كيدلو. هم په دې سلسله كښې دا لفظ دَ غلام اووينځې دَپاره اووئيلې شو. نبی كريم اوفرمائيل چه دَ مرضعه دَ خدمت دَپاره وينځه يا غلام وركړه هغه به دَدې خدمت كوی لكه څنګه چه مرضعه ستا خدمت اوكړو لكه چه دا "جزاء حقها من جنس فعلها" شو يعنی دَخدمت بدله خدمت سره اوشو. ﴿هَلْ جَزَآءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ﴾ [الرحمن: ۶۰.]

### [۲۱۷۵] د حليمی ﷺ سعديه تعظيم اوتكريم كول

> ٣١٧٥- [١٣] (١) ① وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ الْغَنَوِيِّ، قَالَ: «كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ فَبَسَطَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رِدَاءَهُ حَتَّى قَعَدَتْ عَلَيْهِ ③ فَلَمَّا ذَهَبَتْ قِيلَ: هَذِهِ أَرْضَعَتِ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»-. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو طفيل غنوي ﷺ وايي چې (يوه ورځ) زه د نبی كريم ﷺ په خدمت كښې ناست وم، ② چې اچانك يوه ښځه (يعني دايه حليمه ﷺ) راغله، حضور ﷺ (د هغې د تعظيم او تكريم او خوشحالولو د پاره) خپل پټو مبارک اوار كړ، او هغه په هغه كيناستله، ③ بيا چې هغه ولاړه (نو هغه خلقو ته چې هغه د حضور ﷺ د تعظيم او تكريم په وجه او د حضور ﷺ په پټو مبارک د هغې ښځې په ناسته سره حيران او متعجب وو) اوښودل شو چې دا ښځه هغه ده چې، هغې نبی كريم ﷺ ته پئ وركړي دي، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① فَبَسَطَ: خور (آوار) ئې كړو. ② رِدَاءَهُ: خپل څادر،

(١) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الأدب/باب فی بر الوالدين (رقم-٥١٤٤)

**تسهیلات:**

**قوله** فَبَسَطَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رِدَاءَهُ:

**د حضور پاک ﷺ د خپلې رضاعي مور عزت کول:** حضرت حلیمه سعدیه د قبیله سعد سره تعلق لرلو هغې دوه کاله نبي کریم ته پئی ورکړې دی د جنګ حنین په موقع کیدې شی دا نبي کریم ﷺ ته راغلې وه نبي کریم د دې ډیر اکرام اوکړو هم په دې موقع د نبي کریم رضاعي خور او د حلیمه سعدیه لور شیما هم نبي کریم له راغلې وه د هغې هم نبي کریم ډیر اکرام اوکړو دا دواړه خوش قسمته مسلمانانې شوې وې د حضرت حلیمه رضي الله عنها قبر په مدینه منوره کښې جنت البقیع کښې دې

**[۳۱۷٦] په یو وخت کښې د څلورو ښځه د زیاتو ښځو سره د نکاح حرمت**

۳۱۷۶-[۱۵] (۱)① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ «أَنَّ غَيْلَانَ بْنَ سَلَمَةَ الثَّقَفِيَّ أَسْلَمَ وَلَهُ عَشْرُ نِسْوَةٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ② فَأَسْلَمْنَ مَعَهُ③ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَمْسِكْ أَرْبَعًا وَفَارِقْ سَائِرَهُنَّ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وایي کوم وخت چې غیلان ابن سلمه ثقفي مسلمان شو . نو د هغه لس ښځې وې، چې هغه د جاهلیت په ورځو کښې واده کړي وې،② د هغه سره هغه لس سره ښځې هم مسلمانې شوې،③ نو رسول الله ﷺ هغه ته حکم ورکړې چې په هغوی کښې څلور ښځې په خپله نکاح کښې وساته او باقي جدا کړه. احمد ترمذي ابن ماجه

**حل اللغات** - ① فَارِقْ: جدا کړه، پریږده، یعنی طلاق ورکړه.

**تسهیلات:**

**قوله** - أَمْسِكْ أَرْبَعًا وَفَارِقْ سَائِرَهُنَّ:

**په نکاح کښې د څلورو نه زیاتو ښځو د وجود په صورت کښې مذاهب:-**

کافر چې د خپلو ښځو سره مسلمان شی کومې چې د څلورو نه زیاتې وی نو صرف څلور په ساتی خو کومې به ساتی او کومې پریږدی نو

① ائمه ثلاثه او امام محمد رحمه الله یعنی جمهور فرمائی د غه سړی ته اختیار دې چه کومې ساتل غواړی او دې ساتی او کومې چه پریخودل غواړی رخصت دې کړی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی دې سړی ته پریخودو کښې تخییر نشته بلکه اول چه کومو څلورو ښځو سره نکاح شوې ده هم هغه دې اوساتی او د څلورو د نکاح نه پس چه کومو سره نکاح شوې ده هغه د پریخودو د پاره متعین دی.

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۱۱۲۸. وابن ماجة فی السنن رقم الحدیث ۱۹۵۳. واحمد فی المسند رقم الحدیث ۲/ ۴۴

**د اول فريق دلائل:** - زيربحث د غيلان بن سلمه ﷺ روايت د اول فريق مستدل دي خکه چې په دې کښې د ((امسك أربعا)) مطلق الفاظ راغلی دی هيڅ قيد نشته چه اول کومه پريږدي او روستو کومه ساتی

۲ دَحضرت ضحاك بن فيروز ﷺ روايت د دوی مستدل دې په دې کښې د "اختر ايتهما شئت" الفاظ راغلی دی چه تخيير او اختيار استعمالولو باندې دلالت کوی

۳ دَ نوفل بن معاويه ﷺ روايت د دوی مستدل دې چه هغه ته کله دَ څلورو ساتلو او باقی پريخودو حکم ملاؤ شو نو هغه دَ ټولو نه مشره مخکښې نکاح شوې نی پريخوده او څلورنی او ساتلې.

**د اول فريق د دلائلو نه جواب:** - امام طحاوی دا جواب ورکړې دې چه په مذکوره احاديثو کښې خاوندته کوم اختيار ورکړې شوې دې دا دَهغه زړې او پخوانې نکاح خبره ده کله چه دَ څلورو نه زياتی يا د دوه خوئيندې يوځائی ساتلو دَ تحريم حکم هډو راغلې نه وو لهذا هغه وخت ټولې نکاح ګانې صحيح وې نو په ټولو کښې اختيار ورکړې شو چه کومې غواړی اودې ساتی او کومې چه غواړی رخصت دې کړی. بيا دا حکم موقوف شو. بهرحال دَ جمهورو قول راجح دې.

**د دويم فريق دليل:** - دَنکاح په معاملات کښې کفار دَ شرعی نصوصو او احکامات او فروعات پابند دی. نوچه کومې څلورنکاحونه يو کافر دَ مخکښې نه کړې وې هغه دَ اسلام په نظر کښې صحيح وې ليکن څلورونه پس نکاح صحيح نه وه مګر په کافرباندې شرعی احکامات تنفيذ خکه نه وو چه هغه مسلمان نه دې او اهل ذمه په خپل شخصی ژوندون کښې آزادې دی. ليکن چه کله هغه مسلمان شو نو اوس دَ شريعت حکم دَ هغه طرف ته متوجه شو لهذا چه کومې څلور اول په نکاح کښې راغلې وې نو هغه خوئی بيبيانې وې او روستو به هم هغه پاتې وی او کومې څلور چه روستو په نکاح کښې راغلې وې هغه نکاح کلا نکاح وه هغه هم هغه وخت کالعدم وې. لهذا هغه دَ پريخودو او رخصت کولو دَپاره متعين دی.

**مفتي به قول:** - دَ دوی دا دليل دَ شريعت مجموعی قواعد او اصولو باندې مبنی دې دا څه قياس نه دې چه دَ نصوص په مقابله کښې راغلې دې خوچونکه امام محمد ﷺ هم جمهورو سره دې لهذا فتوی دَ جمهورو په قول ده هم په دې کښې احتياط هم دې.

**[۲۱۷۷] د پنځو بنځو سره د زياتو په نکاح کښې د ساتلو عدم جواز**

۲۱۷۷—[۱۶] (۱) ⟦۱⟧ وَعَنْ نَوْفَلِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، قَالَ: «أَسْلَمْتُ وَتَحْتِي خَمْسُ نِسْوَةٍ ⟦۲⟧ فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⟦۳⟧ فَقَالَ: فَارِقْ وَاحِدَةً وَأَمْسِكْ أَرْبَعًا. ⟦۴⟧ فَعَمَدْتُ إِلَى أَقْدَمِهِنَّ صُحْبَةً عِنْدِي عَاقِرٍ مُنْذُ سِتِّينَ سَنَةً فَفَارَقْتُهَا». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ⟦۱⟧ او حضرت نوفل ابن معاويه ﷺ وايي کوم وخت چې زه مسلمان شوم نو زما په نکاح کښې پنځه ښځې وې، ⟦۲⟧ ما به دې باره کښې (د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه ⟦۳⟧ نو حضور ﷺ راته وفرمايل چې يوه جدا کړه او څلور باقي وساته ⟦۴⟧ د حضور ﷺ د حکم اوريدو سره، ما د ټولونه مخکې ښځه جدا کړه، چې شنډه وه. او د شپيتو کلونه زما سره وه. (شرح السنة)

**حل اللغات** - ① أَقْدَمِهِنَّ صُحْبَةً: چه په ملګرتيا او نکاح کښې د نورو نه مخکښې وه. ② عَاقِرٍ: شنډه، چه هيڅ اولاد ئې نه وو

**تسهيلات:** **نوټ:** - د دې حديث تشريح په وړاندې حديث کښې تيره شوې ده

**[۲۱۷۸] د دوو خوېندو په نکاح کښې د ساتلو حرمت**

۲۱۷۸—[۱۷] (۲) ⟦۱⟧ وَعَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ فَيْرُوزَ الدَّيْلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: ⟦۲⟧ «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَسْلَمْتُ وَتَحْتِي أُخْتَانِ، ⟦۳⟧ قَالَ: اخْتَرْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ⟦۱⟧ او حضرت ضحاک ابن فيروز ديلمي د خپل پلار (حضرت فيروز ﷺ) نه نقل کوي. هغه اووېل ⟦۲⟧ چې ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ زه مسلمان شوی يم، او زما په نکاح کښې دوه خوېندې دي (په دې باره کښې) څه حکم دی؟ ⟦۳⟧ حضور ﷺ وفرمايل چې په دې دواړو کښې چې کومه يوه غواړې وې ساته، (ترمذي ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات** - ① وَتَحْتِي أُخْتَانِ: او زما په نکاح کښې دوه خوېندې دي

**تسهيلات:**

**قوله:** اخْتَرْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ:

**د نو مسلم په نکاح کښې د دوو خوېندو د اجتماع په صورت کښې حکم:** - مثلاً يو سړی اسلام قبول کړو او دهغه په نکاح کښې دوه خوېندې وې هغه هم دواړه مسلمانانې شوې نو جمهور فرمائي چه دې سړي ته اختيار دې چه کومه ساتي او کومه پريږدي او امام ابوحنيفه

---

۱) اخرجه البغوي في شرح السنة رقم الحديث ۲۲۸۹

۲) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الصوم/باب في صوم يوم عاشوراء (رقم-۲۴۴۳) والترمذي في كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في الرجل يسلم وعنده أختان (رقم-۱۱۳۰) وابن ماجه في كتاب النكاح/ الرجل يسلم وعنده أختان (رقم-۱۹۵۱)

ﷺ فرماني كه چرې د دواړو خوښيدو نكاح په يوځائي شوې وي نو اوس به دواړه رخصت كړي او كه چرې نكاح وراندې روستو شوې وي نو اولنې دې اوساتي او دويمې ته دې رخصت وركړي د دلائلو او مسائلو بحث مخكښې شوې دې

**[۲۱۷۹] د احد الزوجين په اسلام قبلولو سره د نكاح حكم**

۳۱۷۹-[۱۸] (۱) ۞ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «أَسْلَمَتِ امْرَأَةٌ فَتَزَوَّجَتْ ۞ فَجَاءَ زَوْجُهَا إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي قَدْ أَسْلَمْتُ وَعَلِمَتْ بِإِسْلَامِي ۞ فَانْتَزَعَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ زَوْجِهَا الْآخَرِ، وَرَدَّهَا إِلَى زَوْجِهَا الْأَوَّلِ». ۞ وَفِي رِوَايَةٍ أَنَّهُ قَالَ: إِنَّهَا أَسْلَمَتْ مَعِي ۞ فَرَدَّهَا عَلَيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې يوې ښځې اسلام قبول كړي، او بيا هغې د يو سړي سره نكاح وكړه، ۞ د دې نه وروسته د هغې اولنى خاوند د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو، او عرض يې وكړې چې يا رسول الله ﷺ ما اسلام قبول كړې دى، او زما دې ښځې ته زما د اسلام قبلولو علم وو، ۞ ليكن د دې باوجود هغې د دويم خاوند سره نكاح كړې ده، حضور ﷺ هغه ښځه د دويم خاوند نه جدا كولو سره اولنى خاوند ته حواله كړه. ۞ او په يو روايت كښې داسې دي چې هغه اولنى خاوند دا اوويل چې هغه ښځه (يعني زما ښځه چې هغه اوس د دويم سړي سره نكاح كړې ده) زما سره مسلمانه شوې ده، ۞ حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) هغه ښځه د هغې اولني خاوند ته حواله كړه، (ابوداؤد)

۳۱۸۰-(۲) ۞ وَرُوِيَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ: «أَنَّ جَمَاعَةً مِنَ النِّسَاءِ رَدَّهُنَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالنِّكَاحِ الْأَوَّلِ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ ۞ عِنْدَ اجْتِمَاعِ الْإِسْلَامَيْنِ بَعْدَ اخْتِلَافِ الدِّينِ وَالدَّارِ.

**ترجمه:** ۞ او په شرح السنة كښې دا روايت نقل شوې دې چې حضور ﷺ دغه شان ډيرې ښځې د هغوئ د اولنى نكاح مطابق د هغوئ خاوندانو ته حواله كړې وې، ۞ چې د هغوئ خاوندان د دين او وطن د فرق نه وروسته د هغوئ سره د اسلام په صف كښې شامل شوي وو (يعني په غير مسلم ښځه او خاوند كښې د يو د اسلام قبلولو په وجه او د يو په دارالاسلام كښې او دويم په دارالحرب كښې د اوسيدو په وجه، لكه چې د دواړو په منځ كښې مذهبي او ملكي لرې والي او اختلاف پيدا شوى وو، خو هر كله چې هغه دواړو اسلام قبول كړي، نو حضور ﷺ د هغوئ سابقه نكاح باقي ساتلو سره ښځه به يې خاوند ته حواله كوله، لكه چې د قبول اسلام نه وروسته د تجديد نكاح ضرورت نه وو)

---

[۱] اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الطلاق / باب إذا أسلم أحد الزوجين (رقم-۲۲۳۸) والترمذى فى كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الزوجين المشركين يسلم أحدهما (رقم-۱۱۴۴) وابن ما جه فى كتاب النكاح/ الزوجين يسلم أحدهما قبل الآخر(رقم-۲۰۰۸)

[۲] اخرجه مالک فى الموطا كتاب النكاح/باب نكاح المشرک إذا أسلمت زوجته قبله (رقم-۴۴)

(۱) مِنْهُنَّ بِنْتُ الْوَلِيدِ بْنِ مُغِيرَةَ كَانَتْ تَحْتَ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ (۲) فَأَسْلَمَتْ يَوْمَ الْفَتْحِ، وَهَرَبَ زَوْجُهَا مِنَ الْإِسْلَامِ (۳) فَبَعَثَ إِلَيْهِ ابْنَ عَمِّهِ وَهْبَ بْنَ عُمَيْرٍ بِرِدَاءِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَمَانًا لِصَفْوَانَ (۴) فَلَمَّا قَدِمَ جَعَلَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَسْيِيرَ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ (۵) حَتَّى أَسْلَمَ فَاسْتَقَرَّتْ عِنْدَهُ،

**ترجمه:** (۱) نو په هغه ښځو کښې يوه ښځه د وليد ابن مغيره لور هم وه، چې د صفوان ابن اميه ښځه وه، (۲) دا ښځه د خپل خاوندنه مخکې د فتح مکه په ورځ مسلمانه شوه، او د هغې خوند د اسلام نه تيښته وکړه، (۳) حضور ﷺ د هغې خاوند (صفوان بن اميه) ته د هغه د اکا (تره) زوی وهب ابن عمير ﷺ خپل پټو مبارک ورکولو سره وليږلی، او هغه ته يې آمن ورکړي (يعني حضور ﷺ وهب ته په طور د علامت خپل پټو ورکولو سره وليږلی. چې هغه صفوان ته دا پټو ښودلو سره خبر ورکړي، چې د قتل او تشدد نه ت ته آمن درکړل شوی دی، ته بلا خوف راتلی شي) (۴) بيا چې صفوان راغلی. نو د هغه د سيل د پاره څلور مياشتې مقرري کړی شوی (يعني هغه ته اجازت ورکړی شو چې هغه په پوره آمن و آمن سره تر څلور مياشتو د مسلمانانو په منځ کښې دي وګرځي، چې د مسلمانانو عادات او اطوار په ښه شان مشاهده کړي، نو هغه د څو ورځو پورې د مسلمانانو په منځ کښې وګرځيدلی) (۵) ددې پورې چې صفوان هم (د خپلې ښځې د مسلمانيدو نه دوي مياشتې وروسته) مسلمان شو ، او کومه ښځه چې د هغه په نکاح کښې وه، برقرار د هغه ښځه پاتې شوه.

(۱) وَأَسْلَمَتْ أُمُّ حَكِيمٍ بِنْتُ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ امْرَأَةُ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِي جَهْلٍ يَوْمَ الْفَتْحِ بِمَكَّةَ، (۲) وَهَرَبَ زَوْجُهَا مِنَ الْإِسْلَامِ حَتَّى قَدِمَ الْيَمَنَ (۳) فَارْتَحَلَتْ أُمُّ حَكِيمٍ حَتَّى قَدِمَتْ عَلَيْهِ الْيَمَنَ فَدَعَتْهُ إِلَى الْإِسْلَامِ (۴) فَأَسْلَمَ، فَثَبَتَا عَلَى نِكَاحِهِمَا». رَوَاهُ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** (۱) د غه شان په دې ښځو کښې يوه ښځه ام حکيم وه، چې د حارث بن هشام ﷺ لور د ابو جهل د خوی عکرمه ﷺ ښځه وه، هغه د مکې د فتح په ورځ اسلام قبول کړي. (۲) او د هغه خاوند (عکرمه) د اسلام نه ګريخت (تيښته) وکړه، او يمن ته لاړل (۳) څه ورځې وروسته) ام حکيم ﷺ هم (د حضور ﷺ په حکم خپل خاوند براه راست راوستلو د پاره) يمن ته ورسيده، او خپل خاوند عکرمه ته يې د اسلام د قبلولو ترغيب ورکړي، (۴) ددې پورې چې هغه مسلمان شو ، او د هغوی دواړه نکاح باقي پاتې شوه، دا روايت امام مالک رحمه الله د ابن شهاب نه بطريق ارسال نقل کړی دی

**حل اللغات:** - (۱) هَرَبَ: او تښتيدلو، (۲)- تَسْيِيرَ: ګرځيدله (۳) فَاسْتَقَرَّتْ: برقرار پاتې شوه (۴) فَارْتَحَلَتْ: کوچ نې اوکړلو

**تسهیلات: قوله:** -أَنَّ جَمَاعَةً مِنَ النِّسَاءِ رَدَّهُنَّ النَّبِيُّ

**د تفرق بین الزوجین اسباب:** - د نفس مسئلې شروع کولو نه وړاندې د تفرق بین الزوجین اسباب اوپیژنئ:

① **د اسلام قبلولو نه انکار:** -که دَ احدالزوجین نه یوکس اسلام قبول کړی نو بل ته به اسلام وړاندې کولې شی که هغه هم اسلام قبول کړو نو نکاح په خپلې ده او که چرې دغه دویم انکاراوکړو نونکاح به ختمه شی. قاضی به په دواړو کښې جدائی کوی اوکه چرې ښځه کتابیه وی نو هغې ته به اسلام نه شی پیش کولې او نکاح به په خپلې وی

② **تباین دارین:** - که احدالزوجین نه یوکس مسلمان شی اودې نه پس تبدل دارین راغلویعنی یوملك پریخودو نودې ته اختلاف دارین وائی ددې په وجه به هم تفرق بین الزوجین راځی ځکه چه دَ دارین دَ اختلاف سره دَ اسلام پیش کول ممکن نه دی اودَ دارالحرب دَ تللونه پس که دَ عدت دَمقدار موده تیره شوه نونکاح به ختمه شی

③ **د عدت تکمیدل:** - که احدالزوجین نه یوکس اسلام قبول کړی اوبل دَ عدت په موده کښې یعنی دریو حیضو پورې اسلام قبول نه کړو نو په دې سره به هم دَ دواړو نکاح ختمه شی اګرچې په یو ملک کښې اوسیږی.

**دتفرق بین الزوجین په سبب کښې مذاهب:-**

① امام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز په اسباب ثلاثه کښې صرف د دریم سبب قائل دی چې صرف دعدت په تیریدو باندې تفرق د احد الزوجین واقع کیږی.

② دَ جمهورو په نیز دَ ښځې دَ جدائیئ اسباب درې دی دکوم تفصیل چې وړاندې تیر شو.

**خلاصه د مذاهبو:** - یعنی دامام شافعی او امام احمد بن حنبل په نیز احدالزوجین کله اسلام قبول کړو نودَ نکاح باقی پاتې کولو کښې دَبل انتظار انقضاء عدت یعنی دریو حیضو پورې به کولې شی که په دغه موده کښې بل هم مسلمان شو نو نکاح به ئې باقی پاتې وی ګنی نکاح به ختمه شی. که دَ ښځې اوخاوند په مینځ کښې دَ دین دَ اختلاف سره اختلاف دارین راغلې وی اوکه نه. اختلاف دارین سره هیڅ فرق نه پریوځی. دغه شان دَ یو دَاسلام په صورت کښې به په بل باندې اسلام نه شی پیش کولې اونه دَ اسلام دَ انکار فرق سره څه تعلق دې دَفرق تعلق خو صرف انقضاء عدت دې او جمهور درې واړه اسباب سبب د تفرق ګنړی.

**داول فریق اول دلیل:** - ① د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث الباب د اول فریق مستدل دې. کوم چې په خپله مدعی باندې ښکاره دلیل دې یعنی په دې حدیث کښې تباین دارین موجود شوې دې خوددې باوجود په دواړه ښځه او خاوند کښې تفریق نه دې

شوي کوم چي د دويم فريق حجت دي
**داول فريق داول دليل جواب:** دلته تباين دارين صرف صورةً موجود شوي دي صورة اومعنى نه دي موجود شوي، ځکه چي هرکله ښځي هم د خپل خاوند سره اسلام قبول کړي وو لکه چي هغه په هجرت کولو کښي روسته شوي وه خود اسلام راوړلو څخه روسته هغه ..على شرف الهجرة،، وه يعنى د هجرت په انتظار کښي وه نودلته تباين دارين صورة خو راغلو خو حکماً نه دي راغلي، اود دويم فريق په نيز هغه تباين دارين موجب د فرقت دي چي هغه صورة اوحکماً دواړه وي اودلته صرف صورة دي حکماً نه دي
**د اول فريق دويم دليل:** - ② اول فريق دَ صفوان بن اميه او عکرمه بن ابى جهل په واقعاتو سره په تباين دارين باندي استدلال کړي دي. د کوم تفصيل چي د حديث په ترجمه کښي موجود دي
**داول فريق د دويم دليل جواب:** - په دي واقعاتو سره په تباين دارين باندي استدلال کول جائزنه دی ځکه چه دلته تباين شوي نه دي دا دواړه حضرات بيشکه دَمکي نه تختيدلي وو ليکن دَمکي دَ حدودو نه بهر نه ووتلي بلکه يو خو دَ سمندرغاړي پوري تلي وو او دويم دَمکي سره خواکي پټ شوي وو.
**د اول فريق دريم دليل:** - د اول فريق دريم دليل دادي چي زمي ته مونږ دَ عدم تعرض عهد ورکړي ده اوس په هغه باندي اسلام پيش کول دا تعرض دي کوم چه جائزنه دي
**د اول فريق د دريم دليل جواب:** - دَدي جواب دادي چه ټيك ده تعرض جائزنه دي په جبرى توګه جائزنه دي دَ مجبورنى په حال کښي يا دهمکى ورکولوسره جائزنه دي په اختيارى توګه خو جائز دي دَدي هيڅ ممانعت نشته دي.
**د اول فريق څلورم دليل:** - په بنيادى توګه شوافعو او حنابله دَ حضرت ابوالعاص ﷛ دَواقعه نه استدلال کړي دي دَ حضرت ابوالعاص ﷛ نکاح په مکه کښي دَ نبى کريم لوربى بى حضرت زينب ﷞ سره شوي وه حضرت زينب ﷞ خومسلمانه وه ليکن ابوالعاص ﷛ لا اسلام نه وو قبول کړي په جنګ بدر کښي چه کله قيد شو نونبى کريم هغه بغيردَ فديه نه پريخودو مګر دا شرط ئى کيخودوچه زما لور زينب به دَمکي نه مدينې ته دَ هجرت دَپاره پريږدي په دي موقع حضرت زينب ﷞ دَهغه دَ راخلاصولودَپاره هغه هار هم ورليکلي وو چه حضرت خديجه ﷞ خپلي لورته دَ واده په موقع ورکړي وو نبى کريم چه کله دا هار اوکتلو اودَحضرت خديجه ﷞ ياد ورته راتازه شو نو په نبى کريم باندي ژړ شروع شو نبى کريم دَ صحابه کرامو په مشوره ابوالعاص ﷛ بغيردَ فديه نه واپس اوليکلواوهارئى هم واپس کړو حضرت ابوالعاص ﷛ وعده پوره کړه اوحضرت زينب ﷞ مدينې منورې ته لاړه. بيا دَ يوي قافلي صحابه کرامو دَ څه مودې پوري سارنه هم اوکړه په

کومه کښې چه حضرت ابوالعاص رضي الله عنه هم وو هغه په تیخته باندې مدینې ته راغلو اوحضرت زینب په کورکښې داخل شو حضرت زینب رضي الله عنها دهغه دپاره امان اوغوښتلو نبی کریم امان ورکړو ابوالعاص رضي الله عنه مکې ته لاړو اوهلته نې د خپل اسلام په شانداره طریقه سره اعلان اوکړو او واپس مدینې ته راغلو په دې کښې د شپږو کالو موده تیره وه مګر نبی کریم صلی الله علیه وسلم په رومبې نکاح سره حضرت زینب رضي الله عنها هغه ته واپس کړه شوافع وائی چه ګورئی تباین دارین شوې وو مګر فرقت نکاح نه ده شوې

**د فریق اول د علاوه دلیل جوابونه:-**

① د حضرت ابوالعاص رضي الله عنه واقعه په قطعي توګه قابل استدلال نه ده ځکه چې په ترمذی کښې دی چه په اول نکاح سره ئې واپس کړه هلته دا هم دي چه په نکاح جدید او مهرجدید سره ئې واپس کړې ده اوس به څه کوئی؟ "اذاتعارضاتساقطا"

② په دې کښې خود عدت موده هم تیره شوې وه درې حیض یا درې میاشتې څه چه شپږ کاله په کښې تیر شوې وو نوخامخوا به اول فریق هم تاویل کوی او دویم فریق به هم تاویل کوی بغیرد تاویل نه څوك هم استدلال نه شی کولې نو په تاویلاتوکښې یوتاویل دادې چه دا خصوصیت پیغمبری ووچه ترشپږو کالو پورې نکاح په ځائی وه.

③ په اول نکاح کښې یود تشبیه صورت دې چه د رومبې نکاح په شان په نوی مهر اونوی نکاح سره نکاح اوشوه. باقی د ترمذی دواړه روایتونه صحیح دی او په دې کښې واضح تعارض دې. نو دویم فریق وائی چه د عمرو بن شعیب رضي الله عنه روایت کوم چه د دوې دلیل دې چه نوې مهر اونوې نکاح اوشوه دا روایت راجح دې ځکه چه دا مثبت دې اود حضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت نافی اونافی ومثبت کښې چه کله تعارض راځی نو مثبت اولی بالترجیح وی

**د دویم فریق دوه قسمه دلائل:-** د دویم فریق دپاره د دوو قسم دلائلوضرورت دې

① هغه دلائل چه د عرض اسلام دپاره مفید او مثبت وی

② هغه دلائل چه تباین دارین سره د فرقت د ثبوت دپاره وی

**په احد الزوجین باندې د عرض اسلام دلائل:-**

① د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه یوه واقعه د دویم فریق مستدل دې.

د هغې واقعې خلاصه داده چه د داؤد بن کردوس بیان دې چه زمونږ د بنوتغلب نه د یو نصرانی سړی په نکاح کښې یوه نصرانی ښځه وه دې ښځې اسلام قبول کړو اوخاوندئی انکارکولو. حضرت عمر رضي الله عنه له چه کله خاونه راوستلې شو نوهغوی اوفرمائیل "اسلموالا فرقت بینکما" دې نصرانی اووئیل چه زه په دې وجه اسلام نه قبلوم چه زه د عربو نه شرمیږم دوی به وائی چه دې سړی د ښځې د فرج دپاره اسلام قبول کړو. حضرت عمر رضي الله عنه په دواړوکښې جدائی اوکړه دا روایت زجاجة المصابیح ج۲ص ۴۲۰ باندې ددې مصنف نقل

کړي دي او د عارضة الاحوذي مصنف ابن عربي شرح ترمذي کښې او امام طحاوي هم دا نقل کړي دي

④ د دویم فریق بله واقعه هم مستدل ده حضرت عمر رضي الله عنه ته دوه مشرکان راوستلې شو په معوی کښې یو مسلمان شوې وو حضرت عمر رضي الله عنه په هغه دویم باندې اسلام پیش کړو په انکار ئې په دواړو کښې جدائي اوکړې شوه معلومه شوه چه اسلام پیش کول ثابت دي او د فرقت نکاح د اسباب نه یو سبب انکار اسلام دې

⑤ اسلام رحمت دې شفقت او طاعت دې لهذا دا پخپله د فرقت سبب نه شي جوړېدې په کوم کې قرب ندې چه اسلام پیش کړې شو او هغه انکار اوکړو نو اوس انکار از اسلام به د فرقت ذریعه جوړېږي او قصور وار به هم هغه کافر ګرځولې شي په دې وجه عرض اسلام ضروري دې دپاره چه په اسلام باندې دتفریق زوجین الزام رانه شي

**په تباین دارین سره د فرقت واقع کیدو دلائل:-** ① اول دلیل قرآنی آیت دې ﴿ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ ۖ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ ۖ ﴾ [سورت ممتحنة الایه ۱۰.] دې سره په واضحه توګه دا مسئله ثابتیږي چه تباین دارین دفرقت زوجین سبب دې

② دا آیت هم د دویم فریق مستدل دې ﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَن تَنكِحُوهُنَّ إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ۚ ﴾ [سورت ممتحنة الایه ۱۰.] که چرې تباین دارین د فرقت زوجین ذریعه نه ده نو دې ښځو سره نکاح څنګه جائز شوه د چاخاوندان چه په مکه کښې موجود وو.

③ امام ترمذي رحمه الله د عمرو بن شعیب رضي الله عنه په حواله سره په خپل کتاب کښې نقل کړي دي ان رسول الله صلى الله عليه وسلم رد ابنته زینب على ابي العاص بن الربیع بمهر جدید ونکاح جدید [ترمذي ج ۱ ص ۲۱۷.]

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۱۸۱] د سخر کښې په تعلق سره اووه قسمه ښځې حرامیدل

۳۱۷۸-[۱۹](۱) ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «حُرِّمَ مِنَ النَّسَبِ سَبْعٌ ② وَمِنَ الصِّهْرِ سَبْعٌ ③ ثُمَّ قَرَأَ ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ﴾ [النساء: ۲۳] الْآيَةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې د نسب له مخه د اوو ⑦ رشتو ښځې حرامي شوي دي. ② او د مصاهرت له مخه هم د اوو ⑦ رشتو ښځې حرامي شوي دي. ③ بیا ابن عباس رضي الله عنهما دا آیت حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ (النساء ۴: ۲۳) تر آخره وویلو. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الصِّهْر: سخر کنی؛

۱) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۵۱۰۵

**تسهیلات:**

**نوټ:**- د سورت نساء آیت نمبر ۲۳ کښې د دغه ټولو محرماتو ذکر دې د نسبي رشتې والا د اووه ذکر دې او د سخرګنې رشتود اکثر ذکر دې هلته اوګورئ (مؤلف)

**[۲۱۸۲] د میرنۍ لور سره د نکاح حرمت**

۳۱۸۲-[۲۰] (۱)[۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «أَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً فَدَخَلَ بِهَا لَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُ ابْنَتِهَا[۳] وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا فَلْيَنْكِحِ ابْنَتَهَا[۴] وَأَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً فَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَنْكِحَ أُمَّهَا دَخَلَ بِهَا أَوْلَمْ يَدْخُلْ». [۵] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ لَا يَصِحُّ مِنْ قِبَلِ إِسْنَادِهِ، إِنَّمَا رَوَاهُ ابْنُ لَهِيعَةَ وَالْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ وَهُمَا يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار او هغه د خپل نیکه (حضرت عبدالله ﷺ) نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې د ښځې سره نکاح او بیا د هغې سره جماع وکړي، نو د هغه د پاره د هغې د ښځې د لور سره (چې د هغې د مخکني خاوند نه وي) نکاح کول جائز نه دی (ترڅو چې هغه ښځې لره یې طلاق ورکړي نه وي، یا هغه مړه شوي نه وي، ځکه چې هغه ښځه او د هغه لور یو ځای په خپله نکاح کښې ساتل په دې صورت کښې هم جائز نه دی)[۴] او کوم سړی چې د یوې ښځې سره نکاح وکړي نو اوس د هغه د پاره د خپلې منکوحې مور یعنی خپلې خواښې سره نکاح کول جائز نه دی، که د دې خپلې منکوحې سره یې جماع کړې وي که یې نه وي کړې،[۵] دا روایت امام ترمذي ؒ نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث د خپل سند په اعتبار سره صحیح نه دی. ځکه چې دا ابن لهیعه او مثنی ابن صباح د عمرو ابن شعیب نه نقل کړی دی، او هغه دواړه د حدیث د روایت کولو په سلسله کښې ضعیف شمیرل کیږي (ګویا دا حدیث د خپلو راویانو د اعتبار نه خو صحیح نه دی، لیکن د خپل مفهوم او معنٰی د اعتبار نه صحیح دی، ځکه چې په دې حدیث کښې کوم مفهوم بیان شوی دی هغه د قرآن د آیت مطابق دي)

**تسهیلات:**

**نوټ:**- ددې حدیث وضاحت د حدیث نمبر (۳۱۶۰) په تسهیل کښې ذکرشوې دې

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فیمن یتزوج المرأة ثم یطلقها قبل أن یدخل بها هل یتزوج ابنتها أم لا (رقم-۱۱۱۷)

# [۵] بَابُ الْمُبَاشِرَةِ

## خپلې ښځې سره دَ مباشرت بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه خمسة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل.**

① جواز الإتيان إلى الحائض من كل جانب في محل واحد: ١، ٩.

② النهي عن إفشاء السر بين الزوجين: ٨.

③ حرمة الإتيان في الدبر: ١٠، ١١، ١٢، ١٣.

④ حكم الغيلة تحريماً وتنزيهاً وبيان عدم تأثيرها حقيقة: ٧. ١٤، ٦.

⑤ حكم العزل تحريماً وتنزيهاً وعدم الفائدة في فعله وذكر العزل بعد الغيلة: ٢، ٧، ١٥. ٣، ٤، ٥، ٦.

**قوله: المبشرة:**

**د مباشرت لغوي معنی:-** دَ انسان ښکاره څرمن او ښکاره بدن ته وائي هم دَدې نه بشره دې خکه چه بشرهم انسان وی اودَ حیوان په مقابله کښې دَده بدن دَ ویښتونه خالی او صف وی المباشرة الصاق البشرة بالبشرة: ته وئیلی شي چه دَ طرفین کولاؤ بدن یویل سره اولګی دا لفظ په عربی کښې جماع سره خاص نه دې البته جماع نه کنایه کیدې شی لکه چه دلته المباشرة په معنی د "المجامعة دې. لیکن په ابواب الصوم کښې په احادیثو کښې دَ نبی کریم باره کښې دَ رمضان په ورځو کښې چه دَ "یباشر" کوم لفظ راغلې دې هغه الصاق البشرة بالبشرة غیر الجماع په معنی کښې دې دَ کوم چه په اردو کښې ترجمه "بوس وکنار" کیږی

**د حديث غلطه ترجمه:-** کومو خلقو چه دَ بخاری شریف اردو ترجمه کښې دَدې لفظ ترجمه مباشرت سره کړې ده هغوی ډیرلوئی ظلم کړې دې خکه چه مباشرت په اردو کښې جماع سره خاص دې نو په رمضان کښې نبی کریم دَ ورځې څنګه جماع اوکړه په دې ترجمه سره به ډیرزیات خلق ګمراه شی

**د باب د مضامينو اجمال:**

په دې باب کښې دَ جائز او ناجائز مباشرت تفصیلات دی اودَمباشرت آداب اومسائل هم بیان شوی دی. لیکن په دې کښې دَ عزل احادیث زیات دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۱۸۳] د جماع په باره کښې د يهودو غلطه نظريه**

۳۱۸۳-[۱] (۱) [۱] عَنْ جَابِرٍ قَالَ «كَانَتِ الْيَهُودُ تَقُولُ: [۲] إِذَا أَتَى الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ مِنْ دُبُرِهَا فِي قُبُلِهَا كَانَ الْوَلَدُ أَحْوَلَ [۳] فَنَزَلَتْ ﴿نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ﴾ [البقرة: ۲۲۳]» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې يهودو به دا وئيل [۲] چې کوم سړی د خپلې ښځې سره د وروسته د طرف نه د هغه په مخکښې حصه (يعني په شرمګاه) کښې جماع وکړي، نو د هغه کوږ سترګی ماشوم پيدا کيږی. [۳] په دې خبره دا آيت نازل شو نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ (ستاسو ښځې ستاسو دپاره پټي دي نو تاسو ته اختيار دی چې هغوئ ته د کوم طرف نه غواړي راشي). (دا روايت بخاري او مسلم نقل کړي دي)

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَتِ الْيَهُودُ تَقُولُ:**

**د يهودو غلطه عقيده:-** يهودو بهٔ وئيل چې که يو کس ښځې سره داسې جماع اوکړی چې ښځه دې نه شاته اودريږی يا کينی او ددې مخکښې شرمګاه کښې خپل عضو داخل کړی نو ددې په وجه کاڼړې ماشوم پيدا کيږی.

**د يهودو د ترديد دپاره د آيت نزول:-** نو ددوئ ددې غلط خيال او د وهم د ترديد دپاره دا آيت مبارك نازل شو چې ستاسو بيبيانې ستاسو پټی دی، لکه څنګه چې ستاسو په پټو کښې فصل پيدا کيږی همداشان ستاسو ددې بيبيانو په ذريعه ستاسو اولاد پيدا کيږی په دې وجه تاسو خپلو پټو ته په راتګ کښې خودمختاره يئ، څنګه چې راتګ غواړئ نو راځئ که په ملاسته وی، که په ناسته وی او که په ولاړه وی او که د وروستو نه وی اوکه د مخکښې نه وی، څنګه چې ستاسو زړه غواړی دوئ سره جماع کوئی، په هيڅ صورت کښې هم نقصان نشته دې

**صرف په فرج کښې د جماع جواز:-** خو شرط دادې چې جماع بهر صورت د ښځې په مخکښې حصه يعنی شرمګاه کښې اوکړې شی څکه چې کوم اعتبار سره ښځې ته پټې وئيلې شوې دې، ددې اطلاق د ښځې په مخکښې شرمګاه باندې کيدېشی مقعد باندې

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب {نساؤكم حرث لكم فأتوا حرثكم أنى شئتم وقدموا لأنفسكم} [البقرة: ۲۲۳] الآية (رقم-٤٥۲۸) ومسلم في كتاب النكاح/ باب جواز جماعه امرأته في قبلها، من قدامها، ومن ورائها من غير تعرض للدبر(رقم-۱۱۷ - (۱٤۳٥))واخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب في جامع النكاح (رقم-۲۱٦۳)والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة البقرة (رقم-۲۹۷۸) وابن ماجه في كتاب النكاح/ النهي عن إتيان النساء في أدبارهن (رقم-۱۹۲٥)

ددې اطلاق نشي کيدې ځکه چې مقعد د اولاد د پيدا کيدو ځائې نه دې بلکه د غټ اودس ماتي ځائې دې، په دې وجه دا خبره ياد ساتل پکار دی چې په ورستو حصه کښې بد فعلي يعنی اغلام کول صرف په اسلام کښې نه بلکه په هر دين کښې حرام دی

**اشکال:-** په ظاهره سوال او جواب کښې مطابقت نشته دې حالانکه که د حديث بيان حقيقي معنی مراد وی نودا اشکال نه پيدا کيږی د عدم مطابقت سوال داشان دې چې سوال د عزل د حرمت اود حلت باره کښې وو، او په جواب کښې ددې فوائد او نقصانات بيان کړې شوی دی

**داشکال جواب:-** نبی کريم ﷺ ډير په حکيمانه انداز سره د سوال د منشاء مطابق جواب ورکړو چې ته دا کار ولې کوې، کوم بچې چې به دنيا ته راځي نو هغه هيڅوك نه شي بندولې، ځکه چې چا لره چې تقدير او دالله ﷻ حکم دې دنيا ته راولی نو هغه د نطفې نه بغير هم راوستلې شي. دا شان دا حديث پاك هم د عزل په جائز کيدو دلالت کوی

**[۲۱۸٤] د عزل جواز**

[۲] (۱) وَعَنْهُ قَالَ: «كُنَّا نَعْزِلُ وَالْقُرْآنُ يَنْزِلُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۲) وَزَادَ مُسْلِمٌ: «فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَلَمْ يَنْهَنَا».

**ترجمه:** (۱) او حضرت جابر رضی الله عنه وايي چې مونږ خلقو به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې عزل کوی، او قرآن به نازليدلی (يعني د نزول سلسله جاري وه) خو په دې باره کې څه ممانعت نازل نه شو، (بخاري)

**حل اللغات:-** (۱) نعزل: عزل، جدا کيدل، دجماع په وخت کښې جدا کيدل چه انزال بهر اوشی.

**تسهيلات: قوله: نعزل:**

**د عزل لغوی:-** دَ عزل لغوی معنی جدا کول دی لکه ﴿فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيْضِ﴾ [بقرة ۲۲۲.] دې

**دعزل اصطلاحی تعريف:-** دَ عزل اصطلاحی تعريف داسې دې جماع کولو وخت کښې نطفه دَ انزال په وخت جدا کيدو سره ضائع کول په دې باب باندې دَ عزل احاديث حاوی دی دَ بعضې نه دَ جواز پته لګی اودَ بعضې نه عدم جواز معلوميږی

**د عزل حکم:-** (۱) علامه ابن همام رحمه الله فرمائی چه اکثر علماء دَ عزل قائل دی. درمختار هم جائز ليکلی دی

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب العزل (رقم-۵۲۰۸) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب حکم العزل (رقم-۱۴۴۰) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی العزل (رقم-۱۱۳۷) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ العزل (رقم-۱۹۲۷) واحمد فی المسند: ۳/۳۰۹

④ بعضې صحابه او بعضې سلف عزل ته ناجائز وائی ابن حزم هم د عدم جواز قائل دې بهرحال عام علماء فرمائی او په احاديثو كښې هم داشان دی چه وينځې سره بغيرد اجازت د وينځې نه عزل جائز دې اوآزادې ښځې سره د اجازت نه پس عزل جائز دې ځكه چه د تكميل شهوت كښې د ښځې دپاره د سړي اوبه سختې ضروري وی نوداد هغې حق دې كه چرې هغه اجازت ورنه كړی نوناجائز دې بهرحال كه اجازت اوشی نو عزل صرف د مباح په درجه كښې دې پوره احاديثوته په كتو سره داسې معلوميږی چه د شريعت په نظر كښې عزل خوښ كړې شوې كارنه دې.

**د حمل د بندولو دپاره د دوائي د استعمال حكم:** - بعضې رواياتو كښې خو دې ته وأدخفی ونيلې شوې دې يعنی په پټه طريقه سره بچې ژوندې خښول. بهرحال صاحب د هدايه چه كله د عزل متعلق ليكلی دی "وكره العزل" چه عزل سره دَدې مباح دې ليكن دا يوناخوښه عمل دې. په دې باندې د هدايه شارحينو كفايه عنايه اوفتح القدير كښې د ضبط توليد متعلق ليكلی دی چه كه نن صبا څوك د بچو بندولودپاره د حمل كيدو نه مخكښې مخكښې نطفه د څه دوائی په ذريعه ضائع كول غواړی نودا جائز دی هغه حضرات ليكی چه نن صبا د اولاد تربيت خو كيږی نه په دې وجه د فاسقانو فاجرانو اود الله تعالی د ښمنانو زياتولوته څه ضرورت دې. دا د هغه حضراتو يوښه نيت دې دغه شان كه چرې ښځه كمزورې وی بيماره وی يا اولاد زيات وی نوهغه هم د عذر په توګه باندې دوائی استعمالولې شی.

**د ضبط اولاد ترغيبات:** - ليكن نن صباچه د بدتميزئی كوم طوفان راؤچت شوې دې منصوبه بندی اوكړئی بچی هم دوه ښه دی، وقفه ضروری ده نودَدې خلقو نيت څه بل څه وی په كوم كښې چه دَاسلام او مسلمانانو عداوت او دښمنی پټه پرته وی اود الله تعالی په رازق كيدو باندې عدم اعتماد وی. په دې نظريه سره څه دوائی استعمالول جائز نه دی علماء بهتر فتوی وركولې شی.

**[۳۱۸۵] د وينځې څخه د عزل كولوجواز**

۳۱۸۵ـــ[۳] (۱) ① وَعَنْهُ، قَالَ: ② «إِنَّ رَجُلًا أَتَى رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ③ إِنَّ لِي جَارِيَةً هِيَ خَادِمَتُنَا وَأَنَا أَطُوفُ عَلَيْهَا وَأَكْرَهُ أَنْ تَحْمِلَ ④ فَقَالَ: "اعْزِلْ عَنْهَا إِنْ شِئْتَ فَإِنَّهُ سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا" ⑤ فَلَبِثَ الرَّجُلُ ثُمَّ أَتَاهُ ⑥ فَقَالَ: إِنَّ الْجَارِيَةَ قَدْ حَبِلَتْ. قَالَ: "قَدْ أَخْبَرْتُكَ أَنَّهُ سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ وايي ② چې يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت كښې په

---

۱) اخرجه مسلم فی كتاب النكاح/ باب حكم العزل (رقم-۱۳٤ - (۱٤۳۹) واخرجه ابو داود فی السنن كتاب النكاح/باب ما جاء فی العزل (رقم-۲۱۷۳) واحمد فی المسند: ۳۱۲/۳

حاضريدو سره عرض اوکړو [۳] چې زماسره يوه وينځه ده، چې زمونږ خدمت کوي، او زه د
هغې سره جماع هم کوم، ليکن زه دا نه خوښوم، چې هغه حامله شي. [۴] حضور ﷺ ورته
وفرمايل چې که ته غواړې عزل کوه، ليکن د هغې وينځې په ذريعه چې د کوم شي پيدا
کيدل مقدر شوي دي، هغه به ضرور پيدا کيږي. [۵] د دې نه وروسته تر څه مودې پورې
هغه سړی رانغلی، او بيا چې هغه راغلی. [۶] نو هغه اوويل چې زما وينځه حامله شوې ده،
حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې ما خو ته مخکې خبر کړې وې، چې د هغه په
ذريعه د کوم شي پيدا کيدل مقدر شوي دي هغه به ضرور پيدا کيږي. (مسلم)

**حل اللغات** - ① تَحْبَلُ: حملداره شوه ② حَبِلَتْ: حامله شوه

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د حديث د ترجمې څخه مطلب واضح دی. د مزيد تفصيل ضرورت نشته

## [۲۱۸۶] د تقدير نه بدليدل

۲۱۸۶ - [۴] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ [۲] فَأَصَبْنَا سَبْيًا مِنْ سَبْيِ الْعَرَبِ، فَاشْتَهَيْنَا النِّسَاءَ وَاشْتَدَّتْ عَلَيْنَا الْعُزْبَةُ، وَأَحْبَبْنَا الْعَزْلَ [۳] فَأَرَدْنَا أَنْ نَعْزِلَ وَقُلْنَا: نَعْزِلُ وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَ أَظْهُرِنَا قَبْلَ أَنْ نَسْأَلَهُ [۴] فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَلِكَ [۵] قَالَ: مَا عَلَيْكُمْ أَلَّا تَفْعَلُوا، [۶] مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِلَّا وَهِيَ كَائِنَةٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي کوم وخت چې مونږ د رسول الله ﷺ سره
د بني المصطلق جنګ ته ولاړو، [۲] نو د عربو په قوم کښې څه وينځې غلامان زمونږ لاس ته
راغلل. مونږ ته د ښځو خواهش وو، او مجرد اوسيدل مونږ ته سخت مشکل شو، او د
هغه وينځو سره چې زمونږ لاس ته راغلې وې) مونږ عزل کول وغوښتل (چې د هغوی حمل
ونشي) [۳] آخر مونږ د عزل اراده وکړه، خو بيا مونږ سوچ وکړي، چې رسول الله ﷺ په مونږ
کښې موجود دي، نو د حضور ﷺ نه د پوښتنې کولو نه بغير عزل کول زمونږ د پاره جائز
دی که نه؟ [۴] مونږ د حضور ﷺ نه په دې باره کښې پوښتنه وکړه، [۵] نو حضور ﷺ
وفرمايل چې که تاسو عزل ونه کړي، نو په دې کښې ستاسو څه نقصان دی؟ [۶] ځکه چې
تر قيامته چې کوم نفس پيدا کيږي هغه خو به (خامخا) پيدا کيږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① الْعُزْبَةُ: مجرد اوسيدل، د ښځو نه جدا اوسيدل ② بَيْنَ أَظْهُرِنَا: موجود کيدل ③ نَسَمَةٌ: نفس ④ كَائِنَةٌ: پيدا کيدل

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة بني المصطلق، من خزاعة، وهي غزوة المريسيع (رقم-۴۱۳۸) ومسلم في كتاب النكاح/ باب حكم العزل (رقم-۱۲۵ - (۱۴۳۸) واخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب ما جاء في العزل (رقم-۲۱۷۲) كتاب الطلاق باب ما جاء في العزل (رقم-۹۵)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَصَبْنَا سَبْيًا مِنْ سَبْيِ الْعَرَبِ:

**په عربوه غلامي راتلو امکان:** - علامه نووي رحمه الله فرمائي دَدې حديث نه داخبره ثابتيږي چه په عربوباندې هم غلامي راتلې شي ځکه چه دلته دَبنومصطلق خلق غلام او وينځې جوړولو ذکردي اوهغه عرب وو. دَ امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله هم دغه مسلك دې امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي عربوخلقوته الله تعالى مخصوص شرف ورکړې دې په هغوی باندې غلامي نه شي راتلې.

**قوله:** مَا عَلَيْكُمْ أَلَّا تَفْعَلُوا:

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:** - ① دلته په ان باندې فتحه اوکسره دواړه جائز دی معنی دا چه که چرې تاسو عزل نه کوئی نو په دې کښې هيڅ نقصان نشته دې.

② بعضې دَ لاکلمه زائده منلې ده. ترجمه دا چه په عزل کولوکښې هيڅ قباحت نشته

**[۳۱۸۷] دعزل په وجه د تقدير نه بدليدل**

> ۳۱۸۷ـــ[۵] (۱) ① وَعَنْهُ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الْعَزْلِ ② فَقَالَ: "«مَا مِنْ كُلِّ الْمَاءِ يَكُونُ الْوَلَدُ ③ وَإِذَا أَرَادَ اللهُ خَلْقَ شَيْءٍ لَمْ يَمْنَعْهُ شَيْءٌ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د عزل په باره کښې پوښتنه وشوه (چې عزل کول جائز دي که نه؟) ② نو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې د منې د هرې اوبو نه خوماشوم نه جوړيږي، ③ او هر کله چې الله تعالى جل جلاله د يو شي د پيدا کولو اراده وکړي، نو د هغه د پيدا کولو نه يې هيڅ څيز نشي منع کولی. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** سُئِلَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الْعَزْلِ

**د تپوس منشاء:** - په ظاهره اشکال پيداکيږي چه دَ سائل په سوال اودَنبی کريم په جواب کښې په ظاهره مطابقت نشته دې خوکه په ژور نظرسره اوګورې نوځه سوال نه راپيداکيږي ځکه چه دَ سوال مقصدداوو چه دَ عزل اجازت ملاؤشی دې دَپاره چه دَ عزل کولوپه صورت کښې دَاولاد پيداکيدو ويره نه وی

**د منې دخول سره د علوق عدم قطعيت:** - هم دَدې سوال دَدې مفهوم په رڼاکښې رسول الله صلی الله علیه وسلم جواب ورکړوچه تاسو ګڼرئ چه دَ منئ دننه تللوسره به بچې پيداکيږي او په نه تللوسره به نه پيداکيږي دا غلطه ده بعضې وخت اوبه ورځي خو بچې نه پيداکيږي

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب حکم العزل (رقم-۱۳۳ - (۱۴۳۸)

او بعضې وخت او به نه خې خو الله تعالى دَ مور په رحم کښې بچې راپيدا کوي نو دا رومدا په نطفه باندې نه دي بلکه دَ الله تعالى په قدرت دې اودا جدا خبره ده چه الله تعالى دَ تولد وتناسل سلسله نطفې سره يو ځائې کړې ده مګر نطفه مؤثر حقيقي نه دې په دې وجه کيدې شي چه دَ نطفې يوه ذره دننه اورسي او دَ هغې نه الله تعالى بچې پيدا کړي دَ ټوې منني نه خو بچې نه پيدا کيږي

## [۲۱۸۸] دَ رضاعت په موده کښې د جماع جواز

۳۱۸۸—[۲] (۱) ① وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، ② «أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ③ إِنِّي أَعْزِلُ عَنِ امْرَأَتِي. ④ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "لِمَ تَفْعَلُ فِي ذٰلِكَ؟" ⑤ قَالَ الرَّجُلُ أُشْفِقُ عَلَى وَلَدِهَا. ⑥ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَلَوْكَانَ ذٰلِكَ ضَارًّا ضَرَّ فَارِسَ وَالرُّومَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت سعد ابن ابي وقاص ﷺ وايي ② چې (يوه ورځ) يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلی، او هغه اوويل ③ چې زه د خپلي ښځي سره عزل کوم. ④ حضور ﷺ (د دي اوريدو سره) وفرمايل چې ته ولي داسي کوي؟ ⑤ هغه سړي اوويل چې زه د هغه د پينو خوړونکی ماشوم په وجه ويريږم (چې چرته د رضاعت په موده کښې هغه حامله نشي، او په دي حالت کښې ماشوم ته پې ورکول نقصان ونه رسوي) ⑥ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې که دي نقصان رسولی، نو روم اوفارس والاوو ته به يي ضرور نقصان رسولای. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أُشْفِقُ: زه ويريږم ② ضَارًّا: نقصان اورسولو.

**تسهيلات: قوله:** أُشْفِقُ عَلَى وَلَدِهَا:

**د باطلې نظريې ترديد:** - دَ عامو خلقو خيال دا ووچه دَ رضاعت په موده کښې په جماع کولو سره او بيا حمل حصاريدو سره دَ ښځې په پينو کښې خرابي راځي په دې وجه دغه پينې خکلو سره ماشوم ته نقصان رسيږي اودَ ښځې پينې هم کميږي. هم دَدې ويرې هغه سړی دَ نبی کريم نه دَ عزل اجازت اوغوښتلو. دَدې په جواب کښې نبی کريم اوفرمائيل که چرې داسې پينې خکلو سره بچی ته نقصان کيدلو نودَفارس اوروم خلقو ته به نقصان کيدلو خکه چه هغوی دا عمل کوی. معلومه شوه چه په دې کښې نقصان نشته دې نو بيا دَعزل څه ضرورت دې دې سره دَ عزل دَ ناخوښه کيدو اشاره ملاويږي.

۱) اخرجه مسلم فى كتاب النكاح/ باب جواز الغيلة، وهى وطء المرضع، وكراهة العزل (رقم-۱۴۳ - (۱۴۴۳))واحمد فى المسند: ۲۰۳/۵

[۳۱۸۹] د غیله کولو حکم

۳۱۸۹-[۷] (۱) ۞وَعَنْ جُدَامَةَ بِنْتِ وَهْبٍ قَالَتْ: ۞«حَضَرْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي أُنَاسٍ ۞ وَهُوَ يَقُولُ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَنْهَى عَنِ الْغِيلَةِ، ۞فَنَظَرْتُ فِي الرُّومِ وَفَارِسَ فَإِذَا هُمْ يُغِيلُونَ أَوْلَادَهُمْ فَلَا يَضُرُّ أَوْلَادَهُمْ ذَلِكَ شَيْئًا، ۞ثُمَّ سَأَلُوهُ عَنِ الْعَزْلِ، ۞فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : ذَلِكَ الْوَأْدُ الْخَفِيُّ وَهِيَ ﴿وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ سُئِلَتْ﴾ [التكوير: ۸].» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۞ او بي بي جذامه بنت وهب ﷞ وايي ۞ چې (يوه ورځ) زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوم، هغه وخت د خلقو يو جماعت هلته موجود وو، ۞ او حضور ﷺ هغوئ ته وفرمايل چې مادا اراده کړي وه، چې خلق د غيله (د حمل په حالت کې وړوکی ته پئ ورکولو) نه منع کړم، ۞ ليکن بيا ما وليدل چې د روم او فارس خلق د خپل اولاد په موجودګي کښې غيله کوي، او په دي وجه د هغوئ اولادو ته څه نقصان نه رسيږي نو ما دا اراده پريښودله ۞ بيا خلقو د عزل په باره کښې د حضور ﷺ نه پوښتنه وکړه چې د دې څه حکم دی؟) نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې دا عزل کول خو په پټه طريقه سره ژوندی اولاد ښخول دي، ۞ او دا يو خراب عادت دی، چې د دې آيت کريمه وَاِذَا الْمَوْؤدَةُ سُئِلَتْ الآية (او هر کله چې له ژوندی ښخې شوی جينئ نه پوښتنه وشي، چې هغه د کومي ګناه په بدل کښې قتل شوي وه) په حکم کښې داخل دی، (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أُنَاسٍ: جماعت، ډله، ② هَمَمْتُ: ماقصد اوکړو ③ الْغِيلَةِ: غيله دَ غين کسره سره غيل بفتح الغين نه ماخوذ دې. په حالت دحمل کښې بچی ته پئ ورکول. ④ الْوَأْدُ الْخَفِيُّ: په پټه طريقه سره ژوندي اولاد ښخول.

**تسهيلات:**

**قوله: لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَنْهَى عَنِ الْغِيلَةِ:**

**د غيلة په تعريف کښې دوه اقوال:** - ① اصمعي ﷫ اودَ هغه ملګری اهل لغت اوامام مالك ﷫ فرمائی چه دَ پيئ ورکونکې ښځې سره کله دَهغې خاوند جماع اوکړی نودَغه خاص فعل نوم غيله دې.

② ابن سکيت وائی چه حامله ښځې سره کله دَهغې خاوند دَ حمل په حالت کښې جماع اوکړی نودغه مخصوص عمل ته غيله وائی.

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب جواز الغيلة، وهي وطء المرضع، وکراهة العزل (رقم-۱۴۱ - (۱۴۴۲))واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطب/باب فی الغيل (رقم-۳۸۸۲) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب:الغيلة (رقم-۳۳۲۶) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ الغيل (رقم-۲۰۱۱) کتاب الرضاع/باب جامع ما جاء فی الرضاعة(رقم-۱۶)واحمد فی المسند: ۶ ۴۳۴

**د عربو غیله نه د ځان ساتلو عقیده او دې باره کښې شرعي حکم:** - عربو به دَ دغه عمل نه ځان ساتلو او ونیل به ئې په دې سره بچی ته نقصان رسیږی داعقیده په هغوی کښې ښه ښکاره جاره اوخاص اوعام کښې مشهوره وه نبی کریم اراده اوکړه چه امت دَدې نه منع کړی لیکن چه کله نبی کریم اوکتل چه فارس اوروم کښې خلق داعمل کوی اوهغوی ته نقصان نه رسیږی اونه هغوی دَدې څیز څه پرواه کوی نو نبی کریم ﷺ امت دَ دې عمل نه منع نه کړو

دَ جمهورو په نیزغیله جائز ده مګردَ ماشوم دَ نقصان خطره ده په دې وجه خلاف اولی دې

**قوله** ذٰلِكَ الْوَأْدُ الْخَفِيُّ:

**د عزل کراهت:** - یعنی عزل په پټه ژوندی خښول دی. په دې جملې سره دَ عزل دَ کراهت طرف ته واضح اشاره ملاویږی "الوأد" دَ ژوندی خښولو په معنی کښې دې یعنی څوك ژوندې خښول دَعلماؤ یوه طبقه دَ عزل دَ عدم جواز طرف ته تلې ده لیکن دَ جمهور علماؤ په نیز عزل مباح دې سره دَدې چه حضرت عمر رضي الله عنه خلق دَ عزل نه منع کړی دی اوحضرت عثمان رضي الله عنه هم منع کړی خو بیا هم دا نهی کراهت تنزیهی اوخلاف اولی باندې به حمل کیږی

**[۲۱۹۰] د خپلې ښځې د پټو خبرو ظاهرونکی دپاره وعید**

[۸] (۱) ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②إِنَّ أَعْظَمَ الْأَمَانَةِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ③وَفِي رِوَايَةٍ: «إِنَّ مِنْ أَشَرِّ النَّاسِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الرَّجُلَ يُفْضِي إِلَى امْرَأَتِهِ وَتُفْضِي إِلَيْهِ ثُمَّ يَنْشُرُ سِرَّهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② د قیامت په ورځ به د الله تعالی جل جلاله په نزد د ټولو نه لوی امانت.③ په یو روایت کښې داسې دي چې د قیامت په ورځ د الله تعالی جل جلاله په نزد به د مرتبې په اعتبار سره د ټولو نه خراب سړي هغه وي. چې د خپلې ښځې سره هم بسترشي، او د هغه ښځه د هغه تعلق اوساتی، اوبیا هغه سړي، د هغې (ښځې) پټې خبرې ظاهروي یعنی دشپې حالات خلقوته بیانوي، بخاري مسلم

**حل اللغات** - ① يُفْضِي إِلَى امْرَأَتِهِ: خپلې ښځې سره تعلق اوساتی جماع اوکړی.

**تسهیلات:**

**قوله** يُفْضِي إِلَى امْرَأَتِهِ:

**د ښځې اوخاوند پټې خبرې ښکاره کول:** - یعنی دَ ټولونه لوئی امانت کوم کښې چه بنده خیانت اوکړی دَهغه سړی خیانت دې الخ الله تعالی ښځه اوخاوندَ یوبل دَ پاره لباس پیداکړی دی دَهغوی په مینځ کښې پټ جنسی تعلقات قائم وی اودا دواړه دَ یوبل راز دان

۱) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب تحریم إفشاء سر المرأة (رقم-۱۲۳ - (۱۴۳۷) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأدب /باب فی نقل الحدیث (رقم--۴۸۷۰) واحمد فی المسند: ۶۹/۳

وي اوس که په دوی کښې هريو سحر پاسي او د شپې پټ حالات ښکاره کوي اووينا کوي گرځي چه زما د ژوند ملگرې داسې ده او داسې ده ما داسې اوکړه او هغې داسې اوکړه لکه چه د بعضې خلقو عادت وي د داسې خرابو حرکتونونه اسلام مونږ منع کوي او دا پټ راز ښکاره کول ډير لوئی خيانت دې او ډيره لويه بې غيرتي هم ده او ډير لوئی شرارت هم دې [ الکشف ۳۰۹.]

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۱۹۱] دَ حيض په دوران ښځو سره د مجامعت حرمت

—[۹] (۱) ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ «أُوحِيَ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ﴿نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ﴾ [البقرة: ۲۲۳] الْآيَةَ ② أَقْبِلْ وَأَدْبِرْ وَاتَّقِ الدُّبُرَ وَالْحَيْضَةَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې په رسول الله ﷺ دا آيت نازل شو نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ، الآية (يعني ستاسو ښځي ستاسو پتی دي، خپلو کښتو (پتی) ته راځی الخ نو تاسو چې څنگه غواړي د هغوئ سره مجامعت کوي) ② که د مخ نه د مخ په جانب کښې راځي. يا د وروسته نه د مخکي په جانب کښې راځي، ليکن په مقعد (د شاحصه) کښې د دخول کولونه پرهيز کوي (څکه چې دا مردار و بوی ناکه او مردار ځايي دی) او د حيض په حالت کښې جماع مه کوی، (ترمذي ابن ماجه دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأْتُوا حَرْثَكُمْ انی شئتم:

**د لفظ انی نه د روافضو يو باطل استدلال:** —لفظ أَنَّى مِنْ أَيْنَ معنی کښې دَعموم مکان دپاره راځی "اي من اين شئتم" او د کيف په معنی کښې هم راځی د کوم نه چه عموم احوال مراد اخستې شی

روافض دواړه معنې اخستلو سره وطی فی الدبر جائز گرځولي دې او په قبائح کښې راگيرشو بعضې خلقو دَ عبدالله بن عمر ﷺ دَ يو مجمل کلام نه غلطه فائده اوچتولو سره دهغوی طرف ته غلط نسبت کړې دې چه هغوی "انی شئتم اي فی دبرها" فرمائيلی دی دا سراسر بهتان دې څکه چه حضرت ابن عمر ﷺ وطی فی الدبر باره کښې فرمائيلی دي "هل يفعل ذلك احد من المسلمين" آيا يو مسلمان بدفعلی کولې شی؟

**د استدلال جواب:** —روافض چه دَ انی شئتم نه کوم دَ عموم افعال اخستو سره وطی فی الدبر

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة البقرة (رقم-۲۹۸۰) واحمد فی المسند:۱/۲۹۷

جائز گرځولی دی. ددې جواب دادې چه د آیت دَ سیاق او سباق نه معلومیږی چه دلته عموم موضع مراد نه دې بلکه عموم احوال مراد دی یعنی موضع خاص وی کیفیت عام وی په ناسته وی او که په ملاسته وی په اړخ وی پورته ښکته وی قعود وی دا ټول احوال جائز دی مګر شرط دادې چه وطی په موضع حرث کښې وی موضع فرث کښې نه وی شیعه په هرعمل کښې دَ مسلمانانو نه جدا تلل غواړی دلته هم هغوی جدا لار جوړه کړه "خذلهم الله کما خذلوا الاسلام".

**[۳۳] زنانو ته سره د شا طرفه د جماع کولو حرمت**

۳۳-[۱۰] (۱) ۱ وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ ۳ لَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَدْبَارِهِنَّ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت خزیمه ابن ثابت ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ الله تعالیٰ ﷻ د حق خبرې کولو نه حیا نه کوي، ۳ تاسو د ښځو په مقعد کښې بدفعلي مه کوی، یعنی د خپلو ښخو سره لواطت مه کوی، احمد، ترمذی، ابن ماجه، دارمی.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ:

**دحیاء تعریف:** - حیاء هغه تغیرته وئیلې کیږی چې د عیب لګیدو او د بد وئیلو د ویرې په انسان کښې واقع کیږی.

**دالله تعالی په حق کښې دحیاء مطلب:** - او چونکه د الله ﷻ په ذات کښې د څه قسم تغیر واقع کیدل محال دی، په دې وجه دې ځائې کښې د حیاء حقیقی معنی مراد نه ده بلکه دې ځائې کښې مجازی معنی مراد ده یعنی پرېښودل. نو ددې جملې مطلب دادې چې الله ﷻ ته په حق خبره کولو سره حیاء نه ورځی، نو ددې نه پس والا مضمون دپاره دا جمله تمهید په طور ذکر کول ددې بد فعل ډیر زیات مذمت (غندنه) او خرابی بیانول مقصود دی چې ددې حدیث پاك نه معلومه شوه چې بدفعلی حرامه او ډیرزیات قباحت والا کار دې

**قوله:** لَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَدْبَارِهِنَّ

**ښځې سره په دبر کښې د جماع دوه صورتونه او دهریو حکم:** - علامه طیبی ﷫ فرمائی
① که یو کس دا بد فعل یو اجنبی ښځې سره اوکړی نو دا به د زانی په حکم کښې وی
② که خپلې بی بی یا وینځې سره اوکړی نو د حرامو مرتکب به وی. خو ددې په وجه به دې نشی سنګسارولې او نه به په ده باندې حد جاری کیږی البته ده ته به تعزیرا سزا ورکولې کیږی

۱) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب النكاح/ النهي عن إتيان النساء في أدبارهن (رقم-۱۹۲۴) واحمد في المسند: ۲۱۳/۵

**خپل غلام سره د لواطت سزا-** علامه نووی رحمه الله فرمائی که یو کس خپل غلام سره بدفعلی اوکړه نو دا داجنبیه سره د بدفعلی په حکم کښې دې ، اوکه مفعول وړوکې وی یا مجنون وی یا ده سره زبردستی اوشی نو په مفعول باندې حد نشته دې

**د لواطت په سزا کښې مذاهب:-**

① د جمهورو په نزد د لواطت حکم هم د زنا د حد پشان دې چې کوم حد د زنا دې دغه حد به د لواطت هم وی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چې لوطی دپاره حد نشته دې بلکه تعزیر دې او تعزیر د حاکم په اختیار کښې وی . او په دې تعزیر دې فعل کوونکی لره قتل کولې هم شی او په دهٔ باندې دیوال هم راغورزولې شی. او سنګسارولې هم شی. ګویا د حد نه هم زیاته تعزیراً سزا ورکولې شی.

**[۲۱۹۳] خپلې ښځې سره د شا طرفه راتلونکی باندې لعنت**

---[۱۱] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَلْعُونٌ مَنْ أَتَى امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] هغه سړی ملعون (لعنتي) دي چې د خپلې ښځې سره بد فعلي وکړي، (احمد ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله: فِي دُبُرِهَا:**

**د لواطت د ګناه لوئوالې:** خپلې بی بی سره چه ښځه هم ده بدفعلی کول ځومره لوئی جرم دې نودَ پردو ماشومانو قریب البلوغ او سرو سره دَ بدفعلی کونکی به کومه ټکانه وی پخوانوامتونوکښې قوم لوط په مکمل توګه دَدې جرم په سزاکښې تباه شوې دې. په دې خراب کار سره عرش په لړزیدو کیږی. بعضې وائی چه دَ دې فعل نه پس دَدې جرم مرتکب په اووه سمندرونوکښې هم غسل اوکړی بیاهم ده ته طهارت نه حاصلیږی. ښکاره خبره ده چه ظاهری غسل اواوبوسره دغه باطنی خباثت او ګناه چرته ختمیدې شی.

**دَ لواطت په سزا کښې مذاهب:-**

① دَ جمهورو په نیزدَ لواطت سزا دَ زنا دَ حدپه شان ده لهذا هم دَهغې په شان حدنافذ کیږی صاحبین هم دَ جمهورو سره دی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه په لواطت کښې تعزیردې

---

(۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی جامع النکاح (رقم-۲۱۶۲) واحمد فی المسند: ۲/۴۴۴

**د اول فريق دلائل:** - دَ حضرت علی رضی الله عنه نه نقل دی چه هغه لوطی سنګسار کړي وو دَ حسن بصری رحمه الله او ابراهيم نخعی رحمه الله نه هم دغه شان نقل دی

② په عقلی دليل کښې جمهور فرمائی چه په لواطت سره قضاء شهوت په مکمل درجه سره کيږی لهذا دادَ زنا په حکم کښې دې

**د دويم فريق دليل:** - ځکه چه دا دَ يوحدلاتدې راوستل ګران دی که چرې دا په يوحد کښې په متعين توګه باندې داخل وې نوصحابه کرام به دَدې په سزا کښې مختلف نه وې حالانکه مختلف صحابه کرامو مختلف سزاګانې ورکړی دی. دادَ دې حبرې دليل دې چه په دې کښې حدنشته دې البته تعزيردې. په تعزيرکښې دې قتل کولې هم شی سنګسار کولې هم شی ځکه چه تعزيردَامير په اختيارکښې دې. لهذا په احنافو باندې دا اعتراض دَ حسد دَ وجې نه دې چه هغوی دَ لواطت دَ حد قائل نه دی حالانکه دَهغوی په نيزخودَ حد نه هم په دې بد عمل باندې دَسخت نه سخت سزا ورکولې شی.

**د لوطی په سزا کښې د صحابؓ اختلاف:** - ① چا لوطی دَ غرنه راغورزولې دې

② چا پرې ديوال راګذار کړې دې

③ چا په سمندرکښې ډوب کړې دې

④ چا په اور کښې سوزولې دې

⑤ چا دَ چت نه راګذارولوسره پرې دَ شانه کاڼی ورولې دی.

**[۳۲۴]لوطی ته د الله تعالی نظر نه کول**

۳۲۴—[۱۲](۱)① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«إِنَّ الَّذِي يَأْتِي امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا لَا يَنْظُرُ اللَّهُ إِلَيْهِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ② کوم سړی چې د خپلي ښځي سره بد فعلي کوي، الله تعالی جل جلاله د هغه طرف ته (د رحمت او شفقت په نظر سره) نه ګوري، (ترمذي)

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د دې حديث تشريح د حديث نمبر(۳۱۸۳) په تسهيل کښې ذکرشوې ده.

**[۳۲۵]په لوطی باندې د الله تعالی غصه**

۳۲۵—[۱۳](۲)① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«لَا يَنْظُرُ اللَّهُ إِلَى رَجُلٍ أَتَى

۱ ) اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب النكاح/ النهي عن إتيان النساء فی أدبارهن (رقم-۱۹۲۳)
۲ ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية إتيان النساء فی أدبارهن (رقم-۱۱۶۵)

رَجُلًا أَوِامْرَأَةً فِي الدُّبُرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالی جل جلاله دهغه سړي طرف ته (د رحمت او شفقت په نظر سره) نه ګوري چې د سړي يا د ښځي سره بدفعلي کوي، (ترمذي)

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د دې حديث تشريح د حديث نمبر (۳۱۸۳) په تسهيل کښې ذکرشوې ده

**[۳۱۹۶] دغيله ممانعت**

[۱۴] (۱) [۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «لَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ سِرًّا [۳] فَإِنَّ الْغَيْلَ يُدْرِكُ الْفَارِسَ فَيُدَعْثِرُهُ عَنْ فَرَسِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي اسما بنت يزيد ﷺ وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] چې تاسو خپل اولاد په مخفي (پټ) طور سره مه قتلوی، [۳] ځکه چې غيل، په سواره باندې اثر اندازه کيږی، او هغه د آس نه غورځوي، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْغَيْلَ: ماشوم ته په حمل کښې پئ ورکولو سره چه کومه بيماری پيدا کيږی هغې ته غيل وائي ② الْفَارِسَ: شهسوار، په آس باندې سور شوې کس، ③ فَيُدَعْثِرُهُ: راويغورزولو.

**تسهيلات:**

**قوله: فَيُدَعْثِرُهُ:**

**د لفظ يدعثره لغوی تحقيق:** - دعثريدعثردعثرةً راغورزولو په معنی کښې دې يعنی دَ داء الغيل اثر بـه دَهغـه ماشـوم پـه خپـو اوبـدن دَ کمزورنـی پـه صـورت کـښې ظاهريږی. کله چه ماشوم سړې شی اوپه اس باندې سوريږی اوهغه زغلوی نودا بيماری خپل اثربنـائی نوهغـه داس نه پريوځی اوهلاکيږی. لکه چه دا پټ قتـل دې نو اووفرمائيلې شو چه خپـل اولاد مه قتل کوئی دَ داءالغيل تفصيل تيرشوې دې چه دَدې بيمارئی اثر په انداموباندې پريوځی اودا توله خرابی د دغه غلطو پيئو نتيجه ده چه دَ خاوند دَجماع په وجه چه دَ ښځې پيئـی خراب شو اوماشوم اوڅکل يا دَ حمل په حالت کښې هغې سره جماع اوکړې شوه

**د غيل په احاديثو کښې تعارض:** - دلته سوال دا پيدا کيږی چه دې نه وړاندې نبی کريم دَ غيـل عمل مباح ګرځولې دې په دوو حديثونو کښې دا خبره راغلې ده چه غيـل سره هيڅ نه کيږی اواوس په دې حديث کښې دَغيل نقصان منلې شوې دې؟

۱) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الطب/باب فی الغيل (رقم-۳۸۸۱) وابن ماجه فی كتاب النكاح/ الغيل (رقم-۲۰۱۲)واحمد فی المسند: ۶/۴۵۸

**د تعارض جوابونه:-** ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه په تیرو شوو احادیثو کښې د غیله دنقصان نفی د اهل جاهلیت د عقیدې په رڼا کښې وو چه هغوی د غیلې اثر مؤثر حقیقی ګڼړلو نونبی کریم نفی اوفرمائیله او دلته په دې کښې فی الحمله د اثرطرف ته اشاره کړې ده چه فی الجمله د دې اثر پریوځی

② د ا په شروع کښې نبی کریم اراده کړې وه چه غیله حرام اوګرځوی رومستو بیا د نبی کریم اجتهاد بدل شو د زیربحث حدیث تعلق کیدې شی هغه زمانې سره وی کوم وخت چه د غیله د ممانعت خبرې کیدلې [ الکاشف ۶/۲۱۱ ].

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۱۹۷] د عزل مشروط جواز

[۱۵] (۱) ① عَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: ② «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَعْزِلَ عَنِ الْحُرَّةِ إِلَّا بِإِذْنِهَا.» رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه وایی ② چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د حرې (آزادې ښځې) سره د هغه د اجازت نه بغیر، د عزل کولو نه منع فرمایلې ده، (ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله** إِلَّا بِإِذْنِهَا

**آزادې ښځې نه د عزل اجازت غوښتل:-** ① د آزادې ښځې سره که د جماع په وخت کښې عزل اوشی نو دهغې نه اجازت اخستل ضروری دی د هغې د اجازت نه دې بغیر عزل او نه کړې شی

**د اجازت غوښتلو دوه وجوهات:-** ① که ښځه بچې غواړی نو سړی ته دا اختیار نشته دې چې هغه د ښځې دا خواهش پورا نه کړی او د عزل په وجه بچې نه پیدا کیږی

② د عزل په وجه د ښځې په جنسی لذت کښې کمې راځی که یوه ښځه د عزل په وجه خپل جنسی خواهش کښې کمې محسوسوی نو دا هغې سره بې انصافی ده. په دې وجه ضروری ده چې د عزل دپاره دې د ښځې نه اجازت طلب کړې شی که هغه اجازت اوکړې نو بیا عزل کولې شی ، اوکه اجازت ورنکړی نو عزل دې اونه کړې شی.

۱) اخرجه احمد فی المسند ۱/۳۱

# [۶] بَابُ مَسئلة خیار العتق]

**خلاصة الباب:-**

**فيه أربعة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① ثبوت خيار العتق للأمة إذا كان زوجها عبدا: ۱، ۲.

② جواز الشفاعة في الرجوع إلى الزوج السابق: ۲.

③ امتداد خيار الأمة إلى قبل الجماع مع الزوج: ۴.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۳۱۹۸] وینزۍ ته دآزادۍ څخه روسته د نکاح د فسخ اختیار**

۳۱۹۸-[۱] (۱) [۱] عَنْ عُرْوَةَ «عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لَهَا فِي بَرِيرَةَ: [۲] خُذِيهَا فَأَعْتِقِيهَا وَكَانَ زَوْجُهَا عَبْدًا [۳] فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا [۴] وَلَوْ كَانَ حُرًّا لَمْ يُخَيِّرْهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عروه د ام المؤمنين بي بي عائشي رضي الله عنها نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ بي بي عائشي رضي الله عنها ته د بريره رضي الله عنها په باره کښې وفرمایل [۲] چې هغه واخله، او بیا هغه آزاده کړه، او د بریره رضي الله عنها خاوند غلام وو، [۳] څکه حضور ﷺ هغه ته اختيار ورکړي وو، اوبريره رضي الله عنها (د دي اختيار مطابق) خپل ځان د خپل خاوند نه جدا کړي وو، [۴] او که د هغه خاوند آزاد وی، نو حضور ﷺ به هغه ته دا اختيار نه وو ورکړي، (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** خُذِيهَا فَأَعْتِقِيهَا وَكَانَ زَوْجُهَا عَبْدًا:

**د حديث پس منظر او شان ورود:-** مدینه منوره کښې دَ يو يهودی وینځه وه دکومې نوم چه بريره وه. دَهغې مالك دَ . اوقیه په بدله کښې هغه مکاتبه جوړه کړه. دَبدل اوکتابت دَ امداد په سلسله کښې بريره حضرت عائشي رضي الله عنها له راغلې وه. حضرت عائشې رضي الله عنها هغه واخسته او بيائې آزاده کړه. دَ اخستلو په وخت کښې دَ بريره يهودی مالك دَدې شرط ذکر اوکړو چه دَ بريره دَ ولاء حق دَهغې دَمړه کيدونه پس هم مونږ ته ملاويږی. حضرت عائشه

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب بيع الولاء وهبته (رقم-۲۵۳۵) ومسلم فی کتاب العتق/باب إنما الولاء لمن أعتق (رقم) ۸ - (۱۵۰٤) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/باب فی المملوكة تعتق وهی تحت حر أو عبد (رقم-۲۲۳۳) والترمذی فی کتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی المرأة تعتق ولها زوج (رقم ۱۱۵٤) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: خيار الأمة تعتق وزوجها حر (رقم-۳٤٤۹) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ خيار الأمة إذا أعتقت(رقم-۲۰۷٤) کتاب الطلاق/باب ما جاء فی الخيار(رقم-۲۵) واحمد فی المسند: ۶/٤۲

رضی الله عنها د دې خبرې ذکر د نبی کریم په وړاندې اوکړو نبی کریم ډیر خفه شو او خطبه ئې ورکړه وئې فرمائيل «فقضاء الله احق وشرط الله اوثق وانما الولاء لمن اعتق»، د حضرت بريره رضی الله عنها يو خاوند وو چه د هغه نوم مغيث وو هغه هم اول غلام وو روستو هغه ته هم آزادی ملاؤ شوه په دې سلسله کښې حضرت بريره رضی الله عنها ته د خيار عتق يعنی اختيار طلاق په وجه دعتق حاصل شو هم د دې خيار عتق په تفصيلات کښې د فقهاء کرام اختلاف پيدا شوې دې

**د وينزې آزاديدو په وخت کښې درې صورتونه:-** ① په دې باندې د ټولو اتفاق دې که چرې د وينځې د آزادولو په خت د هغې خاوند غلام وی نو وينځې ته خيار عتق يعنی د طلاق اختيار به ورته ملاويږی.

② په دې باندې هم د ټولو فقهاؤ اتفاق دې که چرې په يو خائی باندې دواړه ښځه او خاوند آزاد شی نو چاته به هم خيار عتق حاصل نه وی.

③ که چرې د وينځې د آزادئی وخت کښې خاوند آزاد وی نو ښځې ته به خيار عتق ملاويږی که نه؟ په دې کښې

**د خاوند د حريت په صورت کښې وينزې ته په خيار عتق کښې مذاهب:-**

① د فقهاء کرامو اختلاف دې د ائمه احناف په نيز وينځې ته به په هر حالت کښې خيار عتق ملاويږی که د هغې خاوند غلام وی او که آزاد وی.

② د جمهور اوشوافعو په نيز خيار عتق صرف په هغه صورت کښې دې کله چه خاوند غلام وی او ښځه آزاده شی که چرې خاوندئی آزاد وی نو وينځې ته به خيار عتق حاصل نه وی

**د خيار عتق په علت کښې اختلاف:-** ① د احناف او جمهورو په مينځ کښې چه کوم اختلاف دې دا د تخريج علت د وجې نه دې جمهورو د خيار عتق دپاره چه کوم علت راويستې دې هغه دا دې چه کله وينځه آزاده شی نو اوس به هغه د غلام خاوند لاندې اوسيدو سره شرم محسوسوی ځکه چه په دواړو کښې کفاءت پاتې نه شو او که چرې خاوند آزاد وی نو هيڅ شرم نه دې د دې دپاره هغه ته خيار نشته په غلام کښې شرم دې نو هلته اختيار دې

② د احنافو په نيز د خيار عتق علت د آزادئی نه پس شرم نه دې بلکه د دريو طلاقو اختيار دې ځکه چه د طلاق مدار په ښځو باندې دې که چرې ښځه وينځه ده نو خاوند ته د دوو طلاقو حق حاصل دې "طلاق الامة اثنتان" او که چرې ښځه آزاده وی نو خاوند ته د دريو طلاقو اختيار حاصليږی احناف فرمائی د آزادئی نه پس د دغه ښځې طرف ته يو زياتی دريم طلاق متوجه شو لهذا دې له د دغه زياتی بوج د لرې کولو حق حاصل دې کوم چه خيار عتق دې دا د خيار عتق علت هم دې او فائده او حکمت هم دې.

**د اول فريق اول دليل:** - ① زير بحث دَ حضرت عروه رحمه الله عن عائشه رضي الله عنها روايت د دوی مستدل دي په کوم کښې چه "كان زوجها عبدا" واضح الفاظ راغلی دی "ولو كان حرا لم يخيرها" الفاظو سره دَ مخالف طرف رد هم اوشو او مسئله هم صفا شوه

**د اول فريق د اول دليل جواب:** - د "ولو كان حرا لم يخيرها" الفاظ دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه دی بلکه دَحضرت عروه رحمه الله الفاظ دی ځکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها خود مغيث دَحر کيدو روايت بار بار بيان کړی دی

**د اول فريق دويم دليل:** - ② عقلی دليل هم د دوی مستدل دی چه په حقيقت کښې دَدې مسئلې دَعلت طرف ته اشاره ده که چرې خاوند غلام وی نو دَ هغه ماتحت اوسيدو کښې شرم دی او که چرې خاوندنی حر وی نو هيڅ شرم نشته. لهذا هغې ته خيار نشته نو په مسئله کښې څه غبار نشته.

**د اول فريق د دويم دليل جواب:** - دَ عبدلاندی دَ آزادې ښځې اوسيدل شرم دی نو دا علت بيانول صحيح نه دی ځکه چه دَ حره په شروع کښې دَ غلام ماتحتئ کښې راتلل شرم دی ليکن هغه دَ مخکښې نه دَهغه په نکاح کښې مستعمله مستفرشه وی نو په دې کښې به دغه وخت څه شرم وی؟

**د دويم فريق دلائل:** - ① ((روي مسلم عن عبدالرحمن بن القاسم الى آخر الحديث قال القاسم وخُيِّرَتْ فقال عبدالرحمن وكان زوجها حرا)). (زجاجة المصابيح : ج۲ ص ۴۳۰)

② ((روي البخاري واصحاب السنن عن ابراهيم عن الاسود عن عائشة في قصة بريرة وفي آخرها وكان زوجها حرا)) (بحواله زجاجة المصابيح ج۲ص: ۴۲۸، بخاري ج۲ص: ۹۹۹).

③ ((وفي رواية الترمذي قالت كان زوج بريرة حرا فخيرها النبي ﷺ)) (ايضاً)

④ ((وروي ابوداؤد عن الاسود عن عائشة ان زوج بريرة كان حرا حين عتقت)) (زجاجة ج۲ص ۴۳۱)

⑤ ((وروي الطحاوي وابن ابي شيبة عن طاؤس قال للامة الخيار اذا اعتقت وان كانت تحت قرشي وفي رواية لهما عنه قال لها الخيار في الحر والعبد)) (ايضاً)

⑥ ((وروي ابن ماجة والنسائي عن الاسود عن عائشة انها اعتقت بريرة فخيرها النبي ﷺ وكان لها زوج حر)). (ايضاً)

⑦ ((وروي ابن ابي شيبة عن ابن سيرين والشعبي نحوه وفي رواية له عن مجاهد قال لها الخيار ولو كانت تحت امير المؤمنين)) (زجاجة المصابيح مشكوة الحنفي : ج۲ ص ۴۳۱).

⑧ دارقطني رحمه الله يو روايت نقل کړی دی ((قال رسول الله ﷺ لبريرة ملكت بضعك فاختاري)) دلته دې روايت کښې دَخيار عتق علت بيانولو سره نبی کريم ﷺ فيصله اوکړه چه دَ خاوند

اعتبار نشته که هغه غلام وی او که حر وی شرط دادې چه ښځه د خپل اختیار مالکه جوړه شی اوس د لته مطلق د ملکیت بضعه د فاختیاری سبب ګرځولې شوې دې د خاوندلحاظ نه دې ساتلې شوې افسوس سره لیکلې کیږی چه دومره روایات دی او صاحب مشکوة یو هم نه دې نقل کړې

**د اول فریق د اول او دویم دلیل دوه جوابونه:** - ① اول فریق "وکان زوجها عبدا" اختیار کړې دې او دویم فریق "وکان زوجها حرا" اختیار کړې دې نو په ظاهره دې معارض روایاتو کښې یو طرف ته خو ترجیح نه شی ورکولې بیا به په دې روایتونو باندې عمل څنګه کولې شی نو احناف د تطبیق صورت اختیار کړې دې هغوی فرمائی چه کله "وکان زوجها حرا" اختیار کړې شونو په ټولو روایتونو باندې به عمل اوشی او هغه داسې چه مونږ د حر او عبد دواړه متضاد الفاظ به په یو وخت باندې نه حمل کوو بلکه د تطبیق په غرض سره مونږ به حر په جدا زمانه باندې حمل کو او عبد به په جدا زمانه باندې حمل کوو. نو اصولی قاعده داده چه په حر مسلم باندې عبدیت نه شی شروع کیدې او په عبد مسلم باندې حریت شروع کیدې شی

② او د بریره رضی الله عنها خاوند مغیث اول غلام وو روستو آزاد شو نو د هغه په حق کښې چه د عبدیت کوم الفاظ راغلی دی دا حکایت په تیره شوې زمانه باندې محمول دی یعنی "وکان عبدا" پخوانئی زمانه کښې غلام وو اوس د بریره د آزادئی په وخت کښې نه وو نو هغه خو واقعی اول غلام وو اوچرته چه د "وکان زوجها حرا" الفاظ راغلی دی نو دا الفاظ د حالت عتق او خیار عتق په وخت باندې محمول دی نتیجه دا شوه چه مغیث حر وو او بریره ته نبی کریم د خیار عتق حق ورکړو معلومه شوه چه د حریه ماتحتئی کښې که چرې وینځه آزاده شی نو هغې ته به هم خیار عتق حاصل وی او په عبدیت کښې نی تول منی

**[۲۴۴] د یو غلام دپاره د نبی علیه السلام شفارس**

۲۴۴ — [۴] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ② «كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ عَبْدًا أَسْوَدَ يُقَالُ لَهُ مُغِيثٌ ③ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ يَطُوفُ خَلْفَهَا فِي سِكَكِ الْمَدِينَةِ وَدُمُوعُهُ تَسِيلُ عَلَى لِحْيَتِهِ ④ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَبَّاسِ، يَا عَبَّاسُ، أَلَا تَعْجَبُ مِنْ حُبِّ مُغِيثٍ بَرِيرَةَ، وَمِنْ بُغْضِ بَرِيرَةَ مُغِيثًا ⑤ فَقَالَ النَّبِيُّ: لَوْ رَاجَعْتِيهِ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ تَأْمُرُنِي؟ ⑥ قَالَ: إِنَّمَا أَشْفَعُ، قَالَتْ: لَا حَاجَةَ لِي فِيهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایې ② چې د بریره رضی الله عنها خاوند یو تور رنګي غلام

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الطلاق/باب شفاعة النبی صلی الله علیه وسلم فی زوج بریرة (رقم-۵۲۸۳) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/باب فی المملوکة تعتق وهی تحت حر أو عبد (رقم-۲۲۳۱) والترمذی فبکتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المرأة تعتق ولها زوج (رقم-۱۱۵۵) واحمد فی المسند: ۱۸۲۱۵

وو، چې مغيث نوم يې وو .[۳] زما د سترګو مخکې اوس هم هغه منظر دي، چې مغيث په بريره رضي الله عنها پسې وروسته وروسته د مدينې په کوڅو کښې ژړيدلې ګرځيدلې، او د هغه د سترګو نه اوښکې څڅيدو سره د هغه په ږيره پريوتلې.[۴] بوه ورځ حضور ﷺ حضرت عباس رضي الله عنه ته وفرمايل چې اې عباس! رضي الله عنه آيا تا ته په دې تعجب نکوي چې د مغيث بريره رضي الله عنها څومره خوښه ده، او بريره رضي الله عنها د مغيث نه څومره نفرت کوي.[۵] بيا حضور ﷺ بريره رضي الله عنها ته هم وفرمايل چې کاش چې تا مغيث ته رجوع کړې واې (يعنی د مغيث سره دې دوباره نکاح کړې واې) بريره رضي الله عنها عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ تاسو ما ته په طور د وجوب) د دې حکم راکوی؟[۶] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې اې بريره! رضي الله عنها زه خو سفارش کوم (يعنې په طور د وجوب نه، بلکې بطريق استحباب تا ته سفارش کوم) بريره رضي الله عنها اوويل چې زما هغه ته د رجوع کولو هيڅ ضرورت نشته (يعنې ماته د هغه سره وسيدل منظورنه دی) بخاري

حل اللغات - ① سِكَكِ: کوڅه، ګلی، ② أَشْفَعُ: سفارش کوم

**تسهيلات:**

**نوټ:-** د حديث مطلب د ترجمې څخه واضح دې د اضافی شرحې ضرورت نشته

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۲۰۰] د زوجينو په آزادولو کښې د غلام آزادولو ته ترجيح ورکول

[۳] (۱) [۱] «عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا أَرَادَتْ أَنْ تُعْتِقَ مَمْلُوكَيْنِ لَهَا زَوْجٌ [۲] فَسَأَلَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَأَمَرَهَا أَنْ تَبْدَأَ بِالرَّجُلِ قَبْلَ الْمَرْأَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چې هغې د خپل دوه مملوک د آزادولو اراده وکړه، چې په خپلو کښې ښځه اوخاوند وو.[۲] نو د نبی کريم ﷺ نه يې پوښتنه وکړه.[۳] حضور ﷺ ورته د ښځې نه مخکې د سړي د آزادولو حکم ورکړې (چې ښځې ته د نکاح فسخ کولو اختيار باقي پاتې نشي) ابوداؤد نسايي

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ تَبْدَأَ بِالرَّجُلِ:

**د ښځې نه مخکې د سړی آزادولو وجوه:-** حضرت عائشه رضي الله عنها سره دوه مملوك وو په هغوی کښې يوه ښځه او بل خاوند وو. يعنی د دواړو په مينځ کښې د ښځې خاوندرشته وه

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الطلاق/ باب فی المملوكين يعتقان معا هل تخير امرأته؟(رقم-۲۲۳۷) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب:خيار المملوكين يعتقان (رقم-۳۴۴۶) وابن ماجه فی باب من أراد عتق رجل وامرأته فليبدأ بالرجل (رقم-۲۵۳۲)

حضرت عائشه ﷺ دواړه آزادول غوښتل نو د نبی کریم نه ئې معلومه کړه نبی کریم اوفرمائیل چه سړي اول آزاد کړه

① ﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ﴾[نساء ۳۴.] د فضیلت خیال ساتلې شوې دې

② عموماً سړي وينځه په نكاح كښې ساتي په هغه ډير ناخوښه نه تيريږي خوچه ښځه كله آزاده وي اوخاوندئي غلام وي نو په دې كښې ښځه شرم محسوسوي په دې وجه دسړي اول آزادولوحكم اوشو

③ د سړي په آزادولوسره به ښځې ته د نكاح د فسخ كولواختيارحاصل نه شي نو بقاء نكاح د انقطاع نكاح نه اولى وي

**[۳۲۰۱] دآزادۍ ښځه روسته په جماع کولو سره د نکاح فسخ کولو اختیار ختمیدل**

**[۳] (۱) ① وَعَنْهَا «أَنَّ بَرِيرَةَ عَتَقَتْ وَهِيَ عِنْدَ مُغِيثٍ ② فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَقَالَ لَهَا: إِنْ قَرِبَكِ فَلَا خِيَارَ لَكِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.**

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷺ وايي چې بريره ﷺ په داسې حال كښې آزاده شوې وه، چې هغه د مغيث په نكاح كښې وه، ② رسول الله ﷺ هغې ته (د خپلې نكاح د باقي ساتلو يا فسخ كولو) اختيار وركړي، ليكن دا يې هم ورته فرمايلي وو چې كه ستا خاوند ستا سره جماع وكړي، نو تا ته به دا اختيار حاصل نه وي (ځكه چې په دې صورت كښې به دا ګڼل كيږي. چې ته د هغه په خاوندتوب راضي يې) ابوداؤد.

اوداباب ددريم فصل نه خالي دي

**تسهيلات:**

نوټ - ددې حديث تفصيل چې د خيارالعتق مسئله ده د حديث نمبر (۳۱۹۸) په تسهيل كښې

(۱) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الطلاق / باب فى المملوكين يعتقان معا هل تخير امرأته؟(رقم-۲۲۳۶)

# [۶] بَابُ الصَّدَاقِ

## دَ مهر بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① كون المهر غير المال: ۱، ۸.

② كون المهر قليل من المال: ۴، ۵.

③ القدر المنصوص من المهر: خمس مائة دراهم: ۲، ۳. - أربعة آلاف درهم: ۷.

④ الاستحلال بإعطاء المهر المعجل: ۴.

⑤ إنعقاد النكاح بمهر المثل: ۶.

**د قرآن څخه د مهر د فرضيت ثبوت:-**

① ﴿ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا ﴾ [سورت نساء: ۲۰.]

② ﴿ وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ أَن تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُم ﴾ [سورت نساء: ۲۴.]

③ ﴿ وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً ﴾ [سورت احزاب: ۵۰.]

④ ﴿ قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ ﴾ [سورت نساء: ۴.]

**د لفظ صداق تحقيق:-** صداق په وزن دَ كتاب دَ ښځې مهرته وائى دَدې جمع صُدُقَ دَ كتب په شان راځى. په صداق كښې دَ صاد كسره زيات فصيح او فتح هم مشهوره ده. ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى مهرته صداق څكه اووئيلې شو "لانه يظهربه صدق ميل الرجل الى المرءة" په عربى كښې المهرهم وئيلې كيږى دَ كوم جمع چه مهور راځى.

**د نكاح د صحت دپاره د مهر لزوم:-** دَ خاوند دَطرف نه دَ حقوق زوجيت په معاوضه كښې چه څه وركولې شى هغه مهر دې. دَ نكاح دَصحت دَپاره دَمهر كيدل ضرورى دى دَدې نه بغيرنكاح صحيح نه ده. اوكه چرې تذكره ئى اونه كړه نومهرمثل به لازم راځى نكاح به ئى صحيح شى.

**مهر د ښځې خالص حق:-** مهرخالص دَ ښځې حق دې كوم خلق چه دَ لور خور په نوم باندې مهر وصول كړى اوبخپل مصرف كښې راولى دادَ ښځو په حق كښې لوئى ظالمان خلق دى او ډيره دَ بې شرمئى خبره ده چه لونړه خرڅه وى. په علماء حق باندې فرض دى چه دَې خراب رسم او ظلم خلاف دَ حق آواز اوچت كړى.

**د مهر حكمتونه:-** ① حضرت شاه ولى الله رحمه الله دَ مهر دَ حكمتونو متعلق په حجة البالغه كښې ليكلى دى چه نكاح دَ يونظم اوضبط جوړ اوترتيب نوم دې دَ ښځې خاوند په مينځ

کښې د همیشه معاونت او نصرت او مدد نوم دې هم د دې جوړ نظم او ضبط د وجې سره مهر مقرر شو دې د پاره چه بغیر د ضرورت نه خاوند د دې نظم په ماتولو کښې د خپل مرضۍ یعنې مهر ضائع کیدو خطره محسوسوی گویا مهر مقررول چه د نکاح د دوام مضبوطیا د پاره ضروری دې

۲ مهر مقررکولو کښې په نکاح کښې عظمت او اهتمام پیدا کیږی ځکه چه خلق په طبعي توګه باندې د مال حرص کوی نو چه یوسړې د ملك بضعه په عوض کښې مال ورکوی نو د اخستونکی او ورکونکی دواړو په سترګو کښې به د نکاح عظمت پیدا کیږی او د جینئی والوسترګې یخیدې شی چه زمونږ د زړه د ټکړې یوسړې په مفت کښې مالك نه دې جوړ شوې

۳ مهر مقررولو سره په زنا او نکاح کښې فرق ښکاره کیږی. بیا د مال په اخستلو او ورکولو کښې چونکه د خلقو عادتونه او د حرص درجات بل د انسانانو طبقات مختلف دی په دې وجه شریعت د مهر کم یا زیات مقررکولو کښې څوك پابند نه کړل (یعنې جانب اکثر هم په مهر پابندی اونه لګوله).

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۲۰۲] د اوسپنې ګتمه په مهر کښې مقررکول

۳۲۰۲ـــ[۱] (۱) ۱ «عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ ۲ فَقَالَتْ: يَارَسُولَ اللهِ إِنِّي وَهَبْتُ نَفْسِي لَكَ فَقَامَتْ طَوِيلًا ۳ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَارَسُولَ اللهِ زَوِّجْنِيهَا إِنْ لَمْ تَكُنْ لَكَ فِيهَا حَاجَةٌ، ۴ فَقَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ تُصْدِقُهَا ۵ قَالَ مَا عِنْدِي إِلَّا إِزَارِي هَذَا،

**ترجمه:** ۱ حضرت سهل ابن سعد ﷺ وايي چې يوه ورځ يوه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه، ۲ او هغې اوويل چې يا رسول الله! ﷺ ما خپل ځان ستا د پاره هبه کړی (دې ويلو سره) هغه ښځه تر ډير وخته ولاړه وه، ددې پورې چې حضور ﷺ د هغې د خبرې څه جواب ورنه کړې، ۳ او اوس لا حضور ﷺ پته خوله وو، چې يو صحابي ﷺ ودريدلو او عرض يې وکړې چې يا رسول الله! ﷺ که ته ﷺ ددې ښځې ضرورت نه محسوسوی نو د دې سره زما نکاح وکړه، ۴ حضور ﷺ پوښتنه ورنه وکړه چې آيا ستا

۱ ) اخرجه البخاری فی باب: السلطان ولی لقول النبی صلی الله علیه وسلم: «زوجناکها بما معک من القرآن» (رقم-۵۱۳۵) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب الصداق، وجواز کونه تعلیم قرآن، وخاتم حدید، وغیر ذلک من قلیل وکثیر، واستحباب کونه خمسمائة درهم لمن لا یجحف به (رقم-۷۶ - (۱۴۲۵) ورواه ابوداود فی السنن کتاب النکاح/باب فی التزویج علی العمل یعمل (رقم-۲۱۱۱) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۱۱۱۴) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: التزویج علی سور من القرآن (رقم-۳۳۳۹) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ صداق النساء (رقم-۱۸۸۹) ومالک فی الموطا کتاب النکاح/باب ما جاء فی الصداق والحباء (رقم-۸) واحمد فی المسند: ۳۳۰/۵

سره يو ځيز هم داسې شته، چې دې ښځې ته په مهر کښې ورکړی شي.[۵] هغه عرض اوکړو چې د دې تهبند (لنګ) نه علاوه (چې ما ترلی دی) بل هيڅ ځيز نشته.

[۱] قَالَ فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَالْتَمَسَ فَلَمْ يَجِدْ شَيْئًا[۲] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - هَلْ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْءٌ؟[۳] قَالَ نَعَمْ سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا[۴] فَقَالَ قَدْ زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ[۵] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ انْطَلِقْ فَقَدْ زَوَّجْتُكَهَا فَعَلِّمْهَا مِنَ الْقُرْآنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې لاړ شه (څه شی) ولټوه، اګر چې هغه د اوسپنې ګوتمې وي، هغه صحابي ﷺ ډير تلاش وکړي، خو هيڅ ځيز يې بيانه پيدا کړی.[۲] بيا حضور ﷺ پوښتنه ورنه وکړه چې آيا تا ته د قرآن مجيد نه څه ياد دي؟[۳] هغه عرض اوکرو چې هو، فلانې فلانې سورتونه مې په ياد دي.[۴] حضور ﷺ وفرمايل چې د قرآن مجيد نه چې څه تا ته ياد دي، د هغه په سبب ما ستا نکاح د دې ښځې سره وکړه.[۵] او په يو روايت کښې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل څه، ما ستا نکاح د دې ښځې سره وکړله.ته دی ته د قرآن مجيد تعليم ورکوه، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① تُصْدِقُهَا: چې ته هغې ته مهر ورکړې ② فَالْتَمِسْ: ته لټون اوکړه

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ:**

دَمهر مقدار څومره پکاردې په دې کښې دَعلماء کرامو اختلاف دې

**د اکثر مهر په مقدار کښې عدم تعين:** - په دې خبره باندې ټول فقهاء متفق دی چه دَ مهرجانب اکثر کښې څه حد مقررنه دې بلکه په قرآن کريم کښې الله تعالى لفظ "قنطارا" ذکرفرمائيلې دې اګرچه مستحب دادی چه په مهر کښې غلونه وی اودغه دې دومره زيات نه وی چه خلق دَ نکاح کولوقابل پاتې نه شی اودَ مهردبوج لاندې خنې پاتې شی

**د اقل مهر په مقدار کښې مذاهب:** -

① امام مالك رحمه الله په نيزکم نه کم مهرربع دينار دې

② دَ امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيزدَ اقل مهر هم څه حد مقررنه دې بلکه چه زوجين په کوم باندې راضی شی هم هغه صحيح دې. دَهغوی په نيزنکاح دَ بيع اوشراء په شان مالی معامله ده مال پکاردې چه کم وی اوکه زيات، چه ښځه خاوندوی راضی نوڅه کوی قاضی

③ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه اقل مهرلس درهم دې دې نه کم جائزنه دې داآخری حددې

**داول فريق اول دليل:** - ① حديث المجن د وی مستدل دې چه دَ نبی کريم په زمانه کښې

"ثمن المجن" باندي نكاح شوي ده اود ډهال قيمت ربع دينار وو

**د اول فريق د اول دليل جواب:**- دا حديث د فريق ثالث خلاف مستدل نه دي. ځكه چه په شروع دوركښي ربع دينار ياثمن مجن دا ټيزونه د لس درهم برابر وو

**د اول فريق دويم دليل:**- ② په حد سرقه كښي لاس د ربع دينار بدله كښي كټ كولې كيږي نود يواندام قيمت ربع دينار دي دلته په نكاح كښي ملك بضعه هم يواندام دي د دې بدله هم ربع دينار كيدل پكاردي

**د اول فريق د دويم دليل جواب:**- د قطع يد مسئله خومونږ هم په خپل عقلي دليل كښې پيش كوو ځكه چه هلته هم د لس دراهم ذكردي هم دغه ربع ديناردي

**د دويم فريق دلائل:**- هغه اكثراحاديث د دوى مستدلات دى په كومو كښي چه د شي قليل من المال ذكر دي لكه چه د بخارى په يوروايت كښي دى "ولوخاتمامن حديد" يوروايت كښي د ستوانو ذكر راغلي دي او په يوكښي د چوارې ذكر دي په يوكښي د نعلين ذكر دي نهذا د مهرڅه حدمقررنه دي.

**د دويم فريق د دلائلو نه دوه جوابونه:**- ① په كومو ځيزونوكښي د قليل شيئونو وركولوذكر راغلي دي د هغي نه مهرمعجل مراد دي. د عربوعادت ووچه په رومبي ملاقات كښې به ني بى بى ته څه نه څه د تحفه په توګه وركول چه د مهرنه علاوه به د مخ كتلو تحفه وه يا به د مهرڅه حصه وه لكه څنګه چه حضرت على رضی الله عنه حضرت فاطمه رضی الله عنها ته يوه زغره وركړې وه حالانكه مهرجدا مقررو.

② دا د هغه وخت خبره وه كوم وخت چه د مهرحد مقررشوي نه وو. هم دغه وجه ده چه په احاديثوكښي تعليم القرآن په مهركښي شمير كړې شوي دي حالانكه هغه مال نه دي

**د دريم فريق دلائل:**- ① د قرآن عظيم د آيت ﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ﴾ [سورة احزاب ۵۰. ] د دوى مستدل دي طريقه د استدلال داسې ده چه الله تعالى كوم څه مفروض اومقرركړي دى د هغې څه معتدبه معين مقدار كيدل پكاردى دغه شان آيت ﴿أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ﴾ [سورة نساء ۲۴. ] هم يومعين اومقررمقدارتقاضاكوى دا مقدارضرورمعلوميدل پكاردى د آياتونو د اجمال تفصيل د پاره حضرت ابن مسعود رضی الله عنه هغه حديث دي كوم چه دارقطنى اوبيهقى نقل كړي دي "لامهردون عشرة دراهم"

② په دارقطنى او بيهقى كښي د حضرت على رضی الله عنه هغه موقوف روايت هم دي "ولايكون المهراقل من عشرة دراهم" په دې روايتونوكښي سره د دې چه په انفرادى توګه باندې ضعف دي ليكن د كثرت طرق د وجې نه د حسن د درجې نه كم نه دى.

③ ابن ابى حاتم رحمه الله د حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه نه داحديث نقل كړي دي ((قال قال رسول

نه ﷺ لامهر اقل من عشرة» دي روايت نه ابن حجر رحمه الله حسن ونيلي دي

نَّ جْتُكَهَا فَعَلِّمْهَا مِنَ الْقُرْآنِ»:

**د قرآن تعليم مهر مقرر کول:-** ① دَحديث دَدي لفظ نه په ظاهره دا معلوميږي چه تعليم قرآن مهر مقرر کړي شوي دي امام شافعي رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله دا جائز منلي دي ② دَامام مالك رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدا جائز نه دي هغوی فرمائی چه داسې کولو سره مهر مثل لازميږی

**داول فريق دليل:-** زير بحث حديث د دوی مستدل دي د کوم د ظاهر نه چې په مهر کښې تعليم القرآن مقرر کول صحيح ښودلی شوی دی

**داول فريق د دليل جوابونه:-** ① دَاسلام په شروع کښې نبی کريم قرآن عظيم دَ ژوند په هره شعبه کښې عام کول غوښتل د دې وجې ئې د نکاح د صحت دپاره د قرآن پاک تعليم په مهر کښې مقرر کړې وو. چې قرآن پاک عام شي.

② دَدې حديث نه دَ اشارې په توګه داهم معلوم شوچه تعليم قرآن دَهغه سړی دَپاره په درجه دَ مجبورئی مهرجوړيدې شی. چاسره چه په پوره ماليت کښې يودَ اوسپنې ګوتمه هم نه وی. داسې سړې په دنيا کښې څوك كيدې شی نودا يوبې مثاله صورت وو "والنادرکالمعدوم"

③دا د نبی کريم صلی الله عليه وسلم خصوصيت وو. چې په خپله ئې هم بغير مهر نکاح کولې شوه او بل دپاره ئې هم دعامو څيزونوماليا تو په ځائې به منافعو نکاح کولې شوه د دې وجې بل چا دپاره بغير د مهر نه نکاح جائز نه ده. اوکه چا اوکړه نو مهر مثل په برې واجب وی. په دې خصوصيت باندې دا دوه روايات دليل دی.

(ا) په ابوداؤد شريف کښې په روايت دَمکحول دانقل دی «انه کان يقول ليس ذالك لاحد بعد رسول الله ﷺ» معلومه شوه چه دا خصوصيت دَ پيغمبر وو.

(ب) په سنن سعيدبن منصور کښې يوحديث داسې هم دې. «عن ابی النعمان الازدي قال زوج رسول الله ﷺ امرأة علی سورة من القرآن ثم قال لايكون لاحد بعدك مهرا»

**د دويم فريق دليل:-** د مهر په وجوب کښې چه څومره روايات دی. هغه د دوی دلائل دی

**[۲۲۰۲] دازواج مطهرات رضی الله عنهن د مهر مقدار؟**

۳۲۰۳ــ[۲] (۱) ① وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ: «سَأَلْتُ عَائِشَةَ كَمْ كَانَ صَدَاقُ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② قَالَتْ: كَانَ صَدَاقُهُ لِأَزْوَاجِهِ ثِنْتَا عَشْرَةَ أُوقِيَّةً وَنَشٌّ ③ قَالَتْ: أَتَدْرِي مَا النَّشُّ؟ قُلْتُ: لَا ④ قَالَتْ: نِصْفُ أُوقِيَّةٍ فَتِلْكَ خَمْسُمِائَةِ دِرْهَمٍ». ⑤ رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَنَشٌّ بِالرَّفْعِ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَفِي جَمْعِ الْأُصُولِ.

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب الصداق، وجواز کونه تعليم قرآن، وخاتم حديد، وغير ذلک من قليل وکثير، واستحباب کونه خمسمائة درهم لمن لا يجحف به (رقم-۷۸ - (۱۴۲۶)) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب الصداق (رقم-۲۱۰۵) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ صداق النساء (رقم-۱۸۸۶)

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابو سلمه رضي الله عنه وايي چې ما د ام المؤمنين بي بي عائشي رضي الله عنها نه پوښتنه وکړه چې نبی کريم ﷺ د خپلو بيبيانو مبارکو څومره مهر مقرر کړی وو؟ [۲] نو بي بي عائشي رضي الله عنها وفرمايل چې حضور ﷺ د خپلو بيبيانو د پاره ددولس اوقيه او يو نش مهر مقرر کړی وو، [۳] بي بي عائشي رضي الله عنها پوښتنه وکړه چې پوهيږې نش څه ته وايي؟ ما عرض وکړو، چې نا، [۴] نو هغې وفرمايل چې يو نش د نيم اوقيه برابر وي. دغه شان د دولس اوقيه او يو نش مجموعي مقدار د پنځه سوه درهم برابر شو (ځکه چې يو اوقيه د څلوېښت درهم برابر وي) [۵] دا روايت مسلم رحمه الله نقل کړي دي او شرح السنه او د اصول په تولو کتابونو کښې لفظ نش د نون په پيش سره يعنی نُش منقول دي (اصول د حديث هغه کتابونو ته وايي چې په هغه کښې تول احاديث د سند سره ليکلي وي).

**حل اللغات:** - ① أُوقِيَّةً: د اوقيه جمع اواق ده. يواوقيه د څلوېښتو دراهم وی. ② نَشٌّ: "نش" نصف اوقيه وی يعنی شل دراهم نش دی نود دولس نيم سوو اوقيه نه پنځه سوه دراهم پوره شو

**تسهيلات:**

**قوله:** صَدَاقُهُ لِأَزْوَاجِهِ ثِنْتَا عَشْرَةَ أُوقِيَّةً

**د بعضې ازواج مطهراتو د مهر تعداد:** - د عام ازواج مطهرات مهر هم دومره وو (يعنی پنځه سوه دراهم) اوهم د دې ذکر عام رواياتو کښې ملاويږي. او د ام حبيبه رضي الله عنها مهر څلور زره دراهم وو ليکن هغه د نبی کريم د طرف نه د حبش نجاشي بادشاه مقرر کولو سره اداکړې وو لهذا د دې روايت دې سره هيڅ تعارض نشته دي.

**د درهم مقدار:** - لس درهمه غالبا د دوه نيمې تولې چاندئ د وزن برابر وی. مظاهرحق کښې ليکلي دی چه پنځه سوه دراهم د چاندئ د مقدار يوکلو پنځه سوه ديرش ګرام وی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۲۰۴] د زيات مهر ممانعت**

۳۲۰۳ - [۳] (۱) [۱] «عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: [۲] أَلَا لَا تُغَالُوا صَدُقَةَ النِّسَاءِ فَإِنَّهَا لَوْ كَانَتْ مَكْرُمَةً فِي الدُّنْيَا وَتَقْوَى عِنْدَ اللهِ لَكَانَ أَوْلَاكُمْ بِهَا نَبِيُّ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] مَا عَلِمْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَكَحَ شَيْئًا مِنْ نِسَائِهِ وَلَا أَنْكَحَ شَيْئًا مِنْ بَنَاتِهِ عَلَى أَكْثَرَ مِنَ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أُوقِيَّةً». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په باره کښې منقول دي چې هغه وفرمايل

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح /باب الصداق (رقم-۲۱۰۶) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب منه (رقم-۱۱۱۴) والنسائی فی کتاب الجهاد /باب: القسط فی الأصدقة (رقم-۳۳۴۹) وابن ماجه فی کتاب النکاح / صداق النساء (رقم-۱۸۸۷)

اختيار: د ښځو دروند مهر مه ترئ، که دروند مهر تړل په دنيا کښې د بزرګي او عظمت سبب او د الله تعالىٰ ﷻ په نزد د تقوىٰ موجب ولې نو يقيناً نبي کريم ﷺ ددې زيات مستحق وو (چې حضور ﷺ د دروند نه دروند مهر تړلى) خو ماته نه ده معلومه، چې رسول الله ﷺ د دولس اوقيه نه په زيات مهر د خپلو بيبيانو سره نکاح کړې وي، ياد دې نه په زيات مهر يې دخپلو لوڼو نکاح کړې وي. (احمد ترمذي ابوداؤد نسايي ابن ماجه دارمي)

حل اللغات:- ① مَكْرُمَةً: عظمت، بزرګي

**تسهيلات:**

**قوله: لَاتُغَالُوا:**

**د کم مهر افضليت:**- دَحضرت عمر ﷺ دَدې فرمان مطلب دادې افضل دغه دی چه مهر کم نه کم وی اوپه دې کښې زيات تجاوزاونه کړی. دَدې مطلب دانه دې چه دَ ۱۲ اوقيه نه زيات مهرمقررول جائز نه دی جواز خودَ زيات هم دې. باقی دا اعتراض هم نه دی کول پکار چه حضرت عمر ﷺ ۱۲ اوقيه ذکرکړې دې اوحضرت عائشه ﷺ دَيو نش اضافه کولوسره بيان کړې دې داخکه چه حضرت عمر ﷺ په خپل بيان کښې کسر پريخودې دې لکه چه په عام توګه عرب پريږدی اوحضرت عائشه ﷺ بيان کړې دې يا دا چه دَ حضرت عمر ﷺ دَعلم مطابق هم دغه وو هغوی دَ خپل معلومات مطابق بيان کړې دې په دې څه تعارض نشته دې

**[۳۲۰۵] په مهر کښې دتعجيل استحباب**

۳۲۰۵-[۳] (۱) ① وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② «مَنْ أَعْطَى فِي صَدَاقِ امْرَأَتِهِ مِلْءَ كَفَّيْهِ سَوِيقًا أَوْ تَمْرًا ③ فَقَدِ اسْتَحَلَّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړی چې د خپلې ښځې په مهر کښې (څه حصه په طور د مهرِ معجل ورکړله، مثلاً) دواړه لاسه ډکولو سره ستوان يا کجوري يې ورکړلې، ③ نو هغه خپله ښځه د ځان د پاره حلاله کړه. (ابوداؤد)

حل اللغات:- ① سَوِيقًا: ستوان. ② اسْتَحَلَّ: حلالول، جائز کول

**تسهيلات:**

**نوټ:**- ددې حديث سره متعلق د مهر په مقدار کښې تفصيل د حديث نمبر (۳۲۰۲) په تسهيل کښې ذکرشوې دې

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح /باب قلة المهر (رقم-۲۱۱۰) واحمد في المسند: ۳۵۵/۳

## [۲۲۰۶] د مهر د وجوب يو صورت

۳۲۰۶—[۵] (۱) ① وَعَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ ② «أَنَّ امْرَأَةً مِنْ بَنِي فَزَارَةَ تَزَوَّجَتْ عَلَى نَعْلَيْنِ ③ فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَرَضِيتِ مِنْ نَفْسِكِ وَمَالِكِ بِنَعْلَيْنِ؟ ④ قَالَتْ: نَعَمْ، فَأَجَازَهُ.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت عامر ابن ربيعه ﷺ وايي ② چې د قبيله فزاره يوي ښځي په يوه جوړه چپلو د يو سړي سره نكاح وكړه، ③ نو رسول الله ﷺ هغه نه وفرمايل چې آيا ته د خپلي مالداري باوجود خپل ځان د يوي جوړي چپلو په بدله كښې په حواله كولو راضي شوي (يعني د دې باوجود چې ته خپله مالداره او باحيثية ښځه يې، آيا يواځې د يوي جوړي چپلو په بدله كښې دې ځان حواله كولو باندې راضي شوي) ④ هغه ښځي اوويل چې هو، زه راضي يم، حضور ﷺ (دا جواب آوريدو سره) دا مهر يې جائز وګرځولي. (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** نَعْلَيْنِ:

**په نعلين كښې مختلف توجيهات:** - ① دې نه مراد خوهم هغه مهرمعجل اومهرعلى الفوريه توګه دَ تحفه دې ② يا څپلئی خو هم مختلف وی په نوم اخستوسره خو دَ څپلئی لفظ راځي ليکن بعضې څپلئی لس درهم خوڅه بلکه سل دراهم نه هم دَ زيات قيمت وی. نودا روايت دَ شوافعو دپاره قطعی دليل نه دې اودا روايت ضعيف هم دې.

③ دا ښځه دَمهرمقرر کولونه پس دَخپل حق نه دَ دوو جوړو په بدله کښې لاس واخستو

④ دَ مهرڅه حصه فوری توګه باندې ورکړه هغه مراد دې

## [۲۲۰۷] د مهر مثل د وجوب يو صورت

۳۲۰۷—[۲] (۲) ① «وَعَنْ عَلْقَمَةَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ ② أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةً وَلَمْ يَفْرِضْ لَهَا شَيْئًا، ③ وَلَمْ يَدْخُلْ بِهَا حَتَّى مَاتَ، ④ قَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: لَهَا مِثْلُ صَدَاقِ نِسَائِهَا لَا وَكْسَ وَلَا شَطَطَ ⑤ وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ وَلَهَا الْمِيرَاثُ،

**ترجمه:** ① او حضرت عقلمه ﷺ د حضرت ابن مسعود ﷺ په باره كښې نقل كوي ② چې د هغه نه د يو سړي متعلق پوښتنه وشوه، چې هغه د يوي ښځي سره نكاح وكړه، او د هغه

۱ ) اخرجه الترمذی فی کتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی مهور النساء (رقم-۱۱۱۳) وابن ماجه فی کتاب النكاح/ صداق النساء (رقم-۱۸۸۸) واحمد فی المسند: ۴۴۵/۳

۲ ) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النكاح/باب فيمن تزوج ولم يسم صداقا حتى مات (رقم-۲۱۱۵) والترمذی فی کتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الرجل يتزوج المرأة فيموت عنها قبل أن يفرض لها(رقم-۱۱۴۵)والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: إباحة التزوج بغير صداق (رقم-۳۳۵۵) وابن ماجه فی کتاب النكاح/ الرجل يتزوج ولا يفرض لها فيموت على ذلک (رقم-۱۸۹۱) واحمد فی المسند: ۲۷۹/۴

څه مهر يې مقرر نه کړي، [۳] او اوس لا هغه دخول نه وو کړی (يعني نه خو يې د خپلې ښځې سره نکاح کړې وه، او نه خلوت صحيحه شوې وو) چې هغه وفات شو. [۴] حضرت ابن مسعود ﷺ تر يوې مياشتې په دې مسئله غور اوفکر وکړو، او بيا (د خپل اجتهاد په بنا) يې وفرمايل چې دې ښځې ته به هغه مهر حاصليږي کوم چې د دې د خاندان د ښځو دي (يعني د هغه سرې کندې ښځې ته به مهر مثل ورکول کيږي)، نه به په هغې کښې کمي کيږي نه به زياتوب. [۵] او په هغې ښځې به (د خاوند د ذات) عدت هم واجب وي، او هغه ته به ميراث هم ورکول کيږي (د دې اوريدو سره)

حل لغات: ① لَاوَكْسَ: کمي به پکښې نه کيږي ② وَلَاشَطَطَ: زياتي به پکښې نه کيږي.

[۱] فَقَامَ مَعْقِلُ بْنُ سِنَانٍ الْأَشْجَعِيُّ فَقَالَ: [۲] قَضَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي بِرْوَعَ بِنْتِ وَاشِقٍ امْرَأَةٍ مِنَّا بِمِثْلِ مَا قَضَيْتَ [۳] فَفَرِحَ بِهَا ابْنُ مَسْعُودٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

ترجمه: [۱] حضرت معقل ﷺ ابن سنان اشجعي ودريدلو، او هغه اوويل [۲] چې نبي کريم ﷺ زمونږ د خاندان د يوې ښځې بروع بنت واشق په باره کښې دا حکم کړی وو، کوم چې دا وخت تا بيان کړی دی، [۳] ابن مسعود ﷺ (د دې خبرې د اوريدو سره) ډير خوشحاله شو. (ترمذي، ابوداؤد، نسايي، دارمي)

تسهيلات: قوله: مِثْلُ صِدَاقِ نِسَائِهَا:

**د متوفي عنها زوجها د مهر نه مستحق کيدو يو صورت:** - دَحضرت علی ﷺ اونورو صحابه کرامو دامسلك ووچه کله به دَ چامهرمقررنه وو اوخاوند دخول هم نه وی کړې صرف نکاح شوې وی اوبيا دَ خاوند انتقال شوې وی نوپه دغه صورت کښې به ښځې ته مهرنه ملاويږی او عدت به تيروی اوميراث به ورته ملاويږی.

**د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ايماني جذبه او علمي مهارت:** - حضرت ابن مسعود ﷺ فيصله واؤروله چه دغه ښځې ته به مهرمثل ملاويږی داد هغوی اجتهادی فيصله او ايماني فراست او علمي مهارت وو په دې باندې يوصحابی پاسيدو اوهغه ګواهي ورکړه چه نبی کريم دَيوې ښځې باره کښې هم داسې فيصله کړې وه. په دې باندې ابن مسعود ﷺ ډيرخوشحاله شو چه ستاسو اجتهاد صحيح ثابت شو اوالله تعالی لاز اوخودله په دې واقعه سره دَ ابن مسعود ﷺ شان ډير اوچتيږی. دَحضرت ابن مسعود ﷺ باره کښې نبی کريم فرمائيلی ((رضيت لامتي مارضي لها ابن ام عبد)) دامعمولی انعام نه دې بلکه دَدوارو جهانو اعزاز دې په کوم باندې چه حضرت ابن مسعود ﷺ پوره ثابت شو.

مهرمثل هغه مهر ته وائی چه دَ هغې دَ پلار دَخاندان دَ هغه ښځووی چه په دې لاندې خبرو کښې دَهغې مثل وی، عمر، جمال، مال، ښار، زمانه، عقل اوکمال، بکارت، دينداری، علم اوادب اوښه عادات او اخلاق

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۲۰۸] د ام حبيبه رضي الله عنها د مهر مقدار

۳۲۰۸—[۷] (۱) [۱] «عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ أَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَحْشٍ [۲] فَمَاتَ بِأَرْضِ الْحَبَشَةِ فَزَوَّجَهَا النَّجَاشِيُّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] وَأَمْهَرَهَا عَنْهُ أَرْبَعَةَ آلَافٍ [۴] وَفِي رِوَايَةٍ أَرْبَعَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ [۵] وَبَعَثَ بِهَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَعَ شُرَحْبِيلَ ابْنِ حَسَنَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د ام المؤمنين بي بي ام حبيبه رضي الله عنها په باره کښې منقول دی چې هغه مخکې دعبدالله ابن حجش په نکاح کښې وه، [۲] بيا چې په ملک حبشه کښې عبدالله مړ شو، نو د حبشه بادشاه نجاشي د هغې نکاح د نبی کريم ﷺ سره وکړه، [۳] او نجاشي د حضور ﷺ د طرف نه د ام حبيبه رضي الله عنها مهر څلور زره مقرر کړي، [۴] په يو بل روايت کښې د څلورو زرو درهمو الفاظ دی (يعني دلته چې کوم روايت نقل شوی دی په هغه کښې د درهم لفظ نشته بلکې يواځې د څلور زره ذکر دي، هر کله چې په يو دويم روايت کښې د څلورو زرو سره د درهم لفظ هم دی، او دا مراد دی) [۵] او نجاشي (د نکاح نه وروسته) ام حبيبه رضي الله عنها د شرحبيل ابن حسنه سره حضور ﷺ ته وليږله. (ابوداؤد نسايي)

**تسهيلات:**

**قوله:** تَحْتَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَحْشٍ

**د حضرت ام حبيبه رضي الله عنها د ړومبی خاوند نوم:** -دَحضرت ام حبيبه رضي الله عنها دَ ړومبی خاوند نوم عبيدالله بن جحش وو. دَمشکوة په ټولونسخوکښې عبدالله بن جحش ليکلې شوې دې دا غلط دې عبدالله بن جحش خوپه احد کښې شهيد شوې دې اونن صباد هغوی قبردحضرت حمزه رضي الله عنه اودحضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه په اړخ کښې دَ زيارت کونکودپاره پروت دې اودا دعوت ورکوی.

**د حضرت ام حبيبه رضي الله عنها د نکاح پس منظر:** -دَحضرت ام حبيبه رضي الله عنها اصل نوم رمله وو. دادَ حضرت ابوسفيان بن حرب لور اودَ حضرت معاويه رضي الله عنه خوروه. اول دَ دې نکاح عبيدالله بن جحش سره شوې وه. عبيدالله اسلام قبول کړو اوبيادَ مکې نه هجرت کولوسره حبشه ته لاړو. حضرت ام حبيبه رضي الله عنها ورسره وه. په حبشه کښې عبيدالله مرتدشوعيسائی شو اوهم هلته مړشو. حضرت ام حبيبه په اسلام باندې قائمه پاتې شوه. نبی کريم دَ يوقاصد په ذريعه دَحبشه بادشاه نجاشی ته پيغام اوليګلو چه هغه دې دَ حضوراکرم نکاح دَ ام حبيبه سره اوکړی. او هغه دې دَنبی کريم دَپاره دَنکاح پيغام ورکړی. نجاشی دَخپلې وينځې په

۱ ) اخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب الصداق (رقم-۲۱۰۷) والنسائي في كتاب الجهاد/باب: القسط في الأصدقة (رقم-۳۳۵۰)

ذریعه حضرت ام حبیبه رضی الله عنها ته دَ نکاح پیغام ورکړو حضرت ام حبیبه رضی الله عنها په خوشحالئی خوشحالئی دا قبول کړو او پیغام راوړونکې وینځې ته نې دوه کپړې او یوه ګوتمه ورکړه اوبیانی خپل رشته دار حضرت خالدبن سعید رضی الله عنه خپل دَنکاح وکیل مقررکړو کله چه مابنام شو نونجاشی حضرت جعفر طیار رضی الله عنه ته اوهغه ټولوصحابه کرامو ته کوم چه په حبشه کښې وو دَ نکاح دَمحفل تقریب کښې دَ شمولیت دعوت ورکړو

**نجاشی اود نبی کریم سره د ام حبیبه د نکاح خطبه:** - کله چه ټول مسلمانان راجمع شو نودَ حبشه بادشاه پخپله داسې دَ نکاح خطبه اولوستله

الحمدلله الملك القدوس السلام المؤمن المهيمن العزيز الجبار اشهدان لااله الاالله وان محمداعبده ورسوله ارسله بالهدى ودين الحق ليظهره على الدين كله ولوكره المشركون" بیا نجاشی اوفرمائیل چه مادَ رسول الله ﷺ حکم قبول کړو اوڅلورزره دینارمهرمې مقررکړو دې نه پس حضرت خالدبن سعید رضی الله عنه دَ توحیداورسالت خطبه اولوستله اوبیانی اوفرمائیل چه ما دَ رسول الله ﷺ حکم اومنلواومادَ ابوسفیان لور حضرت ام حبیبه رضی الله عنها سره دَ نبی کریم نکاح اوکړه الله تعالی دې رسول الله ﷺ ته دغه نکاح مبارك کړی.

کله چه مجلس ختم شو نو نجاشی اوفرمائیل تاسو خلق کینئی خوراك اوکړئی ځکه چه دَ نکاح نه پس خوراك ورکول دَ انبیاء کرامو سنت دی. ټول خلق کیناستل اوخوراك ئې اوکړو دا واقعه دَ ۷هجری ده.

### [۳۲۰۹] د اسلام قبولیت د مهر قائم مقام ګرځول

| ۳۲۰۹ - [۸] (۱) ۞ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: ۞ تَزَوَّجَ أَبُو طَلْحَةَ أُمَّ سُلَيْمٍ ۞ فَكَانَ صَدَاقُ مَا بَيْنَهُمَا الْإِسْلَامَ أَسْلَمَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ قَبْلَ أَبِي طَلْحَةَ ۞ فَخَطَبَهَا فَقَالَتْ إِنِّي قَدْ أَسْلَمْتُ فَإِنْ أَسْلَمْتَ نَكَحْتُكَ ۞ فَأَسْلَمَ فَكَانَ صَدَاقَ مَا بَيْنَهُمَا. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وایې [۲] چې ابو طلحه رضی الله عنه چې کوم وخت د ام سلیم رضی الله عنها سره نکاح وکړه، [۳] نو قبولیت د اسلام یې په خپلو کښې مهر وګرځولی، ام سلیم رضی الله عنها د ابو طلحه رضی الله عنه نه مخکې اسلام قبول کړی وو، [۴] او بیا چې ابو طلحه رضی الله عنه ام سلیم رضی الله عنها ته د نکاح پیغام ولیږلی نو ام سلیم رضی الله عنها ورته اوویل چې ما اسلام قبول کړی دی، که ته هم مسلمان شې، نو زه به ستا سره نکاح وکړم (او ستا نه به مهر نه آخلم) [۵] نو ابوطلحه رضی الله عنه اسلام قبول کړې او اسلام قبلول یې په خپلو کښې مهر وګرځولو، (نسایي)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَكَانَ صَدَاقُ مَا بَيْنَهُمَا:

---

۱) اخرجه النسائی فی السنن کتاب الجهاد/باب: التزویج علی الإسلام (رقم - ۳۳٤۰)

**د اسلام قبلول د حضرت ابو طلحه رضي الله عنه دپاره مهر مقرر کيدل:** - يعني اسلام د دغو دوارو په مينځ کښې مهرجوړ شو اسلام او تعليم قرآن د شوافعو په نيزهم يوځيزدي لهذا دهغوی په نيزدواړه مهرجوړيدې شي د احنافو په نيزتعليم قرآن او اسلام وغيره طاعات چونکه مال نه دي اود مهر باره کښې صريح آيت راغلې دې ( أَنْ تَبْتَغُوْا بِأَمْوَالِكُمْ ) لهذا دا ځيزونه مهرنه شي جوړيدې

دحضرت ابوطلحه رضي الله عنه معامله د ډير مخکښې ده بلکه داسې معلوميږي چه دهغه اسلام دهجرت نه وړاندې وو مختصر واقعه داسې ده چه ام سليم اول د مالك بن نضرپه نکاح کښې وه د کوم نه چه حضرت انس رضي الله عنه پيدا شوې وو مالك داسلام قبلولونه وړاندې وژلې شوې حضرت ام سليم اسلام قبول کړو ابوطلحه هغې ته د نکاح پيغام ورکړو حضرت ام سليم دا شرط اولګولو که چرې ته اسلام قبلوې نو زه به تاسره نکاح اوکړم ابوطلحه اسلام قبول کړو اود دواړو نکاح اوشوه اومهرهم دغه د اسلام قبلول شو

**دمذکوره واقعې نه د احنافو جوابونه:** - ① مهرخوداول نه مقررووليکن ام سليم دخپلې وعدې مطابق دابوطلحه داسلام د قبلولود وجې نه خپل حق مهرمعاف کړو نواسلام دمهرمعاف کيدو ذريعه جوړشو

② دا واقعه دهجرت نه د وړاندې ده کوم وخت چه د مهر متعلق آيت هم نه وو نازل شوې ابوطلحه خود بيعت عقبه په وخت کښې مسلمان شوې وو د مهر آيت په مدينه منوره کښې نازل شوې وو لهذا دا ضابطه د مهر نه د وړاندې واقعه ده بل دا يوه جزئي واقعه ده په کوم کښې چه ډير زيات احتمالات دي معلومه نه ده چه صحيح صورت حال څه وو دا به د ضابطه لاندې کتلې شي پخپله ضابطه نه شي جوړيدې

**د ابوطلحه د نکاح په عدم بطلان باندې اعتراض:** - يومشهوراعتراض هم دې چه مهاجر د ام قيس هجرت د نکاح سره مشروط کولود وجې نه باطل شوې وه نود ابوطلحه نکاح چه د اسلام سره مشروط کړې شو دا ولې باطل نه شو؟

**دااعتراض جواب:** - هجرت يو راتلونکې عارضي ځيز دې په دې کښې امتداد نشته کله چه هجرت مکمل شو هغه وخت په دې کښې اخلاص نه وو اود مکمل کيدونه پس د اخلاص ګنجائش پاتې نه شو خکه چه په هجرت کښې امتداد نشته او اسلام خو يو ممتدعمل دې که چرې نن په کښې اخلاص نه وی نو صبا به راشي ابوطلحه سره د دې چه د واده په غرض اسلام قبول کړې وو ليکن د نکاح نه پس ئې په اسلام کښې اخلاص راغلو اوپه ربښتوني زړه سره د اسلام قبلولو ګنجائش باقي وو لهذا په دې کښې او په هجرت کښې فرق پيدا شو

# [۷] بَابُ الْوَلِيمَةِ

## د وليمې دعوت

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① التاكيد في الوليمة: ۱، ۱۵.

② المقادير المنقولة في الوليمة_ , شاة: ۱، ۲ - خبز ولحم: ۳، . حيس وأجزاءه ۴، ۵. : مدين من شعير : ۶. . سويق وتمر: ۱۱.

③ التاكيد بإجابة الوليمة: ۷، ۸، ۹، ۱۳.

④ عدم الإجابة وقت وجود المانع: , وجود المنكر: ۱۲. – التفاخر بالوليمة: ۱۶. ۱۷. . الفسق: ۱۸.

⑤ عدم الشركة في طعام الوليمة بلا إذن: ۱۰.

⑥ مصداق شر الوليمة : ۹.

⑦ مدة الوليمة: ۵.

⑧ المرجح وقت تعارض الدعوتين: ۱۴.

⑨ عدم السؤال عن المسلم عن طعامه من حيث الحرمة والحلة: ۱۹.

**د لفظ وليمه تحقيق:**-دَ وليمه جمع ولائم ده ولـم يلم ولماجمع كيدل. يوخ نى اودَ راغونديدلو په معنى كښې دې. ولائم هغه خوراكونو ته وائى چه دَ جاهليت په دور كښې دَ غم يا خوشحالئى په موقع وركولې شو عربوخلقو به تولو ته ولائم ونيل بيا ميلمستيا سره خاص كړې شو مثلاً ولائم العرس او ولائم الخرس وغيره وغيره

نن صباوليمه صرف دَ واده خادنى خوړې سره خاص شوې ده خكه چه شريعت دَ وليمه لفظ دَ واده اونكاح دَپاره استعمال كړې دې فقهاء كرام فرمائى چه وليمه دَهغه خوراك نوم دې چه دَ شب زفاف نه پس يعنى دَ ښځې خاوند دَ ملاقات نه پس وركولې شى دَ وليمې اصل سنت خو هم دغه دې چه دَ ښځې خاوند دَملاقات نه پس وى خوكه ملاقات نه وى نوكم ازكم نكاح شوې وى كه دَ نكاح نه وړاندې يوسرې وليمه وركوى نودا دَ وليمې سنت نه دې صرف دعوت دې

**دوليمې حكم:**-په اسلام كښې دعوت وليمه ته بعضې خلقو واجب وئيلى دى بعضې سنت مؤكد وئيلى دى اوبعضو مستحب وئيلى دى رحمة الامة فى اختلاف الائمة يومستند كتاب دې په دې كښې ليكلى دى "وليمة اللعرس سنة على الراجح من مذهب الشافعي

ومسلمة عند الثلاثة· (ص۲۱۴) كوموحضراتو اهل ظواهرو وغيره وليمې ته چه واجب وئيلي دي هغوى ·اولم ولوبشاة· دامر صيغې ته ئې كتلي دي ·الوليمة حق· الفاظو ته ئې كتلي دي جمهورفرمائي دامت تعامل په لزوم او وجوب باندې نه دې البته دَ سنت لفظ عام او مشهوردې مستحب او سنن زوائد هم يوځيزدې لهذا مستحب وئيل هم صحيح دي [الكاشف ۶/۳۲۲ ]

## دَ دعوتونو بيان

**د دعوت قبلولو حكم:** -دَ دعوت په قبلولو كښې چه څه شرعي عذرنه وي نو قبلول واجب دي كه عذر وي سرې پخپله بيمار وي يا په تللو كښې خطره وي يا دعوت دَحرام مال نه وي يا په دعوت كښې دمتوب وغيره وي يا بدعات اومنكرات وي نودې قبلول جائزنه دي كه دَ تک نه پس پته اولگي چه منكرات دي نوكه داسرې پخپله مقتداء جوړشوې دې نوهلته دې نه حصاريږي بلكه په منډه دې واپس لاړشي اوكه چرې مقتدا نه وي جوړشوې نوبيا دې خوراك اوكړي رادې شي

دَمقتدا جوړيدو مطلب دادې چه داسې عالم جوړشوې دې چه دَهغه دَعمل نه خلق دليل نيسي اودا سندگرځي يا دې داخبره هم په خيال كښې اوساتي چه دعوت خاص قبلول لازم دي چه چې خصوصي دعوت دركړې وي اوكه خصوصي دعوت نه وي نوعام دعوت قبلول لازم او واجب نه دي دَدعوت قبلولواصل وجه داده چه دَ شريعت حكم دې بله وجه دا چه دَ راغوښتونكي دَخصوصي دعوت نه پس انكاركولوسره به دَهغه زړه مات شي نفرت به زيات شي او په عام دعوت كښې دا صورت نه وي

دَدعوت دَمنكراتونه داهم دي چه څوك لوئي سرې دَ خپل شان شوكت اوعهدې په بنياد باندې خپل عزت زياتولودَ پاره په خصوصي دعوت باندې عالم رابلي يادَ يوباطل دَ تقويت دپاره هغه رابلي اودهغه په ذريعه باندې په بل باندې دَاثر اچولوكوشش كوي ياڅوك قاضي په دعوت باندې راغواړي نودا دعوت دَ رشوت شكل اختياره وي يا نور داسې منكرات دي مثلاً ريښمين قالين وغيره يا حرام مال يا رياكاري ياكبر تجبر وغيره منكرات وي

**دَ عربو دَ جاهليت وليمې:**

دَعربو دَ جاهليت په دوركښې د ولائم په نوم باندې پنځلس دعوته روان وو په اضافت سره به ئې په دې كښې تخصيص كولو دَ دغه ټولو نومونه دَمختصرتعارف سره ليكلې كيږي

① **وليمة العرس:** دابه دَواده ښادئي په موقع كيدلو اسلام دا په خپل ځائې ساتلې دې په عام توگه هم دغه وليمه پاتې ده

② **الخرس:** دَ ماشوم په پيدا كيدو چه كوم خوراك وركولې شي هغې ته الخرس وائي

③ **عقيقه:** په اوومه ورځ دَ ماشوم نوم كيخودو وخت كښې چه كوم خوراك وركولې شي هغې ته عقيقه وائي په اسلام كښې دا مسنون طريقه ده

④ **اعذار:** دَماشومانو په سنتولو كښې چه كوم خوراكونه وركولې شي هغې ته اعذار وائي په اسلام كښې دا نشته دا صرف رواج كښې دى.

⑤ **خُوالحذاق:** ماشوم چه په يوخيز كښې كمال پيدا كوى مثلاً غشى ويشتل. لامبووهل. توره چلول او اسونه زغلول وغيره هغه وخت به دا خوراكونه وزكولې شو په اسلام كښې دا خوراكه تحفيظ قرآن يا فارغ تحصيل كيدو باندې دا خوراك وركولې شي

⑥ **ملاك:** دَ كوژدن په تقريب كښې چه كوم خوراك وركولې شي هغې ته ملاك وائي

⑦ **وضيمه:** چاكره په مرى كيدوباندې چه كوم خوراك ورليگلې شى هغې ته وضيمه وائي اسلام دَدې دَ وركولو تاكيد كړې دې په جاهليت كښې به دَ وضمې لاندې دريمه اوومه نهمه پنځلسمه اودَ كليزې خوراكونه هم راتلل چه نن صبا بريليانو خپل كړى دى

⑧ **وكيره:** دَ كور جوړولو په موقع چه به كوم خوراك وركولې شو هغې ته به نى وكيره ونيل. وكر جالې ته وائي

⑨ **عتيره:** دا خوراك به دَ رجب دَ مياشتې په ليدو باندې وركولې شو

⑩ **شُنْدُخ:** داخوراك به هغه وخت وركولې شو كله چه به دَ چا ورك خيز راپيدا شو

⑪ **نقيعه:** دا خوراك به دَ مسافر كورته په واپس كيدو باندې وركولې شو

⑫ **تحفه:** دا خوراك به دَ ملاقات په وخت وركولې شو

⑬ **قرى:** دا به عام ميلمانو او نوى راتلونكو خلقو ته وركول شو

⑭ **نقرى:** دا به په خاص كارډ باندې دعوتى خوراك وو

⑮ **جفلى:** دابه دَعام خيرات خوړه وه په دې كښې به دوستان او دښمنان ټول شريكيدل

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۲۱۰] دوليمى حكم

۲۲۱۰ ـــ (۱) [۱] عَنْ أَنَسٍ [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى عَلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَثَرَ صُفْرَةٍ [۳] فَقَالَ: مَا هَذَا؟ قَالَ: إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ، [۴] قَالَ: بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ، أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

۱) اخرجه البخارى فى كتاب النكاح/باب قول الله تعالى: {وآتوا النساء صدقاتهن نحلة} [النساء: ٤](رقم-٥١٤٨) ومسلم فى كتاب النكاح/ باب الصداق، وجواز كونه تعليم قرآن، وخاتم حديد، وغير ذلك من قليل وكثير، واستحباب كونه خمسمائة درهم لمن لا يجحف به (رقم-٧٩ - (١٤٢٧)واخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب قلة المهر (رقم-٢١٠٩) والترمذى فى كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى الوليمة (رقم-١٠٩٤) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ الوليمة (رقم-١٩٠٧) كتاب النكاح/باب ما جاء فى الوليمة (رقم-٤٧) واحمد فى المسند: ٢٠٥/٣

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ وايي [۲] چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ د عبدالرحمن بن عوف ﷺ (په بدن يا په كپړه) (د زعفران) زيړه نښه وليده، [۳] پوښتنه يي ورنه وكړه چې دا څه دي؟ عبدالرحمن ﷺ اوويل چې ما د يو نواة (د پنځو درهمو برابر وزن) سرو زرو په عوض كښې د يوې ښځې سره نكاح كړې ده، [۴] حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) ورته وفرمايل چې الله تعالى ﷻ دې تاته مباركه كړي، وليمه وكړه (يعني طعام پخولو سره په خلقو يې وخوره)، كه څه هم هغه يوه پسه وي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ①وَزْنَ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ: نواة د كهجورې هډوكي ته وائي. يعنى د كهجورې د هډوكى د مقدار برابر سره زر. چه هغه وخت د دې قيمت پنځه درهم وو

**تسهيلات:**

**قوله: مَا هَذَا؟:**

**د نبى كريم صلي الله عليه وسلم د پوښتنې كولو وجه:** -دا سوال ئې ځكه اوكړو چه نبى كريم صحابه ته خلوق يعنى دَ زعفرانوعطر لګولونه منع كړې وو عبدالرحمن بن عوف ﷺ عذر پيش كړو چه دَ بى بى نه لګيدلې دې "اولم" كوم خلق چه وليمه ته واجب وائى دَهغوى دليل دادې "ولوبشاة" يعنى لونى څيزاوښ وغيره نه ليكن چيلئى خوذبح كړه بعضې علماؤ داپه تكثيرباندې حمل كړې دې چه وليمه كوئى اګركه چيلئى ولې نه وى دا مفهوم بعيد دې تقليل زيات واضح دې

بعضې دَ نواة نه مراد پنځه درهم اخستى دى چه دا هم بعيده ده بلكه دَ نواة نه مراد دكهجورې دَ ګيتى (هډوكى) برابر سره زر دى

**[۲۲۱۱] په ازواج مطهراتوكښې دتولو څخه لويه وليمه**

> ۳۲۰۰-[۲] (۱) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: «مَا أَوْلَمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى أَحَدٍ مِنْ نِسَائِهِ [۲] مَا أَوْلَمَ عَلَى زَيْنَبَ أَوْلَمَ بِشَاةٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د خپلې يوې بي بي دومره لويه وليمه نه وه كړې. [۲] څومره لويه وليمه چې يې د بي بي زينب ﷺ په نكاح كښې كړې وه. حضور ﷺ د هغې په نكاح كښې د يوه پسه وليمه كړې وه. (بخاري مسلم)

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب الوليمة ولو بشاة (رقم-۵۱۶۸) ومسلم في كتاب النكاح/ باب زواج زينب بنت جحش. ونزول الحجاب. وإثبات وليمة العرس (رقم ۹۰ - (۱۴۲۸) واخرجه ابو داود في السنن كتاب الأطعمة/باب في استحباب الوليمة عند النكاح (رقم ۳۷۴۳) وابن ماجه في كتاب النكاح/ الوليمة (رقم-۱۹۰۸) واحمد في المسند: ۲۲۷/۳

**تسهيلات: قوله: أَوْلَمَ بِشَاةٍ:**

**د حضور پاک ﷺ وليمه:** - يعنې دَ نورو ازواج مطهرات دَ دعوت وليمه په اعتبار سره چيلئى لوئى څيز وو څکه چه دَحضرت زينب رضي الله عنها نه علاوه دَچا په دعوت وليمه کښې چيلئى نه ده ذبح شوې دَدې مطلب دانه دې چه چيلئى دَ ټولو نه لوئى دعوت وو لوئى دعوت خو په اوښ وغيره سره کيدلو لکه چه دَحضرت على رضي الله عنه دَ واده دپاره ئې دوه اوښې ساتلې وې اوحضرت حمزه رضي الله عنه وژلې وې کومه چه مشهوره قصه ده لهذا دَدې نه مخکښې روايت کښې "ولوبشاة" دَتقليل دَپاره دې دَتکثير دَپاره نه دې

**[۳۲۱۳] دَ زينب بنت جحش دَ وليمه**

۳۲۱۳—[۳] (۱) ١ وَعَنْهُ قَالَ: «أَوْلَمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ بَنَى بِزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ ٢ فَأَشْبَعَ النَّاسَ خُبْزًا وَلَحْمًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت انس رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ د بي بي زينب بنت جحش رضي الله عنها سره د شپ زفاف (د واده شپه) تيرولو نه وروسته وليمه وکړه. ٢ او هغه (په هغه وليمه کښې) خلق په غوښو او په روټۍ سره ماړه کړل. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① بَنَى بِزَيْنَبَ: د زينب رضي الله عنها شپ زفاف. د رخصتئ شپه.

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَشْبَعَ النَّاسَ خُبْزًا وَلَحْمًا:**

**دحديث د بعضې جملوو ضاحت:** - ① فَأَشْبَعَ النَّاسَ: کوم خلق چې په وليمه کښې حاضر وو هغوئ باندې ئې ښهٔ په مړهٔ خيټهٔ خوراك اوکړو

② خُبْزًا وَلَحْمًا: روټۍ او غوښې سره يا په دې کښې دا هم احتمال دې چې د غوښې په خوروا کښې ثريد (يعنې روټۍ وره کړې يا ماته کړې وی) او هغه خوړلې شو

**[۳۲۱۴] د بنځې آزادي دَ هغې مهر مقرر کول**

۳۲۱۴—[۴] (۲) ١ وَعَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «أَعْتَقَ صَفِيَّةَ ٢ وَتَزَوَّجَهَا وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا ٣ وَأَوْلَمَ عَلَيْهَا بِحَيْسٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب قوله: إلا تدخلوا بيوت النبی إلا أن يؤذن لكم إلى طعام غير ناظرين....... (رقم-۴۷۹۴)

۲) اخرجه البخاری فی کتاب النكاح/باب الوليمة ولو بشاة (رقم-۵۱۶۹) ومسلم فی کتاب النكاح/ باب فضيلة إعتاقه أمته. ثم يتزوجها (رقم-۸۴ - (۱۳۶۵) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النكاح/باب فی الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها (رقم-۲۰۵۴) والترمذی فی کتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی الرجل يعتق الأمة ثم يتزوجها (رقم-۱۱۱۵) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: التزويج على العتق (رقم-۳۳۴۲) وابن ماجه فی کتاب النكاح/ الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها (رقم-۱۹۵۸) واحمد فی المسند: ۹۹/۳

**ترجمه:** او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ مخکې بي بي صفيه ﷺ آزاده کړه. بيا يې د هغې سره نکاح وکړه. حضور ﷺ د هغې آزادي د هغې مهر وګرځولو او د هغې په نکاح کښې يې د حيس وليمه وکړه. (بخاري)

**حل اللغات** ① حَيس د کهجورو پنيراو غوړو حلوا.

**تسهيلات**

**قوله** أَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَتَزَوَّجَهَا

**د جنګ خيبر په موقع بانده د حضرت صفيه رضي الله عنها خوب ليدل:** حضرت صفيه ﷺ د خيبر د يهودو د سردار حُيي بن اخطب لوروه د جنګ خيبر په موقع باندې هغې خوب وليدلو چه د يثرب نه يوه سپوږمئ راغله او د هغې په غيږ کښې راګوزاره شوه هغې د خوب خپل خوند ته اووئيل هغه دا يوڅپيړه په مخ باندې اووهله چه ته د يثرب يعنی د مدينې بادشاه محمد ﷺ سره د واده خواهش لرې هغه پخپله فرمائي چه په دغه څپيړه باندې تردغه وخته پورې زما سترګه مخ شين وو چه زه نورو بنځوسره د حضرت محمد ﷺ په قيد کښې راغلم مابنام نبی کريم ماله راغلو او ماسره نې خبرې اترې اوکړې د دغه خبرو اترو خلاصه دا وه

**حضرت صفيه رضي الله عنها ته نبی کريم صلي الله عليه وسلم اختيار ورکول:** حضرت صفيه ﷺ ته نبی کريم اوفرمائيل که ته په خپل دين باندې قائمه پاتې کيدل غواړې نو په تا باندې هيڅ جبر نشته او که چرې ته الله تعالی او د هغه رسول ﷺ اختيار وې نو دا به ستا دپاره بهتروی حضرت صفيه ﷺ اوفرمائيل زه الله تعالی او د هغه رسول او اسلام خپلوم نبی کريم هغه آزاده کړه او بيائې هغې سره نکاح اوکړه صحابه کرامو ته معلومه نه وه چه صفيه په وينځو کښې ده يا ام المؤمنين جوړه شوې ده بعضې صحابه کرامو اوفرمائيل چه که پرده ئې اوکړه نو نکاح به ئې شوې وی او ام المؤمنين به جوړه شوې وی او که چرې پرده ئې اونه کړه نو وينځه به وی چنانچه د سورلئ په وخت چه زما پرده اوکړې شوه نو صحابه کرامو ته اندازه اوشوه چه ام المؤمنين جوړه شوې ده

**قوله** وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا

**عتق مهرجوړيدو کښې مذاهب:**

په دې حديث کښې دالفظ موجود دې چه "جعل عتقها صداقها" نبی کريم د حضرت صفيه ﷺ آزادی د هغې مهر اوګرځولو نو

① امام احمد بن حنبل ﷺ اسحاق بن راهويه ﷺ اوزاعی ﷺ او قاضی ابو يوسف ﷺ فرمائي چه عتق مهرجوړولې شی دا جائزدی

④ حضرت امام مالك رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيز عتق مهر گرخول صحيح نه دی

**داول فريق دليل:** - زيربحث حديث د دوی مستدل دې چه د حضرت صفيه رضي الله عنها مهر د هغې عتق گرخولې شوې وو

**داول فريق د دليل درې جوابونه:** - په حديث کښې کوم د صداق لفظ راغلې دې داد حضرت انس رضي الله عنه کلام دې او د قرآني آيت په مقابله کښې قابل د استدلال نه دې

② حضرت صفيه رضي الله عنها مهر معاف کړې وو دا هم پيغمبری خصوصيت وو

③ دا خصوصيت پيغمبری وو د نبی کريم د پاره بغير د مهر نه نکاح کول جائز وو نو که چرې عتق مهر جوړ کړې شو نو په وجه د خصوصيت جائز وو د بل چا د پاره جائز نه دې

**د دويم فريق دليل:** - قرآن کريم د دوی مستدل دې الله تعالى فرمائيلی دی ﴿أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ﴾ [سورت نساء ۲۴.] اوچه عتق مال نه دې نو مهر نه دې

**[۳۲۱٤] دبي بي صفيې رضي الله عنها وليمه**

٣٣٠٣ - [٥] (١) [١] وَعَنْهُ قَالَ: «أَقَامَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِينَةِ ثَلَاثَ لَيَالٍ يُبْنَى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ [٢] فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِينَ إِلَى وَلِيمَتِهِ وَمَا كَانَ فِيهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا لَحْمٍ [٣] وَمَا كَانَ لَهَا إِلَّا أَنْ أَمَرَ بِالْأَنْطَاعِ فَبُسِطَتْ فَأَلْقَى عَلَيْهَا التَّمْرَ وَالْأَقِطَ وَالسَّمْنَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې نبی کريم ﷺ د خيبر او د مديني په منځ کښې درې شپې قيام وکړې. او د صفيې رضي الله عنها سره (د نکاح نه وروسته، شب زفاف (د دواده شپه) تيره کړه. [٢] او ما مسلمانان د حضور ﷺ د وليمې دعوت ته را وبلل. په وليمه کښې نه خو غوښه وه نه روټی وه. [٣] بلکې حضور ﷺ د دستر خوان خورولو حکم وکړې. کوم وخت چې دسترخوان هوار کړل شو، نو په هغه خورما (او اقط او غوړي کېښودل شو. (بخاري)

**حل اللغات** ① بِالْأَنْطَاعِ دسترخوان ② وَالْأَقِطَ پنير

**تسهيلات:**

**قوله** التَّمْرَ وَالْأَقِطَ وَالسَّمْنَ:

**په بي بي صفيه باندې د نبی کريم صلي الله عليه وسلم د وليمې دعوت:** - دې نه مخکښې حديث کښې لفظ حيس راغلې وو داد هغې تفسير دې چه د کهجورو پنير او غوړو حريره او د حلوا په شان يو خوراکې ته حيس وئيلی شی دې حديث نه پس راتلونکی حديث کښې د دوو سيرو اوربشو ذکر دې چه د سردار اولين او آخرين وليمه داسې وه په دې سره به د امت

---

١) اخرجه البخاري في كتاب المغازي باب غزوة خيبر (رقم ٤٢١٣) والنسائي في كتاب الجهاد باب البناء في السفر (رقم ٣٣٨٢) واحمد في المسند: ٣/٢٦٤

دَ هغه غريبانانو دَ زړه ساتنه کيږي ځوك چه دَ وليمې دَ دعوت طاقت نه لري نوهغوی ته دَ نبی کريم دا نمونه ملاؤ شوه چه نبی کريم په دوو سيرو اوربشوباندې خپله وليمه اوکړه دې نه مخکښې دَ حضرت زينب رضي الله عنها په وليمه کښې په خلقو باندې دَ چيلئی غوښه په مړه خيټه اوخوړلې شوه کوم سره چه مالدارنوته دَ سنت نمونه ملاوېږی که چرې طاقت وی نو ښه خوراك ورکړه اوکه طاقت دې نه وی نو په قرض اخستوسره خپل خان مه خرابوئی دَ نبی کريم سيرت ته اوګورئی چه په دوو سيرو اوربشوباندې وليمه ورکولې شی

**[۳۲۱۵] دَ حضرت ام سلمه رضي الله عنها وليمه**

۳۲۱۵—[۲] (۱) ۱ وَعَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ قَالَتْ ۲ «أَوْلَمَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى بَعْضِ نِسَائِهِ بِمُدَّيْنِ مِنْ شَعِيرٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي صفيه رضي الله عنها بنت شيبه وايي ۲ چې نبی کريم ﷺ د خپلي بي بي مبارکي (غالبًا د ام سلمه رضي الله عنها) وليمه د دوو سيرو وربشو سره وکړه. (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَى بَعْضِ نِسَائِهِ بِمُدَّيْنِ مِنْ شَعِيرٍ:

**د علي بعض نسائه مصداق:**- امام سيوطی رحمه الله فرمائی چې د بعض نسائه نه مراد شايد ام سلمه رضي الله عنها وي

**دام سلمې اولنې خاوند:**- ام سلمه رضي الله عنها اول د ابن عبدالاسد حضرت ابو سلمه رضي الله عنه په نکاح کښې وه دهغه د وفات نه پس ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چې ما د حضور نبی کريم ﷺ نه دا کلمات آوريدلې وو چې کوم کس دمصيبت به وخت کښې دا کلمات اووائی «اللَّهُمَّ أْجُرْنِي فِي مُصِيبَتِي، وَأَخْلِفْ لِي خَيْرًا مِنْهَا، إِلَّا أَخْلَفَ اللَّهُ لَهُ خَيْرًا مِنْهَا» حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چې ما به دا دعا وئيله او په زړه کښې به مې سوچ کولو چې د ابو سلمه رضي الله عنه دمرګ نه پس به ماته د هغه نه څوك بهتر ملاويږی بهر حال ما به په زړه کښې دا دعا وئيله

**دنبی عليه السلام ام سلمې ته د نکاح پيغام ليږل:**- بيا نبی کريم ﷺ ماته د حاطب بن ابی بلتعه په ذريعه د نکاح پيغام رااوليږلو خينې رواياتو کښې دی چې حضرت ابو بکرصديق رضي الله عنه ورته د نکاح پيغام ليږلو وو خو هغې انکار کړې وو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه هم دې ته دنکاح پيغام ليږلو وو بيا روستو چې کله حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته د نبی کريم ﷺ د خطبې باره کښې علم اوشو چې هغوئ ﷺ خواهش مند دی نو هغه خپل نفس ته دير زيات غصه شو او خپل نفس ئې ملامته کړو

**د ام سلمه درې خصلتونه:**- ام سلمه رضي الله عنها به فرمائيل چې کله حضرت نبی کريم ﷺ ما ته

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح /باب من أولم بأقل من شاة (رقم-۵۱۷۲) واحمد فی المسند: ۱۱۳/۶

پیغام راولیږلو نو ما اووئیل چې مرحبا برسول لیکن ما کښې درې خصلتونه دی

① زه یوه غیرمنده ښځه یم

② زه په مصیبتونو کښې راګیره ښځه یم

③ زما څوك ولی نشته دې چې زما نکاح اوکړی

**نبی علیه السلام ام سلمې ته د درې واړه خبرو جواب:**- نبی کریم ﷺ تشریف راوړو او ماته ئې اوفرمائیل چې تا د کوم غیرت ذکر اوکړو هغه څه د الله ﷻ نه دعا کوم چې هغه ستا نه ختم کړی او تا چې په مصیبتونو کښې د راګیریدو ذکر اوکړو نو دهغې بدله کښې به الله ﷻ ستا دپاره کافی شی او ستا څوك ولی نشته دې نو ستا په رشته دارو کښې ما بد نه ګڼړی بیا دې نه پس ام سلمه رضي الله عنها دخپل ځوئې نه تپوس اوکړو نو هغه اووئیل چې «فإن الله سيكفيهم» یعنی ستا دپاره الله ﷻ کافی دې بیا زما ځوې زما واده نبی کریم ﷺ سره اوکړو ددې حدیث نه معلومه شوه چې ځوئې د خپلې مور واده کولې شی او د احنافو هم دا مسلك دې خو د امام شافعي رحمه الله په دې کښې اختلاف دې

**[۲۲۱٦] د ولیمې دعوت قبلول پکار دی**

[۴] (۱) ۳۲۱۶ — ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② «إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْوَلِيمَةِ فَلْيَأْتِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ③ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: فَلْيُجِبْ عُرْسًا كَانَ أَوْ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې په تاسو کښې څوک د واده د طعام د پاره وبلل شي، نو هغه ته ورتلل پکار دی. (بخاري مسلم) ③ او د مسلم په یو روایت کښې دي چې دعوت قبلول پکار دی. که هغه د ولیمې دعوت وي یا د دې قسم یو بل دعوت وي

**حل اللغات:**- ① عُرْسًا: واده. خوشحالی

**تسهیلات:**

**قوله:** إِلَى الْوَلِيمَةِ فَلْيَأْتِهَا:

**نوټ:**- دې حدیث سره متعلق تفصیل د دې باب په اول کښې تیرشوی دی

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب حق إجابة الولیمة والدعوة. ومن أولم سبعة أيام ونحوه ولم یوقت النبی صلی الله علیه وسلم یوما ولا یومین (رقم-۵۱۷۳) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب الأمر بإجابة الداعی إلی دعوة (رقم-۱۰۰ - ۱۴۲۹) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأطعمة/باب ما جاء فی إجابة الدعوة (رقم-۳۷۳۶) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ إجابة الداعی (رقم-۱۹۱۴) ومالک فی الموطا کتاب النکاح/باب ما جاء فی الولیمة (رقم-۴۹) واحمد فی المسند: ۲۲/۳

## [۲۲۱۷] د دعوت د اجابت حکم

۳۲۱۶—[۸] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ [۳] فَلْيُجِبْ فَإِنْ شَاءَ طَعِمَ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کښې څوک د واده يا د دې قسم په تقريب (پروګرام) کښې د طعام د پاره وبلل شي. [۳] نو هغه ته پکار دی. چې هغه دعوت قبول کړي يعنی دعوت ته دي ولاړ شي، بيا (هلته په ورتلو سره د هغه په مرضي موقوف ده چې) که طعام وخوري يا ونه خوري. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله** إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ فَلْيُجِبْ:

**د عذر په وجه د دعوت نه قبلولو جواز:** - ابن الملك ﷫ فرمائي چې دا امر د وجوب د هغه ځا د پاره دي چا ته چې څه عذر نه وی او که عذر لاحق شوې وی لکه د دعوت ځني لرې دې چې هلته تګ کښې تکليف او مشقت دې نو بيا ددې دعوت نه قبلولو کښې څه باک نشته دې او دا شان مسلم او ابوداؤد کښې روايت دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کله تاسو کښې چا ته دعوت ورکړې شی نو هغه ته پکار دی چې هغه قبول کړی

## [۲۲۱۸] په وليمه کښې يواځې مالداران راغوښتل انتهايي بد دي

۳۲۱۷—[۹] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «شَرُّ الطَّعَامِ طَعَامُ الْوَلِيمَةِ يُدْعَى لَهَا الْأَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ الْفُقَرَاءُ [۳] وَمَنْ تَرَكَ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللهَ وَرَسُوْلَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] خراب طعام د هغه وليمي طعام دي چې په هغه کښې مالداران وبلل شي. او فقرا پريښودل شي. [۳] او کوم سړی چې دعوت (د يو عذر نه کيدو باوجود) قبول نه کړي. نو هغه د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ نافرماني وکړه. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:** **قوله** شَرُّ الطَّعَامِ:

**مذکوره وليمی ته د شر الطعام ويلو وجه:** - وليمې ته نی خراب خوراك د وليمې د وجې نه نه دی ونيلی بلکه په دې وجه دې ته شر الطعام ونيلی شوی دی چه د دنيا والو عادت دې

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب النکاح/ باب الأمر بإجابة الداعی إلی دعوة (رقم-۱۰۵ - (۱٤۳۰) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأطعمة/باب ما جاء فی إجابة الدعوة (رقم ۳۷٤۰)

۲) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب من ترک الدعوة فقد عصی الله ورسوله (رقم-۵۱۷۷) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب الأمر بإجابة الداعی إلی دعوة (رقم-۱۰۷ - (۱٤۳۲) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأطعمة/باب ما جاء فی إجابة الدعوة (رقم-۳۷٤۲) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ إجابة الداعی (رقم-۱۹۱۳) ومالک فی الموطا کتاب النکاح/باب ما جاء فی الوليمة (رقم-۵۰) واحمد فی المسند:۲/۲٤۱

چه په وليمه كښې د خان خودلو، پاره مالدار، منصب دار، رعب دار، او مشهور خلق راغواړي او غريبانان او فقيران پريږدي كه چري داخارجي علت نه وي نو نفس وليمه خود شريعت ماموربه مسنون يا مستحب حكم دي. د دې ترغيب نبي كريم وركړي دې نو دې ته نې شر الطعام څنګه اووئيل معلومه شوه چه د دغه خارجي قيد د وجې نه نې مذمت شوې دې او هغه دا چه غريبانان پريښودې شي اومالداران راغوښتې شي او بيا پرې خوراك كولې شي

**قوله:** فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ:

**د وليمې د دعوت قبلولو حكم:** -دعوت قبلول د ائمه احناف په نيز د راجح قول مطابق مستحب دې اود جمهورو په نيز د مشهور قول مطابق واجب دې رحمة الامة في اختلاف الائمه كښې داسې ليكلي دي ليكن بعضې كتابونو كښې داسې ليكلي دي چه داحديث دهغه خلقو دليل دې چه دعوت قبلولته واجب وائي اود جمهورو په نيزدعوت قبلول مستحب دي دا قول ډير واضحه معلوميږي باقي دعوت كښې كه چرته منكرات او يا څه شرعي عذر وي نوقبلول ضروري نه دي تفصيل تيرشوې دي

**[۳۲۱۹] غير مدعو ته طعام وركول د كوربه پر اجازت موقوف دى**

---[۱۰] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: «كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ يُكْنَى أَبَا شُعَيْبٍ كَانَ لَهُ غُلَامٌ لَحَّامٌ ۲ فَقَالَ: اصْنَعْ لِي طَعَامًا يَكْفِي خَمْسَةً لَعَلِّي أَدْعُو النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَامِسَ خَمْسَةٍ ۳ فَصَنَعَ لَهُ طُعَيِّمًا ثُمَّ أَتَاهُ فَدَعَاهُ

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابومسعود انصاري ﷺ وايي چې يو انصاري صحابي ﷺ چې د هغه كنيت ابو شعيب ﷺ وو، د هغه يو غلام وو، چې غوښه به يې خرڅوله. ۲ يوه ورځ هغه انصاري صحابي (يعني ابوشعيب ﷺ) خپل غلام ته اوويل چې زما د هدايت مطابق دومره طعام تيار كړه، چې د پنځو سړو د پاره كافي وي، څكه چې د رسول الله ﷺ دعوت كوم. او حضور ﷺ به د هغه پنځه كسانو نه يو وي (يعني حضور ﷺ به وي او څلور سړي به ورسره نور وي) ۳ نو هغه غلام د هغه د هدايت مطابق د حضور ﷺ د پاره لږ شان طعام تيار كړ. بيا هغه (ابوشعيب ﷺ)، د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او حضور ﷺ او څلور صحابه وو ﷺ ته يې د هغه طعام د پاره دعوت وركړي (حضور ﷺ چې د هغه د كور طرف ته روان شو، نو)

---

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الأطعمة/باب الرجل يدعى إلى طعام فيقول: وهذا معى (رقم-۵۴۶۱) ومسلم في كتاب الأشربة/باب ما يفعل الضيف إذا تبعه غير من دعاه صاحب الطعام، واستحباب إذن صاحب الطعام للتابع (رقم-۱۳۸ - ۲۰۳۶) والترمذي في كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فيمن يجيء إلى الوليمة من غير دعوة (رقم-۱۰۹۹) واحمد في المسند: ۱۲۱/۴

**حل اللغات** - ① بُكْنَىٰ: كنيت چه د خوى يا پلار په نوم سره وى چې څوک يادولى شى نودې ته كنيت وائى ② لَحَّامٌ: دَ لحم نه دَ مبالغه صيغه ده ، غوښه خرڅونكې يا غوښه تيارونكې ③ طُعَيِّمٌ: محدود طعام،

① فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② يَا أَبَا شُعَيْبٍ إِنَّ رَجُلًا تَبِعَنَا فَإِنْ شِئْتَ أَذِنْتَ لَهُ وَإِنْ شِئْتَ تَرَكْتَهُ قَالَ: ③ لَا بَلْ أَذِنْتُ لَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① يو بل سړي هم د حضور ﷺ سره ملګرى شو ، حضور ﷺ د هغه كور ته په رسيدو سره يې وفرمايل ② چې اې ابوشعيب ! يو بل سړى هم مونږ سره راغلى دى. كه ته غواړې نو ده ته هم د طعام د خوړلو د پاره د راتلو اجازت وركړه، ګينى دې (په دروازه پريږده او په دستر خوان د ناستي اجازت مه وركوه) ③ ابو شعيب اوويل چې (ده ته په دستر خوان د ناستي اجازت نه وركول زه مناسب نه ګڼم بلكې) زه ده ته هم اجازت وركوم . (بخاري مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله** إِنَّ رَجُلًا تَبِعَنَا فَإِنْ شِئْتَ

**د نابللى كس په دعوت كښې د شركت حكم**: - دَ دې غلام دَ آقا كنيت ابوشعيب وو هغه دَ نبى كريم دَ پاره دَ دعوت انتظام اوكړو رسول الله ﷺ سره نور څلور ملګرى هم وو

① يو سړې له بغير دَ بلنې دَ چا دعوت له تلل نه دى پكار دغه شان دَ يو ميلمه دَ پاره هم دا جائز نه دى چه هغه څوك نابللې خان سره بوځى اوخوراك پرې اوكړى اوكه كوربه صراحةً يا دلالةً اجازت وركړې وې نوبيا بوتلل جائز دى.

② علماء كرامو ليكلى دى چه كه چرې كوربه دَميلمه په مخكښې خوراك كيخودو سره دا اوونيل چه زه دا خوراك ستا په قبضه كښې دركوم نو په دې صورت كښې هغه ميلمه په هريوبل سړى باندې دا خوراك كولې شى بلكه اوچتولوسره ئى كورته هم اوړلې شى ليكن كه چرې كوربه دَميلمه دَپاره خوراك صرف مباح كړې وى نوهغه ئى صرف پخپله خوړلې شى

**د كوربه دروازې سره په اجازت غوښتلو اعتراض**: - كله چه نبى كريم ﷺ سره يونابللې سړې دروازې ته هم اورسيدو دكوم خانې نه چه څوك واپس كولې هم نه شى اونبى كريم دَ كوربه اجازت هم اوغوښتلو نودلته څنګه ممكن وو چه كوربه انكاركړې وې كه هغه په زړه كښې خفه ولې نه وى نولكه چه دادَ خوشحالئى اجازت نه وو بلكه يوقسم جبروو اګرچه صورت هم دَ اجازت وو نودا څنګه جائز شو؟

**د اعتراض جواب**: - حضوراكرم ﷺ داسې معاشره تياره كړې وه چه دَهغې دَ هرفرد باطن او ظاهر يوشان پرتيدونكې وو كومه خبره چه به په ژبه وه هم هغه به په زړه كښې وه اوكومه چه به نې په زړه كښې وه هم هغه به نې په ژبه وه كه چرتې دلته دَ دغه صحابى په زړه كښې

لرښان هم دعدم اجازت خبره وه هغه به بنه په جهرسره کوله چه یا رسول الله ﷺ د دغه زیاتی سری گنجائش نشته دی بیا به د هغه سری واپس تلو کښ نه پخپله په هغه څه بوج محسوس کیدو اونه به په نبی کریم باندی گرانه تیریدله لهذا دلته څه خبره نه وه په ژبه سره اظهاراو رضامندی د زړه د رضامندئی دلیل وو بی تکلف اوصفا ستهرا معاشری تشکیل رسول الله ﷺ فرمانیلی وو هلته د زړه اوژبی تناؤ یو وو

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۲۲۰] دبي بي صفيې رضي الله عنها وليمه

۳۲۲۰ — (۱) [۱] عَنْ أَنَسٍ [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَوْلَمَ عَلَى صَفِيَّةَ بِسَوِيقِ التَّمْرِ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] چې نبی کریم ﷺ د ام المؤمنین بي بي صفيې رضي الله عنها وليمه په ستوانو او خورماوو سره کړي وه. (احمد، ترمذي، ابوداود، ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله:** بِسَوِيقِ التَّمْرِ:

**يو تعارض اوپه رواياتو کښې تطبيق:** - د حضرت صفيه رضي الله عنها د وليمې په سلسله کښې چې کوم حديث وړاندې تير شوې دې ، په هغې کښې د هغې دوليمې خوراك حيس ذکر کړې شوی دی او د لته ستو او کهجوري ذکر دی . دې دواړو رواياتو کښې به مطابقت داشان وی چې دحضرت صفيه رضی الله عنها په وليمه کښې دواړه څيزونه وو ، حيس هم وواو ستو او کهجوري هم وو راويانو کښې چې چا څه کتلی دی هغه ئې بيان کړی دی

## [۳۲۲۱] د بول سنګارنه د حضوراکرم ﷺ ځان ساتل

۳۲۲۱ — [۱۲] (۲) [۱] وَعَنْ سَفِينَةَ «أَنَّ رَجُلًا ضَافَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ [۲] فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا [۳] فَقَالَتْ فَاطِمَةُ لَوْ دَعَوْنَا رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَكَلَ مَعَنَا [۴] فَدَعَوْهُ فَجَاءَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى عِضَادَتَيِ الْبَابِ [۵] فَرَأَى الْقِرَامَ قَدْ ضُرِبَ فِي نَاحِيَةِ الْبَيْتِ [۶] فَرَجَعَ قَالَتْ فَاطِمَةُ فَتَبِعْتُهُ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا رَدَّكَ [۷] قَالَ إِنَّهُ لَيْسَ لِي أَوْ لِنَبِيٍّ أَنْ يَدْخُلَ بَيْتًا مُزَوَّقًا.» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه:** [۱] او حضرت سفينه رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه ته يو

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی استحباب الوليمة عند النكاح (رقم-۳۷٤۴) والترمذی فی كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی الوليمة (رقم-۱۰۹۵) وابن ماجه فی كتاب النكاح/ الوليمة (رقم-۱۹۰۹) واحمد فی المسند: ۲/۳/۱۱۰

۲) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الأطعمة /باب إجابة الدعوة إذا حضرها مكروه (رقم-۳۷۵۵) وابن ماجه فی كتاب الأطعمة /باب إذا رأى الضيف منكرا. رجع (رقم-۳۳۶۰)

میلمه راغلی، [۲] نو حضرت علي ﷺ د هغه د پاره طعام تیار کړي، [۳] بي بي فاطمي ﷺ اوویل که مونږ رسول الله ﷺ ته هم دعوت ورکړو او هغه ﷺ زمونږ سره طعام وخوري، نو ډیرښه به وي، [۴] حضور ﷺ ته دعوت ورکړی شو، تشریف یې راوړو، او په مکان کښې د داخلیدو د پاره څنګه چې د دروازي په دولړګیو خپل دواړه لاسونه کیښودل، [۵] نو د حضور ﷺ نظر په هغه منقشه پرده پریوتی چې د کور په کالیووغیره یې اچولي وه، [٦] حضور ﷺ (هغه پرده لیدو سره) واپس لاړل، بي بي فاطمه ﷺ وايي چې زه هم په حضور ﷺ پسې روانه شوم، او عرض مې اوکړو چې یا رسول الله ﷺ ته ولې واپس لاړلې؟ [۷] حضور ﷺ وفرمایل چې ماله یا هیڅ نبي لره د زینت والا په کور کې داخلیدل مناسب نه دي، (احمد ابن ماجه)

**حل اللغات** - ① عِضَادَتَيِ الْبَابِ: د دروازې دواړه بازوګان. چوکاټونه ② الْقِرَامَ: نقشداره پرده ③ مُزَوَّقًا: زیب او زینت والا کور

**تسهیلات:** قوله: الْقِرَامَ:

**د رسول الله دننه تشریف نه اوړلو دوه وجوهات:-**

① د زیب، زینت او ښائست نه دَ خان ساتلودَ وجې نه دننه لاړنه شو

② په دغه کېږي سره دیوال پټ کړې شوې وو کوم چه اسراف وونبی کریم ناخوښه کړو

**[۲۲۲۲] یودعوت ته د نابللي تلونکي مذمت**

—[۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۲] «مَنْ دُعِيَ فَلَمْ يُجِبْ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ [۳] وَمَنْ دَخَلَ مِنْ غَيْرِ دَعْوَةٍ دَخَلَ سَارِقًا وَخَرَجَ مُغِيْرًا» ". رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې د طعام د پاره وغوښتل شي، او هغه دعوت قبول نه کړي، نو هغه د الله تعالی ﷻ او د هغه د رسول ﷺ نافرماني کونکي دی، [۳] او کوم سړی چې نابللي د چا د طعام مجلس لره ورشي، نو هغه د غلو په شان راغي، او د مال لوټ کولو سره ووتلو، (ابوداؤد)

**حل اللغات** ① سَارِقً: غل. ② مُغِيْرًا: شوکمار. لوټ کونکې.

**تسهیلات:**

**قوله** فَلَمْ يُجِبْ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ

**د دعوت په باره کښې معتدل تعلیم:** - حضوراکرم خپل امت ته دَ ښکلی اخلاقو درس ورکړې دې لهذا بغیر دَ دعوت او بغیر بلنې دَ چادَ طعام دعوت ته تلل نی منع کړخولی دی. اوخپل امت نی دَ حرص اولالچ نه بچ کړې دې بل طرف ته دَ شرعی عذر نه بغیر دَ چادَ

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی استحباب الولیمة عند النکاح (رقم ۳۷٤۱)

دعوت نه انکار ممنوع او گرځولو یا خونی ذحرص اوتکبر په مینځ کښې درمیانه لار اوخودله دې دپاره چه ذ انکار په صورت کښې په امت کښې تکبر. لوئی علو اوعدم الفت خراب صفات داخل نه شی اونه په کښې حرص اولالچ راشی په دې وجه نبی کریم اوفرمائیل څوك چه بغیرذ اجازت نه دعوت ته لاړو خوراك نی اوکړو نو دخل سارقا وخرج مغیرا خرابو صفاتو سره متصف شو

**[۳۲۲۳] كه دوه سړي په يو وخت دعوت وكړي نو كوم يو قبلول پكاردي؟**

۳۲۲۳—[۱۴] (۱) [۱] وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲] «إِذَا اجْتَمَعَ الدَّاعِيَانِ فَأَجِبْ أَقْرَبَهُمَا بَابًا [۳] وَإِنْ سَبَقَ أَحَدُهُمَا فَأَجِبِ الَّذِي سَبَقَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] د نبی کریم ﷺ په صحابه وو ﷺ کښې د يو سړي نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كه دوه سړي په يو وخت دعوت وكړي، نو په هغوئ كښې د هغه سړي دعوت قبول كړه، چې د هغه دروازه درته زياته نژدې وي، [۳] او كه په هغوئ كښې يو مخكې دعوت وركړي وي (او دويم د هغه نه وروسته كړی وي) نو په دې صورت كښې د هغه سړي دعوت قبول كړه، كوم چې مخكې دعوت دركړي وي. (احمد أبوداؤد)

**په حديث كې حكم مذكور صورت:-**

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَجِبْ أَقْرَبَهُمَا بَابًا:

**دوؤ دعوتونو د اجتماع په صورت كښې حكم:-** دا هغه صورت دې چه په يووخت په يوشان دوو كسانوچاته دعوت وركړو اوس به دا سړي څه كوی؟ كه ممكن وی نو ذ دواړو دعوت دې اوخوری خواه كه كمه خوری خو رد كوی دې نه يا چه ذ كوم دروازه ډيره نيزدې ده هغه حقداردې ځكه چه مشهور متل دې "الحق للقريب ثم للبعيد" او كه په دواړو كښې چرې يو رومبي دعوت وركړې وی نو ذهغه دعوت قبلول لازم دی

**[۳۲۲٤] دعوت وليمه صرف دوه ورځې دې**

۳۲۲٤—[۱۵] (۲) [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «طَعَامُ أَوَّلِ يَوْمٍ حَقٌّ [۳] وَطَعَامُ يَوْمِ الثَّانِي سُنَّةٌ [٤] وَطَعَامُ الثَّالِثِ سُمْعَةٌ وَمَنْ سَمَّعَ: سَمَّعَ اللهُ بِهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په اولني ورځ (د واده) طعام وركول حق دی. [۳] په دويمه ورځ طعام سنت دی. [٤] او په دريمه ورځ طعام د

---

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأطعمة /باب إجابة الدعوة إذا حضرها مكروه (رقم -۳۷۵۶) واحمد في المسند: ٤۰۸/۵

۲) اخرجه الترمذي في السنن كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في الوليمة (رقم -۱۰۹۷)

خپل خان ښکاره کولو دپاره وي او څوك چې دخان ښودلو خواهشمند وي، الله تعالی ﷻ به دهغه دقیامت په ورځ دټولو مخلوقاتو په مخکې تشهیروکړي چې داریاکار او دروغجن دي. ترمذي.

**حل اللغات** ①سُمْعَةٌ ریاکاری. شهرت

**تسهيلات**

**قوله** أَوَّلَ يَوْمٍ حَقٌّ:

**دولیمې د وجوب دلیل:** - کوم حضرات چه ولیمې ته واجب وائي داحدیث دهغوی دلیل دې. نیکن دَ جمهورو په نیز ولیمه سنت ده

**د دلیل ته جواب:** - کوم حضرات چه دعوت ولیمه ته مسنون وائي دهغوی په نیزدَ دې لفظ ترجمه داسې ده چه دَ اولې ورځ خوراك ورکول ثابت دی. بهرحال دَ دوو ورځو پورې خوراك ورکول جائز دی

**قوله** سُمْعَةٌ:

**دریا او فخر دپاره کول دعوت:** - لیکن که په دریمه ورځ هم که چرته څوك دعوت ورکوی نودا کتول یکردی چه په دې کښې ریاکاری، خان خودل اودَ نمائش جذبه شامل شوې ده اوس دا سړې غواړی چه دې مشهورشی دَ ده تعریف اوشی او هرطرف ته دَ ده دَ سخاوت غږونه اوکړې شی دې دپاره چه هغه دَ فخر اظهاراوکړې شی دَ "سمعة" هم دغه مطلب دې

**قوله** سَمَّعَ اللهُ بِهِ:

**دریاکاری انجام:** - یعنی داسړې ریاکاری کوی دَخان مشهورتیاغواړی چه عزت دار جوړشی الله تعالی به دَ حشرپه میدان کښې دې په خلقوکښې مشهورکړی چه دا سړې دروغژن دې او ریاکاردې په هغې سره به دا سړې دَ معظم جوړیدو په ځائی "محقر" جوړشی

**[۲۲۲۵] د فخر او مقابله کونکو دعوت خوړل منع دی**

٣٢٢٥ - [١٦] (١) ① وَعَنْ عِكْرِمَةَ «عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② نَهَى عَنْ طَعَامِ الْمُتَبَارِيَيْنِ أَنْ يُؤْكَلَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ ③ وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ① او حضرت عکرمه رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دا روایت کوي ② چې نبی کریم ﷺ د هغه دوه سړو د طعام خوړلو نه منع فرمایلې ده. چې په خپلو کښې د فخر مقابله کوي. (ابوداؤد)

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأطعمة /باب إجابة الدعوة إذا حضرها مكروه (رقم - ٣٧٥٤)

[۲] او محي السنه ويلي دي چې صحيح دا دی چې دا حضرت عکرمه ﷺ د نبی کریم ﷺ نه بطريق ارسال نقل کړيدي (يعني په روايت کښې عن ابن عباس ﷺ الفاظ مذکور نه دی بلکې دلته زيات نقل شوي دي)

**حل اللغات** ①الْمُتَبَارِيَيْنِ: په فخر او ريا کښې مقابله کونکی

**تسهيلات:**

**قوله** الْمُتَبَارِيَيْنِ:

**د لفظ مبارات معنی او په حديث کې ئې مطلب:** -دا لفظ د مبارات نه دې په يو کار کښې د يو بل نه د وړاندې کيدو په معنی کښې دې دلته د دې لفظ نه مراد هغه دوه کسان دی چه زيات خوراك پخول او په خلقو باندې خوړلو کښې مقابله کوی او د خلقونه شاباسې وصولول غواړی چه د چا خوراك ډير بنه وو او چا ډيرو خلقو باندې اوخوړله او د چا انتظام ډير بهتر وو د دوارو مقصد خان خودل دی د داسې دعوت خوړل منع کړې شوی دی دې د پاره چه په خلقو کښې د دغه مقابلې حوصله شکنی اوشی د راتلونکی حديث هم دغه مفهوم دې په دې کښې د دغه لفظ مفهوم متعارضان سره واضح کړې شوې دې يعنی د يو بل په ضد کښې دعوتونه پخه وی او په خلقو باندې خوری

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۳۲۲۶] د رياء او فخر د پاره شوی دعوت د قبلولو ممانعت

[۱۷] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «الْمُتَبَارِيَانِ لَا يُجَابَانِ وَلَا يُؤْكَلُ طَعَامُهُمَا». [۳] قَالَ الْإِمَامُ أَحْمَدُ: يَعْنِي الْمُتَعَارِضَيْنِ بِالضِّيَافَةِ فَخْرًا وَرِيَاءً.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د هغه دوه سړو دعوت دی قبول نه کړل شي، نه دي د هغوئ طعام وخوړل شي، چې د اظهار فخر د پاره طعام پخولو، خوړلو، په خپلو کښې مقابله کوي. [۳] امام احمد ﷫ د لفظ متباريان په وضاحت کښې ويلي دي چې د متباريان نه د حضور ﷺ هغه دوه سړي مراد دي، چې د فخر او ريا له مخه او په طريقه د مقابلې يعنی د يو بل په ضد کې دعوت کوي

**حل اللغات** - ①الْمُتَعَارِضَيْنِ: د يو بل په ضد کښې دعوت کونکی

**تسهيلات:**

**نوټ:** -د دې حديث تشريح د حديث نمبر (۳۲۱۶) په تسهيل کښې ذکر شوې ده

[۱] اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۶۰۶۸

## [۲۲۲۷] د فاسق دعوت مه قبلوئ

۳۲۲۷-[۱۸] (۱)۱«وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: ۲نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ إِجَابَةِ طَعَامِ الْفَاسِقِينَ».

**ترجمه:** ۱او حضرت عمران ابن حصين ﷺ وايي۲ چې رسول الله ﷺ د فاسقانو خلقو د دعوت د قبلولو نه منع فرمايلي ده.

**تسهيلات: قوله:** الْفَاسِقِينَ:

**د فاسقانو دعوت نه قبلولو وجه:-** دې نه مراد مطلق فاسق دې كه دَهرقسم په فسق كښې اخته وى دَ فساقو اوفجارو دَ دعوت دَ ممانعت سبب دادې چه دا خلق اكثرظالمان وى نو په چابه ئې ظلم كړې وى اوحرام مال به ئې راجمع كړې وى. بل هغوى له تلل اودَ هغوى دعوت قبلول دَ هغوى دپاره عزت دې دَ كوم چه هغوى دَ فسق په وجه حقدار نه دى. بل كه نن دې دَ فاسق خوراك اوكړو نوصباله به په هغه باندې خپل حلال مال خورې اوهم دغه وجه ده چه نبى كريم دعا غوښتې ده اې الله په ماباندې دَ فاسق احسان مه اچوه دَ كوم چه زه بيا روستو بدله وركوم.

## [۲۲۲۸] دَ نيك مسلمان په دعوت خوړلوكښې شك مه كوئ

۳۲۲۸-[۱۹] (۲)۱وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲«إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمْ عَلَى أَخِيهِ الْمُسْلِمِ ۳فَلْيَأْكُلْ مِنْ طَعَامِهِ وَلَا يَسْأَلْ، وَيَشْرَبْ مِنْ شَرَابِهِ وَلَا يَسْأَلْ» "۴. رَوَى الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ ۵وَقَالَ هَذَا إِنْ صَحَّ ۶فَلِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْمُسْلِمَ لَا يُطْعِمُهُ وَلَا يَسْقِيهِ إِلَّا مَا هُوَ حَلَالٌ عِنْدَهُ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل۲ هر كله چې په تاسو كښې يو سړى يو مسلمان ورور ته ورشي.۳ نو د هغه طعام دي وخوري. او د هغه اوبه دي وڅكي. او دا پوښتنه دي نه كوي. چې هغه طعام او اوبه څنګه دي؟ او د كوم ځاى نه راغلي دي؟۴ دا دري سره حديثونه بيهقي ﷫ په شعب الايمان كښې نقل كړي دي۵ او ويلي دي چې دا (آخري) حديث كه صحيح شي.۶ نو د دې حكم وجه دا ده چې يو مسلمان په دويم مسلمان هغه څيز خوري، څكي، چې د هغه په نزد حلال وي

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمْ عَلَى أَخِيهِ الْمُسْلِمِ:

**د اخيه المسلم مصداق او د حديث مفهوم:-** دَ مسلمان رور نه مراد متقى اوپرهيزګاره مسلمان دې نو وئى فرمائيل چه دَ داسې سړى په خوراك څښاك كښې هسې شك مه كوئى

۱) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۵۸۰۳
۲) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۸۵۰۱

چه داد حلال خوراك دي كه د حرام؟ بلكه څه چه مخې ته راشي بيشك اوبې شبه خورئي خكه چه كله دغه سړي نيك دي نوهغه به نه خپله د حرام مال د خوړلو كوشش كوى اونه به په بل باندې حرام مال خورى او په دې تحقيق تفتيش او خبرواترواولټون سره به هغه ته تكليف رسيږى كوم چه منع دي اوكه چرې د حرامې ګټې شك دې نوبيا سوال كولې شي اوكه چرې اكثره ګټه ئې د حرام ده نوبيا دې خوراك نه خورى اوكه غالب مال د حلال وى نوخورى دي

# [۸] بَابُ القَسْمِ

## په زياتوبيبيانوكښې د نمبرمقررولوبيان

**خلاصة الباب :-**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على خمس مسائل.**

① عمل النبي ﷺ في القسم بين أزواجه الطاهرات : ۱، ۲، ۷، ۹۔

② الهبة والإذن في القسم لواحدة من الزوجات: ۲، ۳، ۹۔

③ طريق القسم بين الزوجة الجديدة والقديمة: ۵، ۶۔

④ المواخذة من الله تعالى في ترك القسم فيما يملك : ۷، ۸، ۔

⑤ الاستهام في القسم لمعية الزوجة في السفر: ۴۔

**دعدل اوانصاف وجوب :-** ① قال الله تعالى ﴿ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ﴾ [سورة نساء:۳.]

② وقال الله تعالى ﴿ وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ﴾ [سورة نساء:۱۲۹.]

**قوله: القسم:**

**د قسم په مفهوم كښې اقوال :-** په قاف فتحه او په سين سكون دې دا قسم يقسم قسماً مصدر دې د تقسيم په معنى كښې دې د مال په تقسيم كښې چه كله په ډيرو شريكوالوكښې مال تقسيم شي اوهريوته خپله حصه ملاؤشي هغه تقسيم په بل قسم دې

① هم د دې نه دلته هم د زياتوبيبيانو په مينځ كښې نمبرمقرركول اود هغوى په مينځ كښې برابرى اوعدل اوانصاف قائم كول قسم دې

② د بعضو بنځوسره د شپې تيرولو نمبرته قسم وئيلې دې مكروومبې مفهوم كوم چه ابن همام رحمه الله بيان كړې دې هغه زيات واضح دې بعضو د دې نه هم زيات وضاحت سره داسې فرمائيلى چه د بنځو په مينځ كښې د شپې تيرولو اوخوراك څښاك اوكپړې اومكان وغيره

کښې د برابرئ نوم قسم دې دا برابری کول واجب دی او په جماع کښې برابری ضروری نه ده ځکه چه د دې تعلق د سړی شوق اوخوښې سره دې دغه شان د زړه په مینه کښې هم برابری ضروری نه ده ځکه چه دا غیراختیاری معامله ده قرآن کریم کښې الله تعالی قسم د عدل په نوم باندې یاد کړې دې لکه چه پورته آیاتونو کښې ذکر دې دغه شان په احادیث مقدسه کښې دې برابرئ ته قسم او عدل په نوم سره یاکړې شوې دې

**په نبی کریم ﷺ باندې د نوبت د حکم حیثیت:-** د بعضې علماؤ خیال دې چه قسم په حضوراکرم ﷺ باندې هم واجب وو مګر صحیح قول دادې چه نبی کریم ﷺ د قسم نه مستثنی وو د قرآن کریم آیت ﴿ تُرْجِىْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِىْٓ اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ ﴾ نه معلومیږی چه نبی کریم ﷺ د قسم پابندنه وولیکن د دې باوجود نبی کریم ﷺ په قسم اوعدل باندې عمل کړې دې قسم صرف د اقامت په موده کښې وی په سفرکښې نه وی دغه شان قسم صرف په شپه تیرولوکښې دې په ورځ کښې نه دې اوکه خاوند د شپې په ډیوټئی باندې وی نو بیا دې د قسم نمبر د ورځې مقررکړی د سفردوران کښې د تطییب قلب د پاره خسنړې اچولوسره یوه بی بی ځان سره بوځی نودا بهترده د نمبر موده کم نه کم یو ورځ او شپه ده دې نه په کم وخت کښې نمبر نه جاری کیږی لهذا په یوه شپه کښې د دوو بیبیانو نمبرمقررکول صحیح نه دی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۲۲۹] د حضور ﷺ د ازواج مطهرات (بیبیانو مبارکو) تعداد**

----[۱] (۱) «عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قُبِضَ عَنْ تِسْعِ نِسْوَةٍ وَكَانَ يَقْسِمُ مِنْهُنَّ لِثَمَانٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایې کوم وخت چې رسول الله ﷺ وفات شو. هغه وخت د حضور ﷺ په نکاح کښې نهه بیبیانې وې. چې هغوئ کښې د اتو بیبیانو مبارکو نمبر مقرر وو. بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① قُبِضَ: وفات شو

**تسهیلات: قوله** قُبِضَ عَنْ تِسْعِ نِسْوَةٍ

**د وفات په وخت کښې د ازواجو مطهراتو ټول تعداد:-** د رسول الله ﷺ یولس بیبیانې وې لیکن د حضرت خدیجه رضی الله عنها اوحضرت زینب خزاعیه رضی الله عنها انتقال مخکښې شوې وو په دې

۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب کثرة النساء (رقم ۵۰۶۷) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب جواز هبتها نوبتها لضرتها (رقم-۵۱ (۱۴۶۵) والنسائی فی کتاب النکاح ذکر أمر رسول الله صلی الله علیه وسلم فی النکاح وأزواجه. وما أباح الله عز وجل لنبیه صلی الله علیه وسلم. وحظره علی خلقه. زیادة فی کرامته. وتنبیها لفضیلته (رقم- کتاب النکاح (رقم-۳۱۹۷)واحمد فی المسند: ۲۳۱/۱

حدیث کښې دَ هغه ازواجو ذکر دې چه دَنبی کریم ﷺ دَ وفات په وخت ژوندنی موجود وې دَ ټولې نهه بیبیانې وې دکومو نومونه چه دادی

① ام المؤمنین عائشه صدیقه رضي الله عنها
② ام المؤمنین زینب رضي الله عنها
③ ام المؤمنین حضرت حفصه رضي الله عنها
④ ام المؤمنین حضرت صفیه رضي الله عنها
⑤ ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضي الله عنها
⑥ ام المؤمنین حضرت سوده رضي الله عنها
⑦ ام المؤمنین حضرت جویریه رضي الله عنها
⑧ ام المؤمنین حضرت ام حبیبه رضي الله عنها
⑨ ام المؤمنین حضرت میمونه رضي الله عنها

**د حضرت سودې خپل نوبت عائشې ته ورکول:** - په دوی کښې صرف دَ اتو نمبر مقرر وو حضرت سوده رضي الله عنها خپل نمبر حضرت عائشه رضي الله عنها ته ورکړې وو نبی کریم اراده کړې وه چه حضرت سوده رضي الله عنها ته طلاق ورکړی نو هغې رضي الله عنها اوفرمائیل چه ماته تاسو طلاق مه راکوئ خکه چه زه امید کوم چه زه به په جنت کښې ستاسو بی بی یم زه خپل نمبر حضرت عائشه رضي الله عنها ته ورکوم

**دَنبی کریم ﷺ په ګنړو بیبیانو د کافرانو اعتراض:** -

کافران دا اعتراض کوی چه دَمسلمانانو نبی محمد عربی ﷺ دومره زیات ودونه ولې کړی دي اودومره زیاتې بیبیانې ئې ولې ساتلې وې؟

**جواب: د نبی کریم ﷺ کثرت ازواج د شهوت پوره کول نه وو:** - اهل اسلام او علماء کرام دَدې جواب هم ورکوی اودکثرت ازواج مصلحت او ضرورت هم ښائی نوحقیقت دادې چه نبی کریم ﷺ دَ عظیم مصلحت اوحکمت لاندې زیاتې نکاح ګانې کړې وې په دې کښې هیڅ دَ نفس خواهش نه وو خکه چه نبی کریم دَ ۲۵ کالو په خوانئی کښې دَ ۴۰ کالو پوخ عمر ښځې حضرت خدیجه رضي الله عنها سره نکاح اوکړه چه دوه خل کونډه شوې وه که چرې نبی کریم دَنفس خواهش مجبور کولو نو نبی کریم به دانکاح چرې هم نه کوله خکه چه په قریشو کښې دَ نبی کریم دَپاره پیغلې جینکئی خوموجود وې بیا چه ترکومې پورې حضرت خدیجه رضي الله عنها موجوده وه دَ ۵۳ کالو پورې نبی کریم بل واده اونه کړو دَحضرت خدیجه رضي الله عنها دَ وفات نه پس دَیوخو حکمتون دَ وجې نه نبی کریم ﷺ په کثرت ازواج باندې عمل کړو په کوم کښې چه دا لاندینی حکمتونه پټ پراته وو

**دَرحمة للعالمین ﷺ دَپاره دَبیبیانو ګنړوالې:** - درسول الله ﷺ ذات مبارک سراسری

رحمت اوبرکت دې، داحکامورسول، دنفسونوپاکیزه کول اوقرآن کریم خلقوته رسول ددوئ ﷺ دتولونه لوئي مقصد دپيغمبرئ وو .دوی ﷺ اسلامی تعلیمات .په وينا اوعمل سره په دُنیاکښې خواره کړل .خلقوته به ئې ښودل اوپخپله ئې هم پرعمل وو .بیاهرکله چې دانسانی ژوندهيڅ يو ه څانګه داسې نۀ وه چې په هغې کښې به درسول الله ﷺ ضرورت نۀ وی .دجمعې دمونځ نه چې واخلې بيبيانو سره دتعليماتودآل اولاددپالنې ،دلويوورومتيازوكولواودپاکئ حاصلولوپه باره کښې د دوئ ﷺ قولی اوفعلی هداياتونه داحاديثوکتابُونه ډک دی .په کورکښې دننه به ئې څه څه کول .بيبيانوسره ئې څنګه تعلقات ساتل ،اوکورته ورتلونکوبيبيانوته ئې دهغوئ دپوښتلومسئلو څه جوابُونه ورکړل .داسې نورې په سوونومسئلې دی چې هم دازواجو مطهراتو په ذريعه امت ته اورسيدلی د تعليم او تبليغ د دينی ضرورت په وجه نبی کريم ﷺ دپاره د بيبيانو کثرت يو ضروری خبره وه . صرف د عائشه صديقه ﷺ نه داحکامو او مسائلو ، اخلاقو او آدابو ، او د نبی کريم ﷺ د سيرت متعلق دوه زره دوه سوه او لس روايات مروی دی چې د احاديثو په کتابونو کښې موجود دی د ام سلمه ﷺ د رواياتو شمير درې سوه يو اويا پورې رسيدلی دې حافظ ابن قيم ﷺ په اعلام الموقعين [ص:۹ ج: ۱] کښې ليکلی دی چې که د ام سلمه فتاوې راجمع کړې شی کومې چې هغوئ د نبی کريم ﷺ د وفات نه پس ورکړی دی نود هغې نه يو ه رساله مرتب کيږی

**دعائشې رضی الله عنها فقاهت:-** د حضرت عائشه صديقه ﷺ چې په فقه او فتاوی کښې کومه مرتبه ده هغه د بيان محتاج نه ده . د هغوئ د شاګردانو تعداد تقريبا دوه سوه دی د نبی کريم ﷺ د وفات نه پس يې تر اته څلويښتو کالو پورې د علم رڼرا خوره کړه د مثال په طور د دوؤ مقدسو بيبيانو مجمل حال ليکلې شوې دې د نورو ازواجو مطهراتو روايات هم مجموعی طور سره کافی تعداد کښې موجود دی او دا خبره ښکاره ده چې ددې تبليغ او تعليم فائده صرف د ازواج مطهراتو نه راؤسيدله.

**ازواج مطهراتو سره دنکاح ترتيب:-** ① هرکله چې ددوئ ﷺ عمرمبارک پنځه ويشت کاله وونوحضرت خديجې ﷺ سره ئې نکاح اوکړواودعمرمبارک ترپنځوسوکالو [يعنی پنځه ويشت کاله] پورې ئې يو اځې هم دغه بی بی پاتې شوه.

② دهغې ﷺ دوفات نه پس ئې حضرت سوده ﷺ اوحضرت عائشه ﷺ سره نکاح اوشو .حضرت سوده ﷺ د دوئ ﷺ کورمبارک ته راغله اوحضرت عائشه ﷺ لاوړه وه .څکه دخپل والدصاحب ﷺ په کورکښې پاتې شوه.

③ بياځوکاله پس [سنه ۲ه] کښې په مدينه منوره کښې حضرت عائشه ﷺ دوالدصاحب ﷺ دکورنه رُخصت کړې شوه اود دوئ ﷺ کورمبارک ته راغله چې عمرمبارک ئې دغه

وخت څلورپنځوسو کالونه رسیدلې وو او دوه بیبیانې ئې په دغه عمر کښې ورسره جمع شوې اود ګنړو بیبیانو معامله دغه ځائې نه شروع شوه.

④ دې نه یو کال پس ئې حضرت حفصه ﷺ سره نکاح اوشو.

⑤ بیا څو میاشتې پس ئې دحضرت زینب بنت خزیمه ﷺ سره نکاح اوشوچه اتلس میاشتې د دوئ ﷺ په نکاح کښې دپاتې کیدونه پس وفات شوه. اودیوبل قول مطابق درې میاشتو پورې د دوئ ﷺ په نکاح کښې پاتې شوې وه.

⑥ بیا په [کال ۴هجرئ] کښې ئې دحضرت أم سلمة ﷺ سره نکاح اوشو.

⑦ بیا [سنة ۵ه] کښې ئې دحضرت زینب بنت جحش ﷺ سره نکاح اوشوچه عمرمبارک ئې دوه کم شپیته کاله شوې وو اوپه دې دومره مشرعمرکښې ورسره څلوربیبیانې جمع شوې ،حالانکه اُمت ته چې څه وخت دڅلوروبیبیانو اجازت ورکړې شوې وو ،دغه وخت خودوی ﷺ هم کم ناکم څلورنکاحُونه په یوځل کولې شو ،خودوی ﷺ داسې اونکړل.

⑧ بیا په [سنه ۶ه] کښې حضرت جویریه ﷺ سره اوشوه.

⑨ بیا په [سنه ۷ه] کښې حضرت أم حبیبه ﷺ سره

⑩ بیاهم په دې کال کښې حضرت صفیه ﷺ اوحضرت میمونه ﷺ سره ئې نکاح اوشو.

خُلاصه داچه دڅلوروپنځوسوکالوترعمره پورې،دوی ﷺ صرف دیوبی بی سره ګُذاره اوکړه بیا پنځه ویشت کاله حضرت خدیجه ﷺ اوڅلورپنځه کاله ئې حضرت سوده ﷺ سره تیرکړل بیاداتوپنځوسوکالوپه عمرکښې ورسره څلوربیبیانې جمع شوې اوپاتې نورې پاکې بیبیانې دوه.درې کالوکښې دننه دننه په حرم نبوت کښې راغلې.

داخبره په خاص ډول دیادولوجوګه ده چې په دې ټولوبیبیانوکښې صرف یوه بی بی [حضرت عائشه ﷺ داسې یوبی بی وه چې په پیغلتوب کښې ئې ورسره نکاح شوې وواوپاتې نورې بیبیانې ټولې ګُنډې وې چې پکښې دځنوبیبیانودوه دوه خاوندان تیرشوی وو .اوداشمیرهم بیا په آخرعمرکښې ورسره جمع شویدې.

**د صحابه کرامو د نبی کریم ﷺ په رشته داری فخر کول:** –صحابه کرام ﷺ [نراو ښځې] ټول په دوی ﷺ فدایان وو .که دوی ﷺ غوښتې نوټولې بیبیانې به ئې پیغلې کړې وې بلکه یو .یو یادوه.دوه میاشتې پس ورته دبیبیانوبدلولوموقعه هم وه خودوی ﷺ داسې اونکړل.

**په خپل ځان پالدې د نکاح پابندی لګول:** –داخبره هم دیادولوجوګه ده چې رسول الله ﷺ په حقه نبی وو اونبی ﷺ دهوااوهوس تابع نهٔ وی،چه څه کوی نوداالله تعالی په حُکم ئې کوی.چه نبی اومنلې شی نوټول اعتراضونه به ختم شی اوکه څوک ئې دسره نبی نهٔ منی

او د االـزام اولگـوی چـې دوئ يـو اخې دشـهوت پرسـتئ لـه کبلـه خپـل خـان دپـاره دبيبيانو گنړوالې روالې گنړلې وونو دغه کس ته به وئيلې شی چې که داسې وې نو خپل خان دپاره به ئې دگنړو بيبيانو په باره کښې دهغې پابندئ اعلان ولې کولو چه ذکرئې د قرآن پاك په آيت [لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنۢ بَعۡدُ] کښې موجود دې پخپل حق کښې ددې پابندئ اعلان ددې خبرې ښکاره دليل دې چې نبی کريم ﷺ څه هم اوکړل هغه يې د خپل رب په اجازت سره اوکړل

**امت ته د اسلامی تعليماتو رسول :-** دگنړو بيبيانو په وجه چې اُمت ته کومې تعليمی اوتبليغی فائدې اورسيدې اوکوم احکام چې اُمت ته اورسيدل دهغې جزئيات په دومره گنړشمير کښې دی چې په حساب کښې ئې راوستل گران دی. داحاديثو کتابونه په دې گواه دی. البته .څنونوروفائدوته مونږ دلته اشاره کوؤ.

**د پرګټې د تربيت تعليم ورکول :-** دحضرت اُم سلمه ﷺ خاوند. ابو سلمه ﷺ چې وفات شونودهغې نه پس ورسره رسول الله ﷺ نکاح کړې وو ،هغه دمړخاوندنه پيدا اولاد سره د دوئ ﷺ کورته راغله.دوی ﷺ ددغې ناڅکه اولادچه په کومه مينه محبت سره پالنه اوکړه او پخپل عمل سره يې اوښودل چې په کومې مينې او محبت سره دناسکه اولاد پرورش کول پکار دی او درسول کريم ﷺ په بيبيانو کښې يوازې دا يوه بی بی وه چې د بچيانو سره راغلې وه. که يوه بی بی داسې نۀ هم وې راغلې نوپه عملی ډول به دناڅکه اولاددپالنې خانه خالی پاتې کيده او اُمت ته به په دې باره کښې څه هدايت په لاس نۀ وې راغلې. ددې خونې حضرت عمربن ابی سلمه ﷺ فرمائيلی دی چې زماپالنه درسول الله ﷺ په غيږه مبارکه کښې کيده. يوخل م هغوئ سره چې روټئ خوره نود کاسې هرځائې ته به م لاس وراوړو. هغوی ﷺ راته اوفرمائيل [سَمِّ اللّٰهَ وَكُلْ بِيَمِيۡنِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيۡكَ] [د الله تعالی په نوم خوراک شروع کوه. په ښی لاس خوراک کوه او خپلې مخې نه ادخپلې خواسه] خوره. [بخاری مسلم په حواله دمشکوة ص ۳۲۳ (۱)]

**دجويريه سره په نکاح کولو کښې يهودو لره مالوڼ کول :-** حضرت جويريه ﷺ په يوجهادکښې بندی جوړه شوې راغلې وه. په ويش کښې دثابت بن قيس ﷺ يادده دتربوراد اکاد زوئ‌اپه برخه اورسيده. دې خپل آقاسره دا سمجهوته او معامله اوکړه چې دومره دومره مال به درکړم ته م آزاده کړه بيادې باره کښې رسول الله ﷺ ته راغله اومالی امداد ئې تراوغوښتو. هغوی ﷺ ورته اوفرمائيل چې ددې نه ډيره غوره خبره درته اونکړم؟ هغه داسې چې ستادا رخه به څۀ مال اداکړم اونکاح به درسره اوکړم، دغې بی بی

---

۱) مشکوة. کتاب الأطعمة. ج ۱. ص ۳۶۳

په خوشحالئ منظوره کړه او دا شان ددې له اړخه په مال ادا کولو سره ئې نکاح کښې راوسته،

**دصحابه کرامو رضی الله عنهم خپل مریان آزادول:** - ددې د قوم په سوونو خلق دصحابه کرامو ﷺ په ملکیت کښې راغلی وو، ولې چې دغه ټول په قید کښې راغلی وو، هرکله چې صحابه کرامو ﷺ ته پته اولګیده چې حضرت جویریه ﷺ درسول الله ﷺ په نکاح کښې راغلې ده، نو دهغوئ ﷺ داحترام له خاطره ئې خپل خپل ټول مریان اووینځې آزادې کړې. سُبحن الله دصحابه کرامو ﷺ دادب څه شان وو. جذبه ئې داوه چې هرکله اخلق دهغوی ﷺ سخرګنئ شوه، نومونږه ئې دوینځو، غلامانو. په توګه څنګه په خپل ملک کښې ساتلې شو؟ او ټول ئې آزاد کړل، حضرت عائشه ﷺ ددې په باره کښې فرمائی فلقد أعتق بتزويجه اياها مائة اهل بيت من بني المصطلق فما اعلم امراة اعظم بركة على قومها منها: (۱)

رسول الله ﷺ سره دنکاح کولو په وجه دبنو مصطلق سل کورنئ آزادې شوې ما هیڅ یوښځه داسې نه ده لیدلې چې خپل قوم دپاره په برکت کښې دجویرې ﷺ نه زیاده ثابته شوې وی. (۲).

**د جویریه سره د نکاح نتیجه:** - غرض داچه ددې نکاح اثر دیو نفسیاتی جنګ په ډول اوشو او د اسلام په مقابله کښې دکُفر لیډر همت اوبائیللو، ددې نکاح په وجه چې کومه سیاسی فائده اسلام او مسلمانانو ته اورسیده دهغې داهمیت اوضرورت نه انکار نشی کیدې او په یقین سره وئیلې شی چې دالله تعالی مُدبر اوحکیم رسول ﷺ به دغه فائده ضرور په خیال کښې ساتلې وی. دایو څو خبرې اولیکلې شوې، ددې نه علاوه د سیرت پوهانو حضراتو ته څه ډیر حکمتُونه دګنړو بیبیانو په باره کښې معلومیدې شی، په دې سلسله کښې د سیدی حکیم الأُمت قدس سره رساله (کثرة الازواج لصاحب المعراج) کتل به هم فائده من وی. داتفصیل مود بیدینو او مستشرقینو د خطاایستونکی خور کړی جال دشلولو دپاره لیکلی دی ولې چې دفریب په دغې دام کښې ډیر هغه تعلیم یافته اوناواقفه مسلمانان هم راګیریږی چې د سیرت نبوی ﷺ او تاریخ اسلام نه بې خبره دی او داسلامیاتو علم، دمستشرقینو دکتابُونو نه ترلاسه کوی، (۳)

---

(۱) مسند احمد رقم الحدیث: ۲۵۱۶۱

(۲) تفسیر الخازن باختصار تحت سورة المائده آی‍ة ۸۰ ج ۲. ص ۳۲۳، والمستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۶۷۷۱

(۳) ماخوذ ازمعارف القرآن سورة نساء جلددویم)

**[۲۲۲۰] يوه بي بي خپل وار خپلې بني ته ورکولی شي؟**

۳۲۳۰ - [۲] (۱) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ «أَنَّ سَوْدَةَ لَمَّا كَبِرَتْ [۲] قَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ جَعَلْتُ يَوْمِي مِنْكَ لِعَائِشَةَ، [۳] فَكَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقْسِمُ لِعَائِشَةَ يَوْمَيْنِ يَوْمَهَا وَيَوْمَ سَوْدَةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې د بي بي سوده رضي الله عنها عمر چې زيات شو ، [۲] نو هغې عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ ما د خپل نمبر ورځ، چې تا ﷺ زما د پاره مقرر کړي وه، بي بي عائشي رضي الله عنها ته ورکړه، [۳] نو د دې نه وروسته به حضور ﷺ دوه ورځې : بي بي عائشي رضي الله عنها سره وو، يوه ورځ خو د هغې په خپل نمبر کښې ، او يوه ورځ د بي بي سوده رضي الله عنها په نمبر کښې ، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① كَبِرَتْ: د باء په ضمې سره باب كرم نه هم رازي، بمعنى مقدار كښې لوئيدل. يا د باء كسرې سره باب علم نه وي نو بيابه ددې معنى عمر كښې زيات. دلته دباء په كسرې سره باب علم نه دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ سَوْدَةَ لَمَّا كَبِرَتْ:

دحضرت سوده رضي الله عنها د پلار نوم زمعه وو او د مور نوم ئې سموس وو. اول ددې واده حضرت سكران رضي الله عنه سره شوې وو. دې دواړو د نبي كريم ﷺ د بعثت په ابتداء كښې اسلام قبول كړې وو او هجرت ئې كړې وو او حبشه ته تلى وو. هركله چې ددې خاوند حضرت سكران رضي الله عنه وفات شو نو حضرت نبي كريم ﷺ د حضرت خديجه رضي الله عنها د وفات نه پس دې سره نكاح اوكړه. حضرت عائشه رضي الله عنها سره د نبي كريم ﷺ نكاح ددې سره د نكاح نه پس شوې وه. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه او يا د حضرت معاويه رضي الله عنه په زمانه كښې دا وفات شوه او په مدينه منوره كښې دفن كړې شوه. فقهاء كرامو ليكلى دى چې كه ديوې كس ښځه خپل نمبر خپلې يو بنې ته وركرى نو داجائز دى. په دې شرط چې په دې كښې د خاوند د طرفه څه لالچ يا جبر نه وى. او كه يوه ښځه خپل نمبر خپلې بنى ته وركړى نو دهغې دپاره دا هم جائز دى چې هغه كله غواړى او خپل پيشكش واپس واخلى

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح /باب المرأة تهب يومها من زوجها لضرتها، وكيف يقسم ذلك (رقم-۵۲۱۲) ومسلم في كتاب الرضاع /باب جواز هبتها نوبتها لضرتها (رقم ۴۷ - (۱۴۶۳) وابن ماجه في كتاب النكاح/ المرأة تهب يومها لصاحبتها (رقم-۱۹۷۲) واحمد في المسند: ۷۶/۶

**[۳۲۲۱] د نبی علیه السلام د عائشې رضی الله عنها سره محبت**

[۳] (۱) وَعَنْهَا «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَسْأَلُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ [۲] أَيْنَ أَنَا غَدًا أَيْنَ أَنَا غَدًا [۳] يُرِيدُ يَوْمَ عَائِشَةَ [۴] فَأَذِنَ لَهُ أَزْوَاجُهُ يَكُونُ حَيْثُ شَاءَ فَكَانَ فِي بَيْتِ عَائِشَةَ حَتَّى مَاتَ عِنْدَهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ په خپلي هغه بيماري کښې چې په هغه کښې وفات شو (روزانه) به يې دا پوښتنه کوله، [۲] چې صبا به زه کوم خاى يم (يعني صبا به د کومي بي بي سره يم) [۳] او د دې پوښتنى کولو نه د حضور ﷺ منشا دا معلوميدله، چې د بي بي عائشي ﷺ نمبر په کومه ورځ دي (د حضور ﷺ د بي بي عائشي ﷺ سره زيات محبت وو، ځکه حضور ﷺ به د هغې د نمبر په شدت سره منتظر وو) [۴] بيبيانو مبارکو (د حضور ﷺ دا قلبي اضطراب محسوس کړي، نو تولو) دا اجازت ورکړي، چې ته ﷺ د چا سره چې غواړې د هغې سره اوسه، بيا حضور ﷺ د بي بي عائشي ﷺ سره مقيم شو، ددې پورې چې د هغې په کورکي وفات هم شو، (بخاري)

**تسهیلات:**

**قوله: فَأَذِنَ لَهُ أَزْوَاجُهُ:** دَ رسول الله ﷺ حضرت عائشه ﷺ سره ډیره مینه وه. په دې وجه دَ بیمارئی په ناقرارئی کښې نبی کریم دَ زړه دَ سکون حاصلولو دَپاره به ئی دَ حضرت عائشه ﷺ دَ نمبر باربار تپوس کولو. دَ نبی کریم هم دغه اراده وه چه ټولې ازواج مطهرات حضرت عائشه ﷺ کره دَ تلو اجازت راکړی. چنانچه ټولو اجازت ورکړو او دَ رسول الله ﷺ انتقال هم حضرت عائشه ﷺ کره اوشو. مګر عجیبه اتفاق دې چه کله دَحضرت عائشه ﷺ نمبر راغلو نو دَ نبی کریم هم هغه وخت دَ حضرت عائشه ﷺ په نمبر کښې انتقال اوشو. حضرت سوده ﷺ خو دَمخکښې نه خپل نمبر حضرت عائشه ﷺ ته ورکړې وو خلاصه دا چه يوه بن بلې بنې ته خپل نمبر هبه کولې شی په دې شرط چه دَ خاوند دَطرف نه څه جبر نه وی او نه دَخاوند څه غلطه اراده او یا څه لالچ وی

**خپل نمبر بن ته هبه کولو کښې يو څو نکات:-**

دلته يوڅو نکتې دی کوم چه علامه طيبي ﷺ بيان کړی دی

① که يوه بن خپل نمبر خپلې بنې ته هبه کړی نو خاوند له دغه قبلول لازمی نه دی بلکه اختيار دې ورته چه قبلوی او که نه قبلوی

② خاوند دَ يومعين بی بی متعلق دَنمبر هبه کول قبول کړل نو اوس به هغه دوچنده وخت

(۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب إذا استأذن الرجل نساءه في أن يمرض في بيت بعضهن فأذن له (رقم-۵۲۱۷) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب في فضل عائشة رضي الله تعالى عنها (رقم-۸۴ - (۲۴۴۳))

هغه بی بی کره تیروی کومې بی بی ته چه دوه نمبرې ملاؤشوی دی مګر دغه ښځې ته دا اختیار نشته چه هغه دغه زیاتی نمبر مسترد کړی

④ خپل نمبر هبه کونکې بی بی خپلې هبې ته چه کله هم غواړی رجوع کولې شی داد هغې مرضی ده

⑤ داهم جائز دی چه ښځه خپل نمبر نیغ په نیغه خپل خاوند ته هبه کړی بیاخاوند په خپله مرضئی سره چه د کومې بی بی د پاره غواړی مقرر کولې شی

⑥ که یو بی بی خپل نمبر ترک کړولیکن د چاد پاره ئی متعین نه کړونواوس به خاوند به تولو بیبیانو کښې مساوات قائم ساتی البته د هبه کونکې ښځې نمبر ختم شو

⑦ د نمبر هبه کولو په عوض څه پیسې وغیره اخستل جائز نه دی [ الکاشف ۶/۳۳۳ ].

[۳۰۳] په سفر کښې د ځان سره د بوتلو د پاره د یوې بی بی انتخاب دې د قرعه په ذریعه وشي

۳۰۳ ــ [۳] (۱) ۱ وَعَنْهَا قَالَتْ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَرَادَ سَفَرًا ۲ أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ ۳ فَأَيَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا مَعَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وایي رسول الله ﷺ چې به د سفر اراده وکړه. ۲ نو د خپلو بیبیانو په منځ کښې به یې قرعه اندازي کوله. ۳ د کومي په نوم چې به قرعه راوختـه. هغه به یې د ځان سره په سفر کښې بوتله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① أَقْرَعَ: قرعه اندازی به ئې اوچوله. ② سَهْمُهَا: قرعه ، پچه راوختله.

**تسهیلات**:

**قوله** أَقْرَعَ:

**په سفر باندې ځان سره د دوؤ بی بی بوتلو دپاره د خنړی د ویستلو په حکم کښې مذاهب**: -

① په سفرباندې بوتللو د پاره په زیاتو بیبیانو کښې خسنړې ویستل اوس هم د امام شافعي رحمه الله په نیز واجب دي

② د امام مالک رحمه الله او امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزپه سفرکښې د یوې بی بی بوتلو کښې د خسنړی ویستلو هډو څه ضرورت نشته بلکه خاوندته اختیار دې کومه یوه چه بوتلل غواړی بغیرد خسنړی بوتلې شی

**د اول فریق دلیل**: - مذکوره حدیث د دوی مستدل دې کوم چه بالکل واضح دې چه نبی کریم به په سفرکښې د بوتلود پاره خسنړې ویستلو

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب إذا استأذن الرجل نساءه في أن يمرض في بيت بعضهن فأذن له (رقم-۵۲۱۷) ومسلم في كتاب التوبة/باب /في حديث الإفك وقبول توبة القاذف (رقم-۵۶ - (۲۷۷۰) وابن ماجه في كتاب النكاح/ القسمة بين النساء (رقم-۱۹۷۰) واحمد في المسند: ۶/۲۶۹

**د اول فريق د دليل جواب:** - دا د نبی کریم ﷺ خسنړې ويستل د تطييب خاطر دپاره وو کوم چه په استحباب باندې محمول دې

**د دويم فريق دليل:** - په سفر کښې د نمبر نظام اوترتيب ختميږي نوچه کله په سفر کښې د يوې ښځې بوتلل واجب نه دی نوخسنړې ويستل به ولې واجب وی؟

**[۲۲۲۳] د نوې ناوې دپاره د نمبر مقررکولو مسئله**

—۲۲۲۳—[۵] (۱) ① وَعَنْ أَبِي قِلَابَةَ، «عَنْ أَنَسٍ قَالَ: ② مِنَ السُّنَّةِ إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الْبِكْرَ عَلَى الثَّيِّبِ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا وَقَسَمَ، ③ وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا ثُمَّ قَسَمَ، ④ قَالَ أَبُو قِلَابَةَ: وَلَوْ شِئْتُ لَقُلْتُ: إِنَّ أَنَسًا رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» -. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او ابو قلابه (تابعي رحمه الله) د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوي چې هغه وفرمايل ② دا مسنون دي چې که يو سړی د ثيبې په موجودګۍ کښې د يوې پيغلې سره نکاح وکړي نو تر اوو شپو دې د هغه سره وي، او بيا دې د نوې او پخوانو ښځو په منځ کښې نمبر مقرر کړی. ③ او که د يوې ثيبې (يعني کنډې او يا مطلقې ښځې) سره نکاح وکړي، نو د هغه سره دې درې شپې اوسي، او بيا دې نمبر مقرر کړي. ④ حضرت ابو قلابه وايي چې که زه وغواړم. نو دا به اووايم چې حضرت انس رضي الله عنه دا حديث د حضور ﷺ نه نقل کړی دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① وَقَسَمَ: نمبرې دې مقرر کړی. تقسيم د شپو دې اوکړی

**تسهيلات:** **قوله:** أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا:

**په نوبت کښې دوه اتفاقي مسئلې:** - ① که چرې د چا د يوې نه زياتې بيبيانې وی نو اتفاق د ټولو په دې به نيز په دوی کښې عدل او انصاف قائم ساتل واجب دی

② دغه شان که خاوند نوې واده اوکړو نو که چرې باکره سره ئې واده کړې وی نو اوه ورځې دې اول هغې سره وی او ثيبه سره دې درې ورځې وی په دې کښې د چا هم اختلاف نشته دې

**د اعزازی شپو ختمیدو نه روسته د بيبيانو د نوبت په تعداد کښې مذاهب:** -

کله چې دا اعزازی زياتی ورځې ختمې شی نوبيا به باقی بيبيانو ته هم دومره ورځې ورکولې کيږی يا دا د دغه نوې ناوې اضافی اعزاز دې

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب إذا تزوج الثيب علی البکر (رقم-۵۲۱٤) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب قدر ما تستحقه البکر. والثيب من إقامة الزوج عندها عقب الزفاف (رقم-٤٤ - (۱٤٦۱) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی المقام عند البکر (رقم-۲۱۲٤) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی القسمة للبکر والثيب (رقم-۱۱۳۹) ومالک فی الموطا کتاب النکاح/باب المقام عند البکر والأيم (رقم-۱۵) واحمد فی المسند: ۱۷۸/۲

① جمهور فرمائي چه په نمبر کښې رومبې کول هم دَ دغه نوې ناوې حق دې اوبيا دا ورځې دَ تقسيم نه جدا ساتل هم هم دَ دغه نوې ناوې حق دې دَ باکره اعزاز تراووه ورځو پورې دې او دَ ثيبه دريو ورځو پورې دې نمبر به دَدې ورځو نه پس شروع کيږي دا دَ موج ورځې دي دَ سوج ورځې نه دي

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه صرف رومبې والې کول دَ دغه نوې ناوې حق دې دَ تاليف او تانيس په غرض سره دا ورځې به اول دې ته ملاويږي بيابه دا ورځې په نمبر کښې شميرلې کيږي خومره انتظار چه نورو کړې دې دا به ئې هم کوني دا دَ هوش کار دې دَ جوش نه

**داول فريق دليل:-** دَ حضرت انس رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې. ځکه چې دا واضح حديث دې او هم دغه دَ شريعت قانون اوضابطه ده.

**داول فريق د دليل جوابونه:-** ① دَ حضرت انس رضي الله عنه روايت مجمل دې دَدې تفصيل دَ حضرت ام سلمه رضي الله عنها په روايت کښې دې لهذا داخپلول پکاردي يا دا چه که په بيبيانو کښې دَ صلح صورت جوړشي او دَ ټولو په خوښه دا اعزازي ورځې هم دغه نوې ناوې ته ملاؤ شي نو دا محل دَ بحث نه دې.

② هلته تفضيل اعزاز اکرام دَ ورځود زياتوالی دَ وجې نه نه وو بلکه دَ بداعت او شروع کولو کښې اعزاز ورکول وو لکه چه بيسې (کميتي/قسط) اچونکي يو کس ته په توګه دَ رعايت دَ قسط نمبر اول ورکوی دَدې مطلب دا نه دې چه هغه دَدې ترتيب نه بهرشو.

**د دويم فريق دليل:-** ① دَ حضرت ابوبکر بن عبدالرحمن رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې په هغې کښې دَ حضرت ام سلمه رضي الله عنها واقعه ده په کوم کښې چه تصريح موجود ده چه دا ورځې به په تقسيم کښې شميرلې کيږي ځکه چه ((سبعت عندك وسبعت عندهن)) والا الفاظ واضح بنائي چه دا ورځې دَ تقسيم نه بهر زياتي ورځې نه وې بلکه صرف دَ ابتداء کولو اعزاز وو

**[۳۲۲٤] دپيغلې اوثيبې سره د نوبت مقدار**

۳۲۲٤-[٦] (١) ① وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ تَزَوَّجَ أُمَّ سَلَمَةَ وَأَصْبَحَتْ عِنْدَهُ ② قَالَ لَهَا: لَيْسَ بِكِ عَلَى أَهْلِكِ هَوَانٌ، إِنْ شِئْتِ سَبَّعْتُ عِنْدَكِ وَسَبَّعْتُ عِنْدَهُنَّ، ③ وَإِنْ شِئْتِ ثَلَّثْتُ عِنْدَكِ وَدُرْتُ، ④ قَالَتْ: ثَلِّثْ» . ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ إِنَّهُ قَالَ: «لِلْبِكْرِ سَبْعٌ وَلِلثَّيِّبِ ثَلَاثٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوبکر بن عبدالرحمن رحمه الله وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم چې کوم وخت د بي بي ام سلمی رضي الله عنها سره نکاح وکړه، ② نو په دويمه ورځ سحر يې هغې ته وفرمايل چې ستا د

١ ) اخرجه مسلم فى كتاب الرضاع/باب قدر ما تستحقه البكر والثيب من إقامة الزوج عندها عقب الزفاف ٤٢ - (١٤٦٠) واخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب فى المقام عند البكر (رقم-٢١٢٢) ومالک فى الموطا كتاب النكاح/باب المقام عند البكر والأيم (رقم-١٤)

خاندان والا وو د پاره ستا د طرف نه په دې کښې هيڅ ذلت نشته. که ته غواړې نو زه به ستا سره اوه شپې يم، او بيا د نورو تولو بيبيانو سره به هم اوه اوه شپې يم. [۳] او که ته غواړې نو ستا سره به درې شپې يم، او بيا د دې نه وروسته به دوره کوم (يعنې د نورو تولو بيبيانو سره به هم درې درې شپې يم) [۴] بې بې ام سلمه ﷺ (د دې اوريدو سره) اوويل چې زما سره درې شپې تيرى کړه، [۵] او په يو روايت کښې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ بې بې ام سلمه ﷺ ته وفرمايل چې د پيغلې سره اوه شپې پاتې کيدل پکار دى او د ثيبه سره درې شپې. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① هَوَانٌ: ذلت، ملامتيا.

**تسهيلات: قوله: لَيْسَ بِكِ عَلَى أَهْلِكِ هَوَانٌ:**

**د اهل په مصداق کښې دوه اقوال:** - ① دَ اهل نه مراد دَ نبى کريم ﷺ ذات بابرکات دې ② يادَ ام سلمه ﷺ قبيله مراد ده

اومفهوم واضح دې يعنى زمونږ په نيزستاسو څه ناقدرى او اعراض او بې رغبتى نشته ليکن شرعى مسئله داده چه دَ ثيبه حق درې ورځې دې که چرې زه تاسره اووه ورځې پاتې شم نواووه ورځې به نورو بيبيانوسره هم اوسيږم دې دَپاره چه عدل اوانصاف قائم شى علماء کرامو ليکلى دى چه نبى کريم ام سلمه ﷺ ته دَ اعزاز اواکرام په توګه دَ باکره درجه ورکړه او دَ اووه ورځو خبره ئې اوفرمائيله دا دَ شروع کلام دَ راتلونکى کلام دَپاره دَ تمهيدپه توګه دې بيا حضور پاك اوفرمائيل که چرې زه درې ورځې تاسره پاتې شم نوبيابه نورو بيبيانوکره ورځم اوس ته اوښايه ستاکوم صورت خوښ دې

**د درې ورځو د انتخاب دوه وجوهات:** - ① ام سلمه ﷺ درې ورځې اختيارکړې دې دَپاره چه دَ شرعى قاعدې مطابق هم وى

② چه ورځې کمې وى نو نبى کريم به زر دوباره حضرت ام سلمه ﷺ له راشى

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۲۳۵] يو سړى د خپلو تولو بيبيانو سره په يو شان محبت کولو مجبور نه دى

۳۲۳۵- [۷] (۱) [۱] «عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقْسِمُ بَيْنَ نِسَائِهِ فَيَعْدِلُ [۲] وَيَقُولُ اللَّهُمَّ هَذَا قَسْمِي فِيمَا أَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِي فِيمَا تَمْلِكُ وَلَا أَمْلِكُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

۱) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب النكاح/باب فى القسم بين النساء (رقم-۲۱۳٤) والترمذى فى كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى التسوية بين الضرائر (رقم-۱۱٤۰) والنسائى فى كتاب عشرة النساء/باب ميل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض (رقم-۳۹٤۲) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ القسمة بين النساء (رقم-۱۹۷۱) واحمد فى المسند: ۱٤٤/٦

**ترجمه**: (۱) ما ته بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ به د خپلو بيبيانو په منځ کښې نمبر مقررولي، او د عدل نه به يې کار آخستلو (يعني د هغوئ سره د شپې تيرولو په سلسله کښې د برابرۍ خيال ساتلې) [۲] او بيا (د دې احتياط باوجود به يې) دا دعا به يې غوښتله، چې اې الله! ﷻ د کوم شي چې زه مالک يم، په هغه کښې ما نمبر مقرر کړې دی، نو د کوم شي چې ته مالک يې، زه يې مالک نه يم (چې هغه د زړه محبت دی) نو په هغه ما ملامت مه کړې، (ترمذي، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات** ①فَيَعْدِلُ: نو د ښځو په مينځ کښې دې برابرې کوي

**تسهيلات**:

**قوله** اللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِي فِيمَا أَمْلِكُ:

**په اختياري څيزونو کښې د مساوات فرضيت**:- ددې دعا مطلب دا دې چې خپلو بيبيانو نه په ورتلو کښې نمبر مقرر کولو او دهغوئ د نان نفقې مالك يم لهذا په دې څيزونو کښې عدل او برابرې زما ذمه دارې ده کومه چې زه پورا کوم او يوې ښځې سره هم بې انصافي يا دهغې حق تلفي نه کوم ، اود مينې او محبت معامله د زړه سره تعلق ساتي نو په دې باندې زما هيڅ اختيار نشته دې څه په دې کښې برابرې نشم کولې که زما يوې بي بي سره زياته مينه ده او بلې بي بي سره مې کمه مينه ده نو دې کښې به زما قصد او اختيار لره داخل نه وی نو په دې باندې زما مواخده اونه کړې شي

**[۲۲۳٦] د خپلو بيبيانو په منځ کښې د عدل او برابرۍ نه کونکي په باره کښې وعيد**

٢٢٣٦-[٨](١) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②«إِذَا كَانَتْ عِنْدَ الرَّجُلِ امْرَأَتَانِ فَلَمْ يَعْدِلْ بَيْنَهُمَا ③جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ سَاقِطٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: ①او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ②د کوم سړي په نکاح کښې چې د يوې نه زياتې، مثلًا دوه بيبياني وي، او هغه د هغوئ دواړو په منځ کښې عدل او برابري نه کوي. ③نو هغه به د قيامت په ورځ (په ميدان حشر کښې) داسې راځي چې د هغه نيم بدن به بيکاره وي. (ترمذي، ابوداؤد)

**حل اللغات** ①وَشِقُّهُ: يو اړخ. نيمه حصه ②سَاقِطٌ: بې کاره. شل

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح /باب في القسم بين النساء (رقم-٢١٣٣) والترمذى فى كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في التسوية بين الضرائر (رقم-١١٤١) والنسائى فى كتاب عشرة النساء/باب ميل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض (رقم-٣٩٤٢) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ القسمة بين النساء (رقم-١٩٦٩) واحمد فى المسند: ٣٤٧/٢

**تسهيلات: قوله** فَلَمْ يَعْدِلْ بَيْنَهُمَا:

**په بيبيانو كښې د بې انصافۍ سزا:** - د كوم كس چې يو نه زياتې بيبيانې وي كه دوه وي كه درې وي اوكه څلور وي ، او هغه په دوئ كښې عدل و برابري نه كوي نو دهٔ ددې بې انصافۍ په وجه ده ته ددې پورتنۍ سزا دهمكي وركړې شوې ده نمبراونوبت كښې برابري په دې طور واجب ده چې دشپې څومره حصه يوې ښځې سره تيره كړى نو دومره حصه بلې ښځې سره هم تيرول پكار دى لكه يوې ښځې ته هم د ماښام نه پس ورځى نو پكار ده چې بلې ته هم د ماښام نه پس ورشي كه هغې ته دماسختن نه پس ورځي نو دا به د انصاف خلاف وي دلته د صحبت په معامله كښې برابري واجب نه ده

**د نوبت په حكم كښې د ثيبه او باكره برابري:** - په دې حكم كښې باكره ، ثيبه ، نوې او زړه ، مسلمانه او كتابيه تولې برابر دى . او د تولو حقوق يو شان دى البته د آزادې ښځې په نسبت د وينځې مكاتبې مدبرې ام ولد دپاره نيم نمبر دې يعنى كه د يو سړى په نكاح كښې يوه آزاده ښځه وى او ده يوې وينځې سره ئې هم نكاح كړې وى نو وينځې وغيره سره يوه شپه ده او د آزادې ښځې سره دوه شپې حرم (وينځې) دپاره نمبر مقررول واجب نه دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۳۲۳۷] د حضور ﷺ په نهو ۹ بيبيانو مباركو كښې د اتو دپاره وار مقررو و

۳۲۳۷-[۹] (۱) ۱ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ: «حَضَرْنَا مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ جَنَازَةَ مَيْمُونَةَ بِسَرِفَ ۲ فَقَالَ: هٰذِهٖ زَوْجَةُ رَسُولِ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ ۳ فَإِذَا رَفَعْتُمْ نَعْشَهَا فَلَا تُزَعْزِعُوهَا وَلَا تُزَلْزِلُوهَا وَارْفُقُوا بِهَا ۴ فَإِنَّهُ كَانَ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ تِسْعُ نِسْوَةٍ كَانَ يَقْسِمُ مِنْهُنَّ لِثَمَانٍ وَلَا يَقْسِمُ لِوَاحِدَةٍ.

**ترجمه:** ۱ حضرت عطا ابن رباح (تابعي رحمه الله) ، وايي چې مونږ د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما سره په مقام سرف كښې د ام المؤمنين بي بي ميمونى رضي الله عنها په جنازه كښې شريك شو ، ۲ نو ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل چې گوري دا د رسول الله ﷺ بي بي مباركه ده، ۳ هر كله چې تاسو د دې جنازه پورته كړى، نو دې ته زيات حركت مه وركوى، بلكې (د تعظيم وتكريم د تولو تقاضو سره) په ډير آرام سره يې پورته كړى ۴ ځكه چې (دا د هغې بيبيانو مباركو نه ده چې د هغوئ د پاره حضور ﷺ نمبر مقرر كړى وو) د حضور ﷺ نهه بيبيانې وې، حضور ﷺ په هغوئ كښې د اتو د پاره نمبر مقرر كړى وو. او د يوې د پاره هيڅ نمبر نه وو.

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب كثرة النساء (رقم-۵۰۶۷) ومسلم في ۵۱ - (۱۴۶۵) والنسائي في وسلم. وحظره على خلقه. زيادة في كراماته. وتنبيها لفضيلته (رقم- كتاب النكاح (رقم-۳۱۹۶) واحمد في المسند: ۳۴۸/۱

قَالَ عَطَاءٌ: الَّتِي كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا يَقْسِمُ لَهَا [۲] بَلَغَنَا أَنَّهَا صَفِيَّةُ [۳] وَكَانَتْ آخِرَهُنَّ مَوْتًا مَاتَتْ بِالْمَدِينَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۴] وَقَالَ رَزِينٌ: قَالَ غَيْرُ عَطَاءٍ هِيَ سَوْدَةُ [۵] وَهُوَ أَصَحُّ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِعَائِشَةَ حِينَ «أَرَادَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - طَلَاقَهَا [۶] فَقَالَتْ لَهُ: أَمْسِكْنِي، قَدْ وَهَبْتُ يَوْمِي لِعَائِشَةَ لَعَلِّي أَنْ أَكُونَ مِنْ نِسَائِكَ فِي الْجَنَّةِ».

**ترجمه:** [۱] حضرت عطا رحمه الله وايي هغه بي بي مبارکه چې د هغې د پاره هيڅ نمبر نه وو. [۲] مونږ ته معلومه شوي ده چې هغه بي بي صفيه رضي الله عنها وه. [۳] او د رسول الله ﷺ په بيبيانو کښې بي بي صفيه رضي الله عنها د ټولو نه وروسته په مدينه کښې وفات شوي ده. (بخاري مسلم)
[۴] او د رزين رحمه الله بيان دی چې د عطا رحمه الله نه علاوه د نورو آئمهٔ حديث نه منقول دی، چې هغه بي بي مبارکه چې د هغه نمبر نه وو مقرر شوی (بي بي صفيه رضي الله عنها نه وه، بلکې بي بي سوده رضي الله عنها وه. [۵] او دا قول زيات صحيح دی، او د بي بي سودی رضي الله عنها (د پاره نمبر نه مقرر کيدو وجه دا وه، چې هغې) د خپل نمبر ورځ بي بي عائشې رضي الله عنها ته ورکړې وه (د هغه تفصيل دا دی چې) کوم وخت چې رسول الله ﷺ بي بي سودی رضي الله عنها ته د طلاق ورکولو اراده وکړه. [۶] نو هغې حضور ﷺ ته عرض اوکړو چې زه د خپل نمبر ورځ بي بي عائشې رضي الله عنها ته ورکوم. ته ما په خپله نکاح کښې وساته، چې په جنت کښې ستا په بيبيانو کښې شامليدو شرف راته حاصل وي.

**حل اللغات** - ① بِسَرِفَ: د مکې او مدينې په لاره کښې مکې ته نزدې د يو ځای نوم دی ② نَعْشَهَا: هغې مړ بدن (لاش). ③ فَلَا تُزَعْزِعُوهَا: زيات حرکت مه ورکوئ ④ وَلَا تُزَلْزِلُوهَا: زيات ئې مه خوزوئ

**تسهيلات:**

**قوله قَالَ عَطَاءٌ:**

**مقام سرف او حضرت ميمونه:** - د حضرت ميمونه رضي الله عنها نکاح په ۶ هجرى کښې مقام سرف کښې شوې وه هم هلته شب زفاف او هم هلته دعوت وليمه او هم هلته وفات او هم هلته دفن او هم په هغه ځاى کښې قبرتر اوسه پورې موجود دې دا ځاى د تنعيم نه د مدينې طرف ته وادى فاطمه سره دې د سرك په غاړه باندې قبرښکارى حضرت ميمونه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما تروړ وه د مور نوم ئې هنده وو د هغې خپل نوم بره وو حضوراکرم ﷺ ميمونه کيخودو

**قوله أَنَّهَا صَفِيَّةُ:**

**د بې نوبته بی بی په تعين کښې اختلاف د رواياتو:** - د کومې بی بی نمبر چه مقرر نه وو هغه حضرت سوده رضي الله عنها وه حضرت صفيه رضي الله عنها نه وه دلته د يوراوى نه غلطى شوې ده چه د

صفيه نوم نې اخستې دې دلته دوه متضاد روايتونه دی مګر راجح اوتحقیقی خبره هم دغه ده چه هغه حضرت سوده رضی الله عنها وه علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دعطا رحمه الله په قول کښې د نمبر معاف کونکې حضرت صفيه وه د بو راوی نه سهو شوې ده يعنی حضرت عطاء رحمه الله خوهم د حضرت سوده رضی الله عنها نوم اخستې وو مګر بوراوی دحضرت سوده رضی الله عنها په ځائی دحضرت صفيه رضی الله عنها ذکراوکړو او هم دغه نې نقل کړو

په دې روايت کښې دويمه غلطی داشوې ده چه په دې کښې ونيلی شوی دی چه د صفيه رضی الله عنها انتقال په آخره کښې شوې دی حالانکه دهغې انتقال ۵۰هجری سره نيزدې شوې دلته د حضرت ميمونه رضی الله عنها ذکر زيات بهتروو خکه چه دهغې انتقال ۶۶هجری کښې شوې وو دباقی بيبيانو زيات تر انتقال هم دغه ۵۰هجری سره خواؤشا شوې خکه چه د حضرت عائشه رضی الله عنها وفات ۵۷هجری کښې مدينه منوره کښې شوې وو وقيل ۵۸هجری کښې شوې د حضرت سوده رضی الله عنها وفات ۵۴هجری کښې شوې د حضرت صفيه رضی الله عنها وفات ۵۰هجری کښې شوې وو وقيل في ۴۱هجری د حضرت ام سلمه رضی الله عنها انتقال ۵۹کښې شوې دحضرت ام حبيبه انتقال ۴۴هجری کښې شو وقيل في ۴۳هجری د حضرت زينب بنت جحش رضی الله عنها انتقال ۲۰هجری يا ۲۱هجری کښې شوې اودحضرت جويريه انتقال ۵۰هجری کښې شوې اوس که چرته دلته دحضرت ميمونه رضی الله عنها نوم وې نوپه دې لحاظ سره خوهغه بهتر وو چه دهغې انتقال د ټولونه آخره کښې شوې وو ليکن بيابه دا اشکال راؤچتيږی چه په مذکوره روايت کښې "ماتت بالمدينة" الفاظ راغلی دی حالانکه د حضرت ميمونه رضی الله عنها انتقال مقام سرف کښې شوې دې هم الله تعالی بهتر پيژند ګلو کولې شی چه په دې روايت کښې دومره ګډوډوالې ولې دې شارحين عاجز او حيران دی څه اوکړی؟

# [۹] بَابُ عِشْرَةِ النِّسَاءِ وَمَا لِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنَ الْحُقُوقِ

**دَ کورنی ژوندا و ښځې او خاوند دَ حقوقو بیان**

**خلاصة الباب:-**

**فیه أربعة وثلاثون حدیثاً مشتملة علی ست مسائل:**

① حقوق الزوجة علی الزوج: ۱، ۳، ۵ ،۲۱، ۲۲، ۲۳.

② حقوق الزوج: ۴، ۹، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰ ،۳۱ ومن ۲۸ إلی ۳۴.

③ حسن العشرة مع الزوجات: ۶، ۷، ۱۴، ۱۵، ۲۲، ۲۵، ۲۶، ۲۷.

④ بیان المغاضبة بین الزوجین: ۸، ۱۱، ۱۲.

⑤ عشرة الضرات فیما بینهن: ۱ ، ۱۲، ۱۳.

⑥ الزجر علی الدخیل في عشرة الزوجین:: ۲۴.

**زنانو سره د حسن سلوک د فرضیت دلائل:-**

① قال الله تعالی ﴿ وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾ [نساء:۱۹.]

② قال الله تعالی ﴿ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِیْ عَلَیْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَیْهِنَّ دَرَجَةٌ وَاللهُ عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ ﴾ [بقره ۲۲۸.]

**قوله:** وَعَاشِرُوْهُنَّ:

**د عشرة وضاحت:-** عاشریعاشرمعاشرة وعشرة. تعلق ساتلو ته یو ځاني او سیدلو ته او ژوند تیرولو ته عشرة واني هم دَدې نه عشیره او عشائر دی چه دَ سړی په خاندان قبیله او رورولني باندې مشتمل وی عشیر خاوند ته هم واني دلته دَ ښځې او خاوند په خپل مینځ کښې دَ ژوند تیرولو اصول او قواعد مراد دی

**قوله:** وَمَا لِكُلِّ وَاحِدَةٍ:

**په ترجمه الباب کې د وما لکل واحدة لفظ ذکر کولو ضرورت:-** دَهرې یوې ښځې خپل حثیت حالت او کیفیت وی چه څوک پیغله وی نو څوک ثیبه ده څوک مالداران څوک غریبان او څوک متوسط څوک خوش اخلاق وی او څوک بد اخلاق وی دَدې تولو اقسامو په رنړاکښې "ومالکل واحدة" لفظ استعمال کړې شوې دې چه دَهر قسم ښځې دَ حقوق بیان دې کنې دَدې لفظ دَ راوړلو ضرورت نه وو دَ مشکوة شریف دَ متن په تولو نسخو کښې "لکل واحد" الفاظ دی دا الفاظ زیات بهتر دی ځکه چه دا لفظ ښځو او سړو تولو قسم افراد ته شامل دې خو تولو شارحین حضراتو دَ واحدة لفظ نقل کړې دې.

# الفَصْلُ الأَوَّلُ

## [۳۳۲۸] د ښځې کږې سخت روی سره لري کيدو نشي

۳۳۲۸-[۱] (۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «اسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا فَإِنَّهُنَّ خُلِقْنَ مِنْ ضِلَعٍ وَإِنَّ أَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ أَعْلَاهُ فَإِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهُ كَسَرْتَهُ، وَإِنْ تَرَكْتَهُ لَمْ يَزَلْ أَعْوَجَ فَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل د ښځو په حق کښې د خير وصيت قبول کړی، ځکه چې هغوی د پوښتی نه پيدا شوي دي، او د ټولونه زيات کوږوالی په هغه پوښتی کښې دی چې پورته ده، که تاسو د پوښتی د سيده کولو کوشش کوی. نو هغه به ماته کړی، او که پوښتی په خپل حال پريږدی. نو هغه هميشه کږه به کږه وي، ځکه د ښځو په حق کښې د خير وصيت کوی. بخاري، مسلم.

**حل لغات** - ① اسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا د زنانو په باره کښې نصيحت قبول کړئ ② ضِلَع پښتی ③ أَعْوَج زيات کوږ ④ تُقِيمُهُ چې ته ئې نيغوې ⑤ كَسَرْتَهُ ماته به ئې کړې

**تسهيلات**:

**قوله**: خلقن من ضلع:

**د ګسې پښتۍ نه د بی بی حوا پيدائش**: - ضلع د ضاد کسره اولام فتحه سره پوښتنی ته وائی دا مفرد دې د دې جمع اضلاع ده اود ټولو نه کګه پوښتنی دلته مراد ده حضرت حواء عليها السلام د حضرت آدم عليه السلام د کچې پوښتنی نه پيدا شوې وه کومه چه د ټولو نه زياته کګه وی لهذا د ښځې په طبيعت اومزاج کښې کوګوالې دې دا د هغې د تخليقی مزاج حصه ده په دې حديث کښې د ښځې عيبونه اونقصانات بيانول مقصد نه دې بلکه د هغې خلقت استعداد او طبيعت بيان کړې شوې دې چه کوم د هغې نفسيات استعداد او حالات دی هم د هغې مطابق په هغې باندې بوج اچونی د هغې د طاقت او طبيعت نه زيات بوج په هغې باندې مه اچونی ګنی د صحيح کولوپه خانی به نوره ورانه شی خلاصه دا چه دښځې بدليدونکی رابدليدونکی حالات اود تَلَوُّنْ مزاجی اود هغې په نفسياتو باندې ښه خان پوهه کولوسره د هغې مطابق د ګذارې د حده پورې هغې سره ژوند تيرونی

**قوله**: فَاسْتَوْصُوا:

**د فاستوصوا جملې دوه مطلبونه**: -

① د ښځوباره کښې زه کوم نصيحت او وصيت کوم د هغوی په حق کښې زما نصيحت او

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب الوصاة بالنساء (رقم-۵۱۸۶) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب الوصية بالنساء (رقم-۶۰ - (۱۴۶۸))

وصيت قبول کړئی سين اوتاء دَ مبالغه دَ پاره کيدي شي

۲ تاسو په خپل مينځ کښي دَ ښځو متعلق دَ ښيګړې او نصيحت خبرې کوئی په دې حديث کښي ښځو سره دَ نرمئی اوښه سلوك کولو تعليم ورکړې شوي دي اودَ هغوی په ګګواخلاقو باندي دَ صبر ،تحمل او برداشت سبق ورکړې شوي دي دې ته طلاق ورکول نی ناخوښه کړی دی اودائی خودلی دی چه دَ ښځي په مکمل توګه باندي دَ صحيح کيدو اميد اوتوقع مه ساتئی

**د حديث مذکور محل او مصداق:** -يادلرئی دا صبراوتحمل دَ کورنی امورو اوتعلق ساتلو کښي په ښکته پوره کيدوکښي دی که چرې ښځه په ښکاره ګناه او معصيت باندې راشي نو په سړو باندې لازم دی چه هغه دې داسي کولو پرينږدی بلکه پابند دې کړی او دَ ګناه آزادی دې نه ورکوی دَ پورته پوښتئی نه هغه وړه پوښتئی مراد ده کومه چه ملا سره وی

**[۳۲۳۹] د ښځې د ګسې پښتئ څخه پيدائش**

۳۲۳۰ -[۲] ( ) ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «إِنَّ الْمَرْأَةَ خُلِقَتْ مِنْ ضِلَعٍ لَنْ تَسْتَقِيمَ لَكَ عَلَى طَرِيقَةٍ، ۳ فَإِنِ اسْتَمْتَعْتَ بِهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا وَبِهَا عِوَجٌ ۴ وَإِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهَا كَسَرْتَهَا، وَكَسْرُهَا طَلَاقُهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره ﷺ راوي دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د ښځو اصل او بنياد يعني د هغوئ مور بي بي حوا عليها السلام ، د حضرت آدم ﷺ ، د پوښتئ نه پيدا شوي ده. خکه هغه به ستا د پاره په يوه لار هيڅ کله سيده نشي، ۳ که فائده ورنه پورته کول غواړې. نو د هغه د کوږوالي په حالت کښي ورنه فائده پورته کړه. ۴ او که ته هغه سيده کول غواړې. نو د هغه نتيجه به د دې نه سوا نور هيڅ نه وي چي، ته به هغه ماته کړې. او د هغې ماتول هغې لره طلاق ورکول دی، (مسلم)

**حل اللغات** - ۱ ضِلَعٍ: پوښتئ. ۲ عِوَجٌ: کوږوالي ۳ كَسَرْتَهَا: ته به ئې ماته کړې

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الْمَرْأَةَ خُلِقَتْ مِنْ ضِلَعٍ لَنْ تَسْتَقِيمَ لَكَ عَلَى طَرِيقَةٍ:

**د ښځې د ګس پښتئ سره د تشبيه وجه:** - بالکل به نيغه نشي . ددې مطلب دادې چي که تاسو غواړئی چي يوه ښځه هميشه هم په يو حالت باندې قائمه پاتې شی نو دا ممکن نه دی ځکه چي ددې په خلقت کښي کوږوالي دې بدې وجه ددې حالت بدليږی رابدليږی

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب النکاح /باب المداراة مع النساء. وقول النبی صلی الله عليه وسلم: «انما المرأة کالضلع» (رقم- ۵۱۸۴) ومسلم فی کتاب الرضاع /باب الوصية بالنساء (رقم ۵۹ - (۱۴۶۸)) والترمذی فی کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی مداراة النساء (رقم ۱۱۸۸) واحمد فی المسند: ۵۳۰/۲

کله د شکر لار پرېږدي او د ناشکرۍ په لاره روانه شي کله د طاعت او فرمانبردارۍ لار بندې روانه وي او یکدم دنافرمانۍ لارې ته راواوړي قناعت یو طرفته کړي او د طمعي او حرص په جال کښې انخښلی غرض دا چې داشان ددې به مزاج او عمل کښې نور تغیرات پیدا کیږي

**[۲۲٤۰] ښځوسره حسن معاشرت اختیارکړلی**

۳۲۴۰—[۳] ( )[۱]وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]«لَا يَفْرَكْ مُؤْمِنٌ مُؤْمِنَةً [۳]إِنْ كَرِهَ مِنْهَا خُلُقًا رَضِيَ مِنْهَا آخَرَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهریره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]هیڅ مسلمان سړی دی د هیڅ مسلماني ښځي سره بغض نه ساتي. [۳]که د هغه په نظر کښې د ښځي یو خصلت او عادت ناخوښه وي، نو یو بل خصلت او عادت به یې خوښ هم وي. مسلم

**حل اللغات** - ①يَفْرَكْ: بغض کوي، نفرت کوي.

**تسهیلات:** **قوله:** لَا يَفْرَكْ:

**لفظ لا یفرک وضاحت او د حدیث مقصد:** - دادَ نهي صیغه ده لیکن په نفي کښې مستعمل ده چه خاوند له مناسب نه دی چه دَ ښځې نه نفرت اوکړي فرك یفرك سمع یسمع نه بغض حسد اونفرت ته وائی خاص کر دَ ښځې خاوند په مینځ کښې چه دَ یوبل دَپاره کوم نفرت اوکرکه وی هغې ته الفرك وائی دَدې حدیث مطلب داشو چه دَ یوسړی ټول حرکات وسکنات اودَهغه ټول اخلاقیات ټول په ټول خراب نه وی که په یوانسان کښې خراب افعال وی نودَهغه ښه اخلاق هم کیدې شی که یونیم خوئی خراب وی نودَدې مطلب دانه دې چه هغه بالکل مسترد کړې شی بلکه دَهغه دَ دې خرابو افعالو اوعاداتو نه علاوه دَهغه ښه خویونه او عادتونه هم په خیال کښې ساتل پکاردی

هغه یومتل دې چه بالکل بې عیب یار لټونکې هم بې یاره پاتې کیږی خلاصه دا چه دَ ښځې ښه اخلاق او خصائل مخې ته ساته او په خرابو خصلتونوباندې صبراوتحمل کوه

**[۲۲٤۱] کوډکوالي هرې یوې ښځې ته په میراث کښې ملاوْ دې**

۳۲۴۱—[۴] (٥)[۱]وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]«لَوْلَا بَنُو إِسْرَائِيلَ لَمْ يَخْنَزِ اللَّحْمُ [۳]وَلَوْلَا حَوَّاءُ لَمْ تَخُنْ أُنْثَى زَوْجَهَا الدَّهْرَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) اخرجه مسلم فی کتاب الرضاع/باب الوصیة بالنساء (رقم-٦١ - (١٤٦٩)) واحمد فی المسند: ٣٢٩/٢

۲) اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبیاء/باب قول الله تعالی: {وواعدنا موسی ثلاثین لیلة وأتممناها بعشر فتم میقات ربه أربعین لیلة} (رقم-٣٣٩٩) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب لولا حواء لم تخن أنثی زوجها الدهر (رقم-٦٣ - (١٤٧٠)) واحمد فی المسند: ٣٠٤/٢

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كه بني اسرائيل نه وايي، نو غوښه به نه خرابيده، ③ او كه بي بي حوا نه وايي نو ښځي به د خپل خاوند سره خيانت نه كولى. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** - ① يَخْنَز: خرابيږي سخاكيږي ② تَخُنْ: خيانت كوي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْلَا بَنُو إِسْرَائِيلَ:

**د بني اسرائيلو د ذخيره اندوزۍ نحوست:** -يعنى بنى اسرائيل په ميدان تيه كښي سركاري اوشاهي ميلمانه وو هغوى ته به سحر مابسام ترنجبين او تازه غوښه ملاويدله مګر د غوښي ذخيره كولو نه منع كړې شوى وو ليكن هغه خلقو د حرص لالچ اوعدم يقين خراب طبعيت په بنيادباندي غوښه د دويم وخت دپاره ذخيره كول شروع كړه دې نه مخكښي به غوښه نه سخاكيدله د هغوى كيخودي شوي غوښه د سزا په توګه باندي سخاكيدله اوتراوسه پوري پوره انسانيت د هغي سزا خوري

**د ښځو د ماهوارۍ (حيض) فلسفه:** -حضرت حوا بي بي حضرت آدم عليه السلام ته د غنم خوړلو بار بار دعوت وركړو حضرت آدم عليه السلام اوفرمائيل الله تعالى منع كړى يو حضرت حواء اوفرمائيل چه الله تعالى د دې خائى او د دې ونې د خوړلو نه منع كړى يو مونږ به د بلې علاقې د ونې نه اوخورو ځكه ﴿وَلَا تَقْرَبَا هَـٰذِهِ الشَّجَرَةَ﴾ [البقره ۳۵.] مشار اليه خاص ونه ده چنانچه حضرت حوا د ونې ښاخ ښكته طرف ته راتيټول غوښتل په كوم سره چه ښاخ مات شو او د هغي نه وينه بهيدله هغه ښاخ خيري اوكړې چه الله تعالى دې ستانه داسې وينه روانه كړى لكه ځنګه چه تا مانه روانه كړه چنانچه ښځوته د ماهوارئى بيمارى ملاؤ شوه په دې خيروسره خو په ښځو د ماهوارئى بيمارى اولګيدله اوبل د هغوى په طبعيت كښي د استقامت په ځائى د كوګوالى بيمارى وركړه شوه

**[۳۲۴۲] بغير د ضرورت نه د ښځو د وهلو ممانعت**

۳۲۴۲-[۵] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «لَا يَجْلِدْ أَحَدُكُمُ امْرَأَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ ② ثُمَّ يُجَامِعُهَا فِي آخِرِ الْيَوْمِ». ③ وَفِي رِوَايَةٍ «يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ فَيَجْلِدُ امْرَأَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ فَلَعَلَّهُ يُضَاجِعُهَا فِي آخِرِ يَوْمِهِ ④ ثُمَّ وَعَظَهُمْ فِي ضَحِكِهِمْ مِنَ الضَّرْطَةِ فَقَالَ: لِمَ يَضْحَكُ أَحَدُكُمْ مِمَّا يَفْعَلُ؟». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب ما يكره من ضرب النساء (رقم-۵۲۰۴) ومسلم في كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب النار يدخلها الجبارون والجنة يدخلها الضعفاء (رقم-۴۹ - (۲۸۵۵) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ومن سورة والشمس وضحاها (رقم-۳۳۴۳) وابن ماجه في كتاب النكاح/ ضرب النساء (رقم-۱۹۸۳) واحمد في المسند: ۴/۱۷

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله ابن زمعه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل هيڅ سړی دې خپله ښځه د غلام په شان (په بد دلي سره) نه وهي، [۲] چې بيا د ورځې په آخره حصه کښې د هغې سره جماع کوي، [۳] په يو روايت کښې داسې دي چې (حضور ﷺ وفرمايل) په تاسو کښې يو سړی وهل کوي، او خپله ښځه د غلام په شان وهي، حالانکه (دا سوچ نه کوي چې) شايد هغه د هغې ورځ په آخري حصه کښې د هغې سره هم بستر شي. [۴] بيا حضور ﷺ د ريح (باد) په خارجيدو خنديدونکو ته نصيحت کولو سره وفرمايل چې په تاسو کښې يو سړی په هغه څيز ولې خاندي چې هغه يې خپله هم کوي. (بخاري مسلم)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عبدالله بن زمعه رضي الله عنه:** نوم ئې عبدالله د پلار نوم ئې زمعه د مور نوم ئې قريبه وو د ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها خور وه. دا د قريشو د رئيسانو د کورنئ نه وه. پلار زمعه ئې په غزوه بدر کښې د مشرکانو د طرف نه اووژلې شو (۴)

عبدالله رضي الله عنه د مکې د فتح سره نيزدې مسلمان شوې وو د ام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها خوريئ کيدو په وجه به حضوراکرم ﷺ له ډير زيات راتلو

**وفات:** - ۳۵هـ کښې په جنګ جمل کښې د يزيدپه دور حکومت کښې د حره په مشهوره واقعه کښې وفات شو.(۵)

**ترجمه** - د مرګ نه څوك خلاصيدې شي نن هغه دې اوصبازمونږ وار دې

**مرويات** - دهغه نه داحاديثو په کتابونوکښې صرف يو روايت دې اوهغه هم متفق عليه دې يعنې بخاري اومسلم شريف دواړوکښې دې. (۶)

**حل اللغات** - ① يَجْلِدُ: وهی سزا ورکوی ② يُضَاجِعُهَا: چې هغې سره جماع کوی، ③ الضَّرْطَةِ: هوا . باد خارجيدل،

**تسهيلات: قوله:** ثُمَّ يُجَامِعُهَا:

**د ښځې وهلو قباحت:** - دا ثم استبعاديه او استعجابيه دې چه د يوعقل مند او هوښيار سړی نه دا ډيره لرې خبره ده اود سخت تعجب مقام دې چه هغه دا وهل تکول رايوخانې کړی دی دوهلو په وخت کښې هغه له خو دومره خيال کول پکاردی چه د ورځې په آخری حصه يعنې د شپې داسې دخپلې ښځې طرف ته څومره اندازه باندې محتاج کيدو ورتيتيږی خپله ښځه په شرعی حدود کښې دننه وهل جائز دی مګر داسې نه چه د غلامانو په شان وهلې تکولې شی دا ډيرزيات ناخوښه انداز دې

(وَاضْرِبُوهُنَّ) انساء ۳۴.] داخو په قرآن کښې دی او "ضرباغيرمبرح" حديث کښې دی ليکن قرآن اوحديث د خاورو په شان د بربريت قطعاً اجازت نه دې ورکړې دحديث نه معلومه شوه چه وهل ادباً جائز دی

**قوله ضحكهم:**

**د خلقو عيبونه پټول:** -دلته دا تعليم ورکړې شوې دې چه کوم عيب په يوسړى کښې پخپله موجود دې د هغه عيب په بل کښې موجود کيدوسره په هغه پورې خندا کانې اوټوقې کولو څه مطلب اومقصد دې؟ که چرې دا د خندا څيز دې نوپخپله د دې ارتکاب ولې کوى؟ يعنى هرسړى له پکار دى چه هغه د نورو عيبونو ته دکتلونه مخکښې دا سوچ اوکړى چه دا عيب پخپله په هغه کښې موجود دې که نه. نوبيا دې لاړشى اود نوروخلقو عيبونه دې لټوى بهرحال د دې حديث نه داسې معلوميږى چه هغه وخت هم په مجلسونوکښې د ننه د خلقو په مخکښې ريح ،هوا،خارج کيدل عيب ګڼړلې شو هم په دې وجه خو صحابه کرامو خندل لهذا محفلونه د دې قسم ناخوښه حرکتونونه محفوظ ساتل تهذيب دې ليکن که د مجبورئى د وجې نه د چانه دا اخراج اوشى نوپه خندا کولوسره هغه ذليل کول جنز نه دى

**[۳۲٤۳] د جينکوګډيانې**

---

۳۲٤۳—[۲] ( ) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «كُنْتُ أَلْعَبُ بِالْبَنَاتِ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] وَكَانَ لِي صَوَاحِبُ يَلْعَبْنَ مَعِي [۳] فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا دَخَلَ يَتَقَمَّعْنَ مِنْهُ [٤] فَيُسَرِّبُهُنَّ إِلَيَّ فَيَلْعَبْنَ مَعِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ فرمايي (زه چې کشنې وم. او زما د واده ابتدايې دور وو. نو) ما به د رسول الله ﷺ په کور کښې (په لوبتکو سره) لوبې کولې. [۲] او زما همزونو لونړو به هم زما سره لوبې کولې [۳] بيا چې رسول الله ﷺ به کور ته تشريف راوړو. نو زما همزولې به (د شرم په وجه) د حضور ﷺ نه پټې شوې. [٤] ليکن حضور ﷺ به هغه ما ته راليږلې. او هغوئ به زما سره لوبې کولې. بخارى مسلم

**حل اللغات** - ① صَوَاحِبُ: ملګرې. همزولې. ② يَتَقَمَّعْنَ: پټې به شوې. ③ فَيُسَرِّبُهُنَّ: نو هغوى به ئې ما ته راليږلې

**تسهيلات: قوله:** فيلعبن بِالْبَنَاتِ:

**د لفظ بنات تحقيق:** -بنات د کپړونه جوړې شوې ګډيانې وى ماشومانې جينکئى دې سره لوبې کوى اوپه خپلو لاسونو باندې جوړوى دې سره مسلمانانو ماشومانو جينکونه په کورنى کارونوکښې امدادملاويږى جينکوله د کور کار زده کول. خوراك پخول اود لين دين نه پوره چل ورښانى لکه چه دا د جينکود مهارت حاصلولود دستکارئى سکول دې په دې وجه شريعت د دې اجازت ورکړې دې

---

۱) اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب الانبساط إلى الناس (رقم-۶۱۳۰) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فى فضل عائشة رضى الله تعالى عنها (رقم-۸۱ - (۲٤٤۰) واحمد فى المسند: ۶/۲۳٤

**د پلاسټکی ګوډیانو حکم:** - په دې باندې د ننن صبا د پلاسټک ګډې ني قیاس کول جائز نه دی ځکه چه دغه خو ناجائز مجسمې دی کوم چه د ناجائز تصویرونو په زمره کښې راځی ددې حدیث نه د رسول الله ﷺ عظیم الشان سینې د وسعت پته لګی او د ښکلې کورنی ماحول هم اندازه کیږی او په دې کښې د ښه وخت تیرولو لونی تعلیم موجود دې

**د حدیث د دوو ټکو وضاحت:** - ① يَنْقَمِعْنَ انقماع د پټیدو او غیبیدو په معنی کښې دې په اصل کښې انقماع په غار کښې د پټیدلو په معنی کښې دې

② فَيُسَرِّبُهُنَّ: سرب تسریب د لیګلو په معنی کښې دې که خان له وی او که د ډلې په صورت کښې وی دلته دواړه معنې صحیح دی نبی کریم به داماشومانې جینکنی ما ته راليګلې

**[۳۲۴٤] مسجد نبوی کښې د جهاد مشق**

—[٤] ( ) ⓵ وَعَنْهَا قَالَتْ: «وَاللهِ لَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُومُ عَلَى بَابِ حُجْرَتِي ⓶ وَالْحَبَشَةُ يَلْعَبُونَ بِالْحِرَابِ فِي الْمَسْجِدِ ⓷ وَرَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْتُرُنِي بِبُرْدَةٍ لَهُ لِأَنْظُرَ إِلَى لَعِبِهِمْ بَيْنَ أُذُنِهِ وَعَاتِقِهِ ⓸ ثُمَّ يَقُومُ مِنْ أَجْلِي حَتَّى أَكُونَ أَنَا الَّتِي أَنْصَرِفُ ⓹ فَاقْدُرُوا قَدْرَ الْجَارِيَةِ الْحَدِيثَةِ السِّنِّ الْحَرِيصَةِ عَلَى اللَّهْوِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ او بی بی عائشه رضی الله عنها وایي چې ما ولیدل او ماته په ښه شان یاد دي. چې رسول الله ﷺ زما د حجري په دروازه ولاړ وو، ⓶ او حبشي خلقو په مسجد کښې په خپلو نیزو لوبه کوله. ⓷ او رسول الله ﷺ په خپل خادر سره زما د پاره پرده کړي وه. چې زه هم د حضور ﷺ د غوږ او اوږي په منځ کښې د هغه حبشیانو لوبه ووینم. ⓸ د دي پوري چې حضور ﷺ د هغه وخته (پرده کړي) ولاړ وو. د څو پورې چې زه خپله د هلته نه لیري نه شوم. ⓹ د دې نه تاسو د هغه وخت اندازه ولګوي، چې په هغه کښې یوه کم عمره جینۍ چې د لوبي تماشي شائقه وي اوډریدلو شي (یعني خیال وکړي چې کم عمره جینۍ د تماشي لیدو څومره شوق کوي. او د زیات نه زیات دریدل هم د هغی د پاره یوه معمولي خبره وي) زه چې هغه وخت څومره ولاړه وم. حضور ﷺ هم زما په وجه پرده کړي ولاړ وو. حصل دا چې حضور ﷺ هلته تر ډیره وخته ولاړ وو. ما ته یي د حبشیانو لوبه ښودله. (بخاري . مسلم)

**حل اللغات** ① يَلْعَبُونَ بِالْحِرَابِ: په تورو یا نیزو سره ئې لوبې کولې. ② بُرْدَةٍ: خادر. ③ الْحَدِيثَةِ السِّنِّ: کم عمره جینۍ. ④ الْحَرِيصَةِ عَلَى اللَّهْوِ: د لوبو شوقینه.

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب النكاح باب نظر المرأة إلى الحبش ونحوهم من غير ريبة (رقم-٥٢٣٦) ومسلم في كتاب صلاة العيدين باب الرخصة في اللعب الذي لا معصية فيه في أيام العيد (رقم) ١٨ (٨٩٢) واخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب باب في النهي عن الغناء (رقم-٤٩٢٣) والنسائي في كتاب صلاة العيدين باب اللعب في المسجد يوم العيد ونظر النساء إلى ذلك (رقم-١٥٩٥) واحمد في المسند: ٦:١٦٦

**تسهيلات:**

**قوله** وَالْحَبَشَةُ يَلْعَبُونَ بِالْحِرَابِ:

**د حبشو په جمات کښې لوبې کول:** - الحراب جاړه توکيه ته وائي يعني حبش خلقو به په جاړو سره کرتب خودلو

**په جمات کښې د لوبو کولو توجيهات:** - ① جنګي مظاهره خوبه يا مسجدسره خواکې رجبه اوکولاؤ خاني کښې وه مسجدني خکه اوونيل چه مسجدسره بالکل متصل خاني وو

② دې تاويل ضرورت نشته داهم مسجدوو اودَ حبشيانودا لوبه څه دَ دنياوي لوبونه نه وو بلکه دادَ جهاد دَتربيت يوه حصه وه اوعبادت وو لهذا په دې باندې نور فضول لوبې قياس کول جائز نه دي

**د عائشې رضی الله عنها د حبشو سرو ته دکتلو توجيهات:** - ① حضرت عائشه ﷺ هغه وخت کښې دومره لويه بالغه ښځه هم نه وه

② د نبي کريم ﷺ په موجودګئي کښې تولو آفاتو بلياتو او فتن ظاهري او باطني نه حفاظت هم وو دَ وحي دَ نازليدلو زمانه وه دَ فرښتو تګ راتګ وو دَ صحابه کرامو په شان دَ فرښتو جماعت موجود وو په دې کښې دَهيڅ قسم فتنې خطره نه وه نوحضرت عائشه ﷺ اوکتل دَدې نه دَ هغه خلقو خبره ثابتيږی چه ښځه اجنبي سړو ته بغيردَ شهوت نه کتلې شي

③ دا واقعه دَ حجاب دَ حکم دَ نزول نه مخکښې ده. په دې باندې نورې بالغه غيرمحفوظ ښځې قياس کول قياس مع الفارق دي

④ دا يوجهادي حربي مظاهره وه نودَ جهاد په وجه دا عبادت وو دَدې طرف ته کتلو کښې ممانعت نشته دي

**[۳۲۴۵] دنبي عليه السلام د عائشې په نفسياتو پوهيدل**

۳۲۴۵-[۸] ( ) ①وَعَنْهَا قَالَتْ: «قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②إِنِّي لَأَعْلَمُ إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى، ③فَقُلْتُ: مِنْ أَيْنَ تَعْرِفُ ذَلِكَ، ④فَقَالَ: إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً فَإِنَّكِ تَقُولِينَ: لَا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ، وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى قُلْتِ: لَا وَرَبِّ إِبْرَاهِيمَ، ⑤قَالَتْ: قُلْتُ: أَجَلْ وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَهْجُرُ إِلَّا اسْمَكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او بي بي عائشه ﷺ وايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ ماته وفرمايل ②کوم وخت چې ته زما نه خوشحاله يې، نو زه پوهيږم. او کله چې ته رپه څه دنياوي معامله کښې

---

۱ ) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب غيرة النساء ووجدهن (رقم-۵۲۲۸) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب في فضل عائشة رضي الله تعالى عنها (رقم-۸۰ - (۲۴۳۹) واحمد في المسند: ۶۱/۶

زما نه ناراضه يې (څنګه چې د ښځې او خاوند په منځ کښې په څه خبره خفګان راځي) نوهم ماته هغه معلوميږي، ۳ما عرض اوکړو چې ته ﷺ دا څنګه پېژنې؟ حضور ﷺ وفرمايل (داسې چه) ته زما نه خوشحاله يې، نو داسې وايې چې د محمد ﷺ په پروردګار قسم، او کله چې ته زما نه خفه يې، نو داسې وايې چې د ابراهيم ﷺ په پروردګار قسم (يعني کله چې ته زما نه د خفه کيدو په حالت کښې قسم خورې، نو زما نوم نه آخلې بلکې د ابراهيم ﷺ پروردګار وايې) ۴بي بي عائشه ﷺ وايي (د دې اوريدو سره)، ما عرض اوکړو چې هو، يا رسول الله ﷺ دا خبره صحيح ده، ليکن زه يواځې ستا نوم پريږدم نه محبت، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ①مَا أَهْجُرُ: زه نه پريږدم،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ مَا أَهْجُرُ إِلَّا اسْمَكَ

**د عائشې رضي الله عنها نبي عليه السلام سره مينه:** - حضرت عائشه صديقه ﷺ به کله کله د غصې نه دنبي کريم ﷺ نامه مبارکه نه اخسته. د حضرت عائشه صديقه ﷺ د نبي کريم ﷺ نامه مبارکه نه اخستل څه د محبت د ناقص کيدو علامت يا دليل نه دې بلکه فرمائي چې زما په زړه کښې چې نبي کريم ﷺ د پاره د محبت او مينې کوم درياب دې په هغې کښې به لږ شان هم کمې نه راتلو

**[۳۲٤٦] د خاوند په خواهش ښځې لره د هم بستر کيدو نه انکار کول نه دي پکار**

—[۹] (۱) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَأَبَتْ فَبَاتَ غَضْبَانَ ③لَعَنَتْهَا الْمَلَائِكَةُ حَتَّى تُصْبِحَ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا قَالَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا مِنْ رَجُلٍ يَدْعُو امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَتَأْبَى عَلَيْهِ ⑤إِلَّا كَانَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ سَاخِطًا عَلَيْهَا حَتَّى يَرْضَى عَنْهَا».

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②که يو سړی چې خپله ښځه د هم بستر کيدو د پاره اوبلي او هغه ښځه انکار وکړي، او بيا خاوند (د هغه انکار په وجه) ټوله شپه په دغه شان حالت کښې وي. ③نو ملائکې په هغه ښځه تر سهاره لعنت ليږي ، (بخاري مسلم) ④او د مسلم په يو روايت کښې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل قسم دې په هغه ذات چې د هغه په لاس کښې (يعني د هغه په قبضه تصرف کښې

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب إذا قال أحدكم: آمين والملائكة في السماء، آمين [ص: ۱۱٤] فوافقت إحداهما الأخرى. غفر له ما تقدم من ذنبه (رقم-۳۲۳۷) ومسلم في كتاب النكاح/ باب تحريم امتناعها من فراش زوجها (رقم-۱۲۲ - (۱٤۳٦)) واخرجه ابو داود في السنن كتاب النكاح/باب في حق الزوج على المرأة (رقم-۲۱٤۱) واحمد في المسند: ۲/٤۳۹

زما ساه ده. کوم سړی چې خپله ښځه خپلې بسترې ته وبلي. او هغه انکار وکړي. (نو) هغه ذات چې په آسمان کښې دې د هغې نه د هغه وخته ناراضه وي. د څو پورې چې د هغې خاوند د هغې نه راضي نشي

**حل اللغات** ①سَاخِطًا ناراضه. خفه.

**تسهيلات:**

**قوله** إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ: يعنې چه څه شرعی عذر نه وی اوبغیرد عذر نه ښځه د کوروالی نه انکارکوی نود دغه ښځې دپاره وعیددې ګنی د عذر په وخت په انکارباندې وعیدنشته دې بل د شپې ذکر د اکثریت په توګه باندې کړې شوې دې ګنی انکارکه هغه د ورځې وی اوکه د شپې تولوته دا وعید شامل دې

**قوله** إِلَّا كَانَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ:

**د الذی فی السماء په مفهوم کښې دوه اقوال :-**

① داجمله د متشابهات نه ده د سلف صالحین په نیزددې ترجمه داسې ده چه هغه رب کوم چه په آسمانونوکښې دې "مايليق بشانه"

② دویمه ترجمه چه د سلف نه پس د امت د آخرین په نیز ده هغه داسې ده چه هغه رب د چاحکم چه په آسمانونوکښې چلیږی او په آسمانونوباندې د هغه قبضه ده د عام نصوص د واضح اشارونه معلومیږی چه الله تعالی په آسمانونوکښې دې

**[۳۲۴۷] د بنې سوزولو دپاره دروغ ونیل حرام دی**

-۳۲۴۷-[۱۰]( ) ①وَعَنْ أَسْمَاءَ «أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ②إِنَّ لِي ضَرَّةً فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ إِنْ تَشَبَّعْتُ مِنْ زَوْجِي غَيْرَ الَّذِي يُعْطِينِي؟③فَقَالَ: "الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ①بي بي اسماء ﷵ وایي چې یوي ښځي عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ ②زما یوه بنه ده. که زه د هغې په مخکي د خپل خاوند د یو داسې څیز اظهار وکړم، چې هغه ماته نه دي راکړي، نو آیا دا ګناه ده؟ (یعني زما خاوند چې څه ماته راکوي که زه د خپلي بني سوزولو د پاره د هغې په مخکي هغه څیز زیات کولو سره بیان کړم. چې ګوره ماته ستا نه زیات حاصلیږي . نو آیا په دي کښې څه بدي شته؟) ③حضور ﷺ ورته وفرمایل چې (هو. دا ډیره بده خبره ده. ځکه چې) د نه ورکړی شوي څیز اظهار کونکي د دوو دروغو کپړو اغوستونکي په شان دي. (بخاري. مسلم)

١ ) اخرجه البخاری فی كتاب النكاح /باب المتشبع بما لم ينل. وما ينهى من افتخار الضرة (رقم-٥٢١٩) (رقم -) ومسلم فی كتاب الأشربة /باب النهى عن التزوير فی اللباس وغيره والتشبع بما لم يعط (رقم-١٢٧ - (٢١٣٠))واخرجه ابو داود فی السنن كتاب الأدب /باب فی المتشبع بما لم يعط (رقم ٤٩٩٧)

**حل اللغات** ①ضَرَّةٌ بنه. ②الْمُتَشَبِّعُ د نه ورکړې شوی څیز په دروغه اظهار کول. ③کَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ: د دوؤ دروغو کپړو اغوستونکی پشان.

**تسهیلات:**

**قوله** کَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ:

**لابس ثوبي زور دوه مطلبونه:**- ① یعنی د پورته نه د ښکته پورې دروغ دی د دروغو بس دا چه عالم نه وی اود علماؤ خاص وضع ئې اختیار کړې وی صوفي زاهد نه وی او وضع قطع اولباس ئې د صوفیانو اغوستې وی

د دوو کپړونه تهبند او څادر مراد دې

② یو سړی د خلقو د امانت کپړې اغوستې دی اوخلقوته ئې ښائی چه دا زما کپړې دی

**[۳۲٤۸] د ایلاء مطلب**

۳۲۴۸-[۱۱] (متفق عليه) ①وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «آلَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ نِسَائِهِ شَهْرًا وَكَانَتِ انْفَكَّتْ رِجْلُهُ ②فَأَقَامَ فِي مَشْرُبَةٍ تِسْعًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً ثُمَّ نَزَلَ ③فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ آلَيْتَ شَهْرًا فَقَالَ: إِنَّ الشَّهْرَ يَكُونُ تِسْعًا وَعِشْرِينَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ یوه میاشت د خپلو بیبیانو نه ایلاء وکړه. او په هغه زمانه کښې د حضور ﷺ په پښه کښې بریښ راغلی وو. ②حضور ﷺ تر یو کم دیرش شپو په بالاخانه کې وو بیا چې حضور ﷺ لاندې تشریف راوړو. ③نو خلقو عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ تا خو د یوې میاشتې ایلاء کړې وه او میاشت د دېرشو ورځو وي بیا ته د یو کم دیرش ورځو نه وروسته ولې راکوز شوې؟ حضور ﷺ وفرمایل چې میاشت د یو کم دیرش ورځو هم وي

**حل اللغات** ①آلَى: ایلاء. ښځو نه د نه ورتلو قسم کول. ②انفَكَّتْ رِجْلُهُ: خپه کښې ئې سریخ. درد راغلي وو. ③مَشْرُبَة: د اوبو خانې. بالاخانه. خلوت خانه، دا بالاخانه مسجد نبوی سره وه

**تسهیلات:**

**قوله** آلَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د ایلاء لغوی معنی:**- دالفظ د ایلاء نه دې او ایلاء قسم نه وائی شاعر وائی

وَيَوْمًا عَلَى ظَهْرِ الْكَثِيبِ تَعَذَّرَتْ عَلَيَّ وَآلَتْ حِلْفَةً لَمْ تَحَلَّلِ

یعنی یوه ورځ محبوبې د شګو په غونډئ باندې د انکار وخت کښې یو داسې قسم

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح /باب قول الله تعالى: [الرجال قوامون على النساء بما فضل الله بعضهم على بعض] [النساء: ۳۴] الى قوله - [إن الله كان عليا كبيرا] [النساء: ۳۴] (رقم-۵۲۰۱) واحمد في المسند:

اوخوړلو چه دَهغې نه دَحلال کيدو څه صورت نه وو

**ايلاء اصطلاحي تعريف:** - ايلاء هغه قسم ته وائي چه خاوند خپلې ښځې ته اووني چه زه به څلور مياشتې تاله نيزدې درنه شم په دې باندې عمل کولوسره به په ښځه باندې يو طلاق بائن هغه وخت پريوځي کله چه دَ څلورومياشتو موده تيره شي اوکه قسم ئې مات کړو اوپوره ئې نه کړو بلکه په څلورو مياشتو کښې دننه ئې خپلې بي بي سره کوروالې اوکړو نواوس به دَقسم کفاره اداکوي اول به غلام آزادوي که چرې غلام نه وي نو بيا به دوه مياشتې روژې نيسي ګني بيا په شپېتو مسکينانو باندې خوراك کوي تفصيل به روستو راځي په دې حديث کښې شرعي او اصطلاحي ايلاء مراد نه ده بلکه دلته صرف ايلاء لغوي مراد ده ځکه چه دلته دَ يوې مياشتې پورې نبي کريم انتظار اوکړو او په ايلاء شرعي کښې څلورمياشتو پورې انتظار کولې کيږي.

**[۳۲۴۹] دَنبي کريم دَ ايلاء قصه**

[۱۳] (۱) ⓵وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ «دَخَلَ أَبُو بَكْرٍ يَسْتَأْذِنُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⓶فَوَجَدَ النَّاسَ جُلُوسًا بِبَابِهِ لَمْ يُؤْذَنْ لِأَحَدٍ مِنْهُمْ، ⓷قَالَ: فَأُذِنَ لِأَبِي بَكْرٍ فَدَخَلَ، ⓸ثُمَّ أَقْبَلَ عُمَرُ فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ فَوَجَدَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَالِسًا حَوْلَهُ نِسَاؤُهُ وَاجِمًا سَاكِتًا،

**ترجمه:** ⓵او حضرت جابر ﷺ وايي چې په کومه زمانه کښې چې حضور ﷺ خپلو بيبيانو ته د يوې مياشتې جدايي اختيار ولو سره په مکان کښې ګوښه نشين وو. نو يوه ورځ حضرت ابوبکر صديق ﷺ راغلي، او د حضور ﷺ په خدمت کښې د حاضريدو د اجازت طلبګار شو. ⓶هغه وليدل، چې د حضور ﷺ په دروازه خلق جمع دي. او چا ته د حاضريدو اجازت نه ورکول کيږي. ⓷نوحضرت ابوبکر ﷺ ته اجازت ورکړی شو. او په خدمت کښې حاضر شو. ⓸بيا چې حضرت عمر فاروق ﷺ راغلي. هغه ته هم اجازت ورکړی شو. نو حضور ﷺ يي په داسې حالت کښې ومونديي، چې شاوخوا ورنه بيبياني مبارکې ناستې وې. او حضور ﷺ هغه وخت غمجن او خاموش وو.

⓵قَالَ: فَقُلْتُ: لَأَقُولَنَّ شَيْئًا أُضْحِكُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⓶فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَوْ رَأَيْتَ بِنْتَ خَارِجَةَ سَأَلَتْنِي النَّفَقَةَ فَقُمْتُ إِلَيْهَا فَوَجَأْتُ عُنُقَهَا، ⓷فَضَحِكَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَالَ: هُنَّ حَوْلِي كَمَا تَرَى يَسْأَلْنَنِي النَّفَقَةَ ⓸فَقَامَ أَبُو بَكْرٍ عَنْ عَائِشَةَ يَجَأُ عُنُقَهَا، وَقَامَ عُمَرُ إِلَى حَفْصَةَ يَجَأُ عُنُقَهَا ⓹كِلَاهُمَا يَقُولُ تَسْأَلِينَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا لَيْسَ عِنْدَهُ ⓺ثُمَّ اعْتَزَلَهُنَّ شَهْرًا أَوْ تِسْعًا وَعِشْرِينَ

**ترجمه:** ⓵جابر ﷺ وايي چې حضرت عمر ﷺ دا صورت حال ليدو سره په خپل زړه کښې، اوويل چې دا وخت مالره څه خبره کول پکار دي، چې حضور ﷺ وخاندي ⓶نو

۱) اخرجه مسلم في كتاب الطلاق/باب بيان أن تخيير امراته لا يكون طلاقا إلا بالنية (رقم-۲۹ - (۱۴۷۸)

هغه اوويل چې يا رسول الله ﷺ كه ته ووينې، چې د خارجه لور (يعني زما ښځه، زما نه د روټۍ او د اوبو خرچ (د معمول نه) زيات طلب كوي. نو زه به ودريږم سره د هغې څټ تاوولو سره خوږ كړم [۲] حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره په داسې آنداز سره وكړه، چې حضور ﷺ وخندل، بيا حضور ﷺ وفرمايل دا (زما) ښځې چې ته يې زما نه شاوخوا ناستې وينې، زما نه د معمول نه زيات خرچ غواړي [۳] د دې آوريدو سره، حضرت ابوبكر رضي الله عنه اودريدلو او دخپلې لور بي بي عائشه رضي الله عنها په څټ يې وهل شروع كړل. دغه شان حضرت عمر رضي الله عنه هم دخپلې لور حفصه رضي الله عنها په څټ يې وهل شروع كړل. [۵] او بيا دې دواړو (ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه) اوويل چې آيا تاسو د حضور ﷺ نه د هغه شي مطالبه كوئ؟ چې د حضور ﷺ سره موجود نه دي؟ (يعني دا خبره څومره نامناسبه ده چې تاسو ته د حضور ﷺ مالي حالت معلوم دى، او د دې باوجود د حضور ﷺ نه د دومره خرچ مطالبه كوئ، چې د هغه په پوره كولو قادر نه دى، آيا ستاسو مطالبه د حضور ﷺ په پريشاني كښې د مبتلا كولو برابر نه ده) هغوئ اوويل چې (بيشكه مونږ مطالبه كړې وه. چې په هغه مونږ پشيمانه يو، او د آئنده د پاره عهد كوو، چې قسم په خداى اوس به مونږ هيڅ كله هم د حضور ﷺ نه د هغه شي مطالبه نه كوو. كوم چې د حضور ﷺ سره نه وي، ليكن حضور ﷺ د جدايي قسم خوړلى وو (ځكه د هغه قسم د پوره كولو د پاره) [۶] حضور ﷺ تر يوې مياشتې پورې ياتر ۲۹ ورځو پورې د خپلو بيبيانو نه جدا وو (په دې ځاى كښې د حديث راوي ته شك شوي دي، چې حضرت جابر رضي الله عنه دلته يوه مياشت ويلې وه، يا ۲۹ ورځې يې ويلې وې)

[۱] ثُمَّ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ﴾ [الأحزاب: ۲۸] حَتَّى بَلَغَ ﴿لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ [الأحزاب: ۲۹] [۲] قَالَ فَبَدَأَ بِعَائِشَةَ قَالَ: يَا عَائِشَةُ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أَعْرِضَ أَمْرًا أُحِبُّ أَنْ لَا تَعْجَلِي فِيهِ حَتَّى تَسْتَشِيرِي أَبَوَيْكِ، [۳] قَالَتْ: وَمَا هُوَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ فَتَلَا عَلَيْهَا الْآيَةَ

**ترجمه:** [۱] بيا دا آيت قُل لِأَزْوَاجِكَ نه تر لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا پورې نازل شو . [۲] حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې (د دې آيت د نازليدو نه وروسته) حضور ﷺ د ټولونه مخكې د بي بي عائشې رضي الله عنها سره رابطه قائمه كړه (ځكه چې په ټولو بيبيانو مباركو كښې هغه د ټولونه زياته عقلمنده او محبوبه وه) حضور ﷺ هغې ته وفرمايل چې اې عائشې! رضي الله عنها زه ستا په مخكې يوه خبره پيش كوم، ليكن ورسره زه دا هم غواړم چې ته (د دې په جواب راكولو كښې) تلوارې مه كوه، بلكې په دې باره كښې د خپلې مور او پلار نه مشوره واخله. [۳] بي بي عائشې رضي الله عنها عرض اوكړو چې يا رسول الله! ﷺ وې فرمايه، هغه څه خبره ده، حضور ﷺ د هغه په مخكې مندرجه پورته آيت وويلو،

۱ قَالَتْ: أَفِيكَ يَا رَسُولَ اللهِ أَسْتَشِيرُ أَبَوَيَّ بَلْ أَخْتَارُ اللهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الآخِرَةَ ۲ وَأَسْأَلُكَ أَنْ لَا تُخْبِرَ امْرَأَةً مِنْ نِسَائِكَ بِالَّذِي قُلْتُ، ۳ قَالَ: لَا تَسْأَلُنِي امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ إِلَّا أَخْبَرْتُهَا ۴ إِنَّ اللهَ لَمْ يَبْعَثْنِي مُعَنِّتًا وَلَا مُتَعَنِّتًا وَلَكِنْ بَعَثَنِي مُعَلِّمًا مُيَسِّرًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشې ﷺ دا آيت اوريدو سره اوويل چې يا رسول الله ﷺ آيا زه ستا ﷺ په معامله کښې د مور او پلار نه مشوره واخلم؟ (يعني مشوره خو په هغه معاملې کښې کول کيږي، چې په هغه کښې څه تردد وي، هر کله چې په دې معامله کښې ماته هيڅ تردد نشته) بلکې ما د الله ﷻ او د الله ﷻ د رسول ﷺ او د آخرت کور اختيار کړی دی (يعني زه په دې معامله کښې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د مرضي او خواهش په مخکې سر تسليم خم کوم، چې په دې کې زما د پاره د دنيا هم خير دی او د آخرت هم کاميابي ده) ۲ ليکن زه تا ﷺ ته دا درخواست کوم چې دا وخت ما تا ته څه عرض کړی دی، د دې ذکر خپلې يوې بي بي ته مه کوه، ۳ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې (دا خبره ممکنه نه ده، ځکه) که يوه بي بي زما نه دا پوښتنه وکړي، نو زه به د هغه په مخکې ضرور ذکر کوم. ۴ الله تعالى ﷻ زه د دې د پاره نه يم راليږلی، چې چا ته تکليف ورسوم، يا خامخا څوک په تکليف کښې مبتلا کړم، بلکې الله تعالى ﷻ زه د دې د پاره راليږلی يم، چې زه د خدای مخلوق ته د دين احکام وښايم، او آساني (يعني په ديني او دنياوي راحت سره) يې هم کنار کړم، (مسلم)

**حل اللغات:** - ① وَاجِمًا سَاكِتًا: "وجم يجم وجما" دَ غم دَوجې نه خاموش پاتې کيدو ته وجموانی نوساکتًا لکه چه دَدې تفسير اوتوضيح ده. بعضو وئيلی دی وجم غم ته وائی او دَ سکوت ذکردلته جدا کيفيت بيانولودَپاره دې ② تَوَجَّأْتُ عُنُقَهَا: نو په څټ مې اووهله. ③ تَسْتَشِيرِي: ته مشوره نې ورکړه ④ مُعَنِّتًا: تکليف رسونکې. ⑤ مُتَعَنِّتًا: په تکليف کښې اخته کونکې. يعنی نه نې څوک په مشقت کښې واچولو اونه دَ چامشقت غوښتونکې وو

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ اعْتَزَلَهُنَّ شَهْرًا أَوْ تِسْعًا وَعِشْرِينَ:

**دحديث د بعضې الفاظو وضاحت:** - ① الى ايلاء: دلته هم ايلاء لغوی مراد ده يعنی يوې مياشت پورې کورته دَ نه راتلو قسم نې خوړلې وو

② بِنْتَ خَارِجَةَ: حضرت عمر ﷺ دَ خپلې بی بی طرف ته اشاره کړې ده

③ سَأَلَتْنِي النَّفَقَةَ: يعنی زمانه زما دَطاقت نه زياته نفقه اوغوارې نوزه به دَهغې په مرنی غلې شم

④ ثم نزلت: يعنی آيت دَ تخيير نازل شونبی کريم دَتخيير آيت تلاوت کړو تولو بيبيانو الله تعالى اودَهغه رسول اختيار کړو.

**قوله: يَجَأُ عُنُقَهَا:**

**د نبي كريم ﷺ د خوشحالولو دپاره د عمر رضي الله عنه طريقه:** - وجاء دَ چقنړې كولو اوپه مرئی دَ غلي كيدلو دَپاره راځي. دلته مراد په سټ وهل دي. روستو هم په دغه حديث كښې هم دالفظ دغه شان دَ وهلو په معنى كښې راغلي دي حضرت عمر ﷺ دَ خپلې بي بي دَ اصل نفقې نه انكارنه كولو بلكه كه هغه دَخپل حيثيت نه دَزياتې نفقې مطالبه اوكړي نوبيا به داسې عمل وي.

**د لفظ اختيار حكم:** -دَ جمهور علماؤ په نيز خپلې بي بي ته "اختاري" وئيلوسره هيڅ طلاق نه واقع كيږي اوكه بي بي طلاق اختياركړو نوطلاق بائن به واقع شي

**قوله: لَا تَعْجَلِي فِيهِ:**

**د نبي كريم ﷺ عائشې سره مينه:** - يعنى اې عائشه زه يوه خبره تاته خودل غواړم ته په جواب كښې تادي مه كوه بلكه خپل موريلارسره مشوره اوكړه نوجواب راكړه. دَنبي كريم ﷺ خيال داوو چه عائشه كم عمره او ناتجربه كاره ده چرته طلاق اختيارنه كړي په كوم سره چه به دَهغې والدين ته هم تكليف وي اونور امهات المؤمنين هم دَحضرت عائشه صديقه ﷺ په شان طلاق اختيارولې شي نوټولې به پريشان شي

**قوله: أَنْ لَا تُخْبِرَ امْرَأَةً:**

**د عائشې د قول مطلب:** - حضرت عائشه ﷺ غوښتل چه زما دَجواب علم نورو بيبيانوته نه وي نوممكن ده چه په هغوى كښې څوك طلاق اختيار كړي اوهغه طلاقه شي دا يوبشري جذبه ده كومه چه بشرسره لګيدلې ده خاص كر دَ ښځو كښې به كومه يوه ښځه نه غواړي بيا چه دَ نبي كريم په ملاقات كښې څومره واسطې كمې وي هم هغه هومره به دَعلم مستفيد ته دَ استفاده زياته موقع ملاويږي نودا غرض څه فاسد غرض نه دې

**د نبي كريم ﷺ د ايلاء سبب:** -دَ خيبردَ فتح كيدونه پس دنيازياته شوه اودَ صحابه كرامو اموال زيات شو. بعضې بيبيانو دَنبي كريم نه دَ خرچې زياتولودرخواست اوكړو په دې باندې نبي كريم ناراض شو اوبيبيانوله دَ ټلونه ئې دَ يوې مياشتې دَپاره قسم اوخوړلو اوجمات سره بالاخانه كښې ئې يوه مياشت تيره كړه اوبيا آيت دَتخييرنازل شو. دا واقعه اودَخرج خبره دَ شروع خبره وه روستوچه كله مكمل وسعت پيدا شو نونبي كريم به دَخپلو بيبيانودَپاره دَ يوكال خرچ وراندې ادا كولو. دحضرت عائشه ﷺ نه علاوه به ټولو خپله خرچه اخستله.

**[۲۲۵۰] دعائشې رضی الله عنها غیرت**

۳۲۵۰-[۱۳] ( ) [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أَغَارُ عَلَى اللَّاتِي وَهَبْنَ أَنْفُسَهُنَّ لِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَقُلْتُ: أَتَهَبُ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا فَلَمَّا أَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى ﴿تُرْجِي مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ﴾ [الأحزاب: ۵۱] [۳] قُلْتُ مَا أَرَى رَبَّكَ إِلَّا يُسَارِعُ فِي هَوَاكَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَحَدِيثُ جَابِرٍ «اتَّقُوا اللهَ فِي النِّسَاءِ» ذُكِرَ فِي قِصَّةِ حَجَّةِ الْوَدَاعِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي چې ماته به په هغه ښځو غيرت راتلو يعنی خوندبه يي نه راكاوی‌چې خپل نفس به يي رسول الله ﷺ ته هبه كوی [۲] ومابه ونيل چې ښځه لاهم خپل نفس هبه كولی شي بيا چې دا آيت نازل شو اې محمد ﷺ دې ښځو نه چې كومي نه غواړي هغه جدا كړه اوكومې چې غواړي خان سره خای وركړه اوكومې ښځې چې تاجدا كړي دي كه په هغوی كښې هم ته څوک وبلې نوڅه ګناه نشته [۳] نوماحضور ﷺ ته اوويل زه وينم چې ستاسو پروردګار ستاسو مرضې او خواهش زر پوره كوي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَغَارُ: زه به غيرت كوم ② يُسَارِعُ فِي هَوَاكَ: ستا مرضی او خواهش زر پوره كوی

**تسهيلات:**

**قوله:** فقلت أتهب الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا:

**دښځې خپل ځان بل چاته هبه كولوبد ګنلو وجه:** - يعنی هغه ښځې چې هغوئ به خپل خانونه نبی كريم ﷺ دپاره هبه كولو. هغوئ ته به حضرت عائشه صديقه ﷺ په دې وجه په ښه نظر نه كتل چې د يوې ښځې خپل نفس غير كس لره هبه كول دا د ښځې د شرف او عزت نه خلاف دی. او دهغې په حرص او قلت حياء باندې دلالت كوی په دې وجه به حضرت عائشه صديقه ﷺ دا خبره ښه نه ګنړله يا بۀ ئې دشركت په وجه ښۀ نه ګنړله.

**قوله** تُرْجِي مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ

**د مذكوره آيت په تفسير كښې څلور اقوال:** - ① ددې آيت مبارك مطلب دادې چې نبی كريم ﷺ خپلو ازواج مطهراتو كښې چالره غواړی نو هغې سره شپه دې تيره كړی او چالره چې او نه غواړی نوشپه دې ورسره نه تيروی

② چا لره غواړی نو خپله نكاح كښې اوساتی او چالره چې غواړی نو طلاق دې وركړی

③ د خپل امت په ښځو كښې چا سره چې اوغواړی نو نكاح دې ورسره اوكړی او چې

---

۱) اخرجه البخاری فی كتاب تفسير القرآن/باب قوله: (ترجئ من تشاء منهن وتؤوی إليک من تشاء ومن ابتغيت ممن عزلت فلا جناح عليک)(رقم-۴۷۸۸) ومسلم فی كتاب الرضاع/باب جواز هبتها نوبتها لضرتها (رقم-۴۹ - (۱۴۶۴) والنسائی فی كتاب النكاح ذكر أمر رسول الله صلى الله عليه وسلم فی النكاح وأزواجه. وما أباح الله عز وجل لنبيه صلى الله عليه وسلم. وحظره على خلقه. زيادة فی كرامته. وتنبيها لفضيلته (رقم- كتاب النكاح (رقم-۳۱۹۹)وابن ماجه فی كتاب النكاح/باب التی وهبت نفسها للنبی صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۰۰۰) واحمد فی المسند: ۱۳۴/۶

چا سره نه غواړي نو نکاح دې ورسره نه کوي

⑥ امام بغوی رحمه الله فرمائي چې دا آيت مبارك د نبي كريم ﷺ د بيبيانو د نمبر باره كښې نازل شوې وو په دې آيت مبارك سره د نمبر وجوب د نبي كريم ﷺ په حق كښې ساقط شو ځکه چې اول نمبر مقررول په نبي كريم ﷺ باندې واجب وو ددې آيت د نازليدو نه پس نبي كريم ﷺ ته اختيار ملاؤ شو چې خپلو بيبيانو كښې كومې بي بي سره غواړي نو شپه ورسره تيروه او چا سره چې نه غواړي نو مه تيروه يعنى د امت په سړو باندې د نمبر په معامله كښې نبي كريم ﷺ ته فضيلت وركړې شو

**قوله** مَا أَرَى رَبَّكَ إِلَّا يُسَارِعُ

**د مذكوره جملې څخه مراد:-** علامه نووى رحمه الله فرمائي چې ددې خبرې نه د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها مراد دا وو چې الله تعالى د نبي كريم ﷺ په حق خينې احكامو كښې نرمى كوى او نبي كريم ﷺ ته په هغې باندې دعمل نه كولو آسانى كوى

**په حديث كښې د ذكر شوې ښځې په مصداق كښې مختلف اقوال:-** ملا على قارى رحمه الله فرمائي چې هغه كومه يوه ښځه وه چې هغې خپل ځان نبي كريم ﷺ ته دپاره هبه كړې وو په دې كښې مختلف اقوال نقل دى

① ميمونه رضي الله عنها

② ام شريك رضي الله عنها

③ زينب بنت خزيمه رضي الله عنها

④ خوله بنت حكيم رضي الله عنها

خود حديث ظاهري الفاظو څخه معلوميږي چې دا يوه ښځه نه وه بلكه ډيرې ښځې وې او داشان ډير ځل شوى دى

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳۲۵۱] دحسن معاشرت بهترين نمونه

۳۲۵۱-[۱۳] (۱) ① «عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا كَانَتْ مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَفَرٍ ② قَالَتْ فَسَابَقْتُهُ فَسَبَقْتُهُ عَلَى رِجْلَيَّ ③ فَلَمَّا حَمَلْتُ اللَّحْمَ سَابَقْتُهُ فَسَبَقَنِي ④ قَالَ هَذِهِ بِتِلْكَ السَّبْقَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضي الله عنها چې په يو سفر كښې د حضور ﷺ سره ملګرې وه، ② وايي چې (په يو سفر كښې په يوه موقع) ما د حضور ﷺ سره د خپلو پښو په ذريعه منډه ووهله (يعنې مونږ دواړو په منډه كښې يخپل مينځ كې مقابله وكړه) نو زه د حضور ﷺ نه

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الجهاد/باب في السبق على الرجل (رقم-۲۵۷۸) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ حسن معاشرة النساء (رقم- ۱۹۷۹) واحمد فى المسند: ۳۹/۶

مخكې شوم. ۳ بيا زه څه موده وروسته څربه شوم نو بيا چې ماد منډې وهلومقابله ورسره وکړه نو دا ځل حضور ﷺ زما نه مخکې شو ، ۴ نو حضور ﷺ وفرمايل، دا ځل زما مخکې وتل په اولنی ځل ستا د مخکې کيدو په بدله کښې دې (يعنې مخکې ځل تا ګټلې وه، او دا ځل ما وګټله، نو په منډه کښې دواړه برابر برابرشو) ابوداؤد

**حل اللغات** - ۱ فَسَابَقْتُهُ :نوما دهغه سره دمنډې مقابله اوکړه، ۲ حَمَلْتُ اللَّحْمَ :ما چه کله غوښه اونيوله، يعنی څربه شوم؛

**تسهيلات:**

**قوله: فَسَابَقْتُهُ:**

**د زوجينو ځپل مينځ کښې د مسابقې جواز** :-داد سفرڅه واقعه ده چه په صحرائی ميدان کښې ښځه اوخاوند دَمنډې مقابله اوکړې نوداد حجاب او پردې منافی هم نه دی اونه په دې کښې دَ نن صبا دَبې حيا جينکو فسادونو اولوبو څه مشابهت دې

لفظ دَ پيدل منډې دَ تعيين دَپاره دې چه دا مقابله په خپو وه دَ سوريدو په حالت کښې نه وه دَدې واقعه نه معلوميږی چه دَ نبی کريم ﷺ خپلو بيبيانوسره په حسن معاشرت اوحسن معامله کښې خان له يومثال وو.

**په څلورو ځيزونو کښې د مقابلې جواز** :-علامه قاضی خان ليکلی دی چه په څلورو ځيزونوکښې دَ منډې مقابله جائزده. ۱ په اوښانوکښې ۲ اسونو اوقچرو کښې ۳ غشی ويشتلوکښې ۴ اوپيدل منډې وهلوکښې. خو په خپل مينځ کښې شرط لګول جانبين کښې حرام دې

**په مسابقه کې د شرط لګولو جائز صورتونه** :-

۱ دَ يوطرف نه شرط لګول جائزدې. چه څوك چاته اووائی راځه مقابله کووکه زه وراندې لاړم نوماته به پنځه سوه روپئی راکوې اوکه ته وراندې شوې نوزه به هيڅ هم نه درکوم دا جائزدی

۲ چه په مينځ کښې محلل موجود وی. نو هم شرط لګول جائز دی. يعنی زيد اوبکرد دواړو طرفونه شرط اولګولو خو په مينځ کښې ئې داسې اوکړه چه يودريم کس ئی هم په مقابله کښې شامل کړو اوونی ونيل چه که په موږ کښې څوك وراندې شونو شاته پاتې کيدونکې به هغه ته پنځه سوه روپئی ورکوی خوکه محلل وراندې شو نوهغه ته به هيڅ هم نه ملاويږی دا صورت دَدې شرط هغه منډه جائز جوړه وی.

۳ دغه شان که يو انجمن يا کمپنی اعلان اوکړی چه وراندې تلونکی ته به موږ دومره رقم ورکوونوداهم جائز دی دادَ انعام صورت دې

"هذه بتلك السبقة" يعنی دا کاميابی دَهغه ناکامئی په بدله کښې ده "تلك بتلك".

## [۳۲۵۲] په مړو تبصرې مه کولی

۳۲۵۲ـــ[۱۵] ( ) ۱ وَعَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «خَيْرُكُمْ خَيْرُكُمْ لِأَهْلِهِ وَأَنَا خَيْرُكُمْ لِأَهْلِي ۳ وَإِذَا مَاتَ صَاحِبُكُمْ فَدَعُوهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ په تاسو کښې بهترين سړی هغه دی، چې دخپل اهل (ښځې) و ر و او اقرباؤ او د خدمتګارو په حق کښې بهترين وي، او زه د خپل اهل په حق کښې په تاسو کښې بهترين يم (يعني دخپل اهل وعيال سره چې څومره بهتر سلوک زه کوم، په خپل اهل وعيال کښې دومره بهتر سلوک په تاسو کښې هيڅوک هم نه کوي) ۳ او هر کله چې په تاسو کې څوك مړ شي، نو هغه پرېږدې يعنی دهغه بد مه بيانوي، (ترمذي دارمي)

۳۲۵۳ـــ(.) ۱ وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ إِلَى قَوْلِهِ لِأَهْلِي.

**ترجمه:** ۱ او ابن ماجه رحمه الله دا روايت د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه د لفظ لِأَهْلِيْ پورې نقل کړي دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِذَا مَاتَ صَاحِبُكُمْ فَدَعُوهُ:

**د مذکوره جملې درې مطالب:-**

① يعنی دَهغه دَمرګ نه پس په هغه باندې ژړاګانې مه کوئی.

② يعنی چه ستاسو څوک دوست مسلمان مړشی نوهغه پرېږدئی اوس دَهغه غيبت مه کوئی اوعيبونه ئی مه لټوئی او په هغه باندې بې ځايه تبصرې مه کوئی

③ "بِاصاحبکم" نه مراد حضوراکرم ﷺ دې مطلب داچه اوس دَ وفات نه پس په حضوراکرم ﷺ باندې ماتم غم اوتحسر پرېږدئی. دوه درې ورځې ماتم يعنی غم کول په عام مړوباندې جائز دې دَدرېو ورځونه زيات جائزنه دې. او ښځه په خپل خاوندباندې څلورمياشتې لس ورځې ماتم اوغم کولې شی.

## [۳۲۵۴] دَ تابعدارو ښځوفضائل

۳۲۵۴ـــ[۱۶] (۲) ۱ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «الْمَرْأَةُ إِذَا صَلَّتْ خَمْسَهَا وَصَامَتْ شَهْرَهَا وَأَحْصَنَتْ فَرْجَهَا وَأَطَاعَتْ بَعْلَهَا ۳ فَلْتَدْخُلْ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شَاءَتْ». رَوَاهُ أَبُو نُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ.

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی العفو والعافية (رقم-۳۵۹۵)

۲) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب النکاح/ حسن معاشرة النساء (رقم-۱۹۷۷)

۳) کذا فی حلية الاولياء وطبقات الاصفياء ،باب الربيع بن صبيح ومنهم اذوالعقل (۶/ ۳۰۸)

**توجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کومې ښځې چې (د خپلې پاکې په ورځو کښې په پابندي سره) پنځه وخته مونځ وکړي، د رمضان (ادا او قضاء) روژې يې ونيولې، د خپل شرمګاه حفاظت يې وکړي (يعني د فواحشو او خرابو خبرو نه يې خپل نفس محفوظ کړي) او د خپل خاونديې (په هغه څيزونو کښې، فرمانبرداري وکړه (چې په هغه کښې فرمانبرداري کول د هغه د پاره ضروري ده)، [۳] نو (د هغې ښځې د پاره دا بشارت دی چې) هغه د کومې دروازې نه چې غواړي په جنت کښې دي داخله شي. دا روايت ابو نعيم په حلية الاولياء کښې نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① بَعْلَهَا: د هغې خاوند.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمَرْأَةُ إِذَا صَلَّتْ خَمْسَهَا

**د څلور صفتونو حاملې ښځې د پاره د جنت وعده:** -

① هغه پنځه مونځونه ادا کوی، کله چې د طهارت په حالت کښې وی.

② هغه ښځه چې د رمضان روژې نيسي.

③ هغه ښځه چې خپل نفس د بدو خبرو او بدکارونونه ساتي او د خپل عزت حفاظت کوی

④ هغه ښځه چې د خپل خاوند اطاعت کوی په هغه امورو کښې کوم چې شرعا جائز دی

**قوله:** فَلْتَدْخُلْ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شَاءَتْ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال:** - ① په دې جمله کښې جنت ته د داخليدو اشاره ده چې دا جنت ته د داخليدو نه هيڅوك نشي منع کولې

② يا اشاره ده چې دا به زر جنت ته داخله شي.

③ د داسې ښځې جنت کښې داخيدل يقيني دی

**[۳۲۵۵] که غير الله ته سجده کول جائز وې نو خاوند به د ښځې مسجود مکرم کول شوې وو**

٣٢٥٥ — [١٤] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ [٣] لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**توجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] که ما چا ته دا حکم کولای چې هغه دې بل چاته ته سجده وکړي، [۳] نو ما به يقينًا ښځې ته حکم ورکړې وو، چې هغه دې خپل خاوند ته سجده کوي. (ترمذي)

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی حق الزوج علی المرأة (رقم-۱۱۵۹)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْكُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ

**د خاوند مقام او عظمت:**- يعنې په ښځه د خاوند بې شميره حقوق دي ښځه دخاوند د احسانانو شکر نه شي ادا کولې په دې وجه که چرته دغير الله دپاره سجده کول جائزوې نو ښځې ته به حکم کړې وې چې هغه دې خپل خاوند ته سجده کوی وړاندينو شريعتو کښې د تعظيم سجده جائز وه لکه د ملائکو حضرت آدم عليه السلام ته سجده کول ، دا سجدهٔ تعظيمي وه اوداشان د حضرت يوسف عليه السلام د ورونړو حضرت يوسف عليه السلام ته سجده کول هم سجدهٔ تعظيمي وه زمونږ په شريعت محمدی کښې دشرك د ويرې په وجه سجدهٔ تعظيمي جائز نه ده او دا سجده منسوخ شوې ده

**[۲۲۵٦] د خاوند د خوشنودي اهميت**

۳۲۵۰-[۱۸] (۱) [۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «أَيُّمَا امْرَأَةٍ مَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَنْهَا رَاضٍ دَخَلَتِ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي ام سلمه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کومه ښځه چې په داسې حال کښې مړه شي چې دهغه خاوند دهغې نه راضي اوخوشحاله وي نوهغه به جنت کښې داخليږي (ترمذي)

**تسهيلات: قوله:** وَزَوْجُهَا عَنْهَا رَاضٍ

**د خاوند د خوشحالئ معيار:**-زوج نه مراد عالم ، متقی دې د عالم او متقی ښځې دپاره دا اجر بيان شوې دې ، او په غير شرعی امورو کښې د فاسق ، فاجر خاوند د رضامندئ هيڅ اعتبار نشته دې

**قوله:** دَخَلَتِ الْجَنَّةَ

**د داسې ښځې جنت ته د داخليدو وجه:**- د الله ﷻ د حقوقو پورا کولو او د بندگانو حقوقو د پورا کولو په وجه به جنت ته داخليږی

**[۲۲۵۷] په مشکل وخت کښې هم دَ خاوند تابعداری کول**

۳۲۵۸-[۱۹] (۲) [۱] وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِذَا الرَّجُلُ دَعَا زَوْجَتَهُ لِحَاجَتِهِ فَلْتَأْتِهِ وَإِنْ كَانَتْ عَلَى التَّنُّورِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی حق الزوج على المرأة (رقم-۱۱۶۱) وابن ماجه فی كتاب النكاح/باب حق الزوج على المرأة (رقم-۱۸۵٤)

[۲] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی حق الزوج على المرأة (رقم-۱۱۶۰) واحمد فی المسند: ٤/۲۳

**ترجمه:** ① او حضرت طلق بن علي رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې يو سړی خپله ښځه د خپل حاجت پوره کولو دپاره يعنی جماع دپاره وبلي نوښځي له خاوند ته ورتلل پکار دی که څه هم چې هغه د نغرې سره وي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① التَّنُّور: تنور يا نغرې، د روټئ پخولو ځائې

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَى التَّنُّورِ:

**د حکم مذکور علل او محمل:** - يعنی سره دَدې چه هغه ښځه په ډير مشکل کار کښې مشغوله هم وی اودَ هغه کار په پريخودو باندې دَهغې دَخرابيدو خطره هم وی لکه په ګرم تنور کښې لګيدلې روټئ پريخودوسره هغه روټئ سوزيږي. دا به په هغه صورت کښې وی چه کله چه دا اوره دَخاوندوی اوهغه کله خپل مال ضائع کول غواړی نو دا سې دې اوکړی ښځه دې تابعداری اوکړی خکه چه که چرې ښځه انکاراوکړی او دَ خاوند سره تنه مستی ختلې وی نوخاوند په زنا او بدکارئ کښې پريوتلې شی يا کورنی تعلقات خرابيدې شی. کوم چه لوئی نقصان دې يا دا چه کلام دا تعليق بالمحال په توګه دې که هغه کار پريخودونکې هم ممکن نه وی اومحال وی نوبيا دې هم پريږدی اودَ خاوند تابعداری دې اوکړی.

### [۳۲۵۸] خاوند ته تکليف مه ورکوه

٣٢٥٨ - [٢٠] (١) ①وَعَنْ مُعَاذٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②قَالَ: «لَا تُؤْذِي امْرَأَةٌ زَوْجَهَا فِي الدُّنْيَا ③إِلَّا قَالَتْ زَوْجَتُهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ: لَا تُؤْذِيهِ قَاتَلَكِ اللَّهُ ④فَإِنَّمَا هُوَ عِنْدَكِ دَخِيلٌ يُوشِكُ أَنْ يُفَارِقَكِ إِلَيْنَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت معاذ رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ نه نقل کوي ② چې حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې يوه ښځه په دنيا کښې خپل خاوند ته تکليف رسوي، ③ نو د هغه د جنت والا ښځه (يعني د ښائسته، غټو سترګو والاحوره وايي چې الله تعالی دې مره کړه ④ دا خو درسره د څو ورځو ميلمه دی، چې زر به ستا نه جدا کيدو سره (په جنت کی) مونږ ته راشي، (ترمذي) امام ترمذي رحمه الله فرمايلي دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① دَخِيلٌ: د يو څو ورځو ميلمه.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا قَالَتْ زَوْجَتُهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ:

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-١١٧٤) وابن ماجه في كتاب النكاح/باب في المرأة تؤذي زوجها (رقم-٢٠١٤) واحمد في المسند: ٢٤٢/٥

**دخاوند خطه نافرمانئ ښځې دپاره وعید:** - یعنی کله چې د دنیا بی بی خاوند ته تکلیف رسوی نو د جنت حورې د دنیا ښځې ته وائی چې (قاتلك الله) ته دا الله ﷻ د رحمت نه ناامیده شې او د جنت نه لرې شې او په بل روایت کښې دی چې (لعن الله الملائکة لعاصیة الزوج) یعنی فرښتې په هغه ښځه باندې لعنت لیږی کومه چې د خپل خاوند نافرمانی کوی ددې نه معلومه شوه چې انسان څه کوی نو هغه د ملأاعلی یعنی د آسمان فرښتو په علم کښې هم وی

**قوله:** فَإِنَّمَا هُوَعِنْدَكِ دَخِيلٌ:

**دنیاوی ښځې سره دخاوند مثال:** - یعنی هغه د دنیا دې ښځې سره د لږ ساعت دپاره میلمه دې او ددې نه راتلونکې دې.

**[۳۲۵۹] په خاوند د ښځې حق**

[۳۲۵۹] (۲۱) ([1]) [۱] وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ الْقُشَيْرِيِّ عَنْ أَبِيهِ [۲] قَالَ: «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا حَقُّ زَوْجَةِ أَحَدِنَا عَلَيْهِ؟ [۳] قَالَ: أَنْ تُطْعِمَهَا إِذَا طَعِمْتَ وَتَكْسُوَهَا إِذَا اكْتَسَيْتَ [۴] وَلَا تَضْرِبِ الْوَجْهَ وَلَا تُقَبِّحْ وَلَا تَهْجُرْ إِلَّا فِي الْبَيْتِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت حکیم ابن معاویه قشیری د خپل پلار نه نقل کوی [۲] چې هغه اوویل ما عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ په مونږ کښې د یوی ښځې د هغې په خاوند څه حق دی؟ [۳] حضور ﷺ وفرمایل دا چې هر کله ته (څه) خورې، نو په هغې هم خوره، هر کله چې ته (څه) آغوندې نو په هغه یې هم آغونده (یعنې څنګه چې یې ته خورې، آغوندې یې، دغه شان یې په خپله ښځه هم خوره او آغونده) [۴] هغه په مخ مه وهه، مه هغه ته بد رد وایه، او مه ورته دا وایه چې الله ﷻ دې بد شکله که، او د هغې نه یواځې په کور کښې دننه جدایی اختیار کړه. (احمد ابوداؤد ابن ماجه)

**حل للغات:** - ① وَلَا تُقَبِّحْ: بد رد ورته مه وایه، ② وَلَا تَهْجُرْ: او جدائی ترې مه اختیاروه.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَا تَضْرِبِ الْوَجْهَ:

**په مخ باندې د وهلو ممانعت:** - په ټولو اندامونو کښې مخ ډیر معظم او مکرم دې په دې وجه خاص په دې باندې وهل نبی منع کړل په قرآن پاك کښې الله تعالی دَ ښځود وهلو اجازت ورکړې دې نبی کریم "ضربا غیرمبرح" فرمائیلو سره حد بندی اوکړه په یوحدیث کښې راغلی دی په قیامت کښې به دَ خاوند نه (دَ شریعت په حدود کښې) دَ ښځې دَ وهلو سوال نه کیږی؟

[1] ) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی حق المرأة علی زوجها (رقم-۲۱۴۲) وابن ماجه فی کتاب النکاح/باب حق المرأة علی الزوج (رقم-۱۸۵۰) واحمد فی المسند: ۴/۴۴۶

**د ښځې د وهلو جائز صورتونه:** -د څلورو خبرو وجې نه سړې خپله ښځه وهلې شي

① بغیرد عذر نه د جماع نه په انکار کولو

② د خاوند د باره په ډول سنګار نه کولو باندې

③ فرائض اسلام پریخودو باندې

④ د اجازت نه بغیرد کور نه په بهروتلو باندې یعنی بې پردګی کولو باندې وهلې شی د قرآن کریم دا ترتیب دې ﴿ وَالّٰتِیْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِی الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْهُنَّ ﴾ [نساء ۳۴.] ولاترفع عنهم عصاك ادبا"

**قوله:** وَلاَ تُقَبِّحْ:

**د مخ د بدی بیانولو ممانعت:** - یعنی ښځه په قبیح الفاظو سره مه یادونی چه ته ګنده نی بدشکل نی خرابه نی ځکه چه د ښځې اصل سرمایه د هغې حسن او د هغې تعریف دې نو په دې قسم مذمت باندې هغه مرې.

**[۳۲۶۰] بدزبانه ښځې ته طلاق ورکړه**

[۳۲] (۱) ①وَعَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ قَالَ: «قُلْتُ: ②يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي امْرَأَةً فِي لِسَانِهَا شَيْءٌ يَعْنِي الْبَذَاءَ، ③قَالَ: طَلِّقْهَا، قُلْتُ: إِنَّ لِي مِنْهَا وَلَدًا وَلَهَا صُحْبَةٌ، ④قَالَ: فَمُرْهَا، يَقُولُ: عِظْهَا فَإِنْ يَكُ فِيهَا خَيْرٌ فَسَتَقْبَلُ، ⑤وَلَا تَضْرِبَنَّ ظَعِينَتَكَ ضَرْبَكَ أُمَيَّتَكَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او حضرت لقیط ابن صبره ﷺ وایې چې ما عرض اوکړو ②یا رسول الله ﷺ زما یوه ښځه ده، چې د هغې په ژبه کښې څه شي دی. یعنی هغه زبان درازه اوبدزبانه ده. ③حضور ﷺ وفرمایل چې (که ته د هغې په زبان درازې او فحش ګویې صبر نه شي کولی، نو) ته هغې له طلاق ورکړه (ګویا حضور ﷺ دا حکم په طور د اباحت ورکړی) ④ما عرض اوکړو چې د هغې (د نس) نه زما آولاد دې. او د هغې سره (پخوانې رفاقت او) صحبت دی (ځکه هغې له طلاق ورکول هم زما د پاره مشکل دی) ⑤حضور ﷺ وفرمایل چې بیا هغې ته حکم کوه. یعنی هغې ته د ژبې د درست کولو او د خپلو عاداتو او طریقو د صحیح کولو نصیحت کوه، که په هغې کښې څه هم نیکي وي، نو هغه به ستا نصیحت قبول کړي. ⑥او هغه د وینځې په شان مه وهه. (ابوداؤد)

**حل اللغات** ①فِي لِسَانِهَا شَيْءٌ: د هغې په ژبه کښې څه څیز دې یعنی زبان درازه ده. ②الْبَذَاءَ: بد زباني. ③ظَعِينَتَكَ: ستا ناوې په ډولۍ کښې ناسته ښځه. ناوې.

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطهارة، باب فی الاستنثار (رقم - ۱۴۲) واحمد فی المسند: ۴/۳۳

**تسهيلات: قوله: عِطْنًا:**

**د لفظ ظعينه متعلق د علامه طيبي قول:** -دا لفظ دَ مرها تفسير دي ظعينه هغه شريفي ښځي ته وائي چه په كجاوه اودولئي كښې په عزت سره ناسته وي كه په كجاوه كښې نه وي نو ظعينه نه ده بيا په دې كښې وسعت راغلو او هرې شريفې ښځې ته او خاص كر سى بى ته ظعينه او وئيلې شوه دا لفظ دَ رفيقه سفر او دَ رفيقه حيات بهترين تعبير دې علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه عرب د يرې شريفې ښځې ته ظعينه وائي لكه چه يو شاعر وائي [الكاشف ۳۵۲/۶].

**[۲۲۶۱] د ښځو د وهلو ممانعت**

**۳۲۳۰—[۲۳] (۱) [۱] وَعَنْ إِيَاسِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا تَضْرِبُوا إِمَاءَ اللّٰهِ»، [۳] فَجَاءَ عُمَرُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ذَئِرْنَ النِّسَاءُ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ فَرَخَّصَ فِي ضَرْبِهِنَّ**

**ترجمه:** [۱] و حضرت اياس ابن عبدالله رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د الله تعالى وينځې (يعني خپلې بيبياني) مه وهى، [۳] بيا (د دې حكم نه څو ورځې وروسته) حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شو، او عرض يې وكړې چې (تاسو ﷺ د ښځو د وهلو نه منع فرمايلې ده، څكه) ښځې په خپلو خاوندانو زړورې شوې دي، نو حضور ﷺ د ښځو د وهلو اجازت وركړې،

**حل اللغات:** - ① ذَئِرْنَ: ښځې زړه ورې شوې،

**[۱] فَأَطَافَ بِآلِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نِسَاءٌ كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ، [۲] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَقَدْ طَافَ بِآلِ مُحَمَّدٍ نِسَاءٌ كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ [۳] لَيْسَ أُولَئِكَ بِخِيَارِكُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.**

**ترجمه:** [۱] د دې نه وروسته بيا د يرې ښځې د رسول الله ﷺ بيبيانو مباركو ته راجمع شوې، او د خپلو خاوندانو يې شكايت وكړې (چې هغه مونږ وهى) [۲] رسول الله ﷺ ته چې دا معلومه شوه، نو وې فرمايل چې د محمد ﷺ بيبيانو ته د يرو ښځو د خپلو خاوندانو شكايت راوړې دي، دا خلق (چې خپلې ښځې وهي) [۳] په تاسو كښې بهتر خلق نه دي، (ابوداؤد ابن ماجه دارمي)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت اياس بن عبدالله بن ابي ذباب رضي الله عنه:** اياس دَ قبيله دوس نه وو خو بعضې خلقو هغه قبيله مزينه ته منسوب كړې دې ولې اكثرو كښې دوس ته ترجيح حاصله ده. دَ مكې

---

۱) وابوداود فى السنن كتاب النكاح/باب فى ضرب النساء (رقم-۲۱۴۶) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ ضرب النساء (رقم-۱۹۸۵)

اوسیدونکي صحابي وو. ابن منده او ابونعیم اختلاف کړي دي. چه هغه ته د حضور ﷺ صحبت هم ملاوشوي دي که نه. دبعضو په نیز صحبت نه دے ملاوشوي. د دوی نه صرف هم یو روایت نقل دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تَضْرِبُوا إِمَاءَ اللهِ:

**د تعارض اشکال:** – دَ قرآن اوحدیث نه په مجموعي توګه دَ ښخودَ وهلو اجازت څه پته خبره نه ده لیکن دَ زیرنظر حدیث نه معلومیږي چه ښځې نه دي وهل پکار په ظاهره دَ آیت حدیث او دَ حدیث حدیث سره تعارض معلومیږي؟

**د اشکال جواب:** – په قرآن کریم کښې کله دَ ښخودَ وهلواجازت راغلو نونبي کریم دَ دغه وهلو اجازت هم ورکړو اوحدئې هم مقررکړو اودَ دغه حدنه زیات وهل ئې منع اوفرمائیل چه یوطرف ته ممانعت راغلې نوهغه دَ هغه وهلو دي کوم چه دَ شرعي حدنه زیات وي اوچرته چه دَ وهلوحکم دې نوهغه په شرعي حدکښې دننه دي.

**قوله:** ذَئِرْنَ:

**نحوی توجیه:** – یعني ښځې تکره شوې دَ ازمرو په شان ئې غاښونه راویستل دا صیغه دَ مفردکیدل پکاروو ځکه چه فاعل اسم ظاهر دې لیکن دې سره "اکلوني البراغیث" ﴿ وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾ [ابوداؤد: ۲/۲۶۰.] معامله کړې شوې ده.

**[۲۳٦۲] ښځه د هغې د خاوند خلاف د خطا ایستلو مذمت**

۳۳۳ [۲۳] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَبَّبَ امْرَأَةً عَلَى زَوْجِهَا ③ أَوْ عَبْدًا عَلَى سَيِّدِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چي رسول الله ﷺ وفرمایل ② هغه سړی زمونږ د تابعدارانو نه نه دی، چي یوه ښځه د هغې د خاوند خلاف، ③ یا یو غلام د هغه د آقا خلاف بد راه کړي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① خَبَّبَ: چه مخالف کړی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ خَبَّبَ امْرَأَةً عَلَى زَوْجِهَا:

**د ښځې او خاوند په مینځ کښې تفرقه اچولو مطلب:** – دَ ښځې خاوند مینځ کښې تفریق اچول دادي چه په خبروسره غیبتونوسره اوچغلیانوسره دَهغوی په مینځ کښې ورانې

---

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب باب فيمن خبب مملوكا على مولاه (رقم-۵۱۷۰) واحمد في المسند: ۲/۳۹۷

راپيدا کړي يا په جادو منتر جنتر تعويذاتو سره په هغوی کښې فساد واچوی نو دا تول منع دی که روحانی توړوی اوکه مادی توړوی

**قوله: ليس منا:**

زمونږ نه نه دې مطلب دا چه اوس دا سړې په دې شعبه کښې د اسلام په طريقه نه دې يا دا مطلب چه په توګه د اسلوب حکيم نبی کريم اوفرمائيل چه زمونږ نه نه دې نو چه کوم مسلمان دا خبره اوری هغه به په ژړا ژړا سره دا کار پرېږدی

**[۲۳٦۳] د خپل اهل وعيال په حق کښې کمال مهرباني د کمال ايمان دليل دی**

---[۲۵] (۱) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِنَّ مِنْ أَكْمَلِ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا [۳] وَأَلْطَفُهُمْ بِأَهْلِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په مؤمنانو کښې کامل ترين ايمان د هغې سړی دی، چې خوش اخلاقه وي، [۳] او په خپل اهل وعيال ډير مهربانه وي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① وَأَلْطَفُهُمْ: مهربانه وی،

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د حديث مطلب د ترجمې څخه واضح دې. د مزيد تشريح ضرورت نشته.

**[۲۲٦٤] ښځوسره د ښه سلوک کولو ترغيب**

---[۲٦] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا [۲] وَخِيَارُكُمْ خِيَارُكُمْ لِنِسَائِهِمْ». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ إِلَى قَوْلِهِ خُلُقًا.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل په مؤمنانو کښې کامل ترين ايمان د هغه سړي دي، چې په هغوی کښې ډير زيات خوش اخلاقه وي (يعني د الله ﷻ د پوره مخلوق سره د خوش اخلاقی سلوک کوي) [۲] او په تاسو کښې بهتر هغه سړي دي، چې د خپلو ښځو په حق کښې بهتر دي (ځکه چې ښځې د خپل عجز او د کمزوري په بنا د زياتي مهرباني او مروت مستحقي وي) [۳] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يي دي چې دا روايت حسن دی، اوامام ابوداؤد رحمه الله دا روايت د لفظ خُلُقًا پورې نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① وَخِيَارُكُمْ: په تاسو کښې غوره.

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳٦۱۲ واحمد فی المسند ٦/ ٤٧

۲) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب السنة /باب الدليل علی زيادة الايمان ونقصانه (رقم - ٤٦٨٢)

**تسهيلات:**

**قوله: وَخِيَارُكُمْ خِيَارُكُمْ لِنِسَائِهِمْ:**

**په خاوندانو کښې افضل خاوند:** ماقبل حديث پاك کښې تير شو چې بهترين اخلاقو سره الله ﷻ هم راضي کيږي ، رسول کريم ﷺ هم راضي کيږي او مخلوق هم راضي کيږي چونکه ښځه صرف د خاوند په وجه دخپل مورپلار ، رونړه، خويندې او ټول خاندان پريږدی ، په دې وجه خاوند ته پکار دی چې خپلې بی بی سره مهرباني اوکړي

**[۲۳٦٥] د بي بي عائشې رضي الله عنها سره د حضور ﷺ يوه د لطفه ډکه واقعه**

۳۳۶۵-[۲۷] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «قَدِمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ أَوْ خَيْبَرَ ② وَفِي سَهْوَتِهَا سِتْرٌ فَهَبَّتْ رِيحٌ فَكَشَفَتْ نَاحِيَةَ السِّتْرِ عَنْ بَنَاتٍ لِعَائِشَةَ لُعَبٍ، ③ فَقَالَ: مَا هَذَا يَا عَائِشَةُ؟ قَالَتْ: بَنَاتِي، ④ وَرَأَى بَيْنَهُنَّ فَرَسًا لَهُ جَنَاحَانِ مِنْ رِقَاعٍ،

**ترجمه:** ① او د بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله ﷺ د غزوه تبوک يا غزوه حنين نه وروسته کور ته تشريف راوړو، ② نو هغه وخت د بي بي عائشې رضي الله عنها د کور په چوکاټ پرده پرته وه، چې هوا وچليدله نو د هغې پردې يو ګوټ کولاؤشو ، چې د هغه نه د بي بي عائشې رضي الله عنها دلوبو ګوډياني په نظر راغلې، کومې چې هغه په دريچه کښې ايښودل شوی وې، ③ حضور ﷺ ورنه پوښتنه وکړه چې اې عائشې! رضي الله عنها دا څه دې؟ عائشې رضي الله عنها اوويل چې دا زما ګوډياني دي، ④ په هغه ګوډو کښې حضور ﷺ يو آس هم وليدلو، چې د هغه د کپړې يا بل څه نه دوه وزرې وې

① فَقَالَ: مَا هَذَا الَّذِي أَرَى وَسْطَهُنَّ؟ ② قَالَتْ: فَرَسٌ قَالَ وَمَا هَذَا الَّذِي عَلَيْهِ؟ قَالَتْ: قُلْتُ: جَنَاحَانِ، ③ قَالَ فَرَسٌ لَهُ جَنَاحَانِ، ④ قَالَتْ أَمَا سَمِعْتَ أَنَّ لِسُلَيْمَانَ خَيْلًا لَهَا أَجْنِحَةٌ؟ ⑤ قَالَتْ: فَضَحِكَ حَتَّى رَأَيْتُ نَوَاجِذَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضور ﷺ بيا پوښتنه وکړه چې د دې ګوډيانو په منځ کښې چې کوم شی زه وينم. دا څه دي؟ ② بي بي عائشې رضي الله عنها اوويل چې دا آس دی، ③ رسول الله ﷺ وفرمايل داڅه شی دې چې پردې آس دې بي بي عائشې رضي الله عنها اوويل دادوه وزران دې رسول الله ﷺ وفرمايل چې د آس هم وزرې وې؟ ④ نو بی بی عائشی رضي الله عنها اوويل چې آيا تاسو ﷺ نه دې اوريدلې چې د حضرت سليمان عليه السلام سره چې کوم آسان وو، د هغوی وزرې هم وې، ⑤ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور ﷺ (زما جواب آوريدو سره) وخندل، ددې پورې چې ما د حضور ﷺ د ژامې غاښونه وليدل، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① سَهْوَتِهَا: د کور چوکاټ، وړوکې کور. دونکاچه. طاقچه ② سِتْرٌ: پرده، ③ فَهَبَّتْ رِيحٌ: نو

۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب /باب في اللعب بالبنات (رقم-٤٩٣٢)

هوا راوالوته، ④نَاحِيَةُ الْبَيْتِ: د پردې گوټ، اوطرف، ⑤لُعَب: د لوبو گوډيانې، ⑥رِقَاع: د رقعة جمع ده دکپړې يا کاغذټکړو ته وائی (هغه وخت خو به هم کپړه وه کاغذ چرته وو).

**تسهيلات:**

**قوله: مَا سَمِعْتُ:**

**د نبی کریم ﷺ د خندا ليوت:** - يعنی ولې تا ته معلومه نه ده چه د حضرت سليمان عليه السلام اس وو د هغې دوه وزرې وې حضرت عائشه رضی الله عنها داخبره په معاشره کښې د غه مشهورې قصې اوريدو سره بيان کړې ده. کومې قصې چه په عام توګه د ماشومانو په مجلسونو کښې اورولې شی په دې وجه نبی کريم ډير اوخندل د دې خندا نه ثابته شوه چه نبی کريم به کله کله د مسکی کيدونه علاوه خندا هم کوله په کوم سره چه به د غاړې غاښونونه ښکاريدل

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۲٦٦] غيرالله ته سجده کول جائز نه دی

[۲۸] () ①عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: «أَتَيْتُ الْحِيرَةَ فَرَأَيْتُهُمْ يَسْجُدُونَ لِمَرْزُبَانٍ لَهُمْ ②فَقُلْتُ: لَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَحَقُّ أَنْ يُسْجَدَ لَهُ، ③فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقُلْتُ: إِنِّي أَتَيْتُ الْحِيرَةَ فَرَأَيْتُهُمْ يَسْجُدُونَ لِمَرْزُبَانٍ لَهُمْ فَأَنْتَ أَحَقُّ بِأَنْ يُسْجَدَ لَكَ،

**ترجمه:** ①حضرت قيس ابن سعد رضی الله عنه وايي چې زه (کوفي ته نژدې يو ښار) حيره ته ورسيدم، نو ما د هغه ځای خلق وليدل، چې خپل سردار ته سجده کوي ②ما په خپل زړه کښې ) اوويل چې رسول الله ﷺ خو ډير زيات د دې مستحق دی، چې هغه ﷺ ته سجده وشي، ③کوم وخت چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، نو ما عرض وکړو، چې زه حيره ته ولاړم نو د هغه ځای خلق مې وليدل، چې هغوئ خپل سردار ته سجده کوي، نو ته ﷺ خو د دې زيات مستحق يې، چې تا ﷺ ته دې سجده وشي

①فَقَالَ لِي: أَرَأَيْتَ لَوْ مَرَرْتَ بِقَبْرِي أَكُنْتَ تَسْجُدُ لَهُ؟ ②" فَقُلْتُ لَا فَقَالَ: " لَا تَفْعَلُوا ③لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ النِّسَاءَ أَنْ يَسْجُدْنَ لِأَزْوَاجِهِنَّ ④لِمَا جَعَلَ اللَّهُ لَهُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ حَقٍّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①حضور ﷺ وفرمايل چې ②ماته وښايه، که ته زما قبر ته راشي، نو آيا ته به زما قبر ته سجده کوي؟ ③ما عرض اوکړو چې نا ، حضور ﷺ وفرمايل (نو بيا زما په ژوند کښې هم داسې مه کوه) ④که ما دا حکم کولی شو چې يوکس دې (د الله جل جلاله نه علاوه) بل چاته سجده وکړي، نو ما به ښځو ته حکم ورکړي وو، چې هغه دې خپلو خاوندانو ته سجده کوي، ځکه چې الله تعالی جل جلاله په ښځو د سرو (ډير زيات) حق مقرر کړی دی، (ابوداؤد)

۱) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب النكاح باب فی حق الزوج علی المرأة (رقم-۲۱٤٠)

**حل اللغات**: ①الحِيرَةَ: د يو ځاى نوم دې ②لِمَرْزُبَانٍ: په ميم فتحه اوزاء باندې ضمه ده دا فارسي لفظ دې قومندان ته هم وائي رئيس امير كماندر اوچوهدري او لوئي زميندار ته هم وائي

**تسهيلات**: **قوله**: لومررت بقبر:

**قبرونو ته د سجدې سد باب**: - يعني دَ رسول الله ﷺ روضه ته به سجده کوئى؟ صحابي اونيـل نـه بـه کـوم پـه دې لفظ کـښې ځـومره لـوئى تعليم دې اودَ قبرپرستو پـه مـخ بانـدې ځومره لويه څپيړه ده ﴿ لَوْكَانُوا يَشْعُرُونَ ﴾

۲۳۶۷- ()① رَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ.

**ترجمه**: ①دا روايت احمد ﷫ هم د معاذ ابن جبل ﷛ نه نقل کړي دي

**[۲۳٦۸] د نافرماني ښځې پر وهلو به مؤاخذه نه وي**

۲۳۶۸-[۲۹] (·)① وَعَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②قَالَ: "«لَا يُسْأَلُ الرَّجُلُ فِيمَا ضَرَبَ امْرَأَتَهُ عَلَيْهِ»" رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ①او حضرت عمر ﷛ د نبی کريم ﷺ نه نقل کوي، ②چې حضور ﷺ وفرمايل که سړي خپله ښځه په يو (معقول) شي ووهي، نو قابل د مؤاخذې نه دی، (ابوداؤد ابن ماجه)

**تسهيلات**: **قوله**: لَا يُسْأَلُ الرَّجُلُ:

**د بی بی به جائزو وهلو عدم سزا**: - دَدې مطلب دادې چه دَخپله نافرمانه بی بی دَ شريعت دَ حدودپه رڼا کښې وهلوباندې نه په قيامت کښې نه په دنيا کښې دَ خاوند نه څه تپوس پوښتنه نه کيږي دلته دَ لفظ عليه ضمير مجرور دَحرف ما طرف ته راجع دې کوم چه په فيماضرب کښې دلته مذکوردې ليکن چونکه ﴿ وَالَّتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ ﴾ [نساء۳۴.] آيت دَدې مسئلې بنيادې دې لهذا لفظ ما دَنشوز قائم مقام دې په حقيقت کښې دَ عليه ضمير دَ نشوز طرف ته راجع دې مطلب داشوچه يوسړي خپله ښځه په نشوز (نافرمانئي) باندې اووهی نو نيول به ئي نه کيږي

**[۲۳٦۹] ښځه دې دَ خاوند دَاجازت نه بغير نفلي روژه نه ساتي**

۲۳۶۹-[۳۰] (·)① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: «جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَنَحْنُ عِنْدَهُ ②فَقَالَتْ: زَوْجِي صَفْوَانُ بْنُ الْمُعَطَّلِ يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ وَيُفَطِّرُنِي إِذَا صُمْتُ، وَلَا يُصَلِّي الْفَجْرَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، ③قَالَ: وَصَفْوَانُ عِنْدَهُ، قَالَ: فَسَأَلَهُ عَمَّا قَالَتْ: ④فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ أَمَّا قَوْلُهَا يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ فَإِنَّهَا

۱) اخرجه احمد فی المسند ۵/۲۲۷

۲) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب النکاح/باب فی ضرب النساء (رقم-۲۱۴۷) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ ضرب النساء (رقم-۱۹۸۶)

۳) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الصوم . باب المرأة تصوم بغير إذن زوجها (رقم-۲۴۵۹)واحمد فی المسند: ۸۰/۳

تَقْرَأُ بِسُورَتَيْنِ وَقَدْ نَهَيْتُهَا»

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد خدري ﷺ وايي چې (يوه ورځ) مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې ناست وو، يوه ښځه په بارګاه رسالت کښې حاضره شوه، او عرض يې وکړي چې زما خاوند صفوان ابن معطل، چې زه مونځ کوم، نو ما وهي، [۲] او چې روژه نيسم نو راباندې يې ماتوي، او هغه خپله د سحر مونځ هغه وخت کوي، هر کله چې نمر (يا خو راختو سره نژدې وي يا) راختلی وي، [۳] راوي وايي چې (کوم وخت چې د صفوان ښځې شکايت کولی، هغه وخت) صفوان د حضور ﷺ سره موجود وو، د راوي بيان دی چې حضور ﷺ د صفوان نه د هغه د ښځې د ذکر کړي خبرو په باره کښې پوښتنه وکړه، [۴] نو صفوان اوويل چې يا رسول الله! ﷺ زما د ښځې دا وئيل چې زه کله مونځ کوم، نو ما وهي، د دې وجه دا ده چې دا د مونځ (په يو رکعت کښې يا په دوه رکعاته) کښې دوه (اوږده اوږده) سورتونه وايي، حالانکه ما دا د اوږدو سورتونو د ويلو نه منع کړې ده،

[۱] قَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: لَوْ كَانَتْ سُورَةً وَاحِدَةً لَكَفَتِ النَّاسَ. [۲] قَالَ: وَأَمَّا قَوْلُهَا يُفَطِّرُنِي إِذَا صُمْتُ فَإِنَّهَا تَنْطَلِقُ تَصُومُ وَأَنَا رَجُلٌ شَابٌّ فَلَا أَصْبِرُ [۳] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا تَصُومُ امْرَأَةٌ إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا،

**ترجمه:** [۱] راوي وايي چې رسول الله ﷺ د صفوان د تصديق د پاره وفرمايل چې (د سورة فاتحه نه وروسته) يو سورت وئيل د خلقو د پاره کافي دي، [۲] بيا صفوان اوويل چې او د دې دا وئيل چې کله زه روژه نيسم، نو روژه راباندې ماتوي، د دې وجه دا ده چې دا روژې نيسي (يعني هميشه نفلي روژې نيسي) او زه يو زلمي سړی يم (د شپې ماته د مباشرت موقع نه حاصليږي، خکه د ورځې که زما د جماع خواهش وشي، نو) زه صبر نشم کولی، [۳] حضور ﷺ وفرمايل چې يوه ښځه دې دخپل خاوند د اجازت نه بغير (نفلي) روژه نه نيسي،

[۱] وَأَمَّا قَوْلُهَا إِنِّي لَا أُصَلِّي حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَإِنَّا أَهْلُ بَيْتٍ قَدْ عُرِفَ لَنَا ذٰلِكَ لَا نَكَادُ نَسْتَيْقِظُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، [۲] قَالَ: فَإِذَا اسْتَيْقَظْتَ يَا صَفْوَانُ فَصَلِّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] بيا صفوان اوويل چې د دې دا وئيل چې زه د نمر ختو په وخت مونځ کوم، د دې سبب دا دی چې مونږ د کار او بار والا خلق يو (د شپې تر ډير وخته خپلو کښې تيو او باغونو ته اوبه ورکوو، چې د هغه په وجه په شپه کښې اوده کيدل راته نه حاصليږي) او زمونږ خلقو دا عادت شوی دی چې (مونږ د شپې په آخری حصه کښې اوده کيږو، نو) هغه وخت رابيداره کيږو، هر کله چې نمر (يا خو ختلو ته نژدې وي، يا) ختلی وي، [۲] حضور ﷺ (دا عذر اوريدو سره) وفرمايل چې اې صفوانه! چې کله دې سترګې وغړيږي مونځ کوه، (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل لغات:** - ① قَدْ عُرِفَ لَنَا: زمونږ دا عادت جوړ شوې وو

**تسهیلات:**

**قوله:** يَغْفِرُنِي إِذَا صَلَّيْتُ:

**په حدیث کې ذکر شوې د عبرت واقعه:** -هر خاص او عام له دَدې واقعه نه عبرت اخستل پکار دی چه دَ ژبې ظاهری الفاظ او دَهغې مصداق او حقیقت کښې څومره فرق راځي که یو سړې اجمال هم په اجمال کښې کیخودو سره خبره اوکړی نو په اورېدونکی باندې به څنګه اثر پرېوځي خوچه کله دَدغه اجمال وضاحت اوشي نو هیڅ څه لویه مسئله نه وی مګر دَ خپل مینځ دَ جګړو دَپاره هم دغه کافي وی نن صبا دَ الفاظو دَ ظاهری جوړځ نه خلق کوم تنازعات پیدا کوی بیا خپل مینځ کښې جګړې کوی خوچه دَحقیقت پته اولګی نو هیڅ هم نه وی. بس دا دَ نقل کونکو مهربانی وی.

اوس دلته په حدیث کښې اوګورئی درې شکایتونه دی او څومره لوئی شکایتونه دی چه خاوندئی په مونځ کولو باندې وهی چه روژه نیسی نو ماتوی پرې او دَ سحر مونځ خو هډو کوی نه. نبی کریم چه کله دَدې تفصیل دَهغې دَ خاوند نه معلوم کړو نو حقیقت څه بل څه وو خو نبی کریم په مانځه باندې دَ وهلو شکایت کښې دَ حضرت صفوان ﷺ دَ بی بی په حق کښې فیصله ورکړه او دَ روژې ماتولو په شکایت کښې دَخاوند په حق کښې فیصله ورکړه او دَ سحر په مونځ کښې هم حضرت صفوان ﷺ معذوره ګڼړلو سره دَهغه په حق کښې فیصله ورکړه او بیائی دَ مونځ ترتیب اوخودلو

**[۳۲۷۰] دسخت نه په سخت حکم کښې هم د خاوند اطاعت کوه**

۳۲۷۰ - [۳۱] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ فِي نَفَرٍ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ ② فَجَاءَ بَعِيرٌ فَسَجَدَ لَهُ ③ فَقَالَ أَصْحَابُهُ: يَا رَسُولَ اللهِ تَسْجُدُ لَكَ الْبَهَائِمُ وَالشَّجَرُ فَنَحْنُ أَحَقُّ أَنْ نَسْجُدَ لَكَ

**ترجمه:** ① او د بي بي عائشي ﷺ نه روايت دی، چې (يو ورځ) رسول الله ﷺ د مهاجرينو او د انصارو د يو جماعت په منځ کښې تشريف فرماوو. ② يو اوښ راغلی، او د حضور ﷺ مخې ته سجده کونکي شو (د دي ليدو سره) ③ صحابه وو ﷺ عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ هر کله چې چارپايان او اوني تاسو ته سجده کوي (چې ناپوهه ‌ه دي، او ستا ﷺ د تعظيم او احترام مکلف هم نه دی) نو مونږ (د دوی نه) زيات د دې لائق يو، چې تا ﷺ ته سجده وکړو.

① فَقَالَ: اعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَأَكْرِمُوا أَخَاكُمْ ② وَلَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا، ③ وَلَوْ أَمَرَهَا أَنْ تَنْقُلَ مِنْ جَبَلٍ أَصْفَرَ إِلَى جَبَلٍ أَسْوَدَ وَمِنْ جَبَلٍ أَسْوَدَ إِلَى جَبَلٍ أَبْيَضَ كَانَ يَنْبَغِي لَهَا أَنْ تَفْعَلَهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

۱) اخرجه احمد في المسند: ۶/۷۶

**ترجمه:** ①حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د خپل پروردګار عبادت کوی، او د خپل ورور يعني زما، تعظيم کوی، ②که ما چا ته د غيرالله د سجدې حکم ورکولی شو، نو يقيناً ښځې ته به مې دا حکم ورکړې وو، چې هغه دې خپل خاوند ته سجده کوي، ③که د هغی خاوند هغی ته دا حکم ورکړي، چې هغه دې د زير رنګ د غره نه کانړي پورته کولو سره تور غر ته يوسي، او د تور غره نه کاڼي پورته کولو سره سپين غره ته دې يوسي، نو د هغی ښځې د پاره دا لائق وو، چې هغه د خپل خاوند دا حکم په ځای راوړي. (احمد)

**تسهيلات: قوله:** فَسَجَدَتْهُ:

**نبی کريم ﷺ ته د اوښ سجده کول:** -يعني اوښ دَ خپل خرق عادت په توګه دَ نبی کريم په وړاندې راغلو سجده ئې اوکړه اوښ يوغير مکلف خناور دې اودَ معجزې په توګه داسې شوی دی نو په دې سره دَمکلف انسانانو دَپاره څه داسې قاعده نه شي جوړيدې بيا دَ اوښ دا سجده دَالله تعالی دَپاره وه نبی کريم په منزله دَ قبلې وو اودادَ الله تعالی صرف اوښ ته حکم شوې وو دَ بل چادَپاره ګنجائش نشته دې رسول الله ﷺ منع فرمائيلې ده نوچه کوم خلق نن په قبرونو کښې سجدې لګوی هغوی ډير نادانان او نافرمان دی

**قوله:** وَأَكْرِمُوا أَخَاكُمْ:

**عبادت د الله تعالی او اطاعت د رسول الله صلي الله عليه وسلم:** -نبی کريم دَ تعظيم اواکرام باره کښې اوفرمائيل چه عبادت خو دَالله تعالی حق دې اودَ خپل رور يعنی دَ حضوراکرم ﷺ اکرام تعظيم اوادب کوئی په زړه کښې ماسره محبت ساتنی اوپه ظاهراوباطن کښې زما اطاعت کوئی نبی کريم خو تواضعًا "اخاکم" لفظ استعمالولوسره اشاره اوکړه چه زه هم دَ آدم ؑ دَ اولاد په شان بشر يم خوزما رب ماته نبوت راکړې دې په دې وجه دَ الله تعالی دَ اکرام په رانړاکښې زما اکرام کوئی

علامه طيبی ؒ فرمائی "يعني اکرموامن هوبشرمثلکم ومفرع من صلب ابيکم آدم، واکرموه لما اکرمه الله تعالی" دَدې حديث دَ تشريح دَپاره يوبدعتی حضرت شاه اسماعيل شهيد ؒ ته درخواست اوکړوحضرت شاه صاحب ښکلې تشريح اوليکله وروئی ليکله دَبدعتی نيت ښه نه وو هغه دَ شاه صاحب خلاف يو طوفان راوچت کړوچه شاه صاحب نبی کريم ته مشر رور اووئيل ترننه پورې دَ مطاعن سلسله جاری ده الله تعالی دې دَداسې فتنه خورونکوخلقونه حفاظت اوکړی [ الکاشف ۶/۳۵۷ ]

**قوله:** أَنْ تَنْقُلَ: ای تنقل حجرا:

**په ښځه د خاوند د حکم پوره کولو وجوب:** -يعنی که خاوند ښځې ته حکم اوکړی چه هغه دې يو درون کانړې دَ زيړرنګ دَ غر نه واخلی اودَ تور رنګ غر ته دې يوسی اودَ تور نه دې

واخلی سپین غر ته دې يوسي نودې ښځې له پکاردی چه داکار اوکړی سره دَدې چه په دې کښې څه فائده نشته دې بلکه موقع ده چه دا فضول خاوند ښه اورتلې شی چه دَ يوې مقصد کاردَ پاره يوانسان په تکليف کښې اچوی ليکن دَ شريعت او پيغمبراسلام حکم دې چه ښځه دې دَدې په شان حکم هم منی هغه دې کارته نه ګوری بلکه دَخاوند حکم اواطاعت ته دې ګوری په دې به دې ته ثواب ملاوېږی.

**قوله:** احمرالی مِنْ جَبَلٍ:

**په څېرو کښې د مبالغې حکم:** - دَ غرونودَ دغه خاص رنګونوذکر کول دَ مبالغه طرف ته اشاره کول دی ځکه چه دا قسم دَمختلف رنګونو والاغرونه دَ يوبل نه ډير لرې وی اويوبل سره نيزدې نه وی

**[۳۲۷۱] دکومې ښځې خاوند چه ناراض وي د هغې مونځ په پوره طور سره نه قبليدل**

٣٢٧١-[٣٢] (١) ① وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «ثَلَاثَةٌ لَا تُقْبَلُ لَهُمْ صَلَاةٌ وَلَا تَصْعَدُ لَهُمْ حَسَنَةٌ: ③ الْعَبْدُ الْآبِقُ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى مَوَالِيهِ فَيَضَعَ يَدَهُ فِي أَيْدِيهِمْ، ④ وَالْمَرْأَةُ السَّاخِطُ عَلَيْهَا زَوْجُهَا، ⑤ وَالسَّكْرَانُ حَتَّى يَصْحُوَ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② داسې درې سړي دي، چې د هغوئ مونځ په پوره طور سره نه قبليږي، او نه د هغوئ څه نيکی پورته (يعني الله تعالى ﷻ طرف ته) خي، ③ يو خو تښتيدلي غلام، د څو پورې چې هغه خپلو مالکانو ته واپس راتلو سره د هغوئ په لاس خپل لاس کينږدي (يعني د څو پورې چې وروسته راتلو سره خپل خان مالکانو ته خان حواله نه کړي، او د هغوئ اطاعت شروع نه کړي، د هغه مونځ په پوره طور سره نه قبليږي) ④ دويم هغه ښځه چې د هغې خاوند د هغې نه ناراضه وي. ⑤ او دريم نشه باز، د څو پورې چې په هوش کښې رانشي، دا روايت بيهقي په شعب الايمان کښې نقل کړي دي.

**حل اللغات** - ① لَا تَصْعَدُ: پورته نه خيژي. ② الْعَبْدُ الْآبِقُ: تختيدلې غلام ③ إِلَى مَوَالِيهِ: موالی دَمولی جمع ده آقا ته وائی ④ السَّاخِطُ: ناراض، خفه ⑤ السَّكْرَانُ: نشه باز ⑥ يَصْحُوَ: چه په هوش کښې راشي.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَى مَوَالِيهِ:

**په لفظ د موالی جمع راوړلو کښې نکته:** - دلته په جمع راوړو سره اشاره اوکړه چه دغه غلام له پکاردی چه صرف دَ آقانه بلکه دَ آقادَ اولاد په لاس کښې دې هم لاس ورکړی توبه دې اوکړی چه دَ ده عبادت خراب نه شی او چه دَ وفادرائی ښه اظهاراوشی.

۱) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۸۶۰۰

**قوله**: وَلَا تَصْعَدُ:

**په لفظ د صعود کښې فائده**:- سره دا اشاره ملاويږي چه نيک اعمال پورته خيژي اود الله تعالى بادشاهت او عرش برين نظام پاس دي دلته دا خبره ذهن کښې ساتنې چه په کوم احاديثو کښې خاوندته اعزاز ورکړې شوې دې دهغې نه مراد هغه خاوند دې چه دخپل خالق او مالك مطيع اوفرمانبردار او پرهيزگاره مؤمن وى د فاسق فاجر دا مقام نه دې

**[۲۲۷۲] دبهترين ښځې پيژندګلو**

۳۲۷۲-[۳۳] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قِيلَ لِرَسُولِ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ أَيُّ النِّسَاءِ خَيْرٌ؟ قَالَ: الَّتِي تَسُرُّهُ إِذَا نَظَرَ وَتُطِيعُهُ إِذَا أَمَرَ ۳ وَلَا تُخَالِفُهُ فِي نَفْسِهَا وَلَا مَالِهَا بِمَا يَكْرَهُ»، رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه، ۲ چې کومه ښځه بهتره ده؟ نو حضور ﷺ وفرمايل هغه ښځه چې کله د هغې خاوند هغې ته وګوري، نو هغه يې خوشحاله کړي، او هر کله چې خاوند څه حکم ورکړي، نو هغه په ځای کوی (په شرط د دې چې هغه حکم خلاف شروع نه وي) ۳ او په خپل ذات او خپل مال کښې د هغه خلاف څه داسې خبره نه کوي، چې هغه يې نه خوښوي، دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کښې نقل کړې دې

**تسهيلات**:

**قوله**: وَلَا مَالِهَا:

**د نسبت ښځې طرف ته په کولو کښې دوه توجيهات**:- ① دمال نسبت ښځې طرف ته ځکه شوې دې چه ممکن ده چه دامال په ذاتي توګه د ښځې وی اود هغې خاوند غريب وی نو دا به حقيقي نسبت شي

② اودا هم ممکن ده چه مال خود خاوند وی ليکن د ښځې په تصرف کښې وی نو دا ښځه دومره ايمانداره ده چه د خاوند دمال دخپل مال په شان حفاظت کوی اود خاوند مال د خاوند د مرضئ نه خلاف نه خرج کوی اونه په خپله په هغې کښې خيانت کوی [الكاشف: ۶/۳۵۹]

---

۱) اخرجه النسائي في السنن كتاب الجهاد باب أي النساء خير (رقم-۳۲۳۱)

**[۲۳۷۲] د امانت داري ښځي فضيلت**

[۳۲۷۲-۳۴] (۱) ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «أَرْبَعٌ مَنْ أُعْطِيَهُنَّ فَقَدْ أُعْطِيَ خَيْرَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ: ۳ قَلْبٌ شَاكِرٌ، وَلِسَانٌ ذَاكِرٌ، وَبَدَنٌ عَلَى الْبَلَاءِ صَابِرٌ، ۴ وَزَوْجَةٌ لَا تَبْغِيهِ خَوْنًا فِي نَفْسِهَا وَمَالِهِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ څلور څیزونه داسې دي، چې هغه کوم سړي ته حاصل شي، هغه ته د دین اودنیا خیر نصیب شو ، ۳ اول (د حق تعالی جل جلاله د نعمتونو) شکر ادا کونکی زړه، دويم (په خوشحالي او غم، په هر حالت کښې الله تعالی جل جلاله ) یادونکې ژبه، دریم په بلاګانو (او مصیبتونو) صبر کونکې بدن، ۴ او څلورم هغه ښځه چې په خپل ذات او د خاوند په مال کښې خیانت نه کوي، دا روایت بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کښې نقل کړې دي.

**حل اللغات:** - ① لَا تَبْغِيهِ خَوْنًا: هغه سره خیانت مه کوه.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَرْبَعٌ مَنْ أُعْطِيَهُنَّ فَقَدْ أُعْطِيَ خَيْرَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ

**د څلورو نعمتونو کښې عظمت:** - په حدیث مبارک کښې د څلورو نعمتونو ذکر دي چې چاته دا څلور واړه خصلتونه ورکړې شونو هغه ته د دنیا او آخرت ټول خیرونه ورکړې شو

① همیشه دپاره دالله تعالی شکرګذار وی شکایت نه کوی.

② په هرحالت کښې د الله تعالی ذکر کونکې ژبه ورته الله تعالی ورکړی وی

③ په تکلیفونو او مصیبتونو کښې صبر کونکې وی.

④ چې داسې بی بی ورته الله تعالی ورکړې وی چې ده سره خیانت نه کوی چې دده څخه سوا بل چا سره آشنائی جوړه کړی اوهغه ته د خپل نفس څخه د فائدې اخستلو موقع په لاس ورکړی اودغه شان دده د مال حفاظت هم کوی چې بې خایه ئې خرج کړی.

---

۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث

# [۱۰]بَابُ الْخُلْعِ وَالطَّلَاقِ]

## دَخلع اوطلاق بیان

**خلاصة الباب:-**

**فیه عشرون حدیثاً مشتملة علی ست مسائل:**

① مقدار بدل الخلع: ۱، ۱۷.

② النهی عن بعض أقسام الطلاق:- , في الحیض: ۲، - قبل النکاح: ۸، ۹.

③ طرق الطلاق ثبوتاً ونفیاً: ۱، ۳، ۴، ۵، ۱۰.

④ الزجر بالطلاق والخلع من غیر ضرورة: ۲، ۷، ۱۶، ۲۰.

⑤ الطلاق النافذ وغیر النافذ: ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴.

⑥ عدد الطلاق: ۱۵، ۱۸، ۱۹.

**خلع بفتح الخاء او بالضم کښې فرق:**-باب فتح یفتح نه خلع کله چه دَ خاء فتح سره راشی نودا په لغت کښې دَ یوڅیز دَ ویستلو کولاوولوختمولو اوراښکلو کښې استعمالیږی په خاص توګه دَ بدن نه کپړې او څپلئی کوزولودَپاره استعمالیږی اوکله چه دَ خاء په ضمه او لام په سکون سره وی نودا دَ ازاله زوجیت دَپاره استعمالیږی اوهم دغه خلع ده

**د خلع شرعی تعریف:**-دَدې شرعی تعریف داسې دې "الخلع فراق الرجل امرأته علی عوض" یعنی (ملکیت نکاح ته دَ مال په عوض دَ خلع په لفظ سره زائل کولونوم خلع ده)

**په معنی لغوی او شرعی کښې مناسبت:**-علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه په لغوی اوشرعی معنی کښې دامناسبت دې چه ښځه خاوند دَ یو بل دَپاره په منزله دَ لباس دی ﴿ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ﴾[البقرة: ۲۲۹] اوکله چه ښځې خاوند دَ خلع عمل اوکړو نولکه چه دواړو دَخپل بدن نه کپړې کوزې کړې (والطلاق) داپه خلع باندې عطف دې که چرې خلع دَ فسخ نکاح نوم دې اودَ طلاق نوم نه دې نو په دې باندې دَ طلاق عطف کول واضح اوظاهر دی چه دواړه لفظونه دَ مفهوم په اعتبارسره جدا جدا دی اوعطف صحیح دې اوکه چرې خلع هم یوطلاق دې لکه چه روستو اختلاف راځی نوبیابه لفظ (الطلاق) عطف په عام علی الخاص وی طلاق عام دې اوخلع خاص ده

**د خلع او طلاق حکمت:**-اسلام دَ سهولت او رحمت، دین اوشفقت قانون دې کله ښځه ښه نه وی دکوم په وجه چه دَخاوندژوند دَتکلیفونوتیرولو مجموعه وی نواسلام خاوندته په ښه طریقه باندې دَ طلاق ورکولواختیارورکړې دې اوکله خاوند ښه نه وی نو ښځه دَهغه دَ ظلمونو په میچن اوړه کیږی نواسلام دَدغه ښځې دَ خان خلاصولودَپاره په رضاکارانه توګه

خلع كول يعنى په څه اندازه دمال په عوض د طلاق اخستلو حق ورکړې دې فرق صرف دومره دې چه په طلاق کښې خاوندآزاد دې د ښځې په مرضئى باندې طلاق موقوف نه دې ليکن په خلع کښې د خاوندمرضى باقى ساتلې ده دې دپاره چه د کورنئى مشروالى او د سرو سيادت شل پاتې نه شى سره ددې سهولتونواسلام په تکليف ورکولواو د فساد په بنياد باندې طلاق ورکول ياخلع اخستلو سخت مذمت کړې دې دې دپاره چه د مجبورئى د يوسهولت نه څوك ناجائزه فائده وانخلى

**د خلع طريقه :**-که دښځې خاوند په مينځ کښې اختلاف پيداشى او خاوند ښځې ته طلاق نه ورکوى اوښځه دخپل ځان خلاصولود پاره خاوندته وائى چه ته دومره پيسې واخله اوماپريږده، د مهر پيسې خپل ځان سره حصارې کړه اوما پريږده اوخاوند په جواب کښې وائى چه اود دومره پيسو په بدله کښې تا پريږدم نودا فديه. افتدا اوخلع ده په دې کښې داشرط دې چه د طلاق لفظ به نه استعماليږى که د طلاق لفظ استعمال کړې شو نوطلاق بالمال به ورته وائى

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۳۲۷۴] د ناخوښه خاوند نه طلاق حاصلولى شي

٣٢٧٤—[١] (١) ①عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ «أَنَّ امْرَأَةَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ أَتَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ مَا أَعْتِبُ عَلَيْهِ فِي خُلُقٍ وَلَا دِينٍ ③وَلٰكِنِّي أَكْرَهُ الْكُفْرَ فِي الْإِسْلَامِ!

**ترجمه:** ①حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې د ثابت ابن قيس ﷺ ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه، ②او عرض يي وکړي چې يا رسول الله! ﷺ په ثابت ابن قيس ﷺ ماته غصه نه راځي، او نه د هغه عادات او د هغه په دين کښې څه عيب لګوم، ③ليکن زه په اسلام کښې کفر (يعني کفران د نعمت يا ګناه) نشم خوښولی،

**حل اللغات:** -①مَا أَعْتِبُ عَلَيْهِ: زه په ده باندې عيب نه لګوم

①فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَتَرُدِّينَ عَلَيْهِ حَدِيقَتَهُ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، ②قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: اقْبَلِ الْحَدِيقَةَ وَطَلِّقْهَا تَطْلِيقَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې آيا ته د ثابت ابن قيس ﷺ باغ به (چې هغه تاته په مهر کښې درکړي دي) هغه ته واپس کړي، د ثابت ﷺ ښځې اوويل چې هو، ②رسول الله ﷺ (د دي آوريدو سره) ثابت ﷺ ته وفرمايل چې ته خپل باغ واپس واخله او دي ته يوطلاق ورکړه. (بخاري)

**حل اللغات:** -②أَتَرُدِّينَ: آيا ته به واپس کړې؟

---

١) اخرجه البخارى فى كتاب الطلاق/باب الخلع وكيف الطلاق فيه (رقم-٥٢٧٣) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: ما جاء فى الخلع(رقم-٣٤٦٣) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ المختلعة تأخذ ما أعطاها (رقم-٢٠٥٦) واحمد فى المسند: ٣/٤

**تسهيلات:**

**قوله: اَقْبَلِ الْحَدِيْقَةَ وَطَلِّقْهَا تَطْلِيْقَةً:**

**په خلع سره د نكاح په فسخ كيدو كښې مذاهب:-**

① د امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام شافعي رحمه الله دَ مشهور قول مطابق خلع كولو سره به نكاح فسخ شي او دَ ښځې او خاوند دواړو جدائي به اوشي

② د امام مالك رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدَ خلع په عمل سره به په ښځه باندې يو طلاق بائن واقع شي. خلاصه دا چه امام احمد رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيز خلع فسخ نكاح ده او دَ امام مالك رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز طلاق بائن دې

**داول فريق اول دليل:-** ① ﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ۪ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ؕ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّاۤ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْئًا اِلَّاۤ اَنْ يَّخَافَاۤ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ۙ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ ؕ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ؕ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَاۤ اَنْ يَّتَرَاجَعَاۤ اِنْ ظَنَّاۤ اَنْ يُّقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝﴾ آيت دې. طرز دَ استدلال داسې دې چه په آيت كښې اول دَ دوو طلاقو ذكر دې او بيا ﴿فَاِنْ طَلَّقَهَا﴾ نه دريم او آخرى طلاق بيان كړې شوې دې او س كه چرې په مينځ كښې ﴿فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ ؕ﴾ دَ فديه والا دَ خلع صورت هم طلاق واحد شمير كړې شي نو په اسلام كښې به دَ دريو په ځائي څلور طلاقه شي او دا باطل دې لهذا خلع په طلاق كښې شميرل هم باطل دى

**داول فريق د اول دليل جواب:-** دلته خلع جدا طلاق نه دې بلكه قرآن دَ ﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ﴾ دوه صورتونه بيان كړى دى. يو طلاق بغيردَ عوض دې دكوم ذكر چه ﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ﴾ كښې دې او يو طلاق بالعوض دې كوم ته چه خلع وائى دادَ جدا طلاق ذكر نه دې بلكه ﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ﴾ په ضمن كښې يو قسم طلاق ذكر دې دا دوه طلاقونه شو او ﴿فَاِنْ طَلَّقَهَا﴾ كښې دريم طلاق بيان كړې شوې دې

**داول فريق دويم دليل:-** دَ حضرت ثابت بن قيس دَ ښځې قصه د دوى مستدل دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ هغې عدت صرف يو حيض اوګرځولو ((فجعل عدتها حيضة)) دَ ابوداؤد شريف دَ دې روايت نه معلومه شوه چه دَ خلع نه پس حضور پاك دَ حضرت ثابت رضي الله عنه دَ ښځې عدت يو حيض اوګرځولو او په طلاق كښې يو حيض نه بلكه درې حيض عدت دَ پاره ضرورى دى معلومه شوه چه خلع طلاق نه بلكه فسخ نكاح ده

**داول فريق د دويم دليل جواب:-** اوكوم چه په حديث كښې ((حيضة)) لفظ راغلې دې نو دادَ جنس دَ پاره دې كوم چه په قليل او كثير باندې ياد ولې شى. لهذا په دې سره دَ دريو حيضو

نفي نه کیږي حضرت شاه انورشاه کشمیري رحمه الله فرمائي د يوحيض چه په حديث کښې کوم ذکر راغلې دې داهغه حيض دې چه دکوم د تيرولو د پاره ښځې ته ونيلې شوی دې چه هغه دې د خاوند په کور کښې کم نه کم دا تيرکړي دې نه علاوه د دوو حيض تيرولو د پاره دې خپل کورته لاړه شي

**د دويم فريق دليل:-** ① د حضرت ثابت بن قيس رضي الله عنه د ښځې د واقعه نه استدلال کړې دې چه په بخاري کښې هم ذکر دې او د مشکوة شريف په دې صفحه باندې هم دې چه نبی کریم د هغې خاوند ته اوفرمائيل چه دا باغ کوم چه ستا ښځې درکړې دې دا قبول کړه او ښځې ته يو طلاق ورکړه داحضرات فرمائي که چرې داخلع فسخ نکاح وې نو د طلاق ورکولو څه ضرورت وو؟ دې حضراتو د دې روايت نه هم استدلال کړې دې ((ان النبی ﷺ جعل الخلع تطليقة واحدة رواه سعيد بن المسيب مرسلا كذا في مصنف ابن ابی شيبه))

**قوله:** أَكْرَهُ الْكُفْرَ فِي الْإِسْلَامِ:

**د اكره الكفر فی الاسلام مطلب:-** يعني زما هغې سره د ژړه مينه نه ده د کوم په وجه چه هغه په طبعي توګه زما ناخوښه دې. په څه شرعي وجه باندې خراب نه دې نه په هغه کښې څه شرعي عيب دې ليکن زما خوښ نه دې اوچونکه هغه زما خاوند دې د کوم نه چه نفرت او کرکه کول حرام دی. لهذا په اسلام کښې اوسيدو سره دا غير اسلامي خبرې او ناشکري زه نه شم برداشت کولې هسې نه چه زما ايمان خراب شي. نو د کفر نه کفران نعمت مراد اخستې شي. ونيلې شي چه د حضرت ثابت بن قيس رضي الله عنه قد ټيټ وو او شکل ئې هم تك سپين نه وو او د هغه بی بی چه د هغې نوم جميله يا حبيبه وو ښائسته وه په دې وجه د دواړو جوړ نامناسب او بې جوړ وو.

### [۲۲۷۵] د طلاق تعريف او د هغې قسمونه

[۲] (۱) ① ((وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَةً لَهُ وَهِيَ حَائِضٌ ② فَذَكَرَ عُمَرُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ - صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَتَغَيَّظَ فِيهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ ثُمَّ قَالَ: لِيُرَاجِعْهَا ثُمَّ يُمْسِكْهَا، ثُمَّ تَحِيضُ فَتَطْهُرُ، ④ فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِي أَمَرَ اللّٰهُ أَنْ تُطَلَّقَ لَهَا النِّسَاءُ)). ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ: ((مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا طَاهِرًا أَوْ حَامِلًا)) .مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب سورة الطلاق (رقم-۴۹۰۸) ومسلم في - كتاب الطلاق/باب تحريم طلاق الحائض بغير رضاها، وأنه لو خالف وقع الطلاق، ويؤمر برجعتها (رقم-۱ - (۱۴۷۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الطلاق/باب في طلاق السنة (رقم-۲۱۷۹) والترمذي في كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في طلاق السنة (رقم-۱۱۷۵) والنسائي في كتاب الجهاد/باب: وقت الطلاق للعدة التي أمر الله عز وجل أن تطلق لها النساء (رقم-۳۳۸۹) وابن ماجه في كتاب النكاح/ باب طلاق السنة (رقم-۲۰۱۹) ومالك في الموطا كتاب الطلاق باب ما جاء في الأقراء وعدة الطلاق وطلاق الحائض (رقم-۵۳) واحمد في المسند:۲۶/۲

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ په باره کښې روایت دی. چې هغه د حیض په حالت کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي، [۲] حضرت عمر ﷺ د دې ذکر حضور ﷺ ته وکړي، حضور ﷺ په دې واقعه سره ډیر په غصه شو ، [۳] او وې وفرمایل چې (د دې گناه د تدارک کولو د پاره) عبدالله لره پکار دی چې هغه دې ښځې ته رجوع وکړي (یعنې مثلاً داسې اووائي، چې ما دا په خپله نکاح کښې واپس واخستله) او بیا یې د خان سره وساتي. ددې پورې چې هغه پاکه شي، او بیا چې هغه حائضه شي، او د هغه نه وروسته پاکه شي، او که طلاق ورکول ضروري وي، نو د پاکې په حالت کښې دې هغې لره طلاق ورکړي، مخکې د دې نه چې هغې سره جماع وکړي، [۴] نو دا هغه عدت دی چې د هغه په باره کښې الله تعالیٰ ﷻ حکم ورکړي دی، چې په دې کښې دې ښخولره طلاق ورکړی شي. [۵] په یو روایت کښې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ حضرت عمر ﷺ ته وفرمایل عبدالله ته حکم ورکړه. چې هغه دې ښځې ته رجوع وکړي، او بیا هغه لره د پاکې په حالت کښې (په شرط د دې چې هغه حامله نه وي، او حیض ورته هم نه وی) یا د حمل په حالت کښې دې طلاق ورکړي. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَتَغَيَّظَ: غصه شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** طَلَّقَ امْرَأَةً لَهُ:

**د طلاق لغوی معنی:** - طلاق په معنی دَ تطليق دې لکه چه سلام دَ تسليم په معنی کښې دې په لغت کښې دَ طلاق معنی داده "حَلُّ قَيْدٍ حِسِّيٍّ أَوْمَعْنَوِيٍّ" یعنی دَ ظاهری یا معنوی ترون نه خلاصولو نوم طلاق دې دَ قید ظاهری مثال لکه چه دَ چا په خپه کښې زنځیرونه اچولې شوی دی اودَ قید معنوی مثال لکه دَ نکاح دَ وجې نه په ښځه باندې غیرمرئی وغیره حسی قید لګی

**د طلاق اصطلاحی تعریف:** - دَ فقهاء کرامو په اصطلاح کښې دَ طلاق تعریف داسې دې "الطلاق ازالة النکاح اونقص حِلِّهِ" یعنی دَ نکاح قید بالکل ختمول یا دَ هغې حلت کمول کله چه یوسړې ښځې ته مغلظ طلاق ورکوی نودابالکلیه دَنکاح قید ختموی اوس وطی حرام ده او که چرې طلاق رجعی ورکوی نودَ نکاح دَحلت صورت کښې نقصان کوی په دې صورت کښې سره دَدې چه وطی جائز ده لیکن د رجوع کولو په صورت کښې به دَ بیا دریو طلاقو په خانې دَ دوو مالك کیږی هم دغه په حلت کښې کمې دې. خلاصه دا چه په لغت کښې طلاق ته دَ قید اوچتول ونیلی شوی دی او اصطلاح کښې دَ نکاح قید دَ مخصوص الفاظو په ذریعه دَ ختمولونوم طلاق دې.

**دَ طلاق درې قسمونه :-**

**احسن :-** ① دادې چه يوخل طلاق په داسې پاك حالت كښې وركړې شى په كوم كښې چه جماع نه وى كړې بيا درې مياشتې عدت تيرولوپورې رجوع او جماع نه اجتناب اوكړې شى دعدت په تيريدو به ښځه بائنه شى دا ځكه احسن دې چه خاوندته به هروخت دَ رجوع اختيار وى دَ سوچ دَپاره به ورته اوږده موقع ملاؤ شى اودَ طلاق مكروه الفاظ به هم دَ كم نه كم استعماليږى

**حسن :-** ② دې ته وائى چه په طهر كښې خپلې ښځې ته يوطلاق وركړى په دويم طهر كښې دويم طلاق او په دريم طهر كښې دريم طلاق وركړى دغه شان په ښځه باندې درې طلاق واقع شو امام مالك رحمه الله فرمائى چه دا صورت حسن نه دې ځكه چه كله په يوطلاق وركولوسره ښځه جدا كيدې شى نودا ابغض المباحات درې ځل پورې دَ استعمالولوڅه ضرورت دې؟ جمهور فرمائى چه دَ شرعى نصوص په موجودګئى كښې ستاسو قياس نه شى چليدې

**بدعى :-** ③ طلاق بدعى دې هغه داسې چه په يوطهر كښې درې طلاقه هم په يومجلس كښې وركړى يا په جدا جدا وختونو كښې وركړى يا دَحيض په حالت كښې ښځې ته طلاق وركړى دا بدعى طلاق دې دغه شان بدعى طلاق وركولوسره به سړې ګناهګار شى مګر طلاق به واقع كيږى

**د طلاق بدعي په حكم كښې اختلاف :-** ① امام شافعى رحمه الله فرمائى چه طلاق بدعى هغه دې چه دَحيض په حالت كښې وركړې شى كه په طهر كښې وركړې شى نودغه بدعى نه دې كه هغه په يومجلس كښې درې طلاق په يو ځائى وركړى يا جدا جدا ټول جائز دى ځكه چه طلاق امر مشروع دې ممنوع نه دې

② احناف فرمائى چه نكاح په مصالح دينيه او دنيويه باندې مشتمل ده اوطلاق وركولوسره دا مصالح ختميږى لهذا طلاق دَ سختې مجبورئى په حالت كښې وركول پكار دى اوهغه هم داسې وركول پكار دى چه په وخت دَ خپيمانتيا كښې دَ خاوند په لاس كښې څه اختيار باقى وى په كوم سره چه به دَهغه پريشانى لرې شى په دې وجه طلاق چه څومره كم وركړې شى نو هم دومره بهتر ده اوكثرت بدعت دې

**د طلاق په دويم اعتبار سره تقسيم :-** دَ طلاق په قسمونو كښې بعضې شارحينو حضراتو مختصر الفاظوسره داسې تقسيم كړې دې چه طلاق په دوه قسمه دې سنى او بدعى بيا سنى په دوقسمه دې احسن او حسن نوټول درې قسمونه جوړشو

**قوله:** "فَتَغَيَّظَ فيه رسول الله":

**دَ حيض په حالت کښې دَ طلاق ورکولو حکم:** - نبي کريم خکه غصه شو چه دَ حيض په حالت کښې طلاق ورکول حرام دي خکه چه په حالت دَ حيض کښې بالاجماع ګناه او بدعت دي دَ ائمه اربعه او سلف صالحين په دې کښې دَهيڅ قسم اختلاف نشته دي

**د غير مقلدينو مذهب:** - البته دَ غيرمقلدينو مسلك دې که چا په حالت دَ حيض کښې طلاق ورکړو نوطلاق به نه واقع کيږي

**په حالت حيض کښې د طلاق په واقع کيدو دليل:** - جمهورانمه دَ زير نظر حضرت ابن عمر ﷺ دَ روايت نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه دَحضرت عمرفاروق ﷺ په شکايت باندې نبي کريم هغه ته اوفرمائيل خپل خوني ته حکم ورکړه چه خپلې ښځې ته رجوع اوکړي "مره فليراجعها" اوس دا خبره واضح ده چه رجوع متفرع ده په طلاق باندې چه طلاق پريوخي نوبيا هله رجوع کيږي ګني دَ رجوع ضرورت څه دې؟ دې نه معلومه شوه چه سره دَدې چه دَ حيض په حالت کښې طلاق ورکول ګناه ده ليکن که چا ورکړونوطلاق به واقع کيږي پاتې شوه داخبره چه دې حيض سره متصل کوم طهردې په هغې کښې دَ طلاق ورکولو په ځائې نبي کريم دا ولې اوفرمائيل چه راتلونکي حيض نه پس چه کوم طهرراځي په هغې کښې طلاق ورکړئ. دَدې حکمت علماء کرامو دا خودلې دې په دې تاخيرسره کيدې شي چه دخاوندد طلاق اراده بدله شي يا دَ سزاپه توګه ئې مؤخرکړي چه تا تادي کولوسره په حيض کښې طلاق ورکړو. اوس دَ يوطهر نه بلکه دَ دوو طهرانتظار اوکړه بهرحال دا يوه تنبيه ده کومه چه اولى ده واجب نه ده.

**[۳۲۷۶] ښځې له دَ طلاق اختيار ورکول**

۳۲۷۶ - [۳] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «خَيَّرَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاخْتَرْنَا اللهَ وَرَسُولَهُ ② فَلَمْ يَعُدَّ ذَلِكَ عَلَيْنَا شَيْئًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ مونږ ته اختيار راکړی وو رکه تاسو د دنيا او د دنيا د زينت او آسائش طلبګاري يئ ، نو راځي چې څه مال درکولو سره تاسو پريږدم. ② او که تاسو د الله ﷻ او د الله ﷻ د رسول او د دار آخرت طبګاری يئ ، نو ستاسو د پاره د الله ﷻ سره بې شميره اجر او عظيم ثواب دی، نو مونږ د دنيا او د دنيا

۱) اخرجه البخاري في كتاب الطلاق/باب من خير نساء، (رقم-۵۲۶۲) ومسلم في كتاب السلام/باب التعوذ من شيطان الوسوسة في الصلاة(۶۸ - (۲۲۰۳) واخرجه ابو داود في السنن كتاب الطلاق/باب في الخيار (رقم-۲۲۰۳) والترمذي في كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في طلاق السنة (رقم-۱۱۷۶) والنسائي في كتاب النكاح/باب: في المخيرة تختار زوجها (رقم-۳۴۴۱) وابن ماجه في كتاب النكاح/ باب الرجل يخير امرأته (رقم-۲۰۵۲) واحمد في المسند: ۴۵/۶

د زينت او آسائش په مقابله کښې ، الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ اختيار کړي، او حضور ﷺ دا اختيار زمونږ د پاره (د طلاق په اقسامو کښې څه قسم لکه يو طلاق يا دوه طلاق يا رجعي يا بائن) هيڅ هم اختيار نه کړی، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① خَيَّرَنَا: اختيار ئې راکړو مونږ ته. ② - فَاخْتَرْنَا: نو اختيار کړو مونږ. ③ فَلَمْ يَعُدَّ: نو شمير ئې نه کړو.

**تسهيلات: قوله:** فَاخْتَرْنَا اللهَ:

**د حديث پس منظر:** - حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه نبی کريم مونږ ته دَ طلاق اختيار راکړې وو مونږ الله تعالی اودَ هغه رسول ﷺ اختيار کړو اوطلاق مو اختيار نه کړو صورت حال داسې دې چه که يوسړې خپلې ښځې ته داسې اووائی چه ته خپل نفس اختيار کړه يا ما اختيار کړه. اوس که چرې ښځې خپل خان اختيار نه کړو بلکه خاوند ئې اختيار کړو نو په دې صورت کښې به هيڅ طلاق نه واقع کيږی ځکه چه ښځې خپل حق او اختيار استعمال نه کړو. نودَ جمهورو په نيز هيڅ نشته او حضرت علی رضي الله عنه اوحضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه طرف ته منسوب دی چه هغوی صرف دَ اختيار ورکولو سره دَ طلاق رجعی يا بائن واقع کيدو قائل وو. حضرت عائشه رضي الله عنها کيدې شی هم دَدې حضراتو دَ خيال طرف ته اشاره فرمائيلې ده چه صرف اختيار ورکولو سره هيڅ نه کيږی.

**د لفظ اختاري په حکم کښې مذاهب:** -

① که چرې ښځې خپل خان او طلاق اختيار کړو نو طلاق به واقع شی. البته دَ امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نيز به طلاق رجعی واقع شی

② امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه طلاق بائن واقع کيږی

③ دَ امام مالک رحمه الله په نيزبه درې طلاق پريوځی

**[۳۲۷۷] څه څيز په ځان حرامولو سره کفاره لازميږی**

۳۲۷۷ - [۴] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ② فِي الْحَرَامِ يُكَفِّرُ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی، هغه اوويل ② چې (څه شی) حرام کولو باندې به کفاره ورکوي، او په دې سلسله کښې ستاسو د پاره د رسول الله ﷺ پيروي بهتره ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُكَفِّرُ: کفاره به ورکولې شی

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب {يا ايها النبی لم تحرم ما احل الله لک تبتغی مرضاة ازواجک والله غفور رحيم} (رقم-۴۹۱۱) ومسلم فی کتاب الطلاق/باب وجوب الکفارة علی من حرم امراته. ولم ينو الطلاق (رقم-۱۸ - (۱۴۷۳) وابن ماجه فی کتاب النکاح/باب الحرام (رقم-۲۰۷۳)

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ: فِي الْحَرَامِ يُكَفَّرُ:

**يو څيز په ځان باندې د حراملو تفصيل:** -يعنى كه يوسړې څه څيز په خپل ځان باندې حرام كړى نوهغه څيز خو حلال دې او حلال به پاتې وى البته حرام كونكې به د قسم كفاره هغه وخت اداكوى كله چه هغه دغه څيز استعمال كړو كه هغه څيز فى نفسه حلال وى اوكه حرام وى مثلاً چا د قسم په نيت سره دا اووئيل چه شراب په ما باندې حرام دى اود هغه نيت دخبر وركولونه وو بلكه قسم ئى كړې وو نوكه اوس هغه شراب اوڅكل نود قسم كفاره به لازم وى سره د دې چه شراب څكل حرام دى. كه چرې چا خپلې ښځې ته اووئيل چه ته په ما باندې حرامه ئى نودابه ايلاء شى دكوم تفصيل چه د ايلاء په ابواب كښې دې اوكه چا اووئيل چه په ما باندې د الله تعالى حلال كړې شوى ټول څيزونه حرام دى. نو په مظاهرحق كښې ليكلى دى چه فتوىٰ هم دغه ده چه داسې وئيلوسره د هغه ښ څه طلاق واقع كيږى سره د دې چه هغه د طلاق نيت نه وى كړې. د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هم دغه مسلك دې اود ائمه احناف هم دغه مسلك دې. په آيت كښې هغه واقعه طرف ته اشاره ده چه نبى كريم په خپل ځان باندې شات حرام كړې وو بيا نبى كريم قسم ماتولوسره د قسم كفاره اداكړه راتلونكى حديث كښې په تفصيل سره دغه واقعه راخى.

**[۲۳۷۸] دَشاتوڅكلو واقعه**

۳۲۷۸-[۵] ( ) ⟨۱⟩ «وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَشَرِبَ عِنْدَهَا عَسَلًا ⟨۲⟩ فَتَوَاصَيْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ أَنَّ أَيَّتَنَا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⟨۳⟩ فَلْتَقُلْ إِنِّي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ مَغَافِيرَ أَكَلْتَ مَغَافِيرَ؟ ⟨۴⟩ فَدَخَلَ عَلَى إِحْدَاهُمَا فَقَالَتْ لَهُ ذَلِكَ فَقَالَ:

**ترجمه:** ⟨۱⟩ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې نبى كريم ﷺ به (خپلې يوې بي بي) د زينب بنت حجش رضي الله عنها سره ايساريدلو، او هلته به يې عسل (شهد) څكل (يوه ورځ) ⟨۲⟩ ما او حفصې رضي الله عنها په خپلو كښې دا اوويل كه نبى كريم ﷺ په مونږ كښې ، هري يوي ته تشريف راوړو، ⟨۳⟩ نو هغه دي حضور ﷺ ته دا اووائي، چې ستا ﷺ د خلي نه د مغافيرو بوى راځي، آيا تا ﷺ مغافير خوړلي دي؟ ⟨۴⟩ هر كله چې په هغوئ دواړو كښې يوې (يعنې بي بي عائشې رضي الله عنها يا بي بي حفصې رضي الله عنها) ته يې تشريف راوړو، نو هغې دغه شان ووېل،

---

۱ ) اخرجه البخارى فى كتاب تفسير القرآن/باب {يا أيها النبى لم تحرم ما أحل الله لک تبتغى مرضاة أزواجک والله غفور رحيم} (رقم-۴۹۱۲) ومسلم فى كتاب الطلاق/باب وجوب الكفارة على من حرم امرأته. ولم ينو الطلاق (رقم-۲۰ - (۱۴۷۴) واخرجه ابو داود فى السنن كتاب الأشربة/باب فى شراب العسل (رقم-۳۷۱۴) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: تأويل هذه الآية على وجه آخر (رقم-۳۴۲۱)

[۱] لَا بَأْسَ شَرِبْتُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَلَنْ أَعُودَ لَهُ وَقَدْ حَلَفْتُ لَا تُخْبِرِي بِذٰلِكِ أَحَدًا، [۲] يَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِهِ فَنَزَلَتْ ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاةَ أَزْوَاجِكَ﴾ [التحريم: ۱] الْآيَةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** [۱] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې هيڅ خبره نشته، ما د زينب بنت حجش ﷷ سره عسل (شهد) څکلي دي، اوس به زه هيڅ کله عسل (شهد) نه څکم، ما قسم آخستلو دی. ليکن ته چاته دا خبره مه کوه (چې په دې سره د زينب ﷷ دل شکني ونشي، چې اوس به زه د هغې سره عسل (شهد) نه څکم) او د دې نه (يعني عسل (شهد) په خان د حرامولو نه [۲] د حضور ﷺ مقصد د خپلو بيبيانو خوشحالول وو، په دې خبره دا آيت نازل شو يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ، الآية (يعني اې نبي ته محض د خپلو بيبيانو د خوشحالولو د پاره په خپل ځان هغه څيز ولي حراموی کوم چې الله ﷻ ستا د پاره حلال کړي دي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** - (۱) فَتَوَاصَيْتُ: وصيت، مشوره اوکړه، (۲) مَغَافِيرَ: دا د مغفور جمع ده د لاشوړه وغيره څه ونې د ميوې نوم دې چه د ګوند په شان وی د دې بوئی خراب وی. (۳) فَلَنْ أَعُودَ لَهُ: زه به دا دوباره نه کوم . بيا به شهد نه څکم.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَتَوَاصَيْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ

**د يوې بی بی خلاف د دوه بيبيانو خپلو کښې منصوبه جوړول:** - نبی کريم ﷺ به چونکه فرښتو سره خبرې کولې په دې وجه به ئی د خلې مبارکې د بوئی ډير خيال ساتلو د ازواج مطهرات نه حضرت زينب بنت جحش کره د مازيګر په وخت به نبی کريم ﷺ تشريف اوړلو حضرت زينب ﷷ به په نبی کريم ﷺ باندې شات څکل د نبی کريم ﷺ شات ډير خوښ وو په حضرت عائشه ﷷ باندې دا فراق اود حضرت زينب ﷷ کره ترديره وخته پورې کيناستل ګران تيريدل نو حضرت حفصه ﷷ سره ئی مشوره اوکړه او يوه منصوبه ئی تياره کړه چه مونږ دواړه به وايو ستاسو د خلې نه د مغافير بوئی راځی نودواړو داسې اوکړه نبی کريم ﷺ اووئيل چه ما خو مغافير نه دی خوړلې البته شات مې څکلی دی هغوی ونيل چه اوکيدې شی چه د شاتو مچئی د دغه ميوې نه رس راښکلې وی اوراوړلوسره ئی په شاتوکښې اچولې وی د کوم اثر چه په شاتوکښې راغلی وی داهم داسې اوږده مفروضه وه بهرحال حضوراکرم ﷺ شات په خان باندې حرام کړل الله تعالی ورته د قسم د کفارې اداکولوحکم ورکړو د حضرت عائشه ﷷ او حضرت حفصه ﷷ دا منصوبه چونکه کورنئ حساس معامله وه په دې وجه الله تعالی په ډيرو کلکوالفاظوسره تنبيه اوفرمائيله که چرې تاسو توبه اونه کړه نوپادساتئ الله تعالی خپل نبی سره دې بلکه جبرائيل آمين هم

نبی سره اوتول نیکان صالحان مسلمانان هم نبی سره دی خیال کونی دَ نبی دَپاره هرقسم ښیبانې موجود دی دَښخوهیڅ کمې نه دې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۲۷۹] بلا ضرورته د طلاق غوښتونکي ښځې په حق کښې وعيد

۳۲۷۹–[۲] (۱) ۱ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ «أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلَاقًا فِي غَيْرِ مَا بَأْسٍ ۳ فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ثوبان ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کومه ښځه چې د خپل خاوندنه بې ضرورته طلاق غواړي، ۳ په هغې به د جنت بوی حرام وي (يعني هر کله چې په ميدان حشر کښې د الله تعالى ﷻ نيک او خواږه بنده ګانو ته د جنت خوشبويي رسيږي، نودا ښځه به ددې خوشبونه محرومه وي) احمد، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي

**حل اللغات:** - ① غَيْرِ مَا بَأْسٍ: بې ضرورته،

**تسهيلات:** **قوله:** فِي غَيْرِ مَا بَأْسٍ:

**دباس مفهوم:** - حديث الباب کښې بأس نه مراد سختي ده. يعنى بغير د څه شدت او ضرورت نه د طلاق مطالبه کول ، په دې جمله کښې ما زائده دې

**قوله:** فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ:

**د خوشبوئي نه محسوسولو په مفهوم کښې درې اقوال:** -

① د جنت بوئې نه محسسول دوعيد او زورنې په طور دې

② مطلب دا چې د طلاق مطالبه کوؤنکې به دجنت خوشبو هم بوئی نه کړې دا مطلب زياد راجح ده

③ يا لکه څنګه چې نيکو عملونو والا به د خوشبو نه فائده اخلی داشان به بغير د څه ضرورت نه دطلاق مطالبه کوؤنکې ددې خوشبو نه فائد نشی اخستې لکه څنګه چې د چا زکام وی هغه که په پوزه باندې ګل کيږدی نو بيا هم هغه ته فائده نه رسی .

### [۲۲۸۰] طلاق څه ښه څيز نه دې

۳۲۸۰–[۷] (۲) ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «أَبْغَضُ الْحَلَالِ إِلَى اللهِ الطَّلَاقُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

۱) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الطلاق/باب فى الخلع (رقم-۲۲۲۶) والترمذى فى كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المختلعات (رقم-۱۱۸۷) وابن ما جه فى كتاب النكاح/ كراهية الخلع للمرأة (رقم-۲۰۵۵) واحمد فى المسند: ۲۷۷/۵

۲) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الطلاق/باب فى كراهية الطلاق (رقم-۲۱۷۸) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ الحامل المتوفى عنها زوجها إذا وضعت حلت للأزواج (رقم-۲۰۲۸)

**ترجمه:** [۱] د حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دی چې نبی کريم ﷺ وفرمايل [۲] په مباح څيزونو کښې د الله ﷻ په نزد مبغوض ترين شی (يعني د ټولو نه خراب) طلاق دی. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَبْغَضُ الْحَلَالِ:

**طلاق ته د ابغض الحلال وئيلو وجوهات:** - ① چه يو څيز حلال دې نو هغه څنګه مبغوض ګرځولې شی څکه چه حلال خوجائزوی؟ نو د دې دا ده چه دلته دَ حلال لفظ دَ حرام په مقابله کښې وئيلې شوې دې چه طلاق حرام نه دې حلال دې. اوس دَ حلال ډيرې درجې دی که دَ واجب درجه وی که دَ سنت که دَ مباح درجه وی اوکه خلاف اولی يا دَ ناخوښه مکروه درجه وی دا ټول مراحل دَ حلال لاندې راځی لهذا دلته فی نفسه دَ حلال کيدو باوجود دا فعل مبغوض ګرځولې شوې دې.

② سره دَدې چه طلاق ورکول حلال اومباح دی ليکن دَالله تعالى په نيز مبغوض اومکروه دې او ډيرداسې څيزونه اومثالونه موجود دی چه يو څيز مکروه اوناخوښه ګڼرلې شی ليکن هغه مباح اوحلال وی مثلاً فرض مونځ دَ شرعی عذر نه بغيرپه کورکښې کول يا په غصب شوې زمکه باندې مونځ کول داسره دَدې چه مباح دی اودَفرض مونځ نه غاړه خلاصيږی خو ولې سره دَدې مکروه اوناخوښه دې.

**[۲۲۸۱] دَ نکاح نه وړاندې دَ طلاق مسئله**

۳۲۸۰-[۸] (۱) [۱] عَنْ عَلِيٍّ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ: «لَا طَلَاقَ قَبْلَ نِكَاحٍ، وَلَا عَتَاقَ إِلَّا بَعْدَ مِلْكٍ، وَلَا وِصَالَ فِي صِيَامٍ، [۳] وَلَا يُتْمَ بَعْدَ احْتِلَامٍ، وَلَا رَضَاعَ بَعْدَ فِطَامٍ، وَلَا صَمْتَ يَوْمٍ إِلَى اللَّيْلِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي ﷺ د نبی کريم ﷺ نه نقل کوي، [۲] چې حضور وفرمايل د نکاح نه مخکې طلاق نه کيږی .د مالک کيدو نه مخکې غلام آزاد کولی نسی، او د وصال روژې (يعني د شپې افطار کولو بغير مسلسل روژې نيول) جائز نه دی، دا يواځی د حضور ﷺ په خصائصو کښې وو. او يواځی د حضور ﷺ د پاره جائز وو) [۳] د بالغ کيدو نه وروسته څوک يتيم نه وي (يعني د چا چې مور پلار نه وو. هغه چې بالغ شي، نو هغه ته به يتيم نشي ويل کيدی)، د پينو څکلو د مودې نه وروسته يې څکل په رضاعت کښې شامل نه دي (يعني د پينو څکلو موده دوه يا دوه نيم کاله ده)، او د پينو څکلو په سبب چې حرمتِ نکاح وي، هغه د دې مودې نه وروسته د پينو څکلو سره نه ثابتيږي، او

۱) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ۲۳۵۰

تو له ورځ چپ پاتې كيدل جائز نه دى (يعني د دې هيڅ ثواب نشته) شرح السنه

**حل اللغات** - ①وِصَالَ: پيوست د شپې افطار كولو نه بغير مسلسل روژې نيولو ته صوم وصال وائي ②وَلَايُتْمَ: يتيم والي نشته ③بِطَامِ: تې نه پريكول. په ماشوم باندې د مور خپل پې بندول.

④صُمْتَ: چپوالي، خاموش پاتې كيدل

**تسهيلات:**

**قوله: لَاطَلَاقَ قَبْلَ نِكَاحٍ:**

**د طلاق دوه قسمونه:** - ① **تنجيزي:** - طلاق تنجيري دَدې مطلب دادې چه طلاق فوري توګه باندې دَ څه شرط نه بغير واقع كړي.

**مثال:** - دَ يوې ښځې سره دَنكاح كولونه وړاندې تنجيزي طلاق دَ هيچا په نيزجائزنه دې مثلاً يوسړې يوپردئي ښځې ته وائي هغه په ما باندې طلاقه ده داكلام په اتفاق سره لغو دې.

② طلاق بالشرط دې چه يوشرط سره مشروط اومعلق وي

**د معلق بالشرط طلاق دوه قسمونه:** - ① په يوقسم كښې اضافت اونسبت دَ نكاح دَخپل ملك طرف ته نه وي بلكه غير ملك طرف ته وي. مثلاً يوسړې وائي كه چرې فلانكې ښځې نكاح اوكړه نوهغه طلاقه دې طلاقه وي. نودا طلاق لغو دې.

كه چرې روستوني نكاح اوكړه نوطلاق به نه واقع كيږي خكه چې طلاق په خپل محل كښې نه دې واقع شوې.

② په دې كښې سرې دَ نكاح او طلاق اضافت خپل ملك طرف ته كوي او وائي چه (ان نكحتك فأنت طالق اوان نكحتُ فلانة فهي طالق) په دې صورت كښې دَفقها، كرامو اختلاف دې

**د طلاق قبل النكاح په حكم كښې مذاهب:** -

① دَ جمهورو په نيزدا هم لغو دې څكه چه داقبل النكاح طلاق دې نومحل طلاق نشته نو دا وقوع طلاق هم نه دې.

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي كه په دې صورت كښې محل صالح نه دې نوتيك ده چه طلاق نه دې ليكن څنګه چه محل صالح اوشي نوطلاق به كيږي

**داول فريق دليل:** - زيربحث حديث د دوى مستدل دې په كوم كښې چه د لاطلاق قبل نكاح واضح الفاظ موجود دي دَامام مالك رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله روايات اګرچه مختلف دي ليكن دَهغوى يوبوروايت امام شافعي رحمه الله سره دې لهذا جمهور په يوطرف دي.

**د اول فريق د دليل جواب:** - دا روايت په معلق بالشرط في ملك الغير باندې محمول دې چه دَ ټولو په نيزنه واقع كيږي

**د دويم فريق دليل:** - ① دَموطاء امام مالك روايت د دوى مستدل دې امام مالك رحمه الله

فرمائی مالك بلغه ان عمر بن الخطاب وعبد الله بن عمر وعبد الله بن مسعود وسالم بن عبد الله والقاسم بن محمد وابن شهاب وسليمان بن يسار كانوا يقولون اذا حلف الرجل بطلاق المرأة قبل ان ينكحها ثم اثم (اى حنث) ان ذالك لازم له اذا نكحها (ص۵۲۷)

④ هم په دې موطا امام مالك كښې دی چه يوسړی قاسم بن محمد اوسليمان بن يسار نه دَمسئلې تپوس اوكړو چه يو سړی دَ يوې ښځې سره دَ نكاح نه وړاندې ظهار اوكړو نودَدې څه حكم دې؟ نودواړو جواب وركړوكه دغه سړی دې ښځې سره نكاح اوكړه نوتر كومې پورې چه دَ ظهار كفاره نه اداكوی دغه ښځې ته به نه نيزدې كيږی. (ص۵۲۸)

⑤ دغه شان په ترمذی كښې هم ص ۲۲۳ باندې يوقول دَ حضرت ابن مسعود ﷺ دَ احنافو دليل دې دَدې ټولو دلائلونه معلومه شوه چه دَ ائمه احناف مسلك مبرهن او مدلل بدلائل دې

**نوټ**:- هم دغه اختلاف دَ جمهورو اواحنافو لفظ (كلما) سره طلاق وركولو كښې هم دې جمهورِدَ طلاق واقع كيدو قائل نه دی اواحناف دا منی او هم دغه شان مسئله دَ اعتاق هم ده.

**قوله**: وَلَاوِصَالَ:

**د صوم الوصال تعريف**:- وصال دَهغه پرله پسې روژو نوم دې په كوم كښې چه روژې ماتې نه وی داسې روژې دَ عام امت دَپاره منع دی. اودَ رسول الله ﷺ په خصوصيات كښې وو هغوی دَپاره منع نه وو.

**قوله**: وَلَايُتْمَ بَعْدَ احْتِلَامٍ:

**د يتيم تعريف**: يعنی دَ يتيم مسائل اوفضائل صرف دَ قبل البلوغ مودې پورې محدود دی كله چه هلك بالغ شو نواوس هغه ته يتيم نه شی وئيلې كنی دَ دنيا ټول خلق به دَ يتيم وئيلو مستحق اوګرځی.

**قوله**: وَلَاصَمْتَ يَوْمٍ:

**د شپې د ورځې عدم صحت**:- يعنی دَ چپ پاتې كيدو روژه نشته دې پخوانو امتونو كښې به دَ چپ پاتې كيدو روژه وه لكه چه حضرت مريم عليها السلام وئيلی دی ﴿ اِنِّيْ نَذَرْتُ لِلرَّحْمٰنِ صَوْمًا فَلَنْ اُكَلِّمَ الْيَوْمَ اِنْسِيًّا ﴾ مريم ۲۶. هسې په خاموش اوسيدو كښې فائده ده ليكن دَ خاموشئ روژه سائل دادَې امت په عبادتونو كښې نه ده.

**[۳۲۸۲] غیر منکوحې ته د طلاق ورکولو عدم صحت**

۳۲۸۲—[۹] (۰) ۱ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «لَا نَذْرَ لِابْنِ آدَمَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ، ۳ وَلَا عِتْقَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ، وَلَا طَلَاقَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ "وَلَا بَيْعَ إِلَّا فِيمَا يَمْلِكُ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمرو ابن شعیب رحمه الله د خپل پلار (شعیب) نه او شعیب د خپل نیکه (حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنه) نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د ابن آدم نذر په هغه څیز کښې نه صحیح کیږی ، چې د هغه خپله مالک نه دی، او هغه څیز یعنی وینځه او غلام آزادول هم صحیح نه دی، چې د هغه مالک نه دی، ۳ او هغه ښځې ته طلاق ورکول هم درست نه دی، چې دي د هغه مالک نه دی، (ترمذي ابوداؤد)
او ابو داؤد په خپل راوایت کې دا الفاظ هم نقل کړی دی چې هغه څیز خرڅول هم صحیح نه دی چې د هغه د خرڅولو هغه (اصالةً یا وکالةً یا عاریةً) مالک نه دی

**حل اللغات:** - ① نَذْرَ: منت، منخته منل،

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا نَذْرَ لِابْنِ آدَمَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ

**د غیر مملوک غلام آزادولو عدم صحت:** - د ابن آدم نذر صحیح نه دي مطلب دادې چې يوکس اووائی چې دالله ﷻ درضا دپاره ددې غلام د آزادیدو نذر کوم . حالانکه د نذر منلو په وخت کښې هغه غلام ددهٔ په ملکیت کښې نه وی نودا نذر صحیح نه دې او که دې نه پس هغه ددې غلام مالك شو نو هغه بهٔ آزاد نه وی

**[۳۲۸۳] دَطلاق بتة مسئله**

۳۲۸۳—[۱۰] (۰) ۱ «وَعَنْ رُكَانَةَ بْنِ عَبْدِ يَزِيدَ أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ سُهَيْمَةَ الْبَتَّةَ، ۲ فَأُخْبِرَ بِذٰلِكَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَالَ: وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً، ۳ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتَ إِلَّا وَاحِدَةً،

**ترجمه:** ۱ او د حضرت رکانه ابن عبد یزید په باره کښې روایت دی چې هغه خپلې ښځې

---

۱ ) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الطلاق/ باب فی الطلاق قبل النكاح (رقم-۲۱۹۰) والترمذی فی كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء لا طلاق قبل النكاح (رقم-۱۱۸۱) وابن ماجه فی كتاب النكاح/ لا طلاق قبل النكاح (رقم-۲۰۴۷)واحمد فی المسند: ۲/ ۱۹۰

۲ ) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الطلاق/باب فی البتة (رقم -۲۲۰۶) والترمذی فی كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرجل یطلق امرأته البتة (رقم-۱۱۷۷) وابن ماجه فی كتاب النكاح/باب طلاق البتة (رقم-۲۰۵۱)

سُهیمه ﷺ ته طلاق بته (۱)ورکړي، [۲]او بیا د دې ذکر یې رسول الله ﷺ ته وکړي، او هغه اوویل چې قسم په خدای ما د یو طلاق نیت کړی وو، [۳]حضور ﷺ پوښتنه ورنه وکړه چې (آیا واقعي) په خدای قسم، تا د یو طلاق نیت کړی وو؟

**حل اللغات**: - ①اَلْبَتَّةَ: قطع کول. پریکول.

[۱]فَقَالَ رُكَانَةُ: وَاللهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً، فَرَدَّهَا إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]فَطَلَّقَهَا الثَّانِيَةَ فِي زَمَانِ عُمَرَ وَالثَّالِثَةَ فِي زَمَانِ عُثْمَانَ». [۳]رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ إِلَّا أَنَّهُمْ لَمْ يَذْكُرُوا الثَّانِيَةَ وَالثَّالِثَةَ.

**ترجمه**: رکانه اوویل قسم په الله مادیوه طلاق نه بغیر دبل څه نیت وو کړي نو رسول الله ﷺ د هغه ښځه هغه ته واپس ورکړه، [۲]بیا رکانه هغې ښځي ته دویم طلاق د حضرت عمر ﷺ په عهد خلافت کښې، او دریم طلاق د حضرت عثمان غني ﷺ په عهد خلافت کښې ورکړي، [۳]دا روایت ابوداؤد ترمذي، ابن ماجه او دارمي نقل کړی دی، لیکن ترمذي وابن ماجه او دارمي په خپل روایت کښې د دویم او دریم طلاق ذکر نه دی کړی

**تسهیلات: قوله**: اَلْبَتَّةَ:

**د البتة لغوی معنی**: - لفظ بته او البتة هم یوځیز دي چه دَ پرې کولواوقطع کولو په معنی کښې راځی.

دَ ښځې خاوند په مینځ کښې دَ نکاح علاقه پرې کولواوختمولو دَپاره خاوند دَدې لفظ استعمال کوی یعنی لفظ طلاق ته (بته یا البتة) سره مقید کوی دکوم مفهوم چه داشو داسې طلاق کوم چه دَ نکاح دَ رشتې تعلق بالکل ختمولوسره ښځه دَ نکاح نه قطعی توګه باندې اوباسی

**طلاق سره د البتة لفظ په جمع کولو کښې د نیت په اعتبار کښې مذاهب**: -

که یوسړی طلاق البتة سره مقید کړو

① نودَ امام مالك رحمه الله قول چه په دې لفظ سره درې طلاقه واقع کیږی ښځه به مغلظه شی دَ نیت اعتبارنشته دې

② جمهورفقهاء فرمائی دَدې لفظ دَ استعمالونکی سړی دَنیت اعتباردې

**البتة سره په طلاق ورکولو کښې د طلاق په عدد کښې مذاهب**: -

①بیا دَ شوافعو اواحناف دَدې نیت په تفصیل کښې اختلاف پیداشوې دې امام شافعي رحمه الله فرمائی که یوسړې دَ یوطلاق رجعی نیت کوی نوبیاهم صحیح دې دَ دوو نیت هم صحیح دې اودَدریونیت هم کولې شی په کوم سره چه به ښځه مغلظه شی.

---

(۱) طلاق بت دا دی چی حضرت رکانه ﷺ په دی الفاظو کی طلاق ورکړ، التعلیق الصبیح

② ائمه احناف فرمائی په دې لفظ سره طلاق رجعي نه بلکه یو طلاق بائن واقع کیږی. که دَ یو طلاق نیت ئی کړی اوکه دَ دریو طلاقو نیت ئی کړې وی نو هغه هم صحیح دې اودَ دوو نیت نه شی کیدې

**د اول فریق دلیل**؛ اول فریق د زیربحث حدیث څخه استدلال کوی چې رکانه ﷺ دَ یو طلاق اراده کړې وه او هغه رجعی وو لهذا صرف "راجعتها الی نکاحی" په الفاظو سره ئې بی بی په خپله نکاح کښې راواپس کړه.

**داول فریق د دلیل جواب**؛ دا الفاظ کنائی دی اوکنائی الفاظو سره یو طلاق بائن واقع کیږی نو په حدیث کښې د "ردها" مطلب به دا شی چه حضورپاك په نوې نکاح سره دَهغه بی بی دَهغه طرف ته ورواپس کړه.

**د دویم فریق دلیل**:- (البتة) لفظ مصدر دې اودَمصدر اطلاق په دوو باندې نه شی کیدې ځکه چه دوه عدد محض دې اومصدر په قلیل اوکثیر باندې خویادولې شی خو په عدد محض باندې نه. بهرحال په یو طلاق سره به ښځه بائن شی اوکه دَ دریو نیت ئی وی نو مغلظه به شی.

**قوله**: وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً:

**په طلاق کنایه کښې د نیت د اعتبار صحت**:- چونکه دا کنائی الفاظ دی په دې وجه دَ طلاق ورکونکی دَ نیت اعتبار کیږی. هم دَدې دَپاره نبی کریم بار بار دَحضرت رکانه ﷺ نه تپوس کولو چه دَ یو اراده دې وه که دَ دریو. هغه قسم خوړی چه هم دَ یو اراده مې وه چونکه په دې الفاظو سره دَعربو دَعادت موافق دَ یو طلاق اراده معروف اومشهور وه لهذا هم په هغې باندې به عمل کیدلو.

**قوله**: فَرَدَّهَا:

**د شوافعو په نیز د ردها مطلب**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی چونکه صرف رکانه ﷺ دَ یو طلاق اراده کړې وه او هغه رجعی وو لهذا صرف "راجعتها الی نکاحی" په الفاظو سره بی بی په خپله نکاح کښې راواپس کړه. دَامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدې لفظ سره یو طلاق بائن واقع کیږی خو که دَ یو یادوو طلاقو اراده اوکړې شوه یا هیڅ اراده ئی هم نه ده کړې اوکه دَ دریو اراده ئی اوکړه نو درې طلاقه به واقع کیږی. خلاصه دا چه دا الفاظ کنائی دی اوکنائی الفاظ سره یو طلاق بائن واقع کیږی. لهذا "ردها" مطلب به دا شی چه نبی کریم ﷺ په نوې نکاح سره دَهغه بی بی دَهغه طرف ته ورواپس کړه.

**[۲۲۸٤] د نکاح او طلاق الفاظ که په خندا کښې هم د خلې نه وزي نو دهغې حکم ثابتيږي**

۳۲۸۴—[۱۱] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «ثَلَاثٌ جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ: النِّكَاحُ، وَالطَّلَاقُ، وَالرَّجْعَةُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل دري څيزونه داسې دي، چې د هغه قصد کول هم قصد دی، او په خندا ومذاق کښې د خولې نه ايستل هم قصد دی [۳] ① نکاح ② طلاق ③ رجعت، (ترمذي ابوداؤد) ترمذي ﷫ ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دی

**حل اللغات:** - ① جِدُّهُنَّ جِدٌّ: دهغه قصد کول هم قصد وی، ② هَزْلُهُنَّ جِدٌّ: دهغه مذاق کول هم قصد دی، ③ الرَّجْعَةُ: د طلاق څخه پس ښځې ته رجوع کولو ته رجعة وائي يعني چې هغې سره تعلق اوساتی

**تسهيلات:** قوله: ثَلَاثٌ:

**د هزل او جد د برابرۍ صورتونه:** - باقي حديث پاك کښې د دريو څيزونو (نکاح ، طلاق او رجوع) باره کښې فرمائيلي شوی دی چې په دې کښې قصد او هزل برابر دي د احنافو په نزد ددې درې وارو نه علاوه نور هم ډيرو مسائلو کښې د قصد او هزل حکم يودې حديث کښې ددې درې وارو تخصيص ددې د اهميت په وجه شوې دې

**قوله:** جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ:

**د جد لغوي معنى** - (ما يراد به ما وضع له أو ما صلح له اللفظ مجازا) يو لفظ اووئيلې شي او د وئيلو په وخت ددې لفظ نه واقع کيدونکې حکم مقصود وی يا د مجازی معنی مراد اخستو صلاحيت نه وی

**د هزل لغوي معنى** - (الهزل ان يراد بالشئ غير ما وضع له بغير مناسبة بينها) ددې مطلب دادې چې انسان کوم لفظ اووائي هغه په واقع کښې مقصود نه وی

**قوله:** جِدٌّ: النِّكَاحُ، وَالطَّلَاقُ، وَالرَّجْعَةُ:

**د هزل په حالت کښې د طلاق په واقع کيدو کښې مذاهب:** -

① دامام احمد ﷫ او امام مالك ﷫ په نزد د هزل طلاق نه واقع کيږي. ددوئ په نزد د وقوع طلاق دپاره د طلاق لفظ وئيلو په وخت کښې د طلاق نيت ضروری دي

② د امام ابوحنيفه ﷫ او امام شافعی ﷫ په نزد طلاق که د قصد په طور وی او که د

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/ باب فی الطلاق علی الهزل (رقم-۲۱۹٤) والترمذی فی کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الجد والهزل فی الطلاق (رقم-۱۱۸٤) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ من طلق أو نکح أو راجع لاعبا (رقم-۲۰۳۹)

هزل دواړو صورتونو کښې به واقع کيږي

**اول فريق دليل:-** دقرآن پاك آيت مبارك کښې دی چې ﴿وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ الخ﴾ وجه د استدلال داده چې دې خائې قرآن کريم د وقوع طلاق دپاره عزم طلاق شرط ګرځولې دې او د هزل په صورت کښې د طلاق عزم نشته دې

**اول فريق د دليل جواب:-** ددې آيت مبارك دې زير بحث مسئلې سره هيڅ تعلق نشته دې ځکه چې زير بحث مسئله د طلاق ده او دا آيت د ايلاء باره کښې دې او په ايلاء کښې خو ټول حضرات د عزم طلاق اعتبار کوی

**د دويم فريق دليل:-** همدا زيربحث حديث د دوی مستدل چې دې ﴿ثلاث جدهن جد وهزلهن جد﴾

**[۲۲۸۵] په زبردستي ورکيدونکي طلاق واقع کيږي که نه؟**

۳۲۸۵-[۱۲] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ②«لَا طَلَاقَ وَلَا عَتَاقَ فِي إِغْلَاقٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، قِيلَ: مَعْنَى الْإِغْلَاقِ الْإِكْرَاهُ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷺ وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل، ② چې د اکراه په حالت کې خو نه طلاق کيږي، او نه آزادي، (ابوداؤد، ابن ماجه) وئيل شوي دي چې د اغلاق معنی د اکراه ده.

**حل اللغات:-** ① اَلْإِغْلَاقُ: مصدر دې بندول ② اَلْإِكْرَاهُ مصدر دې زبردستی کول

**تسهيلات:**

**قوله: لَا طَلَاقَ وَلَا عَتَاقَ فِي إِغْلَاقٍ:**

**د اغلاق معانی:-** ① اغلاق دَ غلق نه دې دَ اکراه او زبردستئی په معنی کښې دې

② دَدې دويمه معنی بعضې علماؤ غصه اوغضب هم کړې ده دَدې مطلب به داشی چه بدحواسئی او مدهوشئی په حالت کښې چه کله غصه دومره زياته شوه چه دَ سړی عقل په خائې پاتې نه شی اوپه دغه حالت کښې ورذوب شی نودَدغه حالت طلاق اوعتاق معتبرنه دې ځکه چه دَ هغه هوش په خائې پاتې نه شو ③ بعضودَ اغلاق معنی ليوتوب خودلې دې يعنی دَ مجنون اوپاګل دَ طلاق او عتاق اعتبارنشته دې بهرحال صاحب کتاب دَ اغلاق معنی اکراه سره کړې ده

**د مکره د طلاق په واقع کيدو کښې مذاهب:-**

(۱) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الطلاق/ باب في الطلاق على غلط (رقم-۲۱۹۳) وابن ماجه في كتاب النكاح/ طلاق المكره والناسي (رقم-۲۰۴۶) واحمد في المسند: ۲۷۶/۶

① دَ دريوا رو ائمه حضراتو په نيز مكره چې په چا باندې زور شوى وى طلاق نه واقع كيږى ② دَ ائمه احناف او ډيرو زياتو صحابه كرامو او ډيرو زياتو تابعينو په نيز دَ مكره طلاق واقع كيږى او صحيح هم دې.

**داول فريق دلائل:-**

① دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دا مذكوره حديث د اول فريق مستدل دې چرته چه اغلاق دَ اكراه په معنى كښې دې لهذا دَاغلاق په صورت كښې به طلاق نه واقع كيږى

**داول فريق د اول دليل نه جواب:-** دَاغلاق ډيرې معنې دى. بعضو دَ تنګئى معنى اخستې ده بعضې دَ غصې معنى مراداخستې ده بعضې دَ اكراه معنى مراد اخستې ده او بعضو درې طلاقونه په يوځائى دَوركولو مطلب اخستې دې بعضې دَ جنون معنى اخستې ده كله چه په دې لفظ كښې دومره احتمالات دى نو داصرف په اكراه باندې حمل كولې نه شى اونه دالفظ دَدې دَپاره متعين دې نودا استدلال صحيح نه دې. دَ احنافو علماء فرمائى چه دَدې (مجمل) لفظ نه مونږ دَ اكراه په ځائى دَتنګئى معنى اخلوځكه چه په يوځائى باندې دَ درې طلاقه وركولوسره تنګى پيدا كيږى. مطلب دا شوچه كله دَ دريوطلاقو جدا جدا وركولو ګنجائش شته نويوسړې په يوځائى باندې دريو طلاقو وركولوسره په خپل ځان باندې تنګى ولې كولى لهذا (لاطلاق فى الاغلاق) مطلب داشو چه په يوځائى درې طلاقه مه وركوئى په خپل ځان باندې تنګى مه كوئى. دغه شان كه مثلاً يوغريب سړې دې دَهغه هم يوغلام دې هغه دا آزاده وى نوشريعت وائى چه په خپل ځان باندې تنګى مه كوئى اوس كه چا تنګى اوكړه او په يوځائى طلاقونه وركړل نو طلاق خو به واقع كيږى اودَ عتق حكم به نافذشى

**داول فريق دويم دليل:-**

② مشهور حديث د دوى مستدل دې چه (رفع عن امتى الخطاء والنسيان وما استكرهوا عليه)

**د اول فريق د دويم دليل جواب:-** د (رفع عن امتى) كښې دَ رفع نه مراد دَ آخرت ګناه او رانيول دى چه دَ غلطئى په وجه يا په هيره سره يا په اكراه سره كوم كار اوكړې شى هغه دَ اخرت په اعتبارسره معاف دې نه دا چه په دنيا كښې هغه كارمعاف دې ځكه چه په دنيا كښې په قتل خطاء باندې ديت راځى حالانكه هغه هم دَ خطا يوعمل دې. معلومه شوه دَ دنياحكم معاف دې

**داول فريق دريم دليل:-** ③ دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه فيصله مستدل ده چه يوسړى بل سړې په طلاق وركولوباندې مجبوركړو هغه طلاق وركړو نوحضرت ابن عمر رضي الله عنه او فرمائيل (ليس هذا بطلاق إرجع إلى أهلك)

**د اول فریق د عریم دلیل جوابونه :-**

① دَ مرفوع احادیثو په موجودګئی کښې دَدې آثارو او واقعاتو اعتبار نشته

② د دغه حضراتو اودَهغوی په آثاروکښې هم اتفاق نشته دې بلکه په دوی کښې هم اختلاف دې لهذا په مرفوع احادیثو به عمل کیږی

**د دویم فریق دلائل :-** ① دَ دې حدیث نه وراندې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې دَ کوم الفاظ چه دادی (ثلاث جدهن جدوهزلهن جدالنکاح والطلاق والرجعة) (ترمذی وابوداؤد) دَ استدلال طرز داسې دې چه په توقوکښې یوسرې طلاق ورکوی په هغې کښې دَهغه مرضی شامل نه وی نو (فقدان رضا) نه باوجود واقع شو دغه شان دَاکراه په صورت کښې هم فقدان رضا ده نودلته هم طلاق واقع کیدل پکاردی.

② دَ حضرت صفوان طائی رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې چه یوې ښځې خپل خاوند سره بغض لرلو یوه ورځ چه هغې خاوند اوده اولیدلو نوهغې چاړه راواخسته اودَ خاوند په سینه کیناسته اوبیائی خاوندته اووئیل چه ماته درې طلاقه راکړه ګنې زه به دې حلال کړم خاوندورته دَ الله تعالی واسطه ورکړه مګر ښځې هیڅ خبره وانوریده هغه درې طلاقه ورکړل او بیا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم له راغلواودَدغه حالت دَ طلاق دَمسئلې پوښتنه ئې اوکړه نبی کریم اوفرمائیل (لاقیلولة فی الطلاق) یعنی په طلاق مغلظه کښې رجوع نشته دې (زجاجة المصابیح ج۲ص ۲۷۶).

③ (عن علی قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم رفع القلم عن ثلاثة عن النائم حتی یستیقظ وعن الصبی حتی یبلغ وعن المعتوه حتی یعقل) (ترمذی ابوداؤد) په دې حدیث کښې معتوه مغلوب الحال مرفوع القلم ګرځولې دې اودَ نابالغ ماشوم او اوده شوی سړی فعل ناقابل اعتبار ګرځولې شوې دې دا واضحه اشاره ده چه دَدوی نه علاوه کوم عاقل بالغ او په هوش کښې خلق دی دَدوی افعال معتبردی هم په دې کښې طلاق مکره هم دې کوم چه دَ صحیح اونافذ په حکم کښې دې

④ دَحضرت عمر رضی الله عنه هغه فیصله د دوی مستدل دې چه په یوسړی نه دَهغه ښځې په جبرباندې طلاق حاصل کړو کله چه مقدمه حضرت عمر رضی الله عنه له راغله نوهغوی طلاق نافذ اوګرځولو او حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله هم دَمکره طلاق نافذ ګرځولې دې (عمدة القاری)

**د اکراه د اعتبار لس صورتونه :-** دَ علماء احناف نه ملاعلی قاری رحمه الله په حواله دَ فتح القدیر لس داسې احکام راجمع کړی دی په کوم کښې چه دَ اکراه په صورت کښې هم حکم نافذ کیږی.

[۲۲۸٦] دَ ليونى طلاق نه واقع کيږى

۳۲۸۹ - [۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «كُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ [۲] إِلَّا طَلَاقَ الْمَعْتُوهِ وَالْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ» [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَعَطَاءُ بْنُ عَجْلَانَ الرَّاوِي ضَعِيفٌ ذَاهِبُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل هر طلاق واقع کيږى ، [۲] خو د بې عقل او مغلوب العقل طلاق نه واقع کيږى ، [۳] امام ترمذي عليه الرحمه دا روايت نقل کړي دي، او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى، او د دې يو راوي عطا بن عجلان په روايت حديث کښې ، ضعيف شميرل کيږي، ځکه چې د هغه په حافظه کښې به حديث محفوظ نه پاتې کيدي

**حل للغات** - ① اَلْمَعْتُوهِ: کم عقل اومدهوش.

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا طَلَاقَ الْمَعْتُوهِ:**

**د معتوه په تفسير کښې اقوال:** - ① معتوه عموماً داسې سړې وى چه په يووخت کښې بې عقل پاتې کيږى اودويم وخت کښې بيا دَهغه عقل ځپل ځائى له راځى

② علامه ابن همام رحمه الله فرمائى چه معتوه هغه سړې دې چه ناقص العقل وى کم پوهيدونکې وى دَهغه کلام بې ربط وى ليکن خلق وهى نه اونه کنځل کوى اودَه په مقابله کښې مجنون دې. مجنون هغه وى چه کنځلې کوى اوخلق په کاڼړو باندې اولى.

③ زين العرب اوفرمائيل چه دَمعتوه په مفهوم کښې مجنون او په خوب کښې اوده سړې، مدهوش او داسې بيمار دَچاعقل چه ختم شوې وى ټول په کښې داخل دى.

**د جملې په ترکيب کښې دوه احتماله اوه هريوحکم:** - ① اوس که دَ معتوه په مفهوم کښې مجنون او پاګل داخل اومنلې شى نو "والمغلوب على عقله" جمله دَ (معتوه) دَپاره به عطف تفسيرجوړشى اومطلب به داشى چه معتوه يعنى دَمجنون اوپاګل طلاق نه واقع کيږى دَعطف تفسير تائيددَ دې روايت نه هم کيږى په کوم کښې چه دا جمله بغيردَ واؤ راغلې ده

② اوکه چرې داجمله ماقبل دَپاره عطف تفسير نه وى نوبيا دې جملې نه مراد به سکران اخستې شى اودَ هغه دَ طلاق حکم زيربحث راځى اومجنون به په معتوه باندې قياس کولې شى چه کله دَمعتوه دَ طلاق اعتبارنشته نودَ مجنون په طريقه اولى نشته.

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في طلاق المعتوه(رقم-۱۱۹۱)

**د سکران د طلاق په واقع کيدو کښي مذاهب:-**

① دَ امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله دويم قول دا دي چه دَ سکران طلاق نه واقع کيږی او هم دغه رائې دَ علامه کرخي رحمه الله او امام طحاوي رحمه الله او اسحاق بن راهويه رحمه الله هم ده

② امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله او دَ اکثر سلف صالحين په نيز دَ (سکران) طلاق واقع کيږی او دي سره دَدي چه زائل العقل دي

**د اول فريق دليل:-** د وقوع طلاق او عتاق دپاره دَ عقل ضرورت دي او سکران زائل العقل دي لهذا دَده طلاق نافذ نه دي.

**د دويم فريق دليل:-** نشه کول يوه گناه ده نو دَ معصيت او نشي کولو دَ جرم په وجه زجراً دَ هغه طلاق نافذ گرځولي شوي دي او هم دغه دَ امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله يو قول هم دي

**نوټ:-** دَ شوافعو او حنابله يو قول جمهورو سره دي په دي وجه دَ سکران مسئله اتفاقي اجماعي کيدل پکاردي.

**[۳۲۸۷] دري کسان مرفوع القلم دی**

> ۳۲۸۶ [۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ [۳] عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَبْلُغَ، وَعَنِ الْمَعْتُوهِ حَتَّى يَعْقِلَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي کرم الله وجهه وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] دري سري مرفوع القلم دی (يعني د دي سرو نامه اعمال نه ليکل کيږي، ځکه چي د هغوئ د قول او فعل هيڅ اعتبار نشته او هغه د مواخذي نه کولاؤدي [۳] ① يو اوده د څو پوري چي بيداره نشي ② دويم هلک د څو پوري چي بالغ نشي ③ او دريم بي عقل د څو پوري چي د هغه عقل صحيح نشي. (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① رُفِعَ الْقَلَمُ: مرفوع القلم، چه عمل نامه ئې نه ليکلي کيږي، مواخذه ئې نه وی

> ۳۲۸۸ (۲) [۱] رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنُ مَاجَهْ عَنْهُمَا.

**ترجمه:** [۱] دارمي رحمه الله دا روايت د بي بي عائشي رضي الله عنها نه او ابن ماجه د بي بي عائشي رضي الله عنها او حضرت علي رضي الله عنه نه نقل کړی دی

---

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الحدود/باب فی المجنون يسرق أو يصيب حدا (رقم-۴۳۹۸) واحمد فی المسند: ۱۵۵/۱

۲) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب النکاح/ طلاق المعتوه والصغير والنائم (رقم-۲۰۴۱)

**تسهيلات:**

**قوله:** رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ

**د درې قسمه خلقو عدم مكلف كيدل:-** په دې لاندې ذكر شوؤ درې كسانو باندې شرعي احكام نه جاري كيږي په دې وجه دوئ د تصرفاتو هيڅ اعتبار نشته دې

① نائم تر دې چې بيدار شي

② ماشوم چې تركومې بالغ نشي

③ مجنون چې تر كومې هغه عقل مند نشي.

**[۲۲۸۹] د وينځې د پاره دوه طلاقه دي**

۳۲۸۹-[۱۵] (۱) ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «طَلَاقُ الْأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه ﷺ راوي ده، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د وينځې د پاره دوه طلاقه دي، او دهغې دعدت موده دوه حيضه دي، (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي

**تسهيلات:**

**قوله:** طَلَاقُ الْأَمَةِ:

**د طلاق الامه سره متعلق دوه صورتونه:-** په زير بحث حديث كښې دَوومسئلو ته اشاره شوې ده

① دا اتفاقي مسئله ده چه دَ آزاد او غلام سرې په طلاق كښې فرق دې دَ (حر) طلاق درې دی اودَ غلام صرف دَ دوو طلاقو اختيار دې.

② په دوو طلاقو كښې يا دريو طلاقو وركولو كښې دَ ښځې دَ حالت اعتبار دې كه دَ خاوند دَ حالت اعتبار دې يعنى طلاق بالرجال دې كه بالنساء دې

**د زوج يا زوجې د حالت په اعتبار كښې مذاهب:-**

① دَ ائمه ثلاثه يعنى جمهورو په نيز دَ زوج اوخاوند دَ حالت اعتبار دې كه چرې زوج حر دې نو هغه ته دَ دريو طلاقو اختيار دې كه ښځه ئې آزاده ده اوكه وينځه ده اوكه چرې خاوندئې غلام وي نو هغه ته دَ دوو طلاقو اختيار حاصل دې كه ښځه آزاده ده اوكه وينځه ده يعنى دَهغوى په نيز طلاق بالرجال دې طلاق بالنساء نه دې

۱ ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الطلاق/باب فى طلاق السنة (رقم-۲۱۸۰) والترمذى فى كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن طلاق الأمة تطليقتان (رقم-۱۱۸۲)وابن ما جه فى كتاب النكاح/ باب فى طلاق الأمة وعدتها (رقم-۲۰۸۰)

② دَائمه احناف په نيز دَ طلاقونودَ تعداد دارومدار دَښځې په حالت باندې دې که چرې ښځه حره يعنې آزاده اوشريفه ښځه ده نوخاوندته دَ دريو طلاقو حق حاصل دې که خاوندئې آزادوى اوکه غلام اوکه چرې ښځه وينځه ده نوخاوندته په هغې باندې دَ دوو طلاقواختيار دې که خاوندئې حر وى اويارقيق وى

**د اول فريق د دليل:** - دَ طبرانى يوروايت د دوى مستدل دې چه «الطلاق بالرجال والعدة بالنساء رواه الطبرانى عن ابن مسعود موقوفاً»

**د اول فريق د دليل جواب:** - جمهورو په خپله يوه مدعاباندې چه کوم دليل پيش کړې وو دَهغې جواب دادې چه "الطلاق بالرجال" مطلب دادې چه دَطلاق ورکولوحق زوج ته حاصل دې اودَ ښځې په ذمه عدت تيرول دى. لهذا داحديث دَ جمهورو دليل نه شى جوړيدې

**دويم فريق دليل:** - زيرنظرصريح اوصحيح حديث د دوى مستدل دې دَ حديث په اول حصه کښې په واضحه توګه باندې ذکر دى چه دَ وينځې دوه طلاقونه دى دکوم نه چه معلومه شوه چه دَ طلاق په تعداد کښې دَ خاونداعتبارنشته بلکه دَ ښځې اعتباردې. دَدې دَپاره اوفرمائيل چه دَ وينځې خاوندکه هرڅوك هم وى مګر دَهغه طلاق دَ دوو نه زيات نه دې

**د درې قروؤ په اعتبار باندې اتفاق:** - دَفقهاؤ په نيزدويمه اختلافى مسئله داده چه په قرآن کريم کښې داخو واضح دى چه دَ آزادې ښځې دَعدت موده درې قروء دى ځکه چه په قرآن پاك کښې دا الفاظ راغلى دى ﴿وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ﴾ [سورت البقره ۲۲۸]. په دې کښې خودَ چاهم اختلاف نشته دې

**دعدت بالقروء او بالاطهار په اعتبار کښې مذاهب:** -

په دې کښې اختلاف دې چه دَ لفظ قروء نه اطهار مراد دى يا درې حيض مراد دى

① ائمه احناف فرمائى چه دَ قروء مصداق حيض دې لهذا عدت به درې حيض تيريدو سره مکمل کيږى

② امام مالك رحمه الله او امام شافعى رحمه الله فرمائى چه دَ قروء مصداق طهر دې په دې وجه دَ مطلقه ښځې عدت درې طهر دى

**داول فريق دليل:** - دې حضراتوسره دَ دويمې مسئلې دِ اثبات دَپاره څه مرفوع حديث نشته

**د دويم فريق دليل:** - احناف دَ خپلې دويمې مسئلې دَ اثبات دَپاره هم دَدې حديث دَ دويمې حصې نه استدلال کړې دې چه دَ وينځې دَ عدت موده دوه حيض دى دَ کوم نه چه معلومه شوه چه عدت بالاطهارنه دې بلکه عدت بالحيض مقرردې

② دَ ابوداؤد شريف دَ فاطمه بنت حبيش واضح اوصريح حديث د دوي مستدل دې. دَ

حديث الفاظ دا دي ‹‹فقال لها رسول الله ﷺ انما ذالك عرق فانظري اذااتى قروءك فلا تصلي فاذامر قروءك فتطهري ثم صلي مابين القرء الى القرء›› (ابوداؤد ص ۳۷) په دې حديث کښې څلور ځل دَ قروء لفظ راغلي دې او څلور واړه ځل دَحيض دَپاره استعمال شوې دې اودَ طهر دَپاره يو ځل هم نه دې استعمال شوې

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۲۹۰] د خپل خاوند نه د طلاق يا خلع غوښتونکي په باره کښې وعيد

۳۲۹۰ - [۱۲] (۱) ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②«الْمُنْتَزِعَاتُ وَالْمُخْتَلِعَاتُ هُنَّ الْمُنَافِقَاتُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل ②د خپل خاوند نه خان ايستونکي اوخلع غوښتونکي ښځي منافقي وي. (نسايي)

**حل اللغات** - ①اَلْمُنْتَزِعَاتُ: وتونکي، هغه ښځه چه دخپل خاوند دنکاح نه وتل غواړی. بلاوجه خلع کوی ②اَلْمُخْتَلِعَاتُ: د خاوند تابعداری نه کونکی. نافرمانه ښځې.

**تسهيلات:** **قوله:** هُنَّ الْمُنَافِقَاتُ:

**بغير د مجبورۍ نه د خلعې په غوښتلو د منافقت اطلاق:** - يعنی کومې ښځې چه دَسختې مجبورۍ نه بغيرشوقيه خلع اخستل غواړی اودَ خاوند تابعداری نه کوی نوهم دغه ښځې منفقانې دی خکه چه په ژبه سره او په ظاهری احوالوکښې هغوی دَ اسلام احکام منی خويه زړه کښې هغوی نافرمانی اودَ خاوندسره دوه مخيزه معامله کوی نن صبادَبعضې ښخودا کاروبار دې چه پيسه ورکولوسره طلاق حاصله وی او نوی خاوندانوسره نکاح کونکې ګرځی

### [۲۲۹۱] د ښځې د تمام مال په عوض کښې خلع کول مکروه دی

۳۲۹۱ - [۱۴] (۰) ①وَعَنْ نَافِعٍ عَنْ مَوْلَاةٍ لِصَفِيَّةَ بِنْتِ أَبِي عُبَيْدٍ ②أَنَّهَا اخْتَلَعَتْ مِنْ زَوْجِهَا بِكُلِّ شَيْءٍ لَهَا فَلَمْ يُنْكِرْ ذَلِكَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت نافع عليه‌الرحمه د بي بي صفيه بنت ابي عبيد د يوې آزادې کړې وينځې نه روايت کوي. ②چې بي بي صفيې ﷺ د خپل هر هغه شي په عوض کښې ، چې د هغې سره موجود وو. خپل خاوند (حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ) نه خلع وکړه، او عبدالله ابن عمر ﷺ د دې نه انکار ونه کړې. (مالک)

**حل اللغات** - ①اِخْتَلَعَتْ: د مؤنث صيغه ده خلع ئې اوکړه.

---

۱) اخرجه النسائي في السنن كتاب الجهاد /باب: ما جاء في الخلع(رقم-٣٤٦١) واحمد في المسند: ٢/٤١٤

۲) اخرجه مالک في الموطا كتاب الطلاق باب ما جاء في الخلع(رقم-٣٢)

**تسهیلات:**

**قوله بِكُلِّ شَيْءٍ لَهَا:**

**وعلمي جواز:** - یعنی دَ ښځي دَ ټول مال په عوض چه خاوند خلع قبلولو سره طلاق ورکړونودا صورت سره ددي چه مکروه دي لیکن دَ طرفین دَ رضامندئی نه پس خلع جائزده

**د خلع په جواز اوعدم جواز کښي مذاهب:** -

علامه ابن همام رحمه الله فرمائیلی دی چه ① دَ شیخ مزنی رحمه الله مسلك دي چه خلع کول په هیڅ یوصورت کښي جائزنه ده

② اهل ظواهروئیلی دی که دَ خاوندنه دَ ښځي سخت نفرت وی اوخاونداوس دا اندازه ونګوله چه اوس نه زه دَ ښځي حقوق اداکولي شم اونه ښځه زما حقوق اداکولي شی نو په دغه صورت کښي خلع اخستل جائزدی ګنی نه دی جائز

③ دَ جمهورو فقهاؤ په نیزخلع جائزده اودَ قرآن دَ آیت نه ثابته ده اومنسوخ هم نه ده

**په خلع کښي د مهر واپس کولو په مقدار کښي اقوال:** - البته دومره بحث ضرور دي چه خوند څومره مهراداکړي دي آیا ښځه به هم دومره مال دَ خلع په عوض فدیه کښي اداکوی یازیات هم اداکولي شی؟ نو ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښي دَ دي حدیث لاندي ډیر روایات نقل کړی دی چه خاوندڅومره مال ورکړي دي دَهغي نه زیات مال په خلع کښي اخستل جائزنه دی لیکن په آخره کښي لیکلی دی چه په دي مسئله کښي دَ صحابه کرامو په دورکښي هم اختلاف وو اوبعضي صحابه کرامو په ټول مال باندي خلع جائزګرځولي ده

**د خاوند د سرکشی په صورت کښي د خلع حکم:** - صاحب دَ هدایه لیکلی دی که چري نافرمانی دَ ښځي دَ طرف نه نه وی بلکه خاوند سرکشی کوی نو په دي صورت کښي دَ خلع په عوض مال اخستل منع دی لیکن دي ته حرام نه شی وئیلي خکه چه په روایاتوکښي تعارض دي بهرحال دَ مهرنه زیات مال اخستل مکروه دی اوخلع جائز ده پوره تفصیل مرقات کښي دي

**[۲۲۹۲] په یو ځاي دري طلاقه ورکول مکروه دی**

[۱۸] (۱) ①وَعَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ قَالَ ②«أُخْبِرَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ جَمِيعًا ③فَقَامَ غَضْبَانَ، ثُمَّ قَالَ: أَيُلْعَبُ بِكِتَابِ اللهِ - عَزَّ وَجَلَّ - وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ حَتَّى ④قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَلَا أَقْتُلُهُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت محمود ابن ولید رضی الله عنه وایي ②هر کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هغه

۱) اخرجه النسائی فی السنن کتاب الجهاد/باب: الثلاث المجموعة وما فیه من التغلیظ (رقم-۳۴۰۱)

سړي په باره کښې وښودل شو، چې هغه خپلې ښځې لره په يو ځاى درې طلاق ورکړي دي. [۳]نو حضور ﷺ غضبناک کيدو سره ودريدلو، او وې فرمايل چې آيا د الله عز وجل د کتاب سره لوبې کول کيږي (يعني د حکم خداوندي سره ټوقې کول کيږي)، حالانکه زه په تاسو کښې موجود يم [۴]د دې اوريدو سره په مجلسِ نبوي ﷺ کښې د موجود صحابه وو ﷺ نه، يو سړي ودريدلو، او عرض يې وکړو چې يا رسول الله ﷺ زه دا سړى قتل نه کړم؟ (نسايي)

**تسهيلات: قوله:** ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ:

## په يو ځل د درې طلاقو په حکم کښې مذاهب:-

① دَ امام شافعي ﷫ په نيزه يوځائى درې طلاقه ورکول خلاف اولى دى حرام نه دى.

② دَحضرت امام ابوحنيفه ﷫ په نيزه يوځائى درې طلاقه ورکولو بدعت اوحرام دى

**د دويم فريق دليل:-** دَ مذکوره حديث نه په يوځائى درې طلاقه ورکول حرام معلوميږى ځکه چه دَ نبى کريم داسې غضبناك کيدل په حرام کيدې شى. ليکن دَدې مطلب دانه دې چه په دې سره طلاق نه واقع کيږى ځکه چه ډيرزيات احکامات داسې وى چه دَ ممانعت نه باوجود حکم نافذ کيږى

**د ممانعت بلوجود په منهى عنه باندې د الرد ترتب مثالونه:-** ①لکه په حالت دَ حيض کښې دَطلاق ممانعت دې ليکن حضرت ابن عمر ﷠ چه کله طلاق ورکړونو هغه واقع شو په کوم چه نبى کريم خفه شو اودَ رجوع کولوحکم ئې ورکړو.

② دَ جمعه دَ اذان نه پس بيع اوشراء ممنوع ده ليکن په کولوسره کيږى.

③ دَمغصوبه زمکې غصب منع دې ليکن په هغې باندې مونځ کيږى

**په مسنون طريقه طلاق ورکولو کښې سهولت:-** بهر حال الله تعالى انسان ته په طلاق ورکولوکښې دَمهلت حکم ورکړي دې چه يوطلاق ورکړه بيا سوچ اوکړه بيا دَ څه مودې نه پس دويم طلاق ورکړه اوسوچ اوکړه کيدې شى چه په دغه دوران کښې دماغ او غيظ اوغضب احوال بدل شى نودَ ښځې طرف ته دَ رجوع کولوموقع به ئى په لاس کښې وى ليکن که يوسړې په يوځل درې طلاقه په يومجلس کښې ورکړى نوهغه سړې دَالله تعالى حکم شاته غورزه وى اوخپل ځان په مشقت اومصيبت کښې اچوى

**سهولت ته د قرآنى آيت اشاره:-** دَدې طرف ته دَ قرآن عظيم دا آيت مبارك اشاره کوى ﴿الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ ۖ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ ۗ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا إِلَّا أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ ۖ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ ۗ تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَعْتَدُوهَا ۚ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ۝ فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ ۗ فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَتَرَاجَعَا إِنْ ظَنَّا أَنْ يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ ۗ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ

يَعْلَمُوْنَ ﴿وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ أَوْ سَرِّحُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَلَا تُمْسِكُوْهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوْا وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ وَلَا تَتَّخِذُوْا آيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا﴾ استهزاء او توقې هم دغه دى چه يوسړې دَ الله تعالى دَ حكم نه بې پرواهى او بې رخى اوكړى په دې وجه نبى كريم دَ غضب په حالت كښې اوفرمائيل (ايلعب بكتاب الله عزوجل) اوهم دَ دې جملې دَ وجې نه يوسړى عرض اوكړو چه يا رسول الله! آيازه هغه قتل نه كړم؟ دې صحابى اوګڼړل چه كوم سړې قرآن پورې توقې كوى هغه كافر كيږى لهذا دَهغه قتل كول پكاردى حالانكه دَ حضوراكرم دا اشاره دَ زجر توبيخ او تغليظ او تشديد دپاره وه دَ امت دَعلماؤ په دې باندې اتفاق دې كه يوسړى خپلې ښځې ته اووئيل (انت طالق ثلاثا) نو درې طلاقه به واقع شى اهل ظواهر په دې خبره كښې اختلاف كوى. دا مسئله ورسره حديث كښې راروانه ده

**[۲۲۹۲] دَ دريو طلاقو مسئله**

—[۱۹] (١) [١] وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ [٢] أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ: إِنِّي طَلَّقْتُ امْرَأَتِي مِائَةَ تَطْلِيقَةٍ [٣] فَمَاذَا تَرَى عَلَيَّ؟ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: [٣] طَلُقَتْ مِنْكَ بِثَلَاثٍ، وَسَبْعٌ وَتِسْعُونَ اتَّخَذْتَ بِهَا آيَاتِ اللّٰهِ هُزُوًا. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأ.

**ترجمه:** [١] او حضرت امام مالك رحمه الله راوي دى چې هغه ته دا حديث ورسيدلى. [٢] چې يو سړى حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما ته اوويل چې ما خپلې ښځې ته سل طلاقه وركړې دي، [٣] په دې باره كښې ته څه وايې؟ (يعني آيا زما په ښځه طلاقونه لويدلى دى كه نه؟) حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ورته وفرمايل [٣] چې هغه ښځه د درې طلاقه په ذريعه ستا نه جدا شوه، او (۹۷) طلاقونه چې باقي پاتې شو، د هغه په ذريعه تا (ګويا) د الله تعالى جل جلاله په آياتونو مزاق وكړې. (مؤطا)

**تسهيلات:**

**قوله: طَلُقَتْ مِنْكَ بِثَلَاثٍ..الخ:**

قال الله تعالى ﴿فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ (البقرة ۲۳۰. قال ابن عباس طلقت منك بثلاث يعنى حضرت ابن عباس رضي الله عنهما سوال كونكى په جواب كښې اوفرمائيل چه په دريو طلاقو وركولوسره ستا ښځه تانه جدا شوه

**دَدرې طلاقو په واقع كيدو كښې مذاهب:-**

دويمه مسئله چه كومه ډيره زياته اهمه اومعركة الآراء ده هغه دَدرې طلقات دَوقوع مسئله ده. يعنى كه يوسړى په يوه كلمه سره درې طلاقه وركړى ،ياپه يومجلس كښې درې طلاق وركړى نوايا دا واقع كيږى اوكه نه؟اوكه واقع كيږى نويوواقع كيږى كه

---

١) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الطلاق/باب ما جاء فی البتة (رقم-١)

دري(۱) نوبه دې باره کښې درې مذهبه دی :

① شیعه جعفریهٔ دامسلك دې چې د درې طلاقو ورکولو په صورت کښې یوطلاق هم نه واقع کیږی . (۲) او حجاج بن ارطاة اوابن مقاتل ته هم داقول منسوب دې(۳)

② دَ بعضواهل ظاهرواوعلامه ابن تیمیه ،علامه ابن القیم ،اودَعکرمه وغیره مسلك دا دې چه په دې سره یوطلاق واقع کیږی ،اوخاوندته به دَ رجعت اختیار وی . (۴) زمونږ په زمانه کښې غیر مقلدین هم په دې ټینګ دی

③ جمهور فقهاء او علماء امت او ائمه اربعه فرمانی چه درې طلاقه که هغه په یوطهر کښې وی یا په جدا جدا طهرکښې وی یومجلس کښې وی یا په جدا جدامجالس کښې وی. حالت حیض کښې وی یا طهرکښې وی دَ دریو طلاقو الفاظ یوځائی وی یا جدا جدا الفاظ وی په هرصورت کښې هم درې طلاقونه واقع کیږی. دَ جمهورو فقهاؤ او تابعین په حق کښې دَ قرآن اوحدیث قطعی نصوص نه اودَصحابه کرامو او تابعینو دَ فیصلوسره په دومره زیات مقدار کښې دلائل موجود دی چه دَهغې دَ رایوځائی کولو نه یوپوره کتاب لیکلې کیدې شی دلته یوڅو دلائل پیش کولې شی:

**مشترکه خبره:-** خوپه مذکوره درې واړو مذاهبوکښې داخبره مشترك ده چه که درې طلاقه په درې مختلفو طهرونو کښې ورکړې شی نوداد ټولوپه نزدواقع کیږی ،نودَداسې ښځې په مغلظه کیدوکښې دَچا هم اختلاف نشته،تردې چه اهل ظواهرهم او روافض ددې د وقوع قائل دی .

**په پاکستانی عائلی قوانینو کښې د درې طلاقو حکم:-** خوزمونږ په ملك چه کوم عائلی

---

(۱) په ظاهره داحکم دَمدخول په صورت کښې دې،کښې که ښځه غیرمدخول بها وی نوپه داسې صورت کښې داحنافوپه نزدتفصیل دې،اوهغه داچه که خاوندپه یوکلمه سره درې طلاقه ورکړې وی مثلاً اووانې"انت طالق ثلاثا" نوپه داسې صورت کښې به صرف دَیوطلاق سره بائنه شی. اود نورو دوه طلاقودپاره به هدومحل پاتې نه شی.اوګورئ هدایه(ج۲ص۳۷۱)فصل فی الطلاق قبل الدخول۱۲مرتب)).

(۲)کماجزم به الحلی الشیعی فی شرائع الاسلام(ج۲ص۵۷)کذافی التکمله (ج۱ص۱۵۳).قال الشیخ ابن الهمام رحمه الله:فعن الامامیة لایقع بلفظ الثلاث ولافی حالة الحیض.فتح القدیر(ج۳ص۳۲۹)باب طلاق السنة۱۲مرتب)).

(۳)کماحکاه النووی فی شرح المسلم(ج۱ص۴۷۸)باب طلاق الثلاث" دحجاج بن ارطاة اودمحمدبن اسحاق دویم روایت دَدریم مذهب مطابق دَیوطلاق رجعی واقع کیدودې.حواله مذکور۱۲۵م)).

(۴)یوبل ځلورم مذهب هم ذکرشوې دې چه دمدخول بهاپه صورت کښې درې طلاقه اودَغیر مدخول بهاپه صورت کښې یوطلاق به واقع وی.کمافی فتح القدیر(ج۳ص۳۲۹) داځلورم مذهب ابن القیم بعض اصحابودَابن عباس رضی الله عنه اودَاسحاق بن راهویه رحمه الله ته منسوب کړې دې ،کمافی زادالمعاد(ج۵ص۲۴۸) فصل واماالمسالة الثانیة)وراجعها لتفصیل المذاهب. وانظرالمغنی(ج۷ص۱۰۴و۱۰۵)لوطلقها ثلاثا)وشرح النووی علی صحیح مسلم(ج۱ص۴۷۸)۱۲م)).

قوانين نافذدى دي كښې دا ونيلې شوى دى چه په درې طهروباندې متفرق درى طلاقوو ركولوسره هم درې به نه واقع كيږى ، بلكه يو به واقع وى او دتغليظ صورت ددې عائلى قوانينوپه بناء صرف دا دې چه خاوند يوطلاق وركړى او رجوع اوكړى بيا طلاق وركړى او بيا رجوع اوكړى اوبيا طلاق وركړى.

ظاهره ده چه مذكوره صورت په امت كښې ديوفرد هم مسلك نه دې.د دې وجې چه كوم خلق د دې عائلى قوانينوپه تائيدكښې ابن قيم رحمه الله ،ابن القيم رحمه الله ،يا اهل ظاهر پيش كوى د دوى داعمل په هيڅ قسم صحيح نه دې.

**د اول فريق اول دليل:** - ① دمشكاة حديث نمبر (۳۲۸۳) د حضرت ركانه رضي الله عنه روايت د دوى مستدل دې چه هغه د نبى كريم په زمانه كښې ښځې ته (په بته) سره طلاق وركړې ومگرنبى كريم هغه ته د رجوع كولواختياروركړې وو معلومه شوه چه په يومجلس كښې درې طلاقه وركول هم يو طلاق رجعى واقع كيږى ځكه چه ركانه رضي الله عنه رجوع اوكړه اونبى كريم انكار اونه فرمائيلو اود (بته) په الفاظوسره درې طلاقه وركولې شى د ركانه رضي الله عنه په روايت كښې بعضې راويانوداهم نقل كړى دى چه هغه د ثلاثا په الفاظ سره درې طلاقه وركړې وو اوبياهم نبى كريم د رجوع كولوحكم وركړې وو معلومه شوه چه په يوځائى درې طلاقه په حقيقت كښې هم يو وى.

**د اول فريق د اول دليل جواب:** -د دې حديث په متن كښې ډير اضطراب دې بعضې رواياتوكښې راغلى دى چه حضرت ركانه رضي الله عنه د ثلاثه لفظ سره طلاق وركړې وو بعضې كښې راغلى دى چه هغوى د البتة لفظ د طلاق دپاره استعمال كړې وو اود بعضې رواياتونه معلوميږى چه حضرت ركانه رضي الله عنه يوطلاق وركړې وو چنانچه نيل الاوطار ج۶ص ۲۴۱ كښې ددې تفصيل موجود دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله د حضرت ركانه رضي الله عنه حديث ضعيف گرځولې دې اوامام احمدبن حنبل رحمه الله ددې حديث ټول طرق ته ضعيف ونيلى دى علامه ابن عبدالبر رحمه الله هم دا روايت ضعيف گرځولې دې د سنن ابوداؤد شريف په ډيرو طرقو سره معلوميږى چه ددې حديث په سند كښې هم اضطراب دې امام ابوداؤد رحمه الله په دې روايت كښې د بته په لفظ سره طلاق وركول صحيح او راجح گرځولى دى اود ثلاثه الفاظ ئې مرجوح او غير اصح گرځولى دى (ابوداؤد ج۱ص۲۹۸) د حضرت ركانه رضي الله عنه روايت كه صحيح هم وى او په دې كښې څه اضطراب هم نه وى بيا هم ددې مطلب بالكل واضح دې چه د البتة لفظ د كنائى الفاظونه يولفظ دې او په الفاظ كنائى كښې د ټول په نيز ددغه الفاظو د استعمالونكى د نيت اعتباربه كيږى هم دغه وجه ده چه دحضرت ركانه رضي الله عنه نه نبى كريم صلى الله عليه وسلم باربار حلفيه بيان اخلى چه په دغه الفاظوسره ستا څه اراده كړې وه هغه جواب وركړو چه ما د يوطلاق اراده كړې وه نو هله نبى كريم د يوطلاق

فيصله اوفرمانيله اوبنځه نې ورته واپس کړه که چرې حضرت رکانه رضي الله عنه ونيلې وې چه مادَ دريو طلاقو اراده کړې وه نو رسول الله ﷺ به خامخا فيصله کوله چه اوس دَ رجوع ګنجائش نشته دې ځکه چه دَ دريو طلاقونه پس دَ رجوع حق نه پاتې کيږی که چرې درې طلاقه دَ رسول الله ﷺ په نيزهم يو وې نودحضرت رکانه رضي الله عنه نه باربار په قسم سره دَ يو طلاق دَاقرار اخستو څه ضرورت وو هغوی به صفا صفا فرمائيل چه که دَ يونيت نې کړې وی اوکه دَ دريو نيت نې کړې وی خو طلاق هم يو دې دَ دريو به هدو سوال نه پيدا کيدو که چرې دَا نصاف په نظر سره اوکتلې شی نودَ حضرت رکانه رضي الله عنه روايت دَ غيرمقلدينو دليل نه جوړيږی بلکه دَ جمهورفقهاؤ دليل جوړيږی ځکه چه غيرمقلدين خوواني چه دَ دريو نيت څوك اوکړی يا دَ دريو صريح الفاظ استعمال کړی طلاق صرف هم يو واقع کيږی حالانکه دَحضرت رکانه رضي الله عنه په روايت کښې دَ يو او دريو دَ فرق ښکاره کولودپاره بار بار دَهغه نه پوښتنه کيږی شارحين حديث دَ حضرت رکانه رضي الله عنه دَ حديث متعلق ليکلی دی چه په دې کښې دَ ثلاثاالفاظ کومو راويانو استعمال کړی دی هغه په حقيقت کښې روايت بالمعنی دې اوهغوی دَ بتة په لفظ سره دَ دريو طلاقومفهوم اخذکولوسره دَ (ثلاثا) الفاظ نقل کړل ګنی په اصل روايت کښې صرف دَ البتة لفظ دې لکه څنګه چه دَ ابوداؤد نه معلوميږی

**داول فريق دويم دليل:** - ② دَ مسلم شريف دا روايت دې دَ کوم الفاظ چه دادی «وعن ابن عباس رضي الله عنهما قال كان الطلاق على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم وابى بكر وسنتين من خلافة عمر طلاق الثلاث واحدة فقال عمر بن الخطاب ان الناس قد استعجلوا في امر كانت لهم فيه اناة فلوا مضيناه عليه فامضاه عليهم» [مسلم ج۱ ص۴۷۸.]

**ترجمه** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه دَ حضوراکرم ﷺ اوابوبکرصديق رضي الله عنه په زمانه کښې اودَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ خلافت دَ شروع دوو کالوکښې به درې طلاقه يو وو اودَدې نه پس حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه خلقو په دې کارکښې تادی اوکړه په کوم کښې چه دَهغوئ دپاره سهولت وو نوکه مونږ په هغوی باندې درې طلاقه نافذ کړو نودا به بهتروی نو په هغوی باندې درې طلاقه نافذکړې شو دَ استدلال طرزداسې دې چه دَ نبی کريم او صديق اکبر رضي الله عنه په زمانه کښې به درې طلاقونه يو طلاق شميرلې کيدو درې طلاقونه درې ګرځول دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فيصله ده مونږ ته داقبوله نه ده بلکه دَ حضوراکرم او صديق اکبر فيصله قبلول پکاردی

**داول فريق ده دويم دليل جواب:** - علامه نووی رحمه الله چه دَدې حديث کوم مطلب بيان کړې دې هغه دَ شارحين حديث متفقه فيصله ده تولوله پکادی چه دَ حديث هم هغه مفهوم خپل کړی کوم چه شارحينو بيان کړې دې دَ علامه نووی رحمه الله دَ کلام خلاصه داده چه

حضور اکرم په مبارکه زمانه کښې د خلقو عادت داسې وو چه د یوطلاق د تاکید د پاره به ئې نور دوه الفاظ وئیل لکه په انت طالق طالق طالق کښې په رومبی خل بو طلاق ورکول مقصود وو هم د دې د تاکید د پاره به ئې دویمه اودریمه کلمه وئیله دری طلاقه ورکول عادت وو اونه رواج وو لیکن د روستو زمانې خلقو دا کلمه درې خل وئیل د دریو خلو د طلاق ورکولو د پاره شروع کړه

**د عمر فاروق رضي الله عنه فیصله:** - په دې باندې حضرت عمر فاروق ﷜ اوفرمائیل چه وس خلق دا تاکیدی سهولت هیره وی اود دریو خلو طلاق وئیلو نه تاکید نه بلکه د ستیناف اراده کولو سره درې طلاقه ورکوی لهذا اوس به دې ته هم درې وئیلې شی د ستنی چه حضرت عمر ﷜ څه شرعی حکم نه دې بدل کړې بلکه د خلقو عادت د خلقو فعال او اعمال اود خلقو د عرف او دستور بدلیدو سره ئې حکم بدل کړې دې لکه چه د حکم د نبی کریم په زمانه کښې هم داسې وو که د خلقو عادت د فاروقی دور د عادت په شان وې خو هغه وخت غالب عادت هم د یو طلاق وو اوشاته دور کښې غالب عادت د دریو طلاقو شو نو د دریو طلاقو واقع کیدو عام حکم ئې ورکړو ځکه چه د دریو طلاقو په نیت باندې طلاق ورکول خود نبی کریم په زمانه کښې هم درې طلاقه ګڼړلې شو اوعمر فاروق ﷜ هم دغه د دریو حکم نافذ کړې دې.

**د درې طلاقو په واقع کیدو اجماع:** - علماؤ دا هم لیکلی دی چه حضرت عمر فاروق ﷜ د صحابه کرامو ﷢ د مشورې نه پس دا حکم نافذ کړې دې اویو صحابی په دې باندې نکیرنه دې کړې لهذا په دې باندې د صحابه کرامو اجماع شوې ده غیرمقلدین حضرات سره د دې چه په ژبه باندې دانه وائی چه مونږ د صحابه کرامو یوفیصله نه منوخو که غوراوکړې شی نو هغوی د خپل عمل نه ظاهره کړې ده چه هغوی د صحابه کرامو د اجماعی فیصلو پابند نه دی مثلاً شل رکعته تراویح کښې دا حضرات په خپل عمل سره د صحابه کرامو اجماعی فیصله ردکوی په طلاق ثلاثه کښې هم دغه صورت حال دې د جمعه د پاره په اذان کښې دا حضرات وائی چه دا حضرت عثمان ﷜ د خان نه جوړ کړې دې د حد خمر اتیا (۸۰) کوړو کښې اود دې په شان په دیرو فیصلو کښې دا حضرات د صحابه کرامو خبره ردکوی حالانکه نبی کریم فرمائیلی دی (علیکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين)

**د اول فریق د دریم دلیل:** - (۳) هغه ټول روایات د دوی مستدلات دې په کومو کښې چه درې یا د دریو نه زیات طلاقونو ورکولو سخت ممانعت راغلې دې او نبی کریم او صحابه کرامو په دې باندې د سختې غصې اظهار کړې دې

**د اول فریق د دریم دلیل جواب:** - ممانعت او وعید په خپل ځائی باندې صحیح دې لیکن

دَ یو ممنوع کار دَ کولو نه پس به ولې دَ هغې اثر نه مرتب کیږي؟ دَ جمهور امت نظریه داده که یو ممنوع کار چې په غلطئ سره اوکړونو دَ هغې اثر مرتب کیږي دریې طلاقه په یوځائې ورکول سره دَ دې چه یوناخوښه عمل دې لیکن دَ دغه ناجائز قبیح اومکروه کار په کولوسره به دَ دې اثر خامخا پریوځي صحابه کرامو دَ دریو طلاقونه زیات طلاق ناخوښه ګرځولې دې او سخته ناراضګي ئې هم ښکاره کړې ده خو دَ دې نه باوجودئې دَ سلو طلاقونه دریې نافذ ګرځولي دي یا په حالت دَ حیض کښې دَ ابن عمر ﷺ طلاق نبي کریم دَ خفګان اوکراهیت نه باوجود نافذکړو دَ دې قسم ډیرمثالونه دی لهذا دَ دریو طلاقو په یوځائې ورکولو کراهت نه باوجودصحابه اوتابعین او جمهور امت دا دریې منلوسره نافذ ګرځولي دي دَ احتیاط اوانصاف تقاضاده چه دَ جمهورو په مسلك باندې فتوی ورکړې شي

**دَ دویم فریق دَلائل:** — ① دَ قرآن کریم دا آیت د دوی مستدل دې ﴿ فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ ﴾ په دې آیت کښې داخبره په یقیني اواجماعي توګه سره ثابته شوه چه په اسلام کښې دَ دریو طلاقو وجود شته او په دریو طلاقونوسره ښځه مغلظه جوړیږي اودَ دویم خاوندسره نکاح او حلاله نه بغیردَ رومبي خاوند دَ پاره حلال کیدې نه شي

② امام بخاري ﷫ دَ بخاري شریف هم په دغه پورتنئ صفحه کښې دا باب قائم کړې دې باب من اجاز الطلاق الثلاث دَ دې لاندې امام بخاري ﷫ دَ عویمر عجلاني ﷜ دَ لعان اوږده قصه نقل کړې ده دَ هغې په آخره کښې دی فطلقها ثلاثا بدرالدین عیني ﷫ فرمائي چه حضوراکرم ﷺ دَ عویمر ﷜ دریې طلاقونه نافذ اوګرځول معلومه شوه چه دریې طلاقه هم دریې وي

③ امام بخاري ﷫ بخاري شریف ج۲ص ۷۹۱ کښې دَ طلاق ثلاثه دَ پاره مستقل باب ،باب من اجاز الطلاق الثلاث، ترلې دې اودَ قرآن کریم آیت ﴿ اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ۪ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ﴾ نه ئې استدلال کړې دې هغوی خویا ،مرتان، تثنیه دَ تکریرپه معنی کښې اخستې دې چه مرة بعدمرة طلاق ورکول جائزدی په کوم کښې چه دریې طلاقونه داخل دی ﴿ هغوی اوتسریح باحسان، نه استدلال کړې دې څکه چه تسریح دَ پریخودلوپه معنی کښې دې که دا پریخودل په یوطلاق سره وي یا په دریو طلاقوسره وي تول دې کښې شامل دی

④ جمهورودَ محمودبن لبید ﷜ دَ روایت نه هم استدلال کړې دې چه دَ زیربحث حدیث څخه وړاندې حدیث نمبر ،۳۲۹۳، لاندې تیرشوې دې په کوم کښې چه دا الفاظ دی ،طلق امرأته ثلاث تطلیقات جمیعا، په کوم چه نبي کریم سخت خفه شوې وو لیکن په دغه یومجلس کښې په یوځائې دریې طلاقه نبي کریم اومنل او دائي یواونه ګرځولو

⑤ د بخاری شریف هم په دغه صفحه کښې د حضرت رفاعه د ښځې واقعه هم امام بخاری رحمه الله د دریو طلاقو په ثبوت او واقع کیدو باره کښې نقل کړې ده په دغه حدیث کښې داالفاظ دی (لاحتی یذوق عسیلتك وتذوق عسیلته) یعنی ته د خپل خاوند طرف ته ترهغه وخته پورې رجوع نه شې کولې ترکومې چه ته د دغه نوی خاوند خوند وانخلې او هغه ستا خوند وانخلی دا روایت صاحب مشکوة هم صفحه ۲۸۴ باندې نقل کړې دې لیکن په هغې کښې دا الفاظ دی (لاحتی تذوق عسیلته ویذوق عسیلتك)

⑥ زیربحث حدیث نمبر (۳۲۹۳) هم د دوی مستدل دې په کوم چه مشکوة کښې د موطا امام مالك په حواله سره ذکرکړې شوې دې لکه چه دا د عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما د هغه سړی باره کښې فتوی ده چه درې طلاقه واقع شو او ۹۷ طلاقونه ستا په ګناه کښې شامل شو

⑦ سنن نسائی (باب احلال المطلقة ثلاثا) کښې امام نسائی رحمه الله مختلف احادیث نقل کړی دی د کوم نه چه د دریو طلاقو واقع کیدل معلومیږی د حضرت ابن عمر رضی الله عنه د یو روایت الفاظ داسې دی (عن ابن عمر رضی الله عنه قال سئل النبی صلی الله علیه وسلم عن الرجل یطلق امرأته ثلاثا فیتزوجها الرجل فیغلق الباب ویرخی الستر ثم یطلقها قبل ان یدخل بها لاتحل للاول حتی یجامعها الآخر [سنن نسائی ج ۲ ص ۱۰۱].

یعنی د نبی کریم نه د یوداسې سړی په باره کښې سوال اوکړې شو چه مثلاً خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکوی اوبیا دویم سړې هغې سره نکاح کوی اودروازه بندولو سره پرده راښکته کړی خلوت صحیحه کوی لیکن د جماع نه وړاندې هغې ته طلاق ورکوی آیا دا ښځه به د رومبی خاوند دپاره حلال شی؟ نبی کریم اوفرمائیل چه ترکومې دا دویم خاوند هغې سره جماع نه وی کړې دا د رومبی خاوند دپاره حلال کیدې نه شی

⑧ د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه خود طلاق ثلاثه د واقع کیدو باره کښې بې شمیره اقوال نقل دی او د هغوی نه په ګنړ تعداد کښې فتاوی مشهورې دی دا زیربحث حدیث هم د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حکم اوفتوی ده چه په سلو طلاقو کښې په دریو باندې ښځه طلاقه شوه او په درې کم سلو سره په قرآن پاك پورې خندا اوکړې شوه مصنف ابن ابی شیبه او سنن بیهقی کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ډیرې فتاوې نقل دی د کوم نه چه په واضحه توګه معلومیږی چه په یو ځائې درې طلاقه واقع کیږی او ښځه مغلظه جوړیږی

⑨ د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه یوه فتوی هم د دوی مستدل ده هغوی له د دوو کسانو باره کښې استفتاء راغلې وه چه یوخپلې ښځې ته سل طلاقه ورکړې وو او بل د ستورو د شمیر برابر ورکړې وو هغوی په جواب کښې اوفرمائیل چه هغه ښځې د هغوی نه جدا شوې (بیهقی)

دغه شان يوسړى خپلې ښځې ته سل طلاقونه ورکړې وو نو حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په دې الفاظوسره فتوى ورکړه «بانت منك بثلاث وسائرهن معصية» (مصنف ابن ابى شيبه) يعنې په دريو طلاقونوسره ښځه جدا شوه اوباقى ستا په ګناه کښې داخل دى

دغه شان د ابن عمر رضي الله عنهما فتوىٰ ده «من طلق امرأته ثلاثا فقد عصى ربه وبانت امرأته» (مصنف ابن ابى شيبه) چاچه درې طلاقه په يوخائى ورکړل نوهغه د خپل رب نافرمانى اوکړه اود هغه ښځه د هغه نه جدا شوه. په بل روايت کښې دا الفاظ هم دى «لم تحل له حتى تنكح زوجا غيره»

⑩ حضرت مجاهد رحمه الله د خپل استاذ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما يوه فتوىٰ داسې نقل کړې ده «قال رجل لابن عباس طلقت امرأتي مأة قال تأخذ ثلاثا وتدع سبعا وتسعين» (بيهقى) هم په دې مقام د حضرت سعيدبن جبير فتوىٰ هم په سنن بيهقى کښې نقل کړې ده هغوى فرمائيلى دى که يوسړې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړى نوښځه به په هغه باندې حراميږى بهرحال د صحابه کرامو بې شميره فتاوىٰ او بې شميره فيصلې موجود دى چه په يوخائى درې طلاقه ورکولوسره ښځه مغلظه کيدوسره جداکيږى اود بل خاوندسره د نکاح اوجماع نه بغير د خپل خاوند دپاره حراميږى. د سلف اوخلف فقهاء په دې باندې متفق دى. د صحابه کرامو او تابعينو په دې باندې اتفاق دې او د قرون وسطى علماء په دې باندې متفق ښکارى دعربو اوعجمو علماؤ په دې باندې اتفاق کړې دې د سعودى عرب د لويولويو مفتيانو هم دغه فتوىٰ ده. د سعودى عرب قاضى القضاة شيخ بن باز رحمه الله د طلاقه ثلاثه په واقع کيدو باندې د فتوو نه علاوه يوکتاب هم ليکلې دې

**[۳۲۹٤] د الله جل جلاله په نزد طلاق يوخراب څيز دى**

۳۲۹٤-[۳۰] (۱) ①وَعَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ قَالَ: «قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②يَا مُعَاذُ مَا خَلَقَ اللهُ شَيْئًا عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنَ الْعَتَاقِ، ③وَلَا خَلَقَ اللهُ شَيْئًا عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَبْغَضَ إِلَيْهِ مِنَ الطَّلَاقِ». رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** - ①د معاذبن جبل رضى الله عنه څخه روايت دې فرمائى رسول الله صلى الله عليه وسلم «دوى ته» اوفرمائيل ②معاذ الله تعالى په مخ د زمکې د غلام آزادولو څخه خوښ عمل نه دې پيداکړې ③والله تعالى په مخ دزمکې د طلاق څخه ناخوښه عمل نه دې پيداکړې

**تسهيلات:** **قوله:** أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنَ الْعَتَاقِ :

**د عتاق د محبوبيت وجه:** - ددې وجه داده چې عتاق سره يو انسان ته دهغه پيدائشى او فطرى حق ملاويږى اوده ته د غلامى نه نجات حاصليږى کوم چې د انسان حيثيت سره ددې د مرتبې برابر دې

۱) اخرجه الدارقطنى رقم الحديث ۹٤ من كتاب الطلاق

**قوله أَبْغَضُ الْحَلَالِ إِلَى اللهِ الطَّلَاقُ:**

**د طلاق د مبغوضيت وجه:** - طلاق ته مبغوض په دې وجه ونيلې شوی دی چې په دې کښې قطع رحمی وی او الله ﷻ دصلهٔ رحمی حکم ورکړې دې خو طلاق مبغوض هله وی چې کله بغير د څه حاجت شرعيه نه ورکړې شی

**د تجرد په مقابله کښې په نکاح کولو افضليت:** - فتاوی قاضی خان کښې دی چې که چا سره د ومره مال نه وی چې هغه د ښځې مهر ادا کړی او د دهٔ ښځه مونځ نه کوی نو هغه هم د دې لائق چې دې هغې ته طلاق ورکړې شی د ابوحفص ؒ قول دې چې که يو بنده الله ﷻ سره په دې حالت کښې ملاقات کول کوی چې دده په ذمه ددهٔ مهر وی نو هغه زما په نزد ددې نه زيات ماته دا خوښ دی چې هغه يوې داسې ښځې سره صحبت اوکړی کومه چې هډو مونځ نه کوی گويا دا حديث الباب په دې خبره باندې دلالت کوی چې څنله والی (گوشه نشينی) اختيارولو نه نکاح افضل ده دا زمونږ دليل دې (مرقاة ص ۲۹۲ جلد ۲)

# [ ۱۱ ] بَابُ الْمُطَلَّقَةِ ثَلَاثًا

**باب دهغې زنانه باره کښې چه درې طلاقه ورکړې شوی وی**

**خلاصة الباب:** -

**فيه ستة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① وجوب التحليل من الزوج الثاني للزوج الأول الطالق: ۱-

② اللعنة باشتراط التحليل في النكاح: ۲-

③ حكم الإيلاء: ۳-

④ كون الكفارة واحدة في الظهار بعد الوقوع وقبله: ۴، ۵، ۶-

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۲۹۵] د حلاله صحيح كيدل د دويم خاوند پر جماع كولو موقوف دی**

۳۲۹۵ - [۱] ( ) [۱] عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «جَاءَتِ امْرَأَةُ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

---

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب الشهادات/باب شهادة المختبی (رقم ۲۶۳۹) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب لا تحل المطلقة ثلاثا لمطلقها حتی تنکح زوجا غيره. ويطأها. ثم يفارقها وتنقضی عدتها (رقم ۱۱۱ - (۱۴۳۳) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فيمن يطلق امرأته ثلاثا فيتزوجها آخر فيطلقها قبل أن يدخل بها(رقم ۱۱۱۸) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: الطلاق للتی تنکح زوجا. ثم لا يدخل بها (رقم-۳۴۰۸) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ الرجل يطلق امرأته ثلاثا فتزوج فيطلقها قبل أن يدخل بها. أترجع إلى الأول (رقم ۱۹۳۲) ومالک فی الموطا کتاب النکاح باب نکاح المحلل وما أشبهه (رقم -۱۷) واحمد فی المسند: ۴۲/۶

۲ فَقَالَتْ: إِنِّي كُنْتُ عِنْدَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَنِي فَبَتَّ طَلَاقِي، ۳ فَتَزَوَّجْتُ بَعْدَهُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَمَا مَعَهُ إِلَّا مِثْلُ هُدْبَةِ الثَّوْبِ، ۴ فَقَالَ: أَتُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، ۵ قَالَ: لَا حَتَّى تَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عائشه ﷺ وايي چې (يوه ورځ) د رفاعه قرظي ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه، ۲ وعرض يي وکړي، چې زه د رفاعه په نکاح کښې وم. خو هغه ماته طلاق را کړي، او طلاقونه يي هم دري راکړل، ۳ نو ما د رفاعه نه روسته. د عبدالرحمٰن ابن زبير سره نکاح وکړه، ليکن عبدالرحمٰن د کپړي د خونډي په شان لري (يعني هغى ښځي د شرم او حيا له مخه د عبدالرحمٰن نامردي يي کنايةً د دې الفاظو په ذريعه بيان کړه، چې هغه د ښځي قابل نه دی) ۴ حضور ﷺ (د دي آوريدو سره) وفرمايل آيا ته بيا رفاعه ﷺ ته تلل غواړي؟ هغي عرض اوکړو چې هو، ۵ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ته د هغه د رفاعه ﷺ سره دوباره نکاح نه شي کولی، د څو پورې چې عبدالرحمٰن ستا مزه ونه څکی او ته د هغه مزه ونه څکی، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ۱ فَبَتَّ طَلَاقِي: دري طلاقه ئې يوځل راکړل ۲ هُدْبَةِ الثَّوْبِ: د کپړې زونډې. کنايه ده د نامردئ نه. ۳ تَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ: چې ته د هغه ګبين اوڅکې. کنايه ده د جماع د خوند اخستلونه

**تسهيلات: قوله:** هُدْبَةِ الثَّوْبِ:

**د نامردی څخه کنايه:** - دا دَ نامردئی طرف ته اشاره ده بعضې رواياتو کښې راغلی دی چه عبدالرحمان اووئيل "انما ابنهابنها" يعنی زه خودا څنډلوسره ايږدم زه نامرد نه يم علماؤ تطبيق ورکړې دې چه عبدالرحمان هم رښتيا وئيلی دی مګر دا ښځه دَدې نه دَ زيات قوت خواهشمنده وه نو دَهغې ونيل هم صحيح دی مګر هغې په تشبيه ورکولو کښې ښه زور ورکړې دې اودَ کونډې ښځې سره واده کولو کښې داخرابی لازم ده

**د حديث څخه مستنبط مسائل :-** ۱ حلاله يوحقيقت دې دکوم نه چه انکارنه شی کولې اودَدې خراب صورتونه به هم خراب وی ليکن دَدې دَ وجودنه انکار خونه شی کيدې البته که چرې څوك سرې دې نکاح او حلاله ته دَحلاله په ځائې څه بل نوم تجويز کولوسره ورکوی نودَ اصطلاحاتو په تغيرکښې څه بخل نشته دې

۲ دري طلاقه هم دري واقع کيږی

۳ دَ زوج ثانی جماع کول ضروری دی او ﴿ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ﴾ [بقره: ۲۳۰] کښې صرف نکاح مراد نه ده بلکه وطی مراد ده حضرت سعيدبن مسيب رحمه الله اول صرف نکاح کافی کرخولې وه مګر روستودَ حديث عسيله دَ وجې نه رجوع اوکړه

۴ دَحلاله نه بغيردَ ښځه دَ اول خاوند دَپاره حلاله نه ده.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۲۹٦] په محلل او محلل له د حضور ﷺ د طرف نه لعنت**

[۲] (۱) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: [۲] «لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ په محلل او محلل له لعنت ويلي دي (دارمي)

**حل اللغات:** - ① الْمُحَلِّلَ: حلالونکې ، زوج ثانی ته وائی ② وَالْمُحَلَّلَ لَهُ: دَ چادَپاره چه حلالولې شی ، زوج اول ته وائی

(۲) [۱] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ عَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ.

**ترجمه:** [۱] ابن ماجه ﷬ دا روايت د حضرت علي ﷛ ، ابن عباس ﷠ او عقبه ابن عامر ﷛ نه نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمُحَلِّلَ

**د حلالې صورت:** - چه يوسړی خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل دَ عدت تيريدونه پس دا سړې دوباره دغه ښځې مطلقه مغلظه سره نکاح کول غواړی نودا سړې اوس نکاح نه شی کولې او که دغه ښځې چرته بل چاسره نکاح اوکړه اوهغه ورسره جماع هم اوکړه اوبيائی پخپله طلاق ورکړو نودَ عدت تيريدونه پس دابنځه دَخپل رومبی خاوند دَپاره حلاليږی دې ته حلاله وائی اودادَ حلاله هغه جائزصورت دې دَکوم ذکرچه قرآن کريم کښې ﴿حَتّٰی تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ﴾ سره کړې شوې دې البته داخبره دَ يادساتلوده چه په دويم خاوندباندې څه لازم نه دی چه هغه دې طلاق ورکړی که چرې هغه طلاق نه ورکوی نودا دَ هغه ښځه ده خوکه هغه په رضا صلاح سره طلاق ورکړو نو په ښځه باندې عدت تيرول لازم دی بيانکاح کولې شی

**دَ حلالې مکروه تحريمی صورتونه:** - لاندې چې کوم صورتونه ذکر کولی شی دا ټول دَ حلاله مکروه تحريمی صورتونه دی خکه چه دامقاصددَ نکاح منافی دی په نکاح کښې دوام وی او په دې کښې دَ عدم دوام شرط لګولې شوې دې

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی المحل والمحلل له (رقم-۱۱۲۰) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: إحلال المطلقة ثلاثا وما فيه من التغليظ (رقم-۳٤١٦) واحمد فی المسند: ۱/٤٤٨

۲) اخرجه ابن ما جه فی السنن کتاب النکاح/ المحلل والمحلل له (رقم-۱۹۳٤)

① ښځې دغه شرط اولګولو چه دَ جماع نه پس به طلاق راکوي
② که چرې دویم خاوند شرط اولګولو چه دَ جماع نه پس به طلاق ورکوم
③ زوج ثاني دَ زوج اول سره پیسې مقرر کړې چه دومره پیسې به راکړې نو حلاله به کوم
④ زوج اول دغه شرط اولګولو چه دَ جماع نه پس به طلاق ورکوي

**د مشروط حلالې په صحت کښې مذاهب:-**

① دَ جمهور ائمه په نیزدا حلاله صحیح نه ده اودَ جماع نه باوجوددا ښځه به دَ رومبی خاوند دَپاره حلاله نه وی ځکه چه دا شرط فاسد دی لهذا نکاح فاسد شوه نو حلاله صحیح نه شوه

② د احنافو په نیز دا فاسد شرائط به په خپله فاسد شی اونکاح په صحیح پاتې شی ځکه چه په شرائط فاسده سره عقد نکاح نه فاسد کیږی اوکله چه عقد نکاح صحیح شوه نو حلاله هم صحیح شوه اوښځه دَ زوج اول دَپاره حلال شوه.

**داول فريق دليل:-** زیربحث حدیث کښې لفظ لَعَنَ نه دوی استدلال کوی چې دې کښې په محلل باندې لعنت وئیلی شوی دې معلومه شوه چې دا تحلیل صحیح نه دې

**داول فريق د دليل جواب:-** په دې روایت کښې لفظ د محلل په دې دلالت کوی چې حلاله صحیح کیږی ځکه چې محلل ئې ورته وئیلې دې که حلاله پرې نه صحیح کیده نو ولې به ئې ورته محلل وئیل

**حلاله كونكي باندې د لعنت وجه:-** په حلاله کونکی باندې لعنت ځکه کړې شوې دې چه دَ لعنت تعلق دَ حلاله هغه صورتونو سره دې کوم چه مکروه تحریمی دی هم دَدغه صورتونو په رنړاکښې په بعضې روایاتو کښې (محلل) ته (تَيْسٌ مُسْتَعَارٌ) یعنی دَ عاریت بکرې وئیلې شوې دې او په زیرنظر حدیث کښې په دې باندې لعنت کړې شوې دې

**په محلل له د لعنت وجه:-** په محلل له باندې لعنت ځکه کړې شوې دې چې د هغه مغلظه طلاق ورکولوسره دغه زوج ثاني دَ حلاله په هغه مکروه صورتونو کښې واچولو په دې وجه هغه هم دَ لعنت مستحق شو

**خلاصه:-** خلاصه دا چه که په حلاله کښې دغه مکروه صورتونه نه وی او په زبان حال او زبان قال سره په واضحه توګه دَدغه ناجائز شرطونو اظهارنه وی نو فی نفسه حلاله دَ مواخذه قابل نه ده بلکه په بعضې ډیره مجبورنی کښې دَاجر قابل هم کیدې شی کله چه نیت دَ اصلاح احوال وی ځکه چه دَ قرآن په آیت کښې ﴿حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ﴾ [سورت بقره ۲۳۰.] هم یوعام مفهوم دې

**د حلالې ممنوع او غير صحيح صورت:-** علامه ابن همام رحمه الله فتح القدیر کښې دَ حلاله

ممنوع او قابل دَ لعنت دا صورت خودلې دې چه مطلقه مغلظه ښځې خپل په خپله دَ مشرد اجازت نه بغیر نکاح او کړه نو په دې صورت کښې سره دَدې چه دویم خاوند جماع هم او کړې دا حلاله صحیح نه ده او دَ زوج اول دپاره دا حلال کیدې نه شی او هم په دې باندې فتوی ده

**[۲۲۹۸] د ایلا مسئله**

۲۲۹۸ — [۳] (۱) ①وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: أَدْرَكْتُ بِضْعَةَ عَشَرَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كُلُّهُمْ ②يَقُولُ: يُوقَفُ الْمُؤْلِي. رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ①او سلیمان ابن یسار (تابعي) رحمه الله وایي چې ما د رسول الله ﷺ لس، بلکه د دې نه هم زیات صحابه رضي الله عنهم لیدلي دي، ②چې هغوئ ټولو به دا فرمایل، چې ایلا کونکې دې ایسار کړل شي، (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ①بِضْعَةَ عَشَرَ: د لسو نه زیات، ②يُوقَفُ: ایساروليې به شی. پابند کولې به شی ③الْمُؤْلِي: ایلاء کونکې

**تسهیلات:**

**قوله: يُوقَفُ الْمُؤْلِي:**

**د موقفلی حصارولو مفهوم:** -یعنی ایلاکونکې به حصارولې شی رابندولې به شی او هغه به دَدې پابند کولې شی چه تاکله ایلا کړې ده نو اوس دَ څلورمیاشتو نه پس وطی کولو سره دَ ښځې طرف ته رجوع او کړه یا طلاق ورکړه که چرې هغه داسې نه کوی نو هغه به قید کولې شی او په جیل کښې به اچولې شی. دادَدې جملې ظاهری مطلب دې کوم چه دَ جمهورو موافق دې

**د ایلا لغوی:** -په لغت کښې ایلاء قسم ته وائی

**دایلا اصطلاحی تعریف:** - په اصطلاح کښې ایلا دې ته وائی چه یوسړې داقسم اوخوری چه هغه به څلورو میاشتو یا دَدې نه زیات پورې خپلې ښځې سره جماع نه کوی دا ایلاده

**د ایلا حکم:** - که دې سړی په څلورو میاشتو کښې دننه خپلې ښځې سره جماع اوکړه نو ایلا ختمه شوه داسړې حانث شواوس به دَ قسم کفاره اداکوی

**د څلورو میاشتو تیریدو نه پس د طلاق واقع کیدو په کیفیت کښې مذاهب:-**

①که څلورمیاشتې تیرې شوې اوده رجوع اونه کړه نو د جمهورپه نیز څلورمیاشتې تیریدونه پس به پخپله طلاق نه واقع کیږی بلکه ایلاکونکی ته به ونیلی شی چه یا خپلې ښځې طرف ته رجوع اوکړه یا دې ته طلاق ورکړه که چرې هغه نه طلاق ورکوی اونه رجوع کوی نوقاضی به دې په قید کښې واچوی دې دپاره چه هغه دې یا طلاق ورکړی یا دې

۱) اخرجه البغوي في شرح السنة رقم الحديث ۲۳٦۲، والدارقطني رقم الحديث ۱۴۸ من كتاب الطلاق

رجوع اوکړی خو که دې ضدی ظالم هیڅ هم اونه کړل بلکه انکارئې اوکړو نو دې وخت کښې به قاضی دَ ده په ځائې شی او هغه به طلاق ورکړی یعنی په دواړو کښې به دَ جدا کیدو حکم اوکړی کوم چه یو طلاق بائن دې.

② دَ احنافو په نیز به دَ دغه مودې په تیریدو سره به پخپله یو طلاق بائن واقع شی دَ قاضی دَ تفریق هیڅ ضرورت نشته دې اونه به دا سړې په طلاق ورکولو یا په رجوع ورکولو باندې مجبورولې شی

**دَاول فریق دلیل:** - مذکوره روایت په ظاهره دَدوی مستدل دې ځکه چه ایلا کونکی ته دَ څلورمیاشتونه وړاندې په رجوع یا طلاق باندې نه شی مجبورولې معلومه شوه چه دَ څلورو میاشتو موده تیریدونه پس دامعامله کول دی که په موده تیریدو سره طلاق بائن واقع کیدې نو دَ (یوقف المولی) څه ضرورت وو؟

**دَاول فریق دَ دلیل جواب:** - دلته دَ قاضی دَ فیصلې هیڅ ضرورت نشته دې ځکه چه ایلا یوه ذاتی معامله دَ کورنئې ده دَدې قاضی او دَهغه عدالت سره هیڅ کار نشته دې دَ قاضی مداخلت په لعان کښې وی په ایلاکښې نه وی. لهذا جمهورو چه دلته دَ قاضی تفریق ته ضروری وئیلی دی دَدې هیڅ ضرورت نشته دې.

**دَ دویم فریق دلیل:** - دا آیت دَ دوی مستدل دې ﴿ لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآىِٕهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ ۚ فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝﴾ [سورت بقره ۲۲۶.]

**دَ آیت نه دَ دوؤ خبرو معلومیدل:** - ① دَ ایلاکم نه کم موده څلورمیاشتې ده دَدې نه په کمه موده کښې به ایلا نه کیږی بلکه صرف قسم به وی.

② څلورمیاشتې تیریدونه پس یو طلاق بائن واقع کیږی ځکه چه آیت وائی که چرې ایلا کونکی څلورمیاشتو کښې دننه رجوع اونه کړه نو هغه هم دَ طلاق اراده اوکړه او دَ ﴿ وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ ﴾ نه احنافو په ځائې استدلال کړې دې.

**دَ دویم فریق دویم دلیل:** - ② دَ احنافو دَ مسلك مطابق لوئې لوئې صحابه کرام لکه حضرت عثمان ﷺ حضرت علی ﷺ او حضرات عبادله ثلاثه یعنی حضرت عبدالله بن مسعود او عبدالله بن عمر او عبدالله بن عباس ﷺ تولو فرمائیلی دی چه دَ ایلا دَ مودې څلورو میاشتو تیریدو سره په ښځه باندې یو طلاق بائن واقع کیږی.

**په ایلاء کښې دَ رجوع دوه صورتونه:** - ① په ایلاکښې دَ رجوع کولو یوه طریقه خوخپلې ښځې سره جماع کول دی دا رجوع بالفعل دې

② دویمه طریقه په ژبه سره دَ رجوع کولوده کوم ته چه رجوع بالقول وئیلی شی

## [۲۲۹۹] د ظهار حکم

۲۲۹۹-[۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -: «أَنَّ سَلْمَانَ بْنَ صَخْرٍ - وَيُقَالُ لَهُ: سَلَمَةُ بْنُ صَخْرٍ الْبَيَاضِيُّ - [۲] جَعَلَ امْرَأَتَهُ عَلَيْهِ كَظَهْرِ أُمِّهِ حَتَّى يَمْضِيَ رَمَضَانُ، [۳] فَلَمَّا مَضَى نِصْفٌ مِنْ رَمَضَانَ وَقَعَ عَلَيْهَا لَيْلًا، [۴] فَأَتَى رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَعْتِقْ رَقَبَةً،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسلمه ﷺ وايي چې (يو صحابي) سليمان ﷺ ابن صخر چې هغه ته سلمه ابن صخر بياضي ونيل کيږي، [۲] خپله ښځه د خان د پاره د خپلي مور د شا په شان وګرځوله، [۳] تردي چې رمضان ختم شی (يعني هغه ښځي ته دا اوويل چې د رمضان تر ختميدو ته په ما زما د مور د شا په مثل يې، ګويا دغه شان هغه خپله ښځه د رمضان تر ختميدو په خپل خان حرامه وګرځوله) خو اوس لا نيم رمضان تير شوی وو، چې يوه شپه يې د خپلي ښځي سره صحبت وکړي، [۴] بيا (چې سحر شو، نو) هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، او دا واقعه يې ورته بيان کړه، حضور ﷺ ورته وفرمايل چې يو غلام آزاد کړه،

[۱] قَالَ: لَا أَجِدُهَا قَالَ: فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ، [۲] قَالَ: لَا أَسْتَطِيعُ، قَالَ: (أَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا): قَالَ: لَا أَجِدُ، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِفَرْوَةَ بْنِ عَمْرٍو (أَعْطِهِ ذَلِكَ الْعَرَقَ): [۴] وَهُوَ مِكْتَلٌ يَأْخُذُ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا أَوْ سِتَّةَ عَشَرَ صَاعًا (لِيُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] هغه عرض اوکړو چې زه د دې استطاعت نه لرم، حضور ﷺ ورته وفرمايل چې دوې مياشتي پرله پسې روژې ونيسه، [۲] هغه عرض اوکړو چې د دې طاقت هم راپه کښې نشته (حکم خداوندي خو دا دې چې دوه مياشتي مسلسل داسې روژې ونيول شی، چې په هغه مياشتو کښې د جماع نه کُلِيَّةً پرهيز وشي، او زه د خپل جنسي هيجان په وجه تر دومره ورځو د جماع نه منع کيدی نشم) حضور ﷺ ورته وفرمايل چې په شپيتو مسکينانو طعام وخوره، هغه عرض اوکړو چې زه د دې هم استطاعت نه لرم، [۳] بيا حضور ﷺ يو بل صحابي فروه ابن عمرو ﷺ ته وفرمايل چې ده ته د خورماوو هغه عرق ورکړه (چې يو سړی راوړي وو) چې په شپيتو مسکينانو يې وخوري [۴] او عرق د خورماوو د پانړو نه جوړي شوی توکري ته وايي، چې په هغه کښې پنځلس يا شپاړس صاع يعني تقريبًا ۱۱۲، ۵۲ سيره يا ۵۶ سيره کجوري راخي، (ترمذي)

**حل اللغات** - ① اَلْعَرَقُ: توکری، بوجئ، ② مِكْتَلٌ: پيمانه ③ صَاعًا: يو خاص پيمانه چه په دې کښې تقريبا ۱۱۲، ۵۲ سيره يا ۵۶ سيره کجوري راخي.

---

۱) اخرجه الترمذی في السنن کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء في کفارة الظهار (رقم ۱۲۰۰)

...۳۳۳( )[۱] وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ «عَنْ سَلَمَةَ بْنِ صَخْرٍ نَحْوَهُ»[۲] قَالَ: كُنْتُ امْرَءًا أُصِيبُ مِنَ النِّسَاءِ مَا لَا يُصِيبُ غَيْرِي». [۳] وَفِي رِوَايَتِهِمَا - أَعْنِي أَبَا دَاوُدَ وَالدَّارِمِيَّ -: ( «فَأَطْعِمْ وَسْقًا مِنْ تَمْرٍ بَيْنَ سِتِّينَ مِسْكِينًا» ).

**ترجمه**: [۱] او ابوداؤد، ابن ماجه او دارمي دا روايت د سليمان ابن يسار نه او هغه د سلمه ابن صخر ﷺ نه داسې نقل کړي دي، [۲] چې په هغه کښې د حضرت سلمه ﷺ دا الفاظ هم دی، چې ما به د خپلو ښځو سره دومره قربت کولی، چې هيڅ سړی به زما برابر قربت نه کولی (نو د جنسي هيجان د دومره زياتي غلبي په وجه زه د خپلي ښځي سره د صحبت کولو نه منع نه شوم) [۳] او دي دواړو يعنی د ابوداؤد او دارمي په روايت کښې دا الفاظ دي، چې حضور ﷺ (په شپيتو مسکينانو د خوړلو په خای) دا وفرمايل چې په شپيتو مسکينانو يو وسق کجوري وخوره.

**حل اللغات**: - ① أُصِيبُ مِنَ النِّسَاءِ: ښځو ته به رسيدم. کنايه ده د جماع نه. ② وَسْقًا: يو خاص پيمانه چه د شپيتو صاع برابر وی.

**تسهيلات:**

**قوله**: كَظَهْرِ أُمِّهِ:

**د مشكاة د نسخو اختلاف**: - دَمشکوة شريف په بعضې نسخوکښې (باب المطلقة ثلاثا) نه پس (وفيه ذکر الظهار والايلاء) الفاظ عنوان کښې ذکر دی. هم په دې وجه په دې باب کښې دَ ايلاء حديث هم دې اودَ ظهار احاديث هم راغلی دی يا ايلاء او ظهار هم دَ طلاق يو قسم دې په دې وجه دَطلاق دَ ابوابو په ضمن کښې ذکرکړې شو.

**قوله**: كَظَهْرِ أُمِّهِ:

**د ظهار تعريف**: - ظهار هغې ته وائی چه يو سړې خپلې ښځې ته يا دَهغې دَبدن اهم اومشهوره حصه خپل محرمات ابديه دَ بدن هغه حصې سره تشبيه ورکړی د کومې حصې طرف ته چه دَ هغه دَ پاره کتل حرام وی لکه چه خپلې ښځې ته داسې اووائی چه ته په ما باندې لکه زما دَمور دَ شا په شان حرام ئی يا ستا سر يا خيټه زما دَمور دَ خيټې په شان ده

**د ظهار حکم**: - ددې الفاظونه پس دغه ښځې سره جماع کول اوښکلول اونيزدې کيدل ټول حرام دی اوکه هغه چرته دَ ظهار کفاره اداکړی بيا به جماع جائزشی دَ ظهار کفاره اداکولو نه مخکښې که چرې هغه جماع اوکړه نو په هغه باندې استغفار لازم دې صرف هم هغه دَظهار کفاره به اداکوی نوره څه جرمانه به نه راځی البته دکفاره اداکولو نه مخکښې دوباره دې جماع نه کوی

۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق /باب فی الظهار (رقم - ۲۲۱٤) واحمد فی المسند: ۳۶/۵

**قوله** حَتّٰى يَنْقَضِيَ رَمَضَانُ:

**د ظهار موقت حکم:** -دې جملې نه معلومه شوه چه موقت ظهار جائز دې او کله چه مقرره وخت تیرشي نو ظهار به باطل شي ابن همام رحمه الله فرمائيلي دي چه کوم سړی د يو معين وخت دپاره ظهار او کړو (مثلاً داسې اووئيل چه د رمضان پورې ظهار دې) نو دا قید لګول صحيح دی او د وخت تیریدو سره به ظهار باطل شي

**قوله** أَطْعِمْ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا:

**د ظهار په کفاره کښې ترتیب:** -د ظهار په کفاره کښې دا ترتیب دې

① چه اول خو غلام آزادول متعين دی

② که چرې غلام نه وی نو شپیته ورځې به روژې ساتی

③ که چرې روژې نه شی ساتلې نو بیا به په شپیتو مسکینانو باندې خوراك کوی

په دې درې واړو صورتونو کښې د دې کفارو ادا کولو نه وړاندې جماع کول حرام دی یعنی د غلام آزادولو نه وړاندې د روژو پوره کولو نه مخکښې او شپیتو مسکینانو ته د طعام ورکولو نه وړاندې جماع کول حرام دی که چرته د دې کفارو ادا کولو نه وړاندې ئې جماع او کړه نو کفاره پرې دوباره نه لازمیږی البته استغفار کوی او د الله تعالی نه به معافی غواړی

**اشکال:** -شپیتو مسکینانو ته ۱۶ صاع کهجورې کفاره کښې ورکړې دې حالانکه د فقه په کتابونو کښې لیکلی دی چه که کهجورې ورکول وی نو هر مسکین ته به د صدقه فطر په اندازه برابر ورکوی په دې حساب خو شپیته صاع کهجورې کیدل پکار دی؟

**د اشکال درې جوابونه:** - ① رسول الله ﷺ حضرت سلمه رضي الله عنه ته او فرمائيل چه دا کهجورې په مسکینانو باندې خرج کړه د دې مطلب دا نه وو چه پوره کفاره هم دغه وه بلکه مطلب دا وو چه خومره کهجورې موجود دی هغه تقسیم کړه او باقی د خپل طرف نه یو ځائی کړه

② هم په دې روایت کښې د ابوداؤد او دارمی په حواله سره د یووسق ذکر موجود دې او وسق د شپیتو صاع وی نو اوس هیڅ اشکال باقی پاتې نه شو ځکه چه دغه سړی ته لکه چه اووئیلی شو چه دا ۱۶ صاع واخله او د خپل طرف نه باقی کهجورې ملاؤ کړه یووسق پوره کړه

③ په نورو روایتونو کښې دا تفصیل دې چه دا سړې بخپله غریب وو نو فی الحال ټولې کهجورې هم هغه ته ورکړې شوې او کفاره روستو بیا ادا کړې شوه

**د کفاره ظهار په روژو کښې د تسلسل حکم:** - فقهاؤ لیکلی دی چه کفاره د ظهار کښې که یو سړې روژې ساتل غواړی نو په هغه روژو کښې دا تسلسل کیدل پکار دې چه په مینځ کښې ایام منهیه رانه شي

**د روژو په مینځ کښې د جماع کولو حکم:** - د امام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دې که ظهار کونکی د روژو په مینځ کښې جماع اوکړه نو بیا به د سره روژې نیسی مګر د امام ابویوسف رحمه الله او جمهورو مسلك دا دې چه استیناف نشته صرف استغفار دې اوکړی

**په کفاره ظهار کښې د غلام د اسلام په شرط کښې مذاهب:** -

① د جمهورو په نیز د ظهار کفاره کښې د مسلمان غلام آزادول ضروری دی

② احناف فرمائی چه قرآن کریم کښې مطلق غلام ذکر دې لهذا مسلمان کیدل افضل دی لیکن واجب نه دی دغه شان که غلام وی او که وینځه وی بالغ وی که نابالغ ټول جائز دی خکه چه آیت مطلق دې. د راتلونکی حدیث نمبر (۳۳۰۱) او (۳۳۰۲) تشریح هم په دې توضیح کښې راغله

**[۳۳۰۱] که ظهار کونکي د کفاره ورکولو نه مخکي جماع اوکړي، بیا به هم یوه کفاره واجب وي**

۳۳۰۱—[۵] (١) ①وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ صَخْرٍ ②«عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْمُظَاهِرِ يُوَاقِعُ قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ، ③قَالَ: كَفَّارَةٌ وَاحِدَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ①و سلیمان ابن یسار (تابعي) د حضرت سلمه رضي الله عنه ابن صخر نه نقل کوي ②چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د هغه ظهار کونکي په باره کښې، چې د کفاری د ادا کولو نه مخکي جماع وکړي ③وفرمایل چې په هغه به یواځې یوه کفاره واجب وي، (ترمذي. ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ①الْمُظَاهِرِ: ظهار کونکې ②يُوَاقِعُ: چه واقع شی مراد ترې جماع ده

**تسهیلات:**

**نوټ:** - حدیث سره متعلقه تشریح د دې ځخه وړاندې حدیث نمبر ۳۳۰۰ په تسهیل کښې ذکر شوې ده

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

۳۳۰۲—[۶] (٢) ①عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا -: ②«أَنَّ رَجُلًا ظَاهَرَ مِنِ امْرَأَتِهِ فَغَشِيَهَا قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ، ③فَأَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ. ④فَقَالَ: مَا حَمَلَكَ عَلَى ذَلِكَ؟! ⑤" قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! رَأَيْتُ بَيَاضَ حِجْلَيْهَا فِي الْقَمَرِ، فَلَمْ أَمْلِكْ نَفْسِي أَنْ وَقَعْتُ عَلَيْهَا.

**ترجمه:** ①عکرمه د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کوي. ②چې یو سړي د خپلي ښځي سره ظهار وکړي. او بیایي د کفاره د ادا کولو نه مخکي د هغې سره جماع وکړه، ③د دې نه وروسته

١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المظاهر یواقع قبل أن یکفر (رقم-١١٩٨) وابن ماجه فی کتاب النکاح / المظاهر یجامع قبل أن یکفر (رقم-٢٠٦٤)
٢) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب النکاح / المظاهر یجامع قبل أن یکفر (رقم-٢٠٦٥)

هغه د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو، او حضور ﷺ ته يې واقعه ذكر كړه، [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې كوم شي ته په داسې كولو آماده كړې؟ (يعني څه وجه پېښه شوه چې تا د كفارې د ادا كولو نه مخكې جماع وكړه، [۵] هغه عرض اوكړو چې د سپوږمۍ په رڼا كښې د هغه د پازيب په سپين والي زما نظر ولګيدلو . او ما د جماع كولو نه ځان منع نه كړې شو .

[۱] فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] وَأَمَرَهُ أَنْ لَا يَقْرَبَهَا حَتَّى يُكَفِّرَ» . [۳] رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ. وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ مُسْنَدًا وَمُرْسَلًا. وَقَالَ النَّسَائِيُّ: الْمُرْسَلُ أَوْلَى بِالصَّوَابِ مِنَ الْمُسْنَدِ.

**ترجمه:** [۱] د دې آوريدو سره) حضور ﷺ ته خندا ورغله، [۲] او هغه ته يې دا حكم وكړو چې اوس دوباره د هغې سره د هغه وخته جماع مه كوه، د څو پورې چې كفاره ادا نه كړې، [۳] ابن ماجه، ترمذي رحمه الله هم دغه شان (يعني د دې هم معنى) روايت نقل كړې دې، او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح غريب دى، او ابوداؤد رحمه الله او نسايي رحمه الله دا شان روايت مسند او مرسل نقل كړې دې، او نسايي رحمه الله ويلي دي چې د مسند په نسبت مرسل زيات صحيح دى.

**حل اللغات:** - ① فَغَشِيَهَا: نو پټه ئې كړه، جماع ئې ورسره اوكړه ② خِلْخَالِهَا: پانزيب دهغې

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَمْ أَمْلِكْ نَفْسِي أَنْ وَقَعْتُ عَلَيْهَا:

**د مذكوره جملې مطلب:** - ما دا طاقت نه لرلو چې ما خپل ځان منع كړې وې ليكن بيا مې هم جماع اوكړه . يا بۀ دا بدل وى د نفسي نه نو معنى به ئې داوى چې د دې كار په كولو كښې څه د خپل نفس مالك نه ووم

**قوله:** وَأَمَرَهُ أَنْ لَا يَقْرَبَهَا حَتَّى يُكَفِّرَ:

**د سورة مجاله د آياتونو شان نزول:** - ددې حديث پاك په ذيل كښې ملا على قارى رحمه الله دكفارې د نزول سبب بيان فرمائيلې دې كوم طرفته چې داسې اشاره ئې اوفرمائيله (وسبب نزول شريعة الكفارة في الظهار قصة خولة او خويلة بنت مالك ابن ثعلبة قالت ظاهر مني زوجي أوس بن صامت فجئت رسول الله ﷺ أشكو إليه ورسول الله ﷺ يجادلني فيه ويقول اتقي الله فإنه ابن عمك... الخ)

يعنى خوله يا خويله بنت مالك ابن ثعلبه رضي الله عنها فرمائى چې كله ماته اوس بن صامت رضي الله عنه اوفرمائيل چې (أنت كظهر أمي) نو څه د شكايت دپاره د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې

حاضره شوم او خینو روایاتو کښې دی چې نبی کریم ﷺ ته راغله او وې اوئیل یارسول الله ﷺ کله چې څما هغه سره وادهٔ شوې وو نو هغه وخت کښې ماسره مال دولت وو اوس راسره هیڅ نشته دې ماشومان مې دی او اوس زه هم ځوانه نه یم ، د یوځائې کیدو یو صورت راته اوښائې په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زما دا خیال دې چې ته په خپل خاوند باندې حرامه شوې نوپه دې باندې دې ښځې بحث شروع کړو او وې وئیل چې هغه د طلاق لفظ هم نه دې استعمال کړې اوس بهٔ څه کیږی؟ زه چرته لاړه شم وغیره وغیره

**د ظهار د حکم نزول :-** نو په دې باندې د سورة مجادله دا پورتنی آیت مبارك نازل شو چې ﴿قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ﴾ نبی کریم ﷺ هغې ته اووئیل چې ته خپل خاوند راوله نو هغې خاوند راوستو او دهغه په وړاندې نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك تلاوت کړو او ورته ئې اوفرمائیل چې ته یو غلام آزاد کړه هغه اووئیل چې ما کښې د غلام آزادولو طاقت نشته دې نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې دوه میاشتې پرله پسې روژې اونیسه هغه اووئیل چې څه بوډا یم دومره روژې نشم نیولې نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې شپیتو مسکینانو ته خوراك ورکړه عرض ئې اوکړو چې ماسره دصدقې دپاره هیڅ څیز نشته دې خو که تاسو ماسره مدد اوکړئی نبی کري م ﷺ هغه سره د یو فرق کهجورو مدد اوفرمائیلو دې صحابی عرض اوکړو چې ماسره د یو بل فرق تعاون اوکړئی نو نبی کریم ﷺ هغه ته دوه فرق ورکړل یو فرق کښې شپیته صاع وی

# [۱۲] بَابٌ [فِي كَوْنِ الرَّقَبَةِ فِي كَفَّارَةٍ مُؤْمِنَةً]

**باب د مؤمني په کفاره کښې د غلام آزادول**

**خلاصة الباب:-**

**فيه حديث واحد مشتمل على مسئلة واحدة:**

① كون الرقبة مؤمنة في الكفارة إلا كفارة القتل:

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۲۳۰۲] د ظالم دپاره په مظلوم باندې احسان کول**

۲۳۰۲-[۱] ( ) [۱] «عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ جَارِيَةً كَانَتْ لِي تَرْعَى غَنَمًا لِي فَجِئْتُهَا وَقَدْ فَقَدَتْ شَاةً مِنَ الْغَنَمِ، [۳] فَسَأَلْتُهَا عَنْهَا فَقَالَتْ: أَكَلَهَا الذِّئْبُ; [۴] فَأَسِفْتُ عَلَيْهَا وَكُنْتُ مِنْ بَنِي آدَمَ، [۵] فَلَطَمْتُ وَجْهَهَا، وَعَلَيَّ رَقَبَةٌ أَفَأُعْتِقُهَا؟

**ترجمه:** [۱] حضرت معاويه ابن حکم ﷺ وايي چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، [۲] او عرض مي اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ زما يوه وينځه ده، چې زما رمه پيايي. زه چې هغې ته ورغلم، او په رمه کښې خپله يوه بزه مي کمه وليده، [۳] نو ما د هغې نه د بزي (چيلۍ) په باره کښې پوښتنه وکړه، چې هغه څه شوه؟ هغې اوويل چې شرمښ يو وړه. [۴] ماته په هغې غصه راغله، او زه د بني آدم نه يم (يعني يو انسان يم، او انسان په تقاضا د بشريت سره مغلوب الغضب کيږي ) [۵] ځکه هغه وينځه مي په مخ يوه چپلاخه ووهله . او دا وخت (د کفاره ظهار يا د کفاره قسم په طور يا په څه بل سبب) په ما يو برده (يعني يوه وينځه يا يو غلام) آزادول واجب دی، نو آيا زه هغه وينځه آزاده کړم (چې زما د ذمي نه هغه کفاره هم ادا شي. او د هغې په چپلاخه د وهلو په وجه چې زه په کوم ندامت او شرمندګي کښې مبتلا يم. د هغه نه هم نجات پيدا کړم)

**حل اللغات:-** ① فَلَطَمْتُ: په څپيړه مي اووهله.

[۱] فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (أَيْنَ اللَّهُ؟): فَقَالَتْ: فِي السَّمَاءِ [۲] فَقَالَ: (مَنْ أَنَا؟): فَقَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (أَعْتِقْهَا)» رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ (د دي اوريدو سره) هغه وينځه طلب کړه، او د هغې نه يي پوښتنه وکړه چې الله چرته دي؟ هغې جواب ورکړي چې په آسمان کې دي يعنې پورته دي [۲] بيا يي پوښتنه ورنه وکړه چې زه څوک يم؟ هغې اوويل چې ته ﷺ د الله تعالى ﷻ رسول يې، د

۱) اخرجه مسلم في كتاب المساجد/باب تحريم الكلام في الصلاة، ونسخ ما كان من إباحته (رقم-۳۳ - (۵۳۷) ومالك في الموطا كتاب العتق والولاء/باب ما يجوز من العتق في الرقاب الواجبة (رقم-۸)

دي نه وروسته حضور ﷺ وفرمايل چې دا آزاده كړه، مالک.

۱ وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ قَالَ: «كَانَتْ لِي جَارِيَةٌ تَرْعَى غَنَمًا لِي قِبَلَ أُحُدٍ وَالْجَوَّانِيَّةِ، ۲ فَاطَّلَعْتُ ذَاتَ يَوْمٍ فَإِذَا الذِّئْبُ قَدْ ذَهَبَ بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِنَا، ۳ وَأَنَا رَجُلٌ مِنْ بَنِي آدَمَ آسَفُ كَمَا يَأْسَفُونَ، ۴ لَكِنْ صَكَكْتُهَا صَكَّةً، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَعَظَّمَ ذَلِكَ عَلَيَّ.

**ترجمه:** ۱ د مسلم عليه الرحمة په روايت كښې داسې دي چې حضرت معاويه رضي الله عنه اوويل چې زما يوه وينځه وه، چې د احد د غره او د جوانيه په اطرافو كښې به يې زما بزې (چيلئ) پيايلې (جوانيه احد ته نژدې د يو ځاى نوم دى) ۲ يوه ورځ چې ما ځپله رمه وليده، نو ماته معلومه شوه چې شرمښ زما يوه بزه د رمې نه پورته كولو سره وړې ده، ۳ زه د بني آدمو نه يو سړى يم، او څنګه چې (د څه نقصان او تاوان په وجه) د آدم آولاد ته غصه راځي، دغه شان ماته هم غصه راغله (نو د هغه په وجه ما هم وغوښتل، چې هغه وينځه ښه ووهم) ۴ ليكن ما هغه يوه چپلاخه ووهله، بيا زه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم (او ټوله واقعه مې ورته بيان كړه) حضور ﷺ دا واقعه زما په حق كښې يو اهم امر وګڼلو، او وې فرمايل چې تا دا لويه ګناه كړې ده،

**حل اللغات** - ۲ الْجَوَّانِيَّةِ: په جيم باندې فتحه او په واؤباندې شد دې. په مدينه كښې دَ أُحد غرسره يوځاى دې دَهغې نوم دې ۳ فَاطَّلَعْتُ: طاء مشدده سره دا دَ سر وراوچتولوسره كتلو په معنى كښې دې ۴ آسَفُ: افسوس، ۵ صَكَكْتُهَا صَكَّةً: نصرينصر نه صكاوصكة په مخ څپيړه وهلو ته وائى ۶ فَعَظَّمَ ذَلِكَ: يو اهم او لويه واقعه ئې اوګڼړله دا معامله،

۱ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-! أَفَلَا أُعْتِقُهَا؟ ۲ قَالَ: (ائْتِنِي بِهَا): فَأَتَيْتُهُ بِهَا. فَقَالَ لَهَا: (أَيْنَ اللَّهُ؟): ۳ قَالَتْ: فِي السَّمَاءِ. قَالَ: (مَنْ أَنَا): ۴ قَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ قَالَ: (أَعْتِقْهَا فَإِنَّهَا مُؤْمِنَةٌ)»:

**ترجمه:** ۱ ما عرض اوكړو چې يا رسول الله! ﷺ نو آيا زه دا وينځه آزاده كړم؟ ۲ حضور ﷺ وفرمايل چې هغه ماته راوله. ما حضور ﷺ ته راوسته، حضور ﷺ د هغې نه پوښتنه وكړه چې الله تعالى جل جلاله كوم ځاى دى؟ ۳ هغې جواب وركړي چې په آسمان كښې دى. بيا يې ورنه حضور ﷺ پوښتنه وكړه چې زه څوک يم؟ ۴ هغې اوويل چې ته ﷺ د الله تعالى جل جلاله رسول يې. نو حضور ﷺ وفرمايل چې دا وينځه آزاده كړى، ځكه چې دا مسلمانه ده

**تسهيلات:** قوله: آسَفُ:

**د آسف لغوى تحقيق:** - په همزه باندې مددې اوسين مفتوح دې دا ماده دَ دوو بابونونه راځي سمع يسمع نه دردمند اوغمګين كيدو په معنى كښې دې اودَباب افعال نه په غصه كښې دَ اچولوپه معنى كښې دې (فلما آسفونا) هم دَدې باب افعال نه دې. په دې حديث كښې

علامه طیبی رحمه الله او ملاعلی قاری رحمه الله دواړو دا لفظ دَ غصي او غضب په معنی کښې
خستې دي

**قوله** أَيْنَ اللّٰهُ:

**په أين الله سره دَ سوال کولو مطلب:** -رسول الله ﷺ دَ هغه وینځې نه دا سوال دَدې وجې نه نه وو کړې چه هغه دې دَ الله تعالی جهت مکان او مقام اوښائي بلکه دَ نبی کریم مقصد صرف دومره معلومات کول وو چه دا وینځه مؤحده مؤمنه ده که نه او چونکه دَ عربو دَ مشرکانو عقیده وه چه الله تعالی سره څومره هم معبودان شریك دی هغه ټول په زمکه باندې دی او په آسمان کښې چه کوم رب دې هم هغه الله دې په دې وجه چه کله وینځې جواب ورکړو چه (في السماء) نو دَدې مطلب دا شو چه هغه واحد لاشریك ب دی، په آسمان کښې دې دَ هغه هیڅوك شریك نشته دې په دې باندې نبی کریم اوفرمائیل دا آزاده کړئ دا مؤمنه مؤحده ده

**په کفاره ظهار کښې غوره غلام:** -افضل او بهتر هم دغه دی چه دَ ظهار په کفاره کښې آزاد شوې غلام یا وینځه مسلمان وی او که چرې مسلمان نه وی نو بیا هم دې سره کفاره اداکیږی دَ احنافو هم دغه مسلك دې البته جمهور فرمائی چه دَ غلام مسلمان کیدل ضروری دی هغوی دَ مذکوره حدیث نه استدلال کوی احناف فرمائی په قرآن کریم کښې دَ ظهار دَ کفارې ترتیب داسې دې ﴿ وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۚ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴾ [سورة المجادلة ۲] ﴿ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ﴾ [سورة المجادلة ۴.]

په دې ترتیب کښې (رقبة) لفظ مطلق دې که مسلمانه وی او که کافره وی البته دَحدیث دَ وجې نه مسلمانه کیدل غوره دی

**تعارض:** -دلته په دې دوو روایتونو کښې په ظاهره معمولی شان تضاد معلومیږی څکه چه دَ موطامالك دَ روایت نه معلومیږی چه دغه صحابی اوفرمائیل زما په ذمه یو غلام آزادول دی نو آیا دَ هغه په عوض زه دا وینځه آزادولې شم دې دَپاره چه هغه کفاره هم اداشی او دَ دې وهونکی دَ ملامتیا علاج هم اوشی

بل طرف ته دَ مسلم شریف دَ روایت نه معلومیږی چه حضرت معاویه بن حکم دغه وینځه په مخ باندې دَ وهلو دَ وجې نه آزاده کړه؟

**دَ تعارض جواب:** -دَدې تضاد جواب دادې چه دلته څه تعارض نشته دې صرف دومره خبره ده چه دَ موطا مالك په روایت کښې تفصیل دې او دَ مسلم په روایت کښې اجمال دې

نو دغه اجمال ته دَدي تفصيل په رنړا کښې کتل پکار دی چه دَ دغه صحابي په ذمه بل څه کفاره هم وه ليکن هغه غوښتل چه په هغې کښې دَ دغه وهلو دکفارې نيت هم اوکړی نوچه دا نيت به صحيح وی که نه، نونبی کريم اوفرمائيل چه دا صحيح دي

# [۱۳]بَابُ اللِّعَانِ

## دَلعان بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه عشرون حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① الملاعنة بين الزوجين: , ثبوتا ۱، ۲، ۴۔ - ونفيا: ۱۸۔
② سبب اللعان: , ثبوتاً،۱، ۴، ۵، ۶۔ - ونفياً: ۸، ۱۴۔
③ التفريق والتطبيق بعد اللعان: ۱، ۲۔
④ جعل الملاعنة ذنباً عظيماً في قلب الزوج والزوجة من الحاكم ۲، ۳، ۴، ۱۹۔
⑤ أقسام الغيرة المتعلقة اللعان: ۵، ۶، ۷، ۱۶، ۲۰۔
⑥ نفي نسب الولد عن الزوج بعد الزنا واللعان: ۱، ۲، ۹، ۱۵، ۱۶۔
⑦ حکم ثبوت النسب بالشُبه : ۱، ۴، ۹، ۱۰۔
⑧ الزجرلمن يدعى النسب إلى غير أبيه: ۱۱، ۱۲، ۱۳۔
⑨ عدم الرجوع في المهر بعد اللعان: ۳۔

**دلعان ثبوت د قرآن څخه :-** قال الله تعالى ﴿ وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ۝ وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ۝ ﴾ [سورت النور ۶.]

**د لعان لغوی تحقيق :-** لعان دَ فعال په وزن باندې دَ باب مفاعله مصدر دې دَدې ماده لعنت دې او چونکه ښځه اوخاوند يوبل دَ الله تعالى دَ رحمت نه لرې کوی يا دَ زوجيت دَ رشتې نه يوبل لرې کوی په دې وجه په لغوی اعتبارسره دې ته لعان اووئيلې شو بل په دې قسمونوکښې دَ لعنت لفظ په صراحت سره موجود دې په دې وجه هم دَدې معاملې نوم لعان کيخودې شوې دې [النور ۶.]

**دَ لعان اصطلاحی تعريف:-** دَ لعان په اصطلاحی تعريف کښې دَ فقهاؤاختلاف دې دَ ائمه ...اف په نيزدَ لعان تعريف داسې دې (شهادات مؤکدات بالايمان) يعنی قسمونوسره دَ ...ـ کيدشوې گواهئ نوم لعان دې لهذا لعان دَ احنافو په نيزدَ گواهئ دَ قسم نه دې په دې وجه لعان کښې دَ شهادت ټول شرائط موجود کيدل ضروری دی چنانچه په نابالغ او مجنون کښې دَ شهادت اهليت نشته لهذا هغه لعان هم نه شی کولې دغه شان دَ

کافراومسلمان خپل مینځ کښې لعان نشته دغه شان محدود فی القذف کښې هم لعان نه شی کولې ځکه چه دا تول خلق د شهادت اهلیت نه لری نودوی د لعان هم اهل نه دی د جمهورو په نیز د لعان تعریف دادې ،ایمان مؤکدات بلفظ الشهادة، د هغوی په نیز لعان د باب الیمین نه دې نو د هغوی په نیزچه کوم سړې د یمین اوقسم اهل وی هغه به د لعان هم اهل وی د هغوی په نیز محدود فی القذف اوغیرمسلم کافر لعان کولې شی

**د لعان حقیقت:** د لعان صورت اود دې حقیقت دادې چه کله خاوند په ښځه باندې د زناتهمت اولګوی او ښځه ئې انکاراوکړی او اووائی چه تاپه ماباندې د دروغوبهتان لګولې دې اوس به دا ثابته وې دغه شان دا ښځه د خپل خاوند خلاف عدالت ته تللوسره د قاضی مخکښې فریاد اوکړی قاضی به خاوندراغواړی اود دعوی د ثبوت دپاره به څلورګواهان غواړی که چرې بهتان ثابت شونوپه ښځه به د رجم حکم نافذکولې شی اوکه خاوندئې څلورګواهان پیش نه کړې شو نو په دواړو کښې به د لعان حکم جاری کولې شی

**د لعان طریقه:-** اول به خاوند وائی چه زه الله تعالی ګواه جوړوم وایم چه ماپه دې ښځه د زناکوم تهمت لګولې دې زه په دې کښې رښتونې یم څلورځل به د ښځې طرف ته اشاره کولوسره خاونددا قسم خوری او په پنځم ځل دې داسې قسم اوخوری که چرې زه په دې الزام کښې دروغژن یم نوپه مادې د الله تعالی لعنت وی بیادې د دې نه پس ښځه دغه شان قسم اوخوری چه زه الله تعالی ګواه کوم وایم چه زمادې خاوند په ما د زنادا کوم الزام لګولې دې په هغې کښې دې دروغژن دې څلورځل داسې قسم خوړلونه پس به په پنځم ځل ښځه داسې وائی چه دې خاوند په ماباندې کوم تهمت لګولې دې که چرې په دې کښې دې رښتونې وی نو په مادې دالله تعالی غضب وی

**د لعان په حکم کښې فائده:-** یاساتنې چه د لعان حکم د زناد حدنه پس راغلې دې دا یوخان له قانون دې کوم چه ښځې اوخاوندسره خاص دې او په دې کښې د خاوندعزت اوعظمت اود هغه د غیرت احترام کړې شوې دې ځکه چه که خاوند مثلاً په خپلوسترګو خپله ښځه زناکولوسره اوکتله اوس که چرې په ژبه سره د زنا نسبت د ښځې طرف ته کوی او څلورګواهان نشته نوهم د هغه په شابه د حد قذف اتیاکوړې لګولې شی دا یوخان له مصیبت دې اوکه د ښځې په دې خراب حرکت باندې خاموش پاتې کیږی نو ټول عمر به د وینو ګوټونه څکی اود همیشه دپاره به غیظ اوغضب اوغم خفګان کښې سوزیږی شریعت مطهره خاونددې مصیبت نه د راویستلودپاره د زناد حدنه جدا یوه لار راویستلې ده که چرې ګواه نه وی نو قسمونه اوخرې لعان اوکړئې اوکه د دواړو نه خاوندانکارکوی نوقاضی به هغه د دوو څیزونونه په یوباندې عمل کولودپاره مجبورکولوسره قیدکولې هم شی ګنی حد د قذف به اولګولې شی

**دَ لعان نه پس د زوجینو د تفریق په حکم کښې مذاهب:-**

دَ ښځې اوخاوند په مینځ کښې چه کله دَ لعان عمل مکمل شی

① امام شافعی رحمه الله او امام مالک رحمه الله اوپه یوقول کښې امام احمد رحمه الله فرمائی چه دَ لعان نه پس به دَ ښځې اوخاوندپه مینځ کښې پخپله جدائی او فرقت راشی دَ قاضی دَ تفریق او دَهغه دَ فیصلې ضرورت نشته دې

② ائمه احناف او په یوقول کښې امام احمد رحمه الله فرمائی چه صرف په لعان کولوسره به په ښځه اوخاوند کښې تفریق نه راځی بلکه دَ قاضی دَ قضاء به ضرورت پیښیږی

**د اول فریق اول دلیل:-** دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه اوحضرت عمر فاروق رضی الله عنه یوروایت او اثر د دوی مستدل دې کوم چه عبدالرزاق په مصنف کښې نقل کړې دې دَهغې الفاظ دادی (المتلاعنان لایجتمعان ابدا)

طرز دَ استدلال داسې دې چه په دغه روایت کښې خودلې شوی دی چه دَلعان کولونه پس ښځه اوخاوند هیڅ کله یوځائی نه شی اوسیدلې که چرې په لعان باندې جدائی رانغله نو دې سره به دَ ښځې اوخاوند په مینځ کښې اجتماع لازم راځی کوم چه دَدې روایت دَ تصریح خلاف دې

**د اول فریق د اول دلیل دوه جوابونه:-** ① د ابن مسعود رضی الله عنه اثر د مرفوع حدیث په مقابله کښې حجت نه دې

② ددې اثرځخه مراد دا دې چې د تفریق ځخه روسته اجتماع نشی کیدې دا تاویل ددې وجې کولې شی چې د مرفوع حدیث سره تعارض رانشی

**داول فریق دویم دلیل:-** ③ دا اول فریق دویم فریق ته الزامی دلیل پیش کوی لکه ځنګه چې تاسو د ایلاء په مسئله کښې صرف د ایلاء مدت تیریدو سره د زوجینو د جدائی قائل ئې اود قاضی تفریق ته ضرورت نه ګنړئ نودغه شان دلته د لعان په صورت کښې هم په نفس لعان باندې د زوجینو جدائی پکار ده د قاضی د تفریق څه ضرورت نه دې پکار

**داول فریق د دویم الزامی دلیل جواب:-** پاتې شوه دَ ایلا مسئله نولعان په ایلا باندې قیاس کولې نه شی ځکه چه ایلا یوه ذاتی کورنئی معامله ده په کوم کښې چه دَ قاضی مداخلت نشته دې باقی (المتلاعنان لایجتمعان ابدا) مطلب دادې چه دَ لعان دَ تکمیل نه پس دَ ښځې خاوند جدائی دَ همیشه دَپاره ده او په دې مطلب کښې دَ چاهم اختلاف نشته دې اونه دَ مطلب دَ چاخلاف دې

**د دویم فریق دلیل:-** دَحضرت عویمر عجلانی رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا الفاظ راغلی دی (کذبت علیها ان امسکتها فطلقها ثلاثا)

**د روایت نه د دوو خبرو ثبوت:-** دَ لعان نه پس دري طلاقه ورکړي شو که چرې په لعان سره پخپله جدائی واقع کیدله نودَ دريو طلاقو څه ضرورت وو
- یوځائی باندې دري طلاقه نافذ کیږي دریمه خبره دا واضحه شوه چه حضرت عویمر ﷛ پخپله فرمائی که اوس دَ لعان نه پس مادا ښځه خپل خان سره پاتې کړه نودَدې مطلب به داشی چه ما په دې ښخه باندې دروغ ونیلی دی په دې وجه زه دې ته طلاق ورکوم دا بیان دَدې واضحه دلیل دې چه صرف په لعان سره جدائی نه واقع کیږي که چرې دې سره جدائی کیدله نو عویمر ﷛ به هیڅ کله هم دابیان پخپله نه شوور کولي
② دَ حضرت ابن عمر ﷠ دَدې باب دَ دویم حدیث د دوی مستدل دې په هغې کښې دا الفاظ دی (ففرق بینهما) دَدې ټولو روایاتونه معلومیږي چه صرف لعان دَ جدایئ سبب نه دې بلکه دَ قاضی دَ مداخلت ضرورت شته دې.
③ دَ سنن ابی داؤد یوحدیث هم د دوی مستدل دې چه هم دَ عویمر عجلانی ﷛ قصه ده په دې کښې دا الفاظ راغلی دی دَ کوم نه چه معلومیږي چه دَ لعان نه پس تفریق کول مسنون طریقه ده (فمضت السنة بعد فی المتلاعنین ان یفرق بینهما ثم لایجتمعان ابدا) (ابوداؤد ج۱ص۳۰۶)
④ عقلی دلیل د دوی مستدل دې ښکه چه دَ لعان ټوله معامله دَ قاضی عدالت سره ترلې ده په کوم کښې چه دعویٰ ده گواهی ده او قسم دې کله چه دا ټوله معامله دَعدالت لاندې روانه ده نودَ زوجین د تفریق معامله ولې دَ عدالت دَ اختیار نه بهر کولې شی؟
**په زنا کښې د قتلولو حکم:-** که یوسړی خپله ښځه په زنا کښې پخپله اولیدله نوآیا هغه دا قتل کولې شی که نه؟
په دې کښې کافی تفصیل دې خلاصه داده که چا خپله ښځه دَزنا په حالت کښې اولیدله او دَ غیرت په جوش کښې ئی دواړه قتل کړل نوامید دې چه دَالله تعالی په نیزبه ئی نیول نه کیږي فقهاؤ داجمله لیکلې ده (وله قتلهما) چه خاوند دواړه قتل کولې شی لیکن چونکه دَ ظاهری شرعی قواعدو په دې اقدام سره خلاف ورزی شوې ده په دې وجه جمهور علماء فرمائی چه په شرعی عدالت کښې به داسړې راوستلې شی او په قصاص کښې به وژلې شی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

[۳۳۰۳] د رسالت په دربار کښې د لعان يوه واقعه

۳۳۰۳ — [۱] (۱) [۱] عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «إِنَّ عُوَيْمِرًا الْعَجْلَانِيَّ قَالَ: [۲] يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ؟ [۳] أَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ؟!

**ترجمه:** [۱] حضرت سهل ابن سعد ساعدي ﷺ وايي چې (يو صحابي) عويمر عجلاني ﷺ (په دربار رسالت کښې په حاضريدو سره) عرض اوکړو [۲] چې يا رسول الله ﷺ منته د هغه سړي په باره کښې وښايه، چې د خپلې ښځې سره يو اجنبي سړي پيدا کړي (او هغه ته دا يقين وي، چې هغه سړي د هغه د ښځې سره زنا کړي ده) نو آيا هغه سړی قتل کړي؟ که هغه قتل کړي، نو د (مقتول وارث به هغه قتل کړي، [۳] نو په داسې صورت کښې هغه څه وکړي؟ (آيا په دې عار صبر وکړي، يا څه اقدام وکړي)

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (وَقَدْ أُنْزِلَ فِيكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ، فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا). [۲] قَالَ سَهْلٌ: فَتَلَاعَنَا فِي الْمَسْجِدِ، أَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ عُوَيْمِرٌ: كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنْ أَمْسَكْتُهَا، فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا،

**ترجمه:** [۱] رسول الله ﷺ (د دې اوريدو سره) هغه ته وفرمايل چې ستاسو د ښځې او خاوند په قضيه کښې وحي نازله شوي ده، لاړ شه خپله ښځه راوله. [۲] حضرت سهل ﷺ وايي چې عويمر ﷺ خپله ښځه راوشته. او ښځې و خاوند (په مسجد نبوي کښې) لعان وکړي. او زه هم هغه وخت د نورو خلقو سره د حضور ﷺ سره موجود وم. [۳] کوم وخت چې هغه دواړه ښځه وخاوند د لعان نه فارغ شو، نو عويمر (يعني خاوند) اوويل چې که زه دا ښځه د خان سره ساتم، نو ګويا ما په دې د دروغو تهمت لګولی دی. د دې نه وروسته هغه هغې ښځې ته درې طلاقه ورکړل

[۱] ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] (انْظُرُوا فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أَسْحَمَ، أَدْعَجَ الْعَيْنَيْنِ، عَظِيمَ الْأَلْيَتَيْنِ، خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ، [۳] فَلَا أَحْسِبُ عُوَيْمِرًا إِلَّا قَدْ صَدَقَ عَلَيْهَا، [۴] وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أُحَيْمِرَ كَأَنَّهُ وَحَرَةٌ فَلَا أَحْسِبُ عُوَيْمِرًا إِلَّا قَدْ كَذَبَ عَلَيْهَا.

**ترجمه:** [۱] بيا رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چې که دا ښځه (د خپل موجوده حمل نه) داسې وړوکی راوړي. چې د هغه رنګ تور، سترګې يې ډيرې تورې وي. د غټو کوناټو والا وي.

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الطلاق/باب اللعان. ومن طلق بعد اللعان (رقم ۵۳۰۸) ومسلم فی کتاب اللعان (رقم ۱ - ۱۴۹۲) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق، باب فی اللعان (رقم ۲۲۴۵) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب بدء اللعان (رقم ۳۴۶۶) وابن ماجه فی کتاب النکاح/باب اللعان (رقم ۲۰۶۶) ومالک فی الموطا کتاب الطلاق باب ما جاء فی اللعان (رقم ۳۴) واحمد فی المسند: ۳۳۴/۵

او دواړي پنډۍ يې غوښني وي، [۳]نو زه به د دې نه علاوه نور هيڅ نه گنم، چې عويمر د دې ښځی په باره کې څه ويلی دی، رښتيا يې ويلی دی (څکه چې عويمر ﷺ د کوم سړی طرف ته د زنا نسبت کړی دی، هغه د دې رنګ او صورت دې، او هر کله چې د هغه د شباهت وروکی پيدا شي، نو دا به ويلی شي چې د هغه د نطفې نه دې) [۴]او که ښځې داسې بچې راوړو چې د هغه رنګ سور وي، نو بيازه د دې نه علاوه نورڅه نه گنم، چې عويمر ﷺ د هغه په باره کښې دروغ ويلي دې (يعني عويمر ﷺ د سور رنګ دې، څکه د ماشوم رنګ به هم سور وي، نو گڼل کيږی به چې بچې د عويمر ﷺ د نطفې نه دی، او عويمر ﷺ به ښځه د دروغو تهمت لګولی دی)

**حل اللغات:-** ①أَسْحَمَ:تور رنګ والا ②أَدْعَجَ الْعَيْنَيْنِ: تورو ، غټو سترگو والا ③عَظِيمَ الْأَلْيَتَيْنِ: غټو کوناتو والا ④خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ: غټو غوښنو پنډو والا، ⑤أُحَيْمِرَ:سور رنګ والا، ⑥وَحَرَةٌ: (دابة صغيرة على شكل سام أبرص) کربوړی،

> [۱]فَجَاءَتْ بِهِ عَلَى النَّعْتِ الَّذِي نَعَتَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ تَصْدِيقِ عُوَيْمِرٍ، [۲]فَكَانَ بَعْدُ يُنْسَبُ إِلَى أُمِّهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]کوم وخت چې وروکی پيدا شو، نو د هغه هغه رنګ او صورت وو کوم چې رسول الله ﷺ د عويمر ﷺ د تصديق د پاره ذکر کړی وو، (يعني هغه وروکی د هغه سړي د شباهت وو، چې د هغه طرف ته عويمر ﷺ د زنا نسبت کړی وو، گويا د عويمر ﷺ خبره رښتينې ثابته شوه) [۲] د دې نه وروسته به هغه وروکی د حضور ﷺ د دې ارشاد اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ ، مطابق د خپلې مور طرف ته منسوب کيدې ، (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا:

**دښځې سره پردې سړي په زنا باندې د ليدلو حکم:**- که يو کس خپلې ښځې سره پردې سړې په زنا باندې اوليدلو نو خاوند هغه قتلولې شی که نه؟ اوکه قتل نې کړلو نو داسلامی قانون مطابق هغه د مرګ د سزا مستحق دې اوکه نه ده؟ په دې باره کښې مفسرينو مختلف اقوال ذکر کړی دی دجمهور په نيزدا کس د مرګ مستحق دې خوڅه صورتونه داسی دی چې په هغې کښې د مرګ د سزا څخه بچ کيدې شی که دا خاوند څلور گواهان پيش کړی چې دده ښځې زنا کړې ده يا د مقتول وارثان ددې گواهی ورکړی چې آو زمونږ دې مقتول دده دښځې سره زنا کړې ده نو په دې صورت کښې دا خاوند د مرګ د سزا څخه بچ کيدې شی خوکه خاوند د خپلې ښځې په زنا باندې گواهان پيش نکړې شو يا د مقول وارثانو د مقتول د زنا اعتراف او اقرار اونکړو نو په دې صورت کښې به دا خاوند د مرګ مستحق وی نوکه دا خاوند عندالله مجرم نه دې خو قضاء به ده ته د مرګ سزا

ورکولې شي ځکه چې شریعت ده ته په مذکوره صورت کښې د دغه زاني کس د قتل اجازت نه ورکوي

**[۳۳۰۵] د لعان په صورت کښې د ښځې او خاوند په مینځ کښې د جدایي مسئله**

۳۳۰۵—[۲] (۱) ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-«أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-لَاعَنَ بَيْنَ رَجُلٍ وَامْرَأَتِهِ ۲ فَانْتَفَى مِنْ وَلَدِهَا، فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا، ۳ وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْأَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې نبی کریم ﷺ د هغه سړي او د هغه د ښځې په منځ کښې د لعان حکم وکړي، ۲ نو (د هغه لعان په وجه، هغه سړی د هغې ښځې د ماشوم نه لري شو یعنی د ماشوم نسب د هغه سړي نه لري شو) او حضور ﷺ د ښځې او خاوند په منځ کښې جدايي وکړه، ۳ او ماشوم يې ښځې ته حواله کړي. (بخاري مسلم)

۱ وَفِي حَدِيثِهِ لَهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-وَعَظَهُ، وَذَكَّرَهُ ۲ وَأَخْبَرَهُ أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ، ۳ ثُمَّ دَعَاهَا فَوَعَظَهَا، وَذَكَّرَهَا، ۴ وَأَخْبَرَهَا أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابن عمر ﷺ په يو بل روايت کښې چې بخاري او مسلم نقل کړی دی دا الفاظ دي چې حضور ﷺ هغه سړي ته نصيحت وکړي، او د آخرت عذاب يې ورته په ياد کړي (چې هغه دروغ ونه وايي، او په ښځه ناحق الزام ثابت نه کړي) ۲ او هغه يې د دې خبرې نه آګا کړي، چې د دنيا عذاب د آخرت د عذاب نه آسان دي. ۳ بيا حضور ﷺ هغه ښځه راوغوښتله، هغه ته يې هم نصيحت وکړي او د آخرت عذاب يې ورپه ياد کړي، ۴ او آګاه يې کړه، چې د دنيا عذاب د آخرت د عذاب نه آسان (معمولي) دي

**تسهيلات: نوټ:**—د زوجينو په مينځ کښې د تفريق په مسئله کښې مذاهب د لعان د باب په اول کښې ذکرشوي دی هغې ته رجوع اوکړئ

**[۳۳۰۶] د لعان کونکو محاسبه به په آخرت کښې وي**

۳۳۰۶—[۳] (۲) ۱ وَعَنْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ: "حِسَابُكُمَا عَلَى اللّٰهِ، ۲ أَحَدُكُمَا كَاذِبٌ لَا سَبِيلَ لَكَ عَلَيْهَا". ۳ قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! مَالِي. قَالَ: "لَا مَالَ لَكَ، إِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا، ۴ وَإِنْ كُنْتَ كَذَبْتَ عَلَيْهَا فَذَاكَ أَبْعَدُ وَأَبْعَدُ لَكَ مِنْهَا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب الطلاق/باب يلحق الولد بالملاعنة (رقم-۵۳۱۵) ومسلم فی کتاب اللعان (رقم-۸ - ۱۴۹۴) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/ باب فی اللعان (رقم-۲۲۵۹) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: نفی الولد باللعان وإلحاقه بأمه (رقم-۳۴۷۷) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ باب اللعان (رقم-۲۰۶۹) واحمد فی المسند: ۱۱/۲

۲ ) اخرجه البخاری فی کتاب الطلاق/باب المتعة للتی لم يفرض لها (رقم-۵۳۵۰) ومسلم فی کتاب اللعان (رقم-۵ - ۱۴۹۳) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/ باب فی اللعان (رقم-۲۲۵۷) والترمذی فی کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی اللعان (رقم-۱۲۰۳) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: اجتماع المتلاعنين (رقم-۳۴۷۶)واحمد فی المسند: ۱۱/۲

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې نبی کريم ﷺ لعان کونکي سړی او ښځي ته وفرمايل چې (مونږ يواځې د ظاهري احوال او وجوه په بنياد څه حکم نافذ کولی شو ، او هغه مونږ د لعان په صورت کښې نافذ کړي دي، البته) ستاسو احتساب به د الله ﷻ سره وي، [۲] ځکه چې (د نفس الامر او حقيقت په اعتبار سره) په تاسو دواړو کښې يو ضرور دروغجن دی (بيا حضور ﷺ سړي ته وفرمايل چې) اوس د ښځي په باره کښې ستا د پاره هيڅ لار نشته (يعني د لعان نه وروسته د دې ښځي سره ستا اوسيدل جائز نه دی، ځکه چې دا ستا د پاره د هميشه د پاره حرامه شوي ده) [۳] سړی عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ او زما مال (يعني ما چې ښځي لره کوم مهر ورکړي دی، آيا هغه به زما نه ولاړ شي؟) حضور ﷺ ورته وفرمايل چې په هغه مال ستا هيڅ حق نشته (يعني د ورکړي مهر د واپس آخستو تا ته هيڅ حق حاصل نه دی، ځکه) که تا د هغه ښځي په باره کښې رېښتيا ويلي دي يعني ستا د وينا مطابق که هغي ښځي واقعتًا بد کاري کړي ده، نو هغه مال د هغه شي بدله شوه، چې تا د هغه شرمګاه حلاله کړي ده، [۴] او که تا د هغی ښځي په باره کښې دروغ ويلي دي، نو په دي صورت کښې د مهر بيرته آخستل د هغی نه هم بعيد دی. او ستا نه هم بعيد دی، نو د دروغ ويلو په صورت کښې خو بدرجه اولی تالره هغه مهر واپس آخستل نه دی پکار، (بخاري، مسلم)

**تسهيلات: قوله:** حِسَابُكُمَا عَلَى اللهِ،أَحَدُكُمَا كَاذِبٌ :

**په متلاعنينو کښې د يو دروغژن کيدل:-** تاسو په دنيا کښې په يو بل باندې قسمونه خوړل او لعان مو کړې وو. خو ددې حقيقت الله ﷻ ته معلوم دې چې څوك رېښتوني دې او څوك دروغژن آخرت کښې به الله ﷻ تاسو سره ددې حساب کوی او دا يقيني خبره ده چې يو دروغژن د ې

**قوله:** إِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا،فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا:

**د ملاعن دپاره د مهر د نه واپس کولو حکم:-** په دې کښې اشاره ده چې کوم کس دخپلې بی بی سره لعان اوکړی نو هغه دې د خپلې بی بی نه د مهر واپسی نه کوی چې کله ده بی بی سره دخول کړې وی

**ملاعنه سره د عدم جماع په صورت کښې مذاهب:-**

① که ده بی بی سره دخول نه وی کړې نود حضرت امام مالك رحمه الله او حضرت امام شافعي رحمه الله په نزد د نيم مهر رجوع کولې شی

② عند البعض دټول مهر د واپسی حقدار دې

③ داحنافو په نزد لعان کوونکی د مهر رجوع نشی کولې لعان سره په مهر باندې هيڅ

اثر نه پریوزی او که هغه کس دروغژن وی نو بیا خو په طریق اولی دخپلې بی بی مهر واپس نشی اخستې

**[۳۳۰۴] دآیت دَلعان شان نزول**

۳۳۰۴- [۳] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا -: [۲] «أَنَّ هِلَالَ بْنَ أُمَيَّةَ قَذَفَ امْرَأَتَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِشَرِيكِ بْنِ سَحْمَاءَ، [۳] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "الْبَيِّنَةَ أَوْ حَدًّا فِي ظَهْرِكَ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي [۲] چې (يو صحابي) هلال ابن اميه رضي الله عنه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم په مخکې په خپلې بې بې د شريک ابن سحماء صحابي رضي الله عنه سره د زنا تهمت ولګولی (يعني هلال رضي الله عنه اوويل چې شريک ابن سحماء زما د ښځې سره زنا کړې ده) [۳] نبی کريم صلى الله عليه وسلم هلال رضي الله عنه ته وفرمايل چې (د خپل الزام په ثبوت کښې) ګواه پيش کړه، ګينی (د دروغو د تهمت په جرم کښې به ستا په شا حد جاري کيږی (يعني اتيا دورې به وهل کيږي)

**حل اللغات:** - ① قَذَفَ: د زنا تهمت ئې اولګولو ② حَدًّا: شرعی سزاګانې کومې چه قرآن سره ثابتې وی.

[۱] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِذَا رَأَى أَحَدُنَا عَلَى امْرَأَتِهِ رَجُلًا [۲] يَنْطَلِقُ يَلْتَمِسُ الْبَيِّنَةَ؟ [۳] فَجَعَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "الْبَيِّنَةَ وَإِلَّا حَدٌّ فِي ظَهْرِكَ": [۴] فَقَالَ هِلَالٌ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ إِنِّي لَصَادِقٌ، [۵] فَلَيُنْزِلَنَّ اللَّهُ مَا يُبَرِّئُ ظَهْرِي مِنَ الْحَدِّ،

**ترجمه:** [۱] هلال رضي الله عنه عرض اوکړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم که په مونږ کښې يو سړی د خپلې ښځې سره په بدکاري مبتلا ووينې، [۲] نو آيا هغه شاهد تلاش کولو له ولاړ شي؟ (يعني اول خو په داسې صورت کښې دومره موقع چرته وي، چې څوک شاهد کړي بيا دا چې د شاهد کولو د پاره په هغه خای کې څوک وی) [۳] ليکن نبی کريم صلى الله عليه وسلم دا فرمايل چې شاهد پيش کړه. ګينی ستا په شا به حد جاري کيږی ، [۴] بيا هلال رضي الله عنه عرض اوکړو چې قسم دې په هغه پاک ذات چې ته يې د حق سره پيغمبر راليږلی يې، زه رښتينې يم. [۵] زما يقين دی چې الله تعالیٰ جل جلاله به ضرور څه داسې حکم نازل کړي، چې زما شا به د حد نه خلاصه کړي،

**حل اللغات** - ① يَنْطَلِقُ: هغه به ځي، لاړ شي. ② يَلْتَمِسُ: چه اولټوی، تلاش کړی.

[۱] فَنَزَلَ جِبْرِيلُ، وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ: ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ﴾ [النور: ۶]: فَقَرَأَ حَتَّى بَلَغَ ﴿إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ [النور: ۹] [۲] فَجَاءَ هِلَالٌ فَشَهِدَ وَالنَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ، فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ؟" [۳]: ثُمَّ قَامَتْ، فَشَهِدَتْ فَلَمَّا كَانَتْ عِنْدَ الْخَامِسَةِ [۴] وَقَفُوهَا، وَقَالُوا: إِنَّهَا مُوجِبَةٌ،

۱) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب {ويدرأ عنها العذاب أن تشهد أربع شهادات بالله إنه لمن الكاذبين} [النور: ۸](رقم-۴۷۴۷) واخرجه ابو داود في السنن كتاب الطلاق/ باب في اللعان (رقم-۲۲۵۴) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة النور(رقم-۳۱۷۹) وابن ماجه في كتاب النكاح/ باب اللعان (رقم-۲۰۶۷)

**ترجمه:** ۱ آخر (څه وخت وروسته) حضرت جبرائیل ﷺ تشریف راوړو، او په حضور ﷺ باندې دا آیتونه نازل شوه. وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ أَزْوَاجَهُمْ، الآية (يعني كوم خلق چې په خپلو بيبيانو تهمت لګوي الخ) بيا د دې نه وروسته آياتونو تر انْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ پورې تلاوت وكړې، ۲ د دې نه وروسته هلال ﷺ په دربار رسالت كښې حاضر شو، او شاهدي يې وركړه (يعني د لعان چې كوم تفصيل وروسته بيان شوى دى، هغه پنځه ځله د شاهدى په ذريعه لعان اوكړو) او نبى كريم ﷺ به دا فرمايل چې بيشكه الله تعالى پوهيږي ﷻ چې په تاسو كښې يو دروغجن دى، نو په تاسو كښې څوک دي، چې توبه وباسي، ۳ د هغه نه وروسته د هلال ﷺ ښځه ودريدله او لعان يې وكړي (يعني څلور ځله يې د پاكدامنۍ شهادت وركړي) او هر كله چې په پنځم ځل شاهدى يې وركوله ۴ نو (صحابه وو ﷺ) هغه منع كړه، او ورته يې اوويل چې ښه سوچ وكړه، دا پنځمه شاهدى به (ستاسو دواړو په منځ كښې) جدايي واجب كړي (يا كه ته دروغجنه يې نو د آخرت عذاب به واجب كړي)

**حل اللغات:** -⑤يَرْمُوْنَ: الزام، تهمت لګوى. ⑥ وَقَفُوْهَا: خلقو منع كړه هغې لره (د قسم خوړلو نه)

> ۱ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَتَلَكَّأَتْ وَنَكَصَتْ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهَا تَرْجِعُ، ۲ ثُمَّ قَالَتْ: لَا أَفْضَحُ قَوْمِي سَائِرَ الْيَوْمِ، فَمَضَتْ. ۳ وَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " أَبْصِرُوهَا، ۴ فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أَكْحَلَ الْعَيْنَيْنِ سَابِغَ الْأَلْيَتَيْنِ، خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ؛ فَهُوَ لِشَرِيكِ بْنِ سَحْمَاءَ)؛

**ترجمه:** ۱ ابن عباس ﷺ وايي چې هغې ښځه ايساره شوه او وروسته شوه (يعني هغه په پنځم ځل شاهدى وركولو كښې په سوچ كښې شوه) نو موږ دا ګمان وكړي چې دا به د خپلې خبرې نه واوړي، ۲ ليكن بيا هغې اوويل چې زه (د لعان نه بچ كيدو سره او د خپل خاوند د الزام د تصديق كولو سره) خپل قوم تول د عمر د پاره نه رسوا كوم (د دې ويلو سره) هغه پنځمه شاهدى هم پوره كړه (دغسې چې لعان پوره شو او حضور ﷺ د دواړو په منځ كښې جدايي وكړه، نو) ۳ حضور ﷺ وفرمايل چې دې ته ګوري، ۴ كه دې داسې ماشوم راوړو چې د هغه سترګې تورې، كوناټې درانه، او پندى يې غټې وى، نو هغه وړوكى به د شريک ابن سحماء وى، (ځكه چې شريک دغسې دى)

**حل اللغات:** -⑦ فَتَلَكَّأَتْ: ايساره شوه. توقف ئې اوكړو ، په سوچ كښې شوه ⑧ وَنَكَصَتْ: او روسته شوه. تاخير ئې اوكړو ⑨ لَا أَفْضَحُ: زه نه شرموم. نه رسوا كوم ⑩ فَمَضَتْ: نو پوره ئې كړه. ⑪ سَابِغَ الْأَلْيَتَيْنِ: درانه يا غټو كوناټو والا (ځرب والې ترې مراد دي)

> ۱ فَجَاءَتْ بِهِ كَذٰلِكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ " لَوْلَا مَا مَضَى مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ؛ لَكَانَ لِي وَلَهَا شَأْنٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ كوم وخت چې هغه ښځى وړوكى راوړو (چې د شريک مشابه وو) نو حضور ﷺ وفرمايل ۲ چې كه د كتاب الله مذكوره حكم نه وايي (او د دې نه واضحه كيږي ، چې په

لعان کونکو تعزیر نه جاري کیږی ، نو ما به د دې ښځي سره دویمه معامله کړي وه. یعني د شریک سره د دې ماشوم د مشابهت د هغه ښځي د بدکاري یوه واضحه قرینه ده. ځکه چې د هغه په دي بدکاري ما هغه ته داسې سزا ورکړي وه، چې د خلقو د پاره به عبرت وو بخ ري

**تسهیلات: قوله: (فَلَيُنْزِلَنَّ اللّٰهُ)**

**د لعان د حکم اولنې نافذ علیه:-** دَ لعان حکم شعبان ۹ه کښې راغلې دې دَ ټولو نه اول دَ لعان حکم په هلال بن امیه باندې نافذ شوې وو دې نه مخکښې دَ عویمر عجلانی روایت کښې «قد انزل فیک» دَالفاظونه معلومیږی چه دَ لعان حکم هم دَدوی باره کښې نازل شوې وو لیکن علماؤ داتطبیق ورکړې دې چه دَ لعان حکم عام دې نودَ هریوباره کښې وئیلې کیدې شی چه هم ستامتعلق داحکم راغلې دې. یااصل حقیقت خودا دې چه حکم خودَعویمرباره کښې نازل شوې وو مګر په دې باندې عمل هلال بن امیه دَ اول نه اوکړو یا ممکن ده چه دَ دواړو متعلق آیت نازل شوې وی.

**د حدیث د بعض الفاظو وضاحت:-**

① الْبَيِّنَةَ: یعنی ګواه پیش کړه دا لفظ منصوب دې

② إِنَّهَا مُوجِبَةٌ: یعنی په پنځم خل قسم خوړل به دَ لعان حکم ثابت کړی او په آخرت کښې به عذاب واجب کړی

③ سَائِرَ الْيَوْمِ: یعنی دَ همیشه دَپاره خپل قوم رسوا کولې نه شم په دې جمله سره لکه چه دغه ښځې دَ خپل جرم اقرار اوکړو بیا دې عاجزې ته پته اونه لګیدل چه هغې قسم خوړلو سره څه پټ کړه او څه ئې ښکاره کړه

**[۳۳۰۸] دَ زنا تهمت دَ څلورو ګواهانو په ذریعه ثابتیږی**

| ۳۳۰۸ - [۵] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ: لَوْ وَجَدْتُ مَعَ أَهْلِي رَجُلًا لَمْ أَمَسَّهُ حَتَّى آتِيَ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ؟ ② قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَهُ: "نَعَمْ". قَالَ: كَلَّا، |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایې چې سعد بن عباده رضي الله عنه اوویل که زه یو غیر سړي د خپلې ښځې سره ووینم نو د څو پورې چې څلور شاهدان راجمع نه کړم، هغه ته به لاس نه ور وړم؟ یعني هغه به نه قتلوم؟ ② رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې هو، سعد رضي الله عنه اوویل چې هیڅ کله نه.

**حل اللغات:-** ① لَمْ أَمَسَّهُ: لاس به نه وراوړوم، نه به ئې قتلوم،

۱) اخرجه مسلم فی کتاب اللعان (رقم-۱۶ - (۱۴۹۸)

۱ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ إِنْ كُنْتُ لَأُعَاجِلُهُ بِالسَّيْفِ قَبْلَ ذٰلِكَ. ۲ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «اسْمَعُوا إِلَى مَا يَقُولُ سَيِّدُكُمْ، ۳ إِنَّهُ لَغَيُورٌ، وَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ، وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ قسم دې په هغه ذات، چې ته ﷺ یې د حق سره رالیږلې یې، مخکې د دې نه چې زه څلور شاهدان راجمع کړم، سمدستي به په توره سره د هغه خاتمه وکړم، ۲ حضور ﷺ (حاضرین د مجلس مخاطب کولو سره) وفرمایل واورئ چې ستاسو سردار (یعني سعد ﷺ) څه وایي؟ ۳ بیشکه دې غیرت مند دې، زه د ده نه زیات غیرت مند یم، او الله تعالیٰ ﷻ زما نه زیات غیرت مند دی، (مسلم)

**حل اللغات:** -۞ لَأُعَاجِلُهُ بِالسَّيْفِ: زه به ئې زر تر زره په توره وهم. ۞ لَغَيُورٌ: دې غیرت مند دې ۞ أَغْيَرُ: زه زیات غیرت مند یم.

**تسهیلات:**

**قوله: اسْمَعُوا إِلَى مَا يَقُولُ سَيِّدُكُمْ:**

**اشکال:** - دلته دا سوال پیداکیږي چه دَحضرت سعد ﷺ دَ کلام نه په ظاهره معلومیږي چه هغه دَ رسول الله ﷺ دَ ارشاد مبارك مخالفت کړې دې حالانکه هغه دَ ډیر لوئی شان والا صحابی دې

**د اشکال جواب:** - دَدې جواب دادې چه حضرت سعد ﷺ دَ ارشاد نبوی مخالفت نه دې کړې بلکه هغه دَ خپل طبیعت اوپټو جذباتو او باطنی کیفیت اظهار فرمائیلې دې چه زما دَ کیفیت اوغیرت خو دا حال دې که چرې ماپه داسې حالت کښې یوسړې خپلې ښځې سره اولیدلو نودَ یوګواه دَ انتظار نه وړاندې به هغه قتل کړم او وریت به ئې کړم حالانکه دَ شریعت حکم بل دې نوزه به څه کوم؟ په دې باندې نبی کریم دَ مجلس حاضرینوته اوفرمائیل واؤرئی ستاسو سردار څه وائی لکه چه نبی کریم دَ حضرت سعد ﷺ دَ دغه طبعی کیفیت اوغیرت تعریف اوکړو چه دا ستاسو سردار دې اودَ سردارانو په طبیعت کښې دا جذبات وی لیکن دَ شریعت حکم داسې نه دې بلکه دَدې برعکس دې نبی کریم دَ حضرت سعد ﷺ دَ خبرې تائید اونه کړو بلکه دَهغه عذرئې بیان کړو حضرت مظهر رحمه الله فرمائی چه حضرت سعد ﷺ دَ حضور پاك حکم رد کړې نه دې بلکه دَهغه دَ سوال مقصد دا وو چه دَ نبی کریم دَطرف نه اجازت ملاؤشی چه په داسې حالت کښې دغه شان سړې قتل کړې شی نبی کریم دَ قتل کولونه انکاراوکړو اوبلیغ اندازکښې ئې حضرت سعد ﷺ پوهه کړو په کوم چه حضرت سعد ﷺ خاموشی اختیارکړه.

**[۳۳۰۹] د الله له زيات هيڅوک غيرتمند نشته**

۳۳۰۹-[۲] (۱) [۱]وَعَنِ الْمُغِيرَةِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ: لَوْ رَأَيْتُ رَجُلًا مَعَ امْرَأَتِي [۳]لَضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفِحٍ، فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** [۱]او حضرت مغيره رضي الله عنه وايي [۲]چې حضرت سعد رضي الله عنه دا اوويل که زه يو غير سړي د خپلې بي بي سره ووينم، [۳]نو هغه به زه په توره سره قتل کړم، او د تورې د شا جانب نه نه، بلکې د تيز والا جانب نه يې قتل کړم (حاصل دا چې په توره سره د هغه خاتمه وکړم) رسول الله ﷺ ته چې دا خبره ورسيده (چې سعد رضي الله عنه دغه شان وايي)

**حل اللغات** - ①غَيْرَ مُصْفِحٍ: د تورې پس اړخ، دشا طرف چه په هغې سره وينه نه اوځي.

[۱]فَقَالَ: أَتَعْجَبُونَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ؟ [۲]وَاللهِ لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ، وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي، [۳]وَمِنْ أَجْلِ غَيْرَةِ اللهِ حَرَّمَ اللهُ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ، [۴]وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْعُذْرُ مِنَ اللهِ، مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ بَعَثَ الْمُنْذِرِينَ وَالْمُبَشِّرِينَ، [۵]وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللهِ، وَمِنْ أَجْلِ ذَلِكَ وَعَدَ اللهُ الْجَنَّةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]نو حضور ﷺ صحابه وو رضي الله عنهم ته وفرمايل چې آيا تاسو ته د سعد رضي الله عنه په دې (غير معمولي) غيرت تعجب دی؟ [۲]قسم په خدای زه يقينا د هغه نه زيات غيرتمند يم، او الله جل جلاله زما نه زيات غيرتمند دی، [۳]او الله جل جلاله د خپل غيرت په وجه ټول ګناهونه حرام کړي دي، که هغه ظاهري ګناه وي يا پټه ګناه وي، [۴]او عذر د الله تعالى جل جلاله نه زيات هيڅوک محبوب نه لري، ځکه الله تعالى جل جلاله بيرونکی او بشارت ورکونکي (يعني پيغمبران) راليږلي دي، [۵]او تعريف کول د الله تعالى جل جلاله نه زيات هيڅوک نه خوښوي، او په دې سبب الله تعالى جل جلاله د جنت وعده کړې ده، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** -②الْمِدْحَةُ: مصدر دی تعريف کول.

**تسهيلات:** **قوله:** غَيْرَ مُصْفِحٍ:

**د مصفح مفهوم:** -دَدې مطلب دادې چه دَ تورې په تيره مخ به نې وهم په غاړه يا شا سره اويا په پلنوباندې به نې نه وهم مراد قتل کول دی مُصفِح دَميم ضمه صاد ساکن اوفاء کسره سره هم دې کوم چه دَ ضارب صفت دې اوکه چرې فاء باندې فتحه ده نودابه دَ تورې صفت جوړشي بعضې فاء مشدد لوستلې ده ټول حال واقع دی

**قوله:** وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي:

**دغيرت تعريف:** - دَسړی.دَدننه کيفيت دَ دې تغيرنوم غيرت دې چه دَ خپل بال بچ متعلق

۱) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «لا شخص أغير من الله» وقال عبيد الله بن عمرو، عن عبد الملك: «لا شخص أغير من الله»(رقم-۷۴۱۶) ومسلم في كتاب اللعان (رقم-۱۷ - (۱۴۹۹)) واحمد في المسند: ۲۴۸/۴

په نه برداشت کونکي خبرې په کتلوسره پيدا کيږي اوس سوال دادې چه دې مفهوم سره د غيرت اطلاق په الله تعالى باندې څنګه کيدې شي داخو محال دى په دې وجه علماء ليکلي دى چه د الله تعالى د غيرتى کيدو مطلب دادې چه هغه د بند ګانو د معاصي او ګناه په کولوسره غصه کيږي اوخفه کيږي نود لفظ غيرت اوحياء او رحمت الفاظو په شان د دې الفاظونه يودې د کوم اطلاق چه د شروع په اعتبار سره په الله تعالى باندې نه کيږي البته د غايه نهايه او انجام اونتيجه په اعتبار سره کيږي

**قوله:** وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْعُذْرُ مِنَ اللهِ:

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:** - ① اول دا چه الله تعالى ته داخبره محبوب وى چه د هرسړى عذرختم کړى اود چا څه عذر باقى پرينږدى دې د پاره چه په قيامت کښې د حجت موقع باقى پاتې نه شى. د دې د پاره الله تعالى انبياء کرام بشير اونذير جوړولوسره مبعوث کړى دې د دې لفظ

② کله يوسړې د الله تعالى په مخکښې د خپل جرم عذر پيش کوى معذرت او اعتذار کوى په عاجزئى سره درخواست کوى معافى غواړى نوالله تعالى د ټولو نه زيات د قبلولوسره معاف کوى.

**قوله:** وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللهِ:

**د المدحة وضاحت:** - يعنى الله تعالى خپل تعريف د ټولو نه زيات خوښوى ځکه چه هغه د ټولو خوبيانو مالك دې اوپه ټولوصفات کماليه سره متصف وى. ارشاد دې «الکبرياء ردائى والعظمة ازاري» هم دغه وجه ده چه الله تعالى پخپله د خپل ځان تعريف کړې دې اونورو ته ئى د دې ترغيب ورکړې دې اود جنت وعده هم هغه خلقو سره کړې ده ځوك چه د هغه د زيات نه زيات تعريف کوى

## [۳۲۰] د الله تعالى ﷻ د غيرت تقاضه څه ده؟

۳۳۰-[۷] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَغَارُ، [۳] وَإِنَّ الْمُؤْمِنَ يَغَارُ، [۴] وَغَيْرَةُ اللهِ أَنْ لَا يَأْتِيَ الْمُؤْمِنُ مَا حَرَّمَ اللهُ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ؓ وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تبارک وتعالى غيرتمند دى، [۳] او مؤمن (هم) غيرتمند دې (يعني غيرت په اصل کښې د الله تعالى ﷻ صفت دى، چې په مؤمن کښې هم موجود دى) [۴] او د الله تعالى ﷻ د غيرت تقاضه دا ده

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب الغيرة (رقم-۵۲۲۳) ومسلم في كتاب التوبة/باب غيرة الله تعالى وتحريم الفواحش(رقم-۳۶ - (۲۷۶۱) والترمذي في كتاب الرضاع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الغيرة (رقم-۱۱۶۸) واحمد في المسند:۲/۳۴۳

چې مؤمن هغه کار ونه کړی کوم چې الله تعالی ﷻ حرام کړي دي، (بخاري، مسلم.

**حل اللغات**: - ① يَغَارُ: غيرت کوی، غيرت مند دې.

**تسهيلات**:

**نوټ**: - د ترجمې څخه د حديث مطلب ښکاره دې د مزيد تسهيل ضرورت نشته

**[۳۳۰] په خيالي شبهاتو باندې تهمت مه لګوئ**

۳۳۰—[۸] (۱) ① وَعَنْهُ «أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَتَى رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ② إِنَّ امْرَأَتِي وَلَدَتْ غُلَامًا أَسْوَدَ وَإِنِّي أَنْكَرْتُهُ. ③ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ④ "هَلْ لَكَ مِنْ إِبِلٍ؟". قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: "فَمَا أَلْوَانُهَا؟". قَالَ: حُمْرٌ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې يو بانډچي (کليوال) د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، او عرض يې وکړو ② چې زما ښځې يو داسې ماشوم راوړي دی، چې د هغه رنګ تور دی او (زما هم رنګه نه دی) ما د هغه نه انکار کړی دی (يعنې چې زما خوی نه دی) ③ رسول الله ﷺ (د دې آوريدو سره) ورته وفرمايل ④ چې ستا سره څه اوښان شته؟ هغه عرض اوکړو چې هو، حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د کوم رنګ دی؟ هغه عرض اوکړو چې د سور رنګ دی،

**حل اللغات**: - ① أَنْكَرْتُهُ: ما انکار کړي دی دهغه نه، ② حُمْرٌ: سور رنګ.

① قَالَ: "هَلْ فِيهَا مِنْ أَوْرَقَ؟" قَالَ: إِنَّ فِيهَا لَوُرْقًا ② قَالَ: "فَأَنَّى تُرَى ذَلِكَ جَاءَهَا؟": ③ قَالَ: عِرْقٌ نَزَعَهَا. ④ قَالَ: "فَلَعَلَّ هَذَا عِرْقٌ نَزَعَهُ": ⑤ وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ فِي الِانْتِفَاءِ مِنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① حضور ﷺ ورته وفرمايل چې په هغه کښې د خړ رنګ دا هم شته؟ هغه عرض اوکړو چې هو. په هغه کښې خړ رنګي هم شته، ② حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ستا څه خيال دی؟ په هغوئ کښې دا خړ رنګي (خاکستري) اوښان د کومه راغلل (هر کله چې د هغوئ مور او پلار خړرنګي نه دي) ③ هغه عرض اوکړو چې څه رګ به وي، چې دوی يې راؤښکل (يعنې د هغوئ په اصل کښې به د خړ رنګ اوښ وو، چې د هغه مشابه دوی هم شو) ④ حضور ﷺ ورته وفرمايل نو بيا دا وړوکی به هم د څه داسې رګ په سبب تور وي، چې هغه دې راؤښکلې دې (يعنې د دې ماشوم په اصل کښې به هم څوک سړی د تور رنګ تير شوی وي، چې دا وړوکی د هغه مشابه شوی دی) ⑤ او دغه شان حضور ﷺ هغه

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة /باب من شبه أصلا معلوما بأصل مبين، قد بين الله حکمهما، ليفهم السائل-(رقم-۷۳۱۴) ومسلم فی کتاب اللعان (رقم-۱۸ - (۱۵۰۰) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/ باب فی اللعان (رقم-۲۲۶۰) والترمذی فی کتاب الولاء والهبة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الرجل ينتفی من ولده (رقم-۲۱۲۸) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: إذا عرض بامرأته وشکت فی ولده وأراد الانتفاء منه (رقم-۳۴۷۸) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ الرجل يشک فی ولده (رقم-۲۰۰۲) واحمد فی المسند: ۲۳۳/۲

بـندچي (کليوال) ته د هغه ماشوم نه د انکار کولو اجازت ورنه کړي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: - ③أَوْرَقُ: خړ رنګ ، خاکی ④عِرْقٌ: رګ ، ⑤نَزَعَهَا: رابنکلې ئې دې دا ⑥وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ: اجازت نې ورنه کړو هغه ته (دانکار کولو) ⑦فِي الِانْتِفَاءِ مِنْهُ: په نفی کولو دهغه (ماشوم) نه

**تسهیلات:**

**قوله**: ولدت غُلَامًا أَسْوَدَ:

**د کلی وال په زړه کښې د شک سبب:** - دَدغه کلی وال په ذهن کښې داخبره وه چه زما خونی تور ولې دې اوحال دادې چه زه پخپله سپین یم. زما بی بی سپینه ده دابچې آخر دَچادې په دې باندې هغه شك ښکاره کړو. نبی کریم په ډیر حکیمانه او ساده عام فهم اندازکښې دکلی وال دَ تجربې مطابق هغه پوهه کړوخکه چه دَاوښانو په معامله کښې داکلی وال ماهروو هغه په حقیقت باندې پوهه شو اوچپ شو.

**د کمزورو علامتو په بنیاد د خپل بچې نه انکار کول:** -علامه طیبی رحمه الله اوفرمائیل چه صرف په معمولی خبرو اوضعیف علامتونو په بنیاد باندې دَخپل بچې انکارکول منع دی بلکه په دې صورت کښې مضبوط دلائل اومکمل شهادت موجودکیدل ضروری دی مثلاً بی بی سره ئی کوروالې نه دې کړې اودَهغې بچې پیدا شو یا دَ صحبت نه پس دَ شپږو میاشتو نه په کمه موده کښې بچې پیداشو په داسې صورتونوکښې انکار کول جائز دې صرف په خیالی شبهات اوتهمت لګول جائز نه دی.

**[۳۳۳] دزنا په نتیجه کښې د پیدا کېدونکي ماشوم نسب د زنا کار ته نه ثابتیږي**

٣٣٣-[۹] (۱) ①وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: «كَانَ عُتْبَةُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ عَهِدَ إِلَى أَخِيهِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ ②أَنَّ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ مِنِّي، فَاقْبِضْهُ إِلَيْكَ، ③فَلَمَّا كَانَ عَامُ الْفَتْحِ أَخَذَهُ سَعْدٌ، فَقَالَ: إِنَّهُ ابْنُ أَخِي،

**ترجمه**: ①او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې عتبه بن ابي وقاص خپل ورور سعد ابن ابي وقاص ته وصیت وکړي، ②چې د زمعه د وینځې خوی زما د نطفې نه دی، ته هغه واخله، ③نو دمکې د فتح په کال سعد رضي الله عنه هغه هلک واخستی، هغه اوویل چې دا زما وراره دی،

**حل اللغات**: - ①عَهِدَ: وصیت (لوظ) کړې وو،

①وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ: أَخِي، فَتَسَاوَقَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②فَقَالَ سَعْدٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ أَخِي كَانَ عَهِدَ إِلَيَّ فِيهِ. ③وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ: أَخِي وَابْنُ وَلِيدَةِ أَبِي، وُلِدَ عَلَى فِرَاشِهِ.

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الوصایا/باب قول الموصی [ص: ٤] لوصیه: تعاهد ولدی. وما یجوز للوصی من الدعوی (رقم-٢٧٤٥) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب الولد للفراش. وتوقی الشبهات(رقم-٣٦ - (١٤٥٧) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی نفل السریة تخرج من العسکر (رقم-٢٧٤٥) والترمذی فی کتاب الرضاع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الولد للفراش (رقم-١١٥٧) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: فراش الأمة (رقم-٣٤٨٧)وابن ماجه فی کتاب النکاح/ الولد للفراش. وللعاهر الحجر (رقم-٢٠٠٤) ومالک فی الموطا کتاب الاضحیة (رقم-٢٠)

**ترجمه:** [۱] و عبد ابن زمعه ﷺ اوویل چې دا زما ورور دی، بیا هغه دواړو خپله معامله رسول الله ﷺ ته راوړه، [۲] نوسعد اوویل چې یارسول الله! بیشکه زماورور ددې کښې په حقله ماته وصیت کړې وو چې داته واخله، [۳] وعبد بن زمعه اوویل چې (دا هلک زما) ورور دی، او زما د پلار د وینځې زوی دی، چې زما د پلار په بستره پیدا شوی دی.

**حل اللغات:** -② فَتَسَاوَقَا: دواړو معامله پیش کړه، ③ فِرَاشِهِ: په بستره دهغه.

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ، [۲] الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ، وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ). [۳] ثُمَّ قَالَ لِسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ: (احْتَجِبِي مِنْهُ). لِمَا رَأَى مِنْ شَبَهِهِ بِعُتْبَةَ، [۴] فَمَا رَآهَا حَتَّى لَقِيَ اللَّهَ. [۵] وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: (هُوَ أَخُوكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ وُلِدَ عَلَى فِرَاشِ أَبِيهِ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] رسول الله ﷺ (د دواړو خبرې آوریدو سره) وفرمایل چې اې عبد ابن زمعه! ﷺ د دې ماشوم ته حقدار یې، [۲] ځکه چې ماشوم د صاحب فراش طرف ته منسوب کیږی، او د زاني (زناکار) د پاره (د نسب او میراث نه) محرومي ده (یا دا چې زاني د سنګساري مستوجب دی) [۳] بیا حضور ﷺ بي بي سوده بنت زمعه ﷺ ته وفرمایل چې ته د دې هلک نه پرده کوه، ځکه چې په ده کښې د عتبه شباهت په نظر راځي، [۴] نو بي بي سوده ﷺ د هغه هلک سره هیڅکله ونه لیدل، حتٰی چې وفات شوه، [۵] په یو روایت کښې داسې دي. چې حضور ﷺ وفرمایل اې عبد ابن زمعه! دا هلک ستا ورور دی، ځکه چې ستا د پلار په بستره پیدا شوی دی، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** -② وَلِلْعَاهِرِ: زنا کار د پاره، ⑤ الْحَجَرُ: سنګسار کیدل. محروم کیدل

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ:

**د حدیث پس منظر:** - دَدې حدیث په مطلب باندې دَ پوهیدلو دَپاره اول په دې باندې ځان پوهه کول پکاردی چه یوسعدبن ابی وقاص دې دویم عتبه بن ابی وقاص دې کوم چه دَ ده رور دې حضرت سعد ﷺ ایمان راوړلې ووا و عتبه په کفرباندې مړشو بلکه عتبه هم هغه بدبخت دې چا چه دَ جنګ احد په موقع باندې دَرسول الله ﷺ غابنونه مبارك شهیدان کړی وو عتبه دَ زمعه وینځې سره زناکړې وه زمعه دَحضرت سوده ﷺ دَ پلار نوم دې اودَ هغه دَ خونې نوم عبد دې کوم چه په دې حدیث کښې ذکردې

دَ جاهلیت دَ اصولو مطابق که یوسړی به دَ چا وینځې سره زناکوله اودَهغې په نتیجه کښې به بچې پیدا کیدو نوهغه بچې به هم دَ هغه زناکاروو اودَ هغه په اولاد کښې به شمیرلې شو هم په دې اصولوسره عتبه خپل رور حضرت سعد ﷺ ته وصیت کړې وو چه دَزمعه دَ وینځې بچې زما دې ځکه چه دا زمادَ نطفه نه دې لهذا هغه په خپله قبضه کښې واخله نوچه کله مکه مکرمه فتح شوه نوپه دې موقع حضرت سعد ﷺ هغه هلك واخستو اوونې

ونيل چه دا زما وراره دي عبدابن زمعه اوونيل دا زما رور دي ځکه چه زما د پلار د وينځې نه پيدا شوې دي داجګړه چه کله د نبی کريم په وړاندې پيش کړې شوه نو رسول الله ﷺ يو نوې اسلامی دفعه نافذ کړه اوهلك ئې عبدته حواله کولو سره د جاهليت قاعده په دې مبارك فرمان سره ماته کړه چه «الولد للفراش وللعاهر الحجر» يعنې بچې هم د هغه وی د چا په فراش چه پيدا شوې وی اود زناکار د پاره د محرومې نه علاوه هيڅ نشته يا مطلب دا چه د زناکار د پاره په کاڼړو ويشتل دی.

**سودة ته د پردې کولو حکم اوه دې وجه:** - بهرحال فيصله خوهم داسې اوشوه ليکن چونکه په دغه هلك کښې د عتبه واضحه مشابهت ښکاريدلو په دې وجه نبی کريم حضرت سوده ﷺ ته اوفرمائيل چه د ده نه پرده کوه نوهغې د وفات پورې د هغه نه پرده کوله. د دې واقعه نه دا خبره واضحه شوه چه د قرائنو علاماتو او مشابهت اعتبارنشته دې بلکه په فراش او زوجيت باندې دارومدار دې.

**[۲۲۱۲] د نسب په اثبات کښې د قيافه شناسي قول معتبر دی که نه؟**

[۱۰]-۳۳۰۳ () ١ وَعَنْهَا، قَالَتْ: «دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ يَوْمٍ وَهُوَ مَسْرُورٌ. ٢ فَقَالَ: أَيْ عَائِشَةُ! أَلَمْ تَرَيْ أَنَّ مُجَزِّزًا الْمُدْلِجِيَّ دَخَلَ، ٣ فَلَمَّا رَأَى أُسَامَةَ وَزَيْدًا وَعَلَيْهِمَا قَطِيفَةٌ قَدْ غَطَّيَا رُءُوسَهُمَا وَبَدَتْ أَقْدَامُهُمَا، ٤ فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ الْأَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ ډير خوشحاله خوشحاله زما کور ته تشريف راوړو، ٢ او وي فرمايل چې اې عائشې! رضي الله عنها آيا تاته معلومه نه ده چې (نن) مجزز مدلجي (مسجد نبوي ﷺ) ته راغلی، ٣ او هر کله چې هغه اسامه رضي الله عنه او زيد رضي الله عنه وليدل. چې څادر (پټو)په ځان اچولی داسې ناست وو، چې سرونه يې پټ وو، او پښې يې ښکاره وې. ٤ نو هغه اوويل چې د دې دواړو پښې د يو بل مطابق دي، يعنی دا پښې چې د کومو دوو سړو دي، هغه په خپلو کښې پلار او ځوی دي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَسْرُوْرٌ: خوشحاله. ② قَطِيفَةٌ: څادر. رومال ③ غَطَّيَا: دواړو پټ کړی وو

**تسهيلات: قوله:** أَنَّ مُجَزِّزًا الْمُدْلِجِيَّ:

**د مجزز تعارف:** - مجزز د مکبر په وزن باندې د عربود يومشهورقيافه شناس نوم دې د هغه خاندانی تعلق چونکه د قبيله مدلج سره وو په دې وجه هم دغه قبيلې طرف ته منسوب دې په عربوکښې په قيافه شناسئ کښې دې سړی د سند حيثيت لرلو او په خلقوکښې دا يومعيارروو

---

١ ) اخرجه البخاري فی کتاب الفرائض/باب القائف (رقم-۶۷۷۱) ومسلم فی کتاب الرضاع/باب العمل بإلحاق القائف الولد (رقم-۳۸ - (۱۴۵۹) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الطلاق/باب فی القافة (رقم-۲۲۶۷)والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: القافة (رقم-۳۴۹۳)وابن ماجه فی کتاب الأحکام/باب القافة (رقم-۲۳۴۹) واحمد فی المسند: ۲۲۶/۶

**د زيد بن ثابت او اسامه بن زيد په نسب باندې اعتراض:** - بل طرف ته حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه ډير ښائسته ووا او د هغه خوئي اسامه بن زيد چونکه د حضرت ام ايمن رضي الله عنها د بطن نه وو په دې وجه هغه د خپلې مور په شان د توربخن رنګ وو منافقانو به پروپيګنډې کولې چه اسامه د خپل پلار نه نه دې ځکه چه د دومره ښائسته پلار خوئي داسې تورځنګه کيدې شي نبي کريم به په دغه خبروباندې ډيرزيات غمګين اوخفه کيدو اوخاطريه نې درېدو ليکن د دې تور د پاره د يوداسې څيز اوسندضرورت ووکوم چه د معاشرې تول خلق بغير د څه خبروکولوقبول کړې اوهغه سند د قيافه شناس قيافه شناسي کيدې شوه

**د قيافه شناس په وينا د اعتراض سد باب کيدل:** - چنانچه الله تعالى انتظام اوکړو اويوورځ د عربو مشهورقيافه شناس مجززمدلجي مسجدنبوي ته راغلو حضرت اسامه او حضرت زيد رضي الله عنهما دواړه په يوڅادرکښې داسې اينغښتي اوده وو چه په مخونو بندې څادر وو اوخپې ښکاره وې مجزز چه کله اوکتل نو وئې وئيل داخپې د پلار اوځوئي دي په دې باندې نبي کريم ډيرخوشحال شو ځکه چه د دغه پروپيګنډې د ختمولو د پاره هم د دې سند ضرورت وو ګني د آسمان نه وحي هم راتلې شوه مګر په عام معاشره کښې د قيافه زيات اعتباروو

**د نسب په ثبوت کښې د قيافه شناس په حجيت کښې مذاهب:** -

① د جمهورو په نيزد هرنسب د ثبوت د پاره هم د نورو دلائلو نه علاوه قيافه شناسي هم يومؤثر دليل دې

② ائمه احناف فرمائي چه علم قيافه د ثبوت نسب د پاره کافي نه دې

**داول فريق دليل:** - د اول فريق مستدل زيربحث حديث دې په دې کښې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دغه قافيه شناس په خبره خوشحاله شو چې هغوي د اسامه او د هغه د پلار د نسب ثبوت د خپل علم په رڼرا کښې ورکړو نود نبي کريم صلى الله عليه وسلم خوشحالي د دې خبرې دليل دې چې د قفيه شناس قول دليل دې

**اول فريق د دليل جواب:** - نبي کريم ته د مخکښې نه د وحي په ذريعه معلومه وه چه اسامه هم د زيدخوئي دې ليکن د منافقانو پيغورونه او پروپيګنډې د قيافه شناس په فيصله سره ختميدې شوې په دې وجه نبي کريم د قيافه شناس په خبره باندې د خوشحالئ اظهاراوکړو دا ثبوت په نسب باندې دليل نه دې بلکه د پيغورد ختمولو د پاره يو دليل دې

**د دويم فريق دلائل:** - ①قيافه د هغه علم نوم دې په کوم کښې چه د يوڅيزپيژند ګلو په هغې کښې د دننه علاماتو اونشاناتونه کيږي اودا تخمين اواندازه په کوم سره چه قطعي يقيني علم نه شي حاصليدې او د ثبوت نسب د پاره د يقيني علم کيدل ضروري دي د دې

باره په شریعت کښې د امورو یقینیو اعتبار دې لهذا قیافه بې اعتباره ده

⑦ شریح د حضرت عمر رضی الله عنه د خط په ذریعه د دې مسئلې تپوس اوکړو نو حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه دواړه آقا په دغه بچی کښې شریك دی دوی به د بچی وارثان وی او بچې به د دوی وارث وی د حضرت علی رضی الله عنه هم دغه شان فیصله وه لکه چه د صحابه کرامو اجماع اوشوه ملاعلی قاری رحمه الله نور روایتونه هم نقل کړی دی

**په اختلاف مذکوره باندې د بلې مسئلې تفریع:** - هم په دې اختلاف باندې دا مسئله متفرع ده چه مثلاً په دوو سړو کښې یو مشترکه وینځه ده او د دواړو د جماع په نتیجه کښې د هغې بچې پیدا شو نو جمهور فرمائی چه قائف کومه فیصله اوکړه د هغې مطابق به دا بچې د هغه سړی شی احناف فرمائی په دې صورت کښې به هغه بچې د دواړو مشترکه مملوك وی او وینځه به د دواړو ام ولده شی سره د دې چه په حقیقت کښې به دغه بچې هم د یوکس وی لیکن د قائف د فیصلې اعتبار نشته څکه چه په دې باندې د شریعت مدار نشته دې

**[۳۳۳] د خپل پلار نه د انکار کولو په باره کې وعید**

---[۱۱]()[۱]وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، وَأَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَا: [۲]«قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ وَهُوَ يَعْلَمُ [۳]فَالْجَنَّةُ عَلَيْهِ حَرَامٌ)» : مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه او حضرت ابوبکره رضی الله عنه دواړه راویان دي [۲]چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم سړی چې خپل ځان د خپل پلار په ځای د یو دویم سړی سره منسوب کړی. او هغه په دې هم پوهیږي، چې دا زما پلار نه دی. [۳]نو په هغه جنت حرام دی. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ:

**د جنت حرامیدلو توجیهات:** - یعنی خپل نسب پټولو سره د خپل پلار په ځائی بل چاته پلار اووئیل نو په دغه باندې جنت حرام دې

① په اولنی خل داخلیدل په ده باندې جنت حرام دې

② چه کوم سړې د خپل پلار په ځائی خپل ځان بل چاته منسوب کوی او دا حرام عمل حلال ګنړی نو هغه په حقیقت کښې یو حرام ته حلال وائی او دا کفر دې نو د کفر په وجه په هغه باندې جنت حرام دې

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الفرائض/باب من ادعی إلی غیر أبیه (رقم-٦٧٦٦) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب بیان حال إیمان من رغب عن أبیه وهو یعلم (رقم-١١٥ - (٦٣) وابن ماجه فی کتاب الحدود/باب من ادعی إلی غیر أبیه أو تولی غیر موالیه (رقم-٢٦١٠) واحمد فی المسند: ٤٦/٥

⑦ دَ گناه اثرخو هم دغه دې چه په ده دې جنت حرام وی ليکن په قيامت کښې فيصله په معجون مرکب باندې کيږی

⑧ دا کلمات ئې تشديداً تغليظاً تهديداً فرمائيلې دی راتلونکی روايت نمبر ۱۲ کښې د فقد کفر الفاظ راغلی دی هلته که دَ کفرنه کفرحقيقی مرادوی نو دَدې ځائی جوابونوکښې دويم جواب پريخودوسره بالې جوابونه دَ هغه حديث دپاره هم دی اوکه چرته هلته دَ کفرنه کفران نعمت مرادواخستې شی نوبيابه څه اعتراض نه راځی

**[۳۳۱۵] دَ خپلو پلار انو څخه دبې رغبتی حرمت**

[۱۲] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② لَا تَرْغَبُوا عَنْ آبَائِكُمْ، ③ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ أَبِيهِ فَقَدْ كَفَرَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④ وَذُكِرَ حَدِيثُ عَائِشَةَ: («مَا مِنْ أَحَدٍ أَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ»): فِي (بَابِ صَلَاةِ الْخُسُوفِ).

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② تاسې (د غير سړي سره خپل نسب لګولو سره) د خپل پلار نه مخ مه ګرځوی، ③ څکه چې کوم سړی د خپل پلار نه مخ وګرځولي (يعني د هغه نه يې د خپل نسب انکار وکړي) نو هغه په حقيقت کښې کفران د نعمت وکړي (د نعمت ناشکري يې وکړله) بخاري مسلم ④ او حديث دعائشې مَامِن اَحَدٍ اَغْيَرُ مِن الله په باب صلوٰة الخسوف کې ذکرشوي دي .

**حل لغات:** - ① لَاتَرْغَبُوا عن: مخ مه ګرځوئ انکار مه کوئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَاتَرْغَبُوا عَنْ آبَائِكُمْ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** - يعنی که هغه غريب وی يا ئې عزت نه وی نو په دې کښې شرم او غيرت مه کوئ چې هغوئ ته خپل پلار اووائې

**قوله:** فَمَنْ رَغِبَ عَنْ أَبِيهِ فَقَدْ كَفَرَ

پلار سره بې رغبتی کولو باندې د کفر په اطلاق کښې توجيهات: -

① دلته د کفر څخه کفر ته نزديکت مراد دې.

② دلته کفر کښې د اخته کيدو خطره مراد ده

③ که قصدا عمداً د خپل پلار څخه سوا بل چاته ځان منسوب کول مباح ګڼړی کومه چې لويه ګناه ده نوده يو حرام څيزحلال اوګڼړل او تحليل الحرام کفر دې.دې صورت کښې د حديث پاك الفاظ (فقدکفر) خپل حقيقی معنو باندې محمول دی.

---

۱) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ٦٧٦٨ ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ١١٣/ ٦٢ واحمد فی المسند ٢/ ٥٢٦

۴ ددې څخه کفران نعمت مراد دې. چې ده ته خپل پلار معلوم هم دې او دې بیاهم د هغه د خوئې ولې څخه انکار کوی نو دا دې د نعمت ناشکری کوه چې حرام پیدا نه دې پلار ئې معلوم دې اوبیا هم د هغه څخه انکار کوی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِی

## [۳۳۳] دَ يوشقى القلب پلار شقاوت

۳۳۳ــــ[۳]()۱«عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ لَمَّا نَزَلَتْ آيَةُ الْمُلَاعَنَةِ: ۲" أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَدْخَلَتْ عَلَى قَوْمٍ مَنْ لَيْسَ مِنْهُمْ، ۳فَلَيْسَتْ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ، وَلَنْ يُدْخِلَهَا اللَّهُ جَنَّتَهُ،

**ترجمه:** ۱او حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چې هغه د لعان د آیت د نازلیدو په وخت د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل، ۲چې کومه ښځه څوک په داسې قوم کښې داخل کړي، چې د هغه نه هغه نه وي (یعني یوې ښځې بدکاري وکړه، او بیا د هغې د بدکارې نتیجه کښې یې وړوکی پیدا شو، او هغه وړوکی یې د خپل خاوند طرف ته منسوب کړي) ۳نو هغه د الله ﷻ په نزد په هیڅ درجه کښې نه ده، او الله تعالی ﷻ به هغه (د خپل مقرب او د نیکو بندګانو سره) هیڅ کله په خپل جنت کښې داخله نه کړي،

**حل اللغات:** - ۱آيَةُ الْمُلَاعَنَةِ: هغه آیت چې هغې کښې د لعان ذکر دی.

۱وَأَيُّمَا رَجُلٍ جَحَدَ وَلَدَهُ وَهُوَ يَنْظُرُ إِلَيْهِ، ۲احْتَجَبَ اللَّهُ مِنْهُ وَفَضَحَهُ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ فِي الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱او کوم سړی چې د خپل ماشوم نه انکار وکړي (یعني د هغه ښځې نه چې کوم وړوکی پیدا شوی دی. د هغه په باره کښې اووائي چې دا زما نه دی) حالانکه هغه، د هغه طرف ته ګوري (یعني هغه پوهیږي، چې زما خوی دی) ۲نو الله تعالی ﷻ به د هغه نه پرده کوي (یعني د هغه به د الله تعالی ﷻ دیدار نه نصیب کیږی) او الله تعالی ﷻ به هغه په تولو مخکښی او وروستنی خلقو کښې رسوا کړي (یعني په میدان حشر کښې چې ټول مخکښي او وروستني خلق راجمع شي، نو د هغوئ په منځ کښې به هغه ذلیل او رسوا کړي) ابوداؤد، نسايي، دارمي

**حل اللغات:** -۲جَحَدَ: انکار اوکړو. ۳احْتَجَبَ اللَّهُ: پرده به اوکړی الله (دیدار به ورته نصیب نه کړی) ۴وَفَضَحَهُ: رسوا به ئې کړی. اوبه ئې شرموی.

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الطلاق/باب التغليظ فی الانتفاء (رقم-۲۲۶۳) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: التغليظ فی الانتفاء من الولد (رقم-۳۴۸۱)

**تسهیلات:**

**قوله: أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَدْخَلَتْ عَلَى قَوْمٍ مَنْ لَيْسَ مِنْهُمْ:**

یعنی زناکولوسره دَ بل قوم دَ کس بچی دَ خپل خاوند او دَهغه دَ قوم طرف ته منسوب کوی دَ ښځې دَپاره دا حرام دی او په دې باندې جنت حرام دې دغه شان که یوسړې دَخپل بچی نه انکارکوی نو په هغه باندې هم جنت حرام دې. خلاصه دا چه نه دې ښځه زناکولوسره حرام زاده دَخپل خاوند طرف ته منسوب کوی او نه دې خاوند دَخپل حقیقی بچی نه انکارکوی.

**قوله: وَهُوَ يَنْظُرُ إِلَيْهِ:**

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:** ① یعنی ماشوم سترګې برندې کړې دَ پلارطرف ته ګوری اودا شقی القلب دَهغه انکارکوی.

② بعضې شارحینو دَ وهوینظر مفهوم دا اخستې دې چه پلار بچی ته ګوری اوهغه پیژنی چه دا زما خونی دې اوبیاهم انکارکوی. په دې صورت دَ هوضمیردَ پلار طرف ته راګرځی

**[۳۳۷] بدکارې ښځې لره طلاق ورکول اولی دی**

[۳۳۷]-[۱۳] (١) ①«وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ②جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ③إِنَّ لِي امْرَأَةً لَا تَرُدُّ يَدَ لَامِسٍ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ④"طَلِّقْهَا". قَالَ: إِنِّي أُحِبُّهَا. قَالَ: "فَأَمْسِكْهَا إِذَنْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، ⑤وَقَالَ النَّسَائِيُّ: رَفَعَهُ أَحَدُ الرُّوَاةِ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَحَدُهُمْ لَمْ يَرْفَعْهُ. وَقَالَ: وَهَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ بِثَابِتٍ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عباس ﷺ وايي ②چې (يوه ورځ) د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې يو سړی حاضرېدو سره عرض وکړو، ③چې زما ښځه د چا مس کونکي لاس نه منع کوي (يعني کوم سړی چې د هغې سره د بدکاري اراده وکړي، د هغه نه انکار نه کوي) ④نبی کریم ﷺ ورته وفرمايل چې هغې لره طلاق ورکړه، هغه عرض اوکړو چې (دا ممکنه نه ده) ځکه چې هغه زما ډیره خوښه ده، حضور ﷺ ورته وفرمايل چې بيا د هغې نګهباني کوه (چې هغه په بدکاري کښې مبتلا نشي، (ابوداؤد، نسايي)

⑤او نسايي ﷫ ويلي دي چې د دې روايت په راويانو کښې يو راوي خو دا ابن عباس ﷺ ته رسولی دی، او وصل کړی يې دې، او يو راوي دا ابن عباس ﷺ ته نه دې رسولی، او وصل کړی يې نه دی، او نسايي ﷫ ويلي دي چې دا حديث ثابت نه دی (يعني دا حديث متصل نه دی، بلکې منقطع دې).

١) اخرجه ابوداود فی کتاب النکاح/باب النهی عن تزويج من لم يلد من النساء(رقم-٢٠٤٩) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب ما جاء فی الخلع(رقم - ٣٤٦٤)

**تسهيلات:**

**قوله: لَاتَرُدُّيَدَلَامِسٍ:**

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې اقوال:** – يعنى دَ يولاس لګونكى لاس نه منع كوى اونه ئې لرې كوى. دَدې حديث مطلب او مقصد بيانولو كښې دَ شارحين حديث مختلف خيالات دى

① دَ قاضى عياض رحمه الله خيال دادې چه چه دا ښځه هم دغه شان فجور كښې اخته وه او فاجره ښځه نكاح كښې ساتل حرام دى خاص كر چه كله يوسړې دَ يوې ښځې په محبت كښې راګيروى نو كه هغه ته دَ طلاق وركولوحكم وركړې شى نوډير ممكن دى چه هغه دَ دې نه هم په زياته لويه ګناه كښې اخته شى. مذكوره سړى ته هم دَدغه خاص مجبورئى دَ وجې نه اجازت وركړې شو اودَ هغه دَپاره دا واجب كړې شو چه هغه دې دَ دغه ښځې دَ تهذيب اوتاديب پوره كوشش اوكړى.

②امام احمد رحمه الله فرمائى دَدې جملې مطلب دادې چه دا ښځه بې وقوفه اواحمقه ده خپل مال هرچاته وركوى دَ چانه څه مال نه منع كوى. علامه توريشتى رحمه الله هم دغه شان توجيه فرمائيلې ده. ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى چه دامعنى مراد اخستل دَ دوو وجوهاتونه ډيراولى ده. اوله وجه داده كه چرې دې نه زنا مراد واخستې شى نودا قذف دې نو نبى كريم به دَ دغه سړى نه په دې بهتان باندې ضرور ثبوت غوښتلو ګنى هغه به ئې په كوړو وهلو دويمه وجه داده كه چرې دا ښځه بدكاره وه اوخبره ئې دَ بدكارئى كړې وه نونبى كريم به دا ښځه په نكاح كښې دَ ساتلو اجازت نه وركولو بلكه دَ جدائيئ حكم به ئې فرمائيلو

③ ابن الاعرابى رحمه الله فرمائى چه (لاتردُلامس) سره دَ دغه ښځې فسق اوفجور طرف ته اشاره كړې ده. علامه خطابى رحمه الله هم تقريبًا هم داسې مطلب بيان كړې دې.

**قوله: فَأَمْسِكْهَا إِذَنْ**

يعنى دَداسې ښځې پريخودل بهتردى ليكن كه هغه هم په نكاح كښې ساتل وى نوبيا دا دَ دغه قبيح اومكروه كارنه منع كول ضرورى دى.

**په مذكوره واقعه كښې د رجل جهالت:** – يادساتئى چه داحديث ضعيف هم دې او ثابت هم نه دې اودا يوجزئى واقعه ده نه ده معلومه چه دا سړې څوك وو اودَ هغه ايمانى كيفيت څه وو اودَهغه خاندانى غيرت څه وو اودَ هغه خصوصى حالت څه وو هغه وخت دَمنافقانو دور اوهغوى زور هم وو نه ده معلومه چه دا سړې څوك وو. ځكه چه دَ صحابه كرامو متعلق چه كومې قطعى خوبيانې موجود دى يومسلمان له دَهغې باره كښې خرابه عقيده نه دى ساتل پكار.

بذل مجهودكښې ليكلى دى چه ماته دَ دغه سړى باره كښې هيڅ معلومه نه شوه. اصابه كښې ليكلى دى چه دَ دغه سړى نوم هشام وو اودَنبى كريم يا قريشوغلام وو. علامه ابن

کثیر رحمه الله لیکلی دی دغه سری ته دَ خپلې ښځې باره کښې یقین نه وو البته دَ قرائن په بنیادباندې ئې دا خبره کوله کومه چه صرف دَ وهم اوگمان په درجه کښې وه بل طرف ته دَ هغوی محبت یقینی وو په دې وجه نبی کریم ورته دَ ساتلې اجازت ورکړو ابن جوزی رحمه الله دا روایت موضوع گرخولې دې لیکن علامه سیوطی رحمه الله دَ هغه دا خبره رد کړې ده ابن حجر رحمه الله دا حدیث صحیح گرخولې دې.

**اشکال:** – په احادیثو کښې دَ دیوث دَپاره ډیر سخت وعیدونه راغلی دی او دلته دَ دیوث تعریف صادق راځي؟

**اشکال جواب:** – کوم وعیدات دَ دیوث متعلق دی هغه دَ هغه دیوث دَپاره دی چه ښځه په بدکارئې باندې گوری او خاموش پاتې کیږی. دلته خودا سړې خاموش نه دې بلکه باقاعده مقدمه ئې دائر کړې اوهغه هم صرف دَ شك وهم دَ قرائن بعیده په بنیاد وه. دلته دَ دیوث تعریف صادق نه دې.

### [۳۲۱۸] دَ اثبات نسب په سلسله کښې یو واضح هدایت او ضابطه

۳۲۱۸ –[۱۵] (۱) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَضَى أَنَّ كُلَّ مُسْتَلْحَقٍ اسْتُلْحِقَ بَعْدَ أَبِيهِ الَّذِي يُدْعَى لَهُ ادَّعَاهُ وَرَثَتُهُ [۳] فَقَضَى أَنَّ كُلَّ مَنْ كَانَ مِنْ أَمَةٍ يَمْلِكُهَا يَوْمَ أَصَابَهَا فَقَدْ لَحِقَ بِمَنِ اسْتَلْحَقَهُ، [۴] وَلَيْسَ لَهُ مِمَّا قُسِمَ قَبْلَهُ مِنَ الْمِيرَاثِ شَيْءٌ، وَمَا أَدْرَكَ مِنْ مِيرَاثٍ لَمْ يُقْسَمْ فَلَهُ نَصِيبُهُ،

**ترجمه:** [۱] او عمرو ابن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي، [۲] چې نبی کریم ﷺ (د دي حکم ورکولو) فیصله وکړه، چې د کوم هلک نسب د هغه د پلار د مړ کیدو نه روسته، چې د هغه طرف ته نسبت شوي دي، یو ځای کړل شوي دي، او د هغه دعوی د هغه پلار وارثانو کړي ده (یعني مثلًا د زید د مرگ نه وروسته د هغه وارثانو د یو هلک بکر په باره کښې ووېل، چې دا د زید خوی دی، نو دي هم زمونږ پشان د زید یو وارث دی) نو (په دي باره کښې) [۳] حضور ﷺ فیصله وکړله (که هغه هلک چې د هغه نسبت یو ځای کړل شوی دی) د داسې وینځې د خیټې نه وي، چې د صحبت په ورځ د هغه د پلار په ملکیت کښې وه (یعني د وینځې سره د هغه د پلار په جائزه طریقه سره جماع شوې وي) نو هغه به د هغه سړي سره په نسبت کښې یو ځای شي. چا چې هغه یو ځای کړي دي (یعني کوم وارث چې هغه ځای کړي، هغه به په هغه وارثانو کښې یو ځای شي، او د هغوئ سره به د میراث حقدار وي. په دي طور، که ټول وارثان هغه یو ځای کوي، نو د ټولو په حق کښې به وارث وي. او که بعضې وارثانو یو ځای کړی وي، نو د هغه بعضې په حق

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الطلاق/باب فی ادعاء ولد الزنا (رقم-۲۲۶۵) وابن ماجه فی کتاب الفرائض/باب فی ادعاء الولد (رقم-۲۷۴۶) واحمد فی المسند: ۲/۲۱۹

کېږي به وارث وي، [۴] او کوم میراث چې د هغه يو ځای کولو نه مخکې تقسيم شوی وي، په هغه کښې به د هغه څه حصه نه وي، هو، کوم میراث چې د اوسه تقسیم شوی نه وي، په هغه کښې به هغه ته حصه حاصلیږي

[۱] وَلَا يَلْحَقُ إِذَا كَانَ أَبُوهُ الَّذِي يُدْعَى لَهُ أَنْكَرَهُ، [۲] فَإِنْ كَانَ مِنْ أَمَةٍ لَمْ يَمْلِكْهَا أَوْ مِنْ حُرَّةٍ عَاهَرَ بِهَا فَإِنَّهُ لَا يَلْحَقُ بِهِ وَلَا يَرِثُ [۳] وَإِنْ كَانَ الَّذِي يُدْعَى لَهُ هُوَ الَّذِي ادَّعَاهُ فَهُوَ وَلَدُ زِنْيَةٍ مِنْ حُرَّةٍ كَانَ أَوْ أَمَةٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او که هغه هلک داسې وي، چې د هغه نسبت د کوم پلار طرف ته کېږي ، هغه د هغه نه انکار کړی وو (یعني هغه پلار په خپل ژوند کښې د هغه د خپل خوی کیدو انکار کړی وي) نو هغه هلک د هغه د مرګ نه وروسته د وارثانو يو ځای کولو سره به نه يو ځای کیږي ، او د هغه پلار وارث به نه وي، [۲] دغه شان که هغه هلک د يوې داسې وینځې د خیښې نه ، چې د صحبت په ورځ د هغه د پلار په ملکیت کښې نه وه (یعني هغه د يو بل سړي د وینځې سره زنا کړې وه، او د هغه زنا په نتيجه کښې دا هلک پیدا شوی وو) یا د يوې داسې آزادې ښځې د خیښې نه وي، چې د هغه سره د هغه پلار زنا کړې وه، نو هغه هلک به د هغه د پلار په وارثانو کښې شامل نه وي، او نه به هغه ته میراث ورکول کیږي .
[۳] اګر که په خپله هغه سړي (یعني پلار) چې د هغه طرف ته د هغه هلک نسبت کیږي ، د هغه دعوی کړې وي.
دا جمله ګویا د مخکښې حکم د تاکید په طور ده، که هغه هلک ولد الزنا وي، نو هغه د هغه پلار، یعنی د زاني په وارثانو کې شامل کول جائز نه دی، ځکه که خپله هغه زاني په خپل ژوند کښې د هغه د نسب دعوی کړی وی، چې دا زما خوی دی، بیا هم د هغه سره د هغه هلک نسب نه يو ځایې کیږی، چې څنګه د هغه د مرګ نه وروسته د هغه وارثان هغه هلک په ځان کړي، نو هغه هلک حرامې دي، اګر چې هغه د وینځې د خیښې نه وي، یا د آزادې ښځې نه پیدا وي، (ابوداؤد)

**حل لغات:**- ① مُسْتَلْحَقٍ :صیغه د اسم مفعول ده يو ځای کړې شوې بچې، دې یعنی د کوم هلک نسب چه د هغه د پلار د مړ کیدو نه روسته ثابت شوې وی، ② عَاهَرَ: زنا ئې کړې ده

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنْ كُلَّ مُسْتَلْحَقٍ :

**د لفظ استلحاق تحقیق:**-استلحاق دَ ملاورهلو په معنی کښې دې یعنی دَ مړی وارثانو مطالبه اوکړه چه دا ماشوم زمونږ سره په نسب اومیراث دواړه کښې يوځائی کړئی نودَ دغه قضیه تفصیل په دې حدیث کښې ذکر دې مستلحق اسم مفعول سره هم دغه ملاؤ شوې بچی ته وائی اودَ ملاوولو دغه عمل ته استلحاق وائی.

**د حدیث پس منظر :**- علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې دَهغه

احکامو بیان دي چه دَاسلام په شروع کښې به دَ نبی کریم مخې ته راتلل اونبی کریم به دَهغې باره کښې فیصله کوله دَ علامه خطابی ﷫ وینا ده چه دَجاهلیت په زمانه کښې دَخلقو بدکاره او بدکرداره وینځې دَ بدکارئی دَپاره ګرځیدلې دَدغه بدکارئی په نتیجه کښې چه به کله بچې پیداکیدو نوزناکار به دعوی کوله چه دابچې زمادې ماته دې راکړې شی اومالك به هم دعوی کوله چه دازما بچې دې ځکه چه زمادوینځې نه پیداشوې دې لکه ځنګه چه دَ زمعه دَ وینځې قصه ددې نه وړاندې حدیث کښې تیره شوې ده دَدغه جګړې ختمولو دَپاره حضوریك یوه شرعی ضابطه مقرر کړې وه دَ دغه ضابطې وضاحت په دغه حدیث کښې دې دا په مثال سره داسې اوګڼړئی چه مثلاً زید یوسړې دې هغه وفات شو دَهغې نه پس دَهغه وارثانودعوی اوکړه چه دَ فلانکې وینځې نه فلانکې هلك دَ زید دې چه مونږ سره په نسب اومیراث کښې شریك دې لهذا دامونږ سره ملحق کړئی اسلام په یوځو شرطونو سره دَدغه وارثانودا دعوی منلې ده. البته کوموو ارثانوچه په دغه دعوی کښې حصه نه ده اخستې نودَهغوی په نسب او میراث کښې به دغه هلك شریك نه وی.

**استلحاق د صحت شرطونه:** - دَ استلحاق دَ صحت دَپاره په دې حدیث کښې چه دکوموشرطونوطرف ته اشاره کړې شوې ده هغه مثبت او منفی شرطونه دی. کوم چې لاندې ذکر کولی شی.

① زیدهم په خپل ژوند کښې دَدې هلك اقرار او اعتراف کړې وی او اعلان ئی هم کړې وی چه داهلك په جائزطریقه باندې زما ځوئی دې. دَدې شرط منفی اړخ دادې که زیدپه خپل ژوند کښې دَدې ماشوم نه انکار کړې وی چه داماشوم زما ځوئی نه دې نودَ زید دَ مرګ نه پس وارثان هغه په یوصورت کښې هم هغه په نسب اومیراث کښې شریکولې نه شی.

② چه دا وینځه دَ زیدپه ژوند کښې دَهغه په ملکیت کښې راغلې وی. اوکه دَآزادې حره ښځې متعلق دا دعوی وی نوچه هغه آزاده حره ښځه دَ زیدپه نکاح کښې پاتې وی دَدې شرط منفی اړخ دادې که دا وینځه دَ زید په ملکیت کښې نه وی راغلې اویاداحره ښځه دَ زیدپه نکاح کښې نه وی راغلې نو په دې صورت کښې داهلك ولدالزنادې نه دَ ده استلحاق صحیح دې اونه وارث دې په خپل نسب کښې شاملولې شی بلکه په دې صورت کښې که چرې پخپله زیدهم مثلاً په خپل ژوند کښې دَ دې هلك دَنسب دعوی اوکړی نوهغه به هم صحیح نه وی ځکه چه داهلك ولدالزنادې

③ کوم مال دَ وارثانو په مینځ کښې وړاندې دَدې ماشوم دَ استلحاق نه تقسیم شوی وی په هغې کښې به دَ دغه ماشوم حصه نه وی. اوچه کوم مال تردغه وخته پورې تقسیم شوې نه دې او بیابه تقسیم کیږی په هغې کښې به دا ماشوم تول وارثانوسره برابرشریك وی. دَدې وضاحتونونه پس به ان شاء الله دَ دې حدیث تولو اړخونوباندې به پوهیدل آسان شی.

**د بعضې جملو ترکيب:-** اوس په دې حديث کښې د بعضې جملود ترکيب وضاحت هم ضروري دې دپاره چه د هغې مفهوم نور زيات واضح شي او په عبارت کښې جوړ پيدا شي

① قضبان کل مستلحق: کښې د (ان) اسم (کل مستلحق) دې او د دې نه پس عبارت د مستلحق صفت دې

② د (ادعاه) جمله د (ان) خبر دې

③ فقضى ان من کان) د (اعاده بعد عهد) دپاره ده يعنى د قضى لرې کولودپاره نې دوباره ذکر خوله خکه چه په مينځ کښې کافى کلام حائل شوې دې په دې وجه په دې کښې ف تفصيليه داخل کړې شوې ده.

**[۳۳۸] د غيرت صورتونه**

۳۳۸—[۱۲] ( )① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- «أَنَّ نَبِيَّ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "مِنَ الْغَيْرَةِ مَا يُحِبُّ اللهُ، وَمِنْهَا مَا يُبْغِضُ اللهُ ; ③ فَأَمَّا الَّتِي يُحِبُّهَا اللهُ فَالْغَيْرَةُ فِي الرِّيبَةِ، ④ وَأَمَّا الَّتِي يُبْغِضُهَا اللهُ فَالْغَيْرَةُ فِي غَيْرِ رِيبَةٍ، ⑤ وَإِنَّ مِنَ الْخُيَلَاءِ مَا يُبْغِضُ اللهُ، وَمِنْهَا مَا يُحِبُّ اللهُ ;

**ترجمه:** ①او حضرت جابر ابن عتيک ﷛ وايي چې نبى کريم ﷺ وفرمايل ②: د خپلې ښځې او وينځې په باره کښې ) بعضې غيرت خو الله تعالى ﷻ خوښوي او بعضې غيرت نه خوښوي. ③کوم غيرت چې الله تعالى ﷻ خوښوي هغه د شک وشبهې په ځاى کې پيدا کيدونکي غيرت دى (مثلًا ښځه يا وينځه د غير سړو مخې ته راځي، يا غير سړي هغه لره راځي. او هغه ورسره خندا مذاق کوي، نو په دې موقع خاوند چې کوم غيرت محسوسوي الله تعالى ﷻ هغه خوښوي) ④او کوم غيرت چې الله تعالى ﷻ نه خوښوي، هغه، هغه غيرت دې چې د شک او شبهې د وجهې نه بغير پيدا شوى وي (مثلًا د څه قرينه او سبب نه بغير د خاوند په زړه کښې د ښځې د کردار په باب کښې بدګماني پيدا شي، او بيا په هغه غيرت محسوس کړي) ⑤د غه شان بعضې تکبر خو الله تعالى ﷻ خوښوي او بعضې نه خوښوي،

**حل اللغات:-** ① الرِّيبَةِ: شک، شبهه، ② الْخُيَلَاءِ: تکبر، غرور

①فَأَمَّا الْخُيَلَاءُ الَّتِي يُحِبُّ اللهُ فَاخْتِيَالُ الرَّجُلِ عِنْدَ الْقِتَالِ، وَاخْتِيَالُهُ عِنْدَ الصَّدَقَةِ، ②وَأَمَّا الَّتِي يُبْغِضُ اللهُ فَاخْتِيَالُهُ فِي الْفَخْرِ» . ③وَفِي رِوَايَةٍ: "فِي الْبَغْيِ" . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ①الله تعالى ﷻ چې کوم تکبر خوښوي، هغه د جنګ په وخت د سړي تکبر کول

---

۱) اخرجه ابوداود فى كتاب الجهاد، باب فى الخيلاء فى الحرب (رقم-۲۶۵۹) والنسائى فى كتاب الزكاة/باب الاختيال فى الصدقة (رقم-۲۵۵۸) واحمد فى المسند: ۴۴۵/۵

دی (يعني په جهاد كښې چې د كفارو سره مقابله وي، نو د خپل قوت او برتري او د كفارو د حقارت او كمترۍ د اظهار د پاره د خپلې لويۍ او شجاعت په ډير فخر او غرور سره بيان كوي) او هغه تكبر هم الله تعالى ﷻ ته خوښ دي چې د الله ﷻ په لار كښې د خپل مال د خرچ كولو په سلسله كښې وي، يعني چې كله صدقه او خيرات وركړي، نو په خوش دلۍ او بې پروايۍ سره يې وركړي، او د زيات نه زيات وركول هم حقير وګڼي ۲ او كوم تكبر چې الله تعالى ﷻ نه خوښوي هغه (په خپل نسب) فخر او تكبر دی، ۳ او په يو روايت كښې د (في الفخر په ځاى) في البغي دي يعنى كوم تكبر چې الله تعالى ﷻ نه خوښوي، هغه د ظلم تكبر دی (يعني هغه تكبر چې بلا د څه حق استحقاق وكړى شي، چې د هغه څو صورتونه كيدى شي) احمد، ابوداؤد، نسايي.

**حل اللغات:** - ⑨ الْفَخر: په نسب باندې فخر كول، ⑩ الْبَغي: ظلم،

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنَ الْغَيْرَةِ مَا يُحِبُّ اللهُ:

**دغيرت دوه قسمونه:** - ① دمؤمن ځينې غيرتونه الله ﷻ ته خوښ دی. په دې باندې به مؤمن ته ثواب ملاويږي.

② ځينې غيرتونه الله ﷻ ته خوښ نه دی. او ددې په وجه به مؤمن ګناهګار وی. لهذا دا حديث پاك به د (الحياء شعبة من الإيمان) شرح شی. چې داسې حياء چې الله ﷻ ته خوښه وی نو هغه د ايمان حصه ده. د خوښ او ناخوښې غيرت متعلق په دې حديث پاك كښې تفصيل دې.

**قوله:** فَالْغَيْرَةُ فِي الرِّيبَةِ:

**د تهمت د ځاګې څخه ځان ساتلوباندې غيرت كول:** - يعنى د تهمت او شك ځائې څخه غيرت كول او دهغې څخه ځان ساتل دا د اعلى درجې تقوى اوايمانى غيرت دې لكه دغير سړی كور ته راتلل او دده ښځې سره خبرې كول په دې باندې غيرت كول دا د ايمانى غيرت دليل دې. دا شان پخپله د يوې اجنبى ښځې سره خلوت باندې غيرت كول داسې غيرت هم د ايمانى غيرت دليل دې. داسې غيرت الله ﷻ ته خوښ دې.

**قوله:** فَالْغَيْرَةُ فِي غَيْرِ رِيبَةٍ:

**بې ځايه په چا د شك كولو ممانعت:** - بغير د څه وجې نه په چا باندې شك كول او بدګمانى كول دا غيرت نه دې بلكه دفتنې او فساد جرړه ده. او دې سره دخاندانونو په مينځ كښې جنګ جګړې پيدا كيږي. او داسې غيرت الله ﷻ ته خوښ نه د ي. په قرآن كريم كښې داسې بدګمانى ته (إثم) وئيلې شوی دی. كما في القرآن: (إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ).

**قوله: وَإِنَّ مِنَ الْخُيَلَاءِ مَا يُبْغِضُ اللهُ:**

**په حسب نسب باندې تکبر کولو حرمت:** - دالله ﷻ په نزد مبغوض تکبر فخر دې ددې مطلب دادې چې کوم کس د اعلی نسب او ښه خاندان سره تعلق ساتی او هغه دا وائی چې ماته په نسب کښې امتیاز حاصل دې او زما پلار نیکه د اعلی خاندان سره تعلق ساتی ، دا داسې تکبر دې چې دالله ﷻ ته خوښ نه دې ځکه چې دالله ﷻ په نزد فضیلت والا هغه کس دې چې د تقوی اعتبار سره وی ‹إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللهِ أَتْقَاكُمْ› وقال سبحانه وتعالى ‹قُلْ بِفَضْلِ اللهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا› أي بالقرآن والإيمان› یعنی قرآن او ایمان سره خوشحاله اوسئ.

**قوله: فَاخْتِيَالُ الرَّجُلِ عِنْدَ الْقِتَالِ:**

**د دشمن په مقابله کښې د ځان لوئي ښکاره کولو فضیلت:** - چې د جهاد په وخت کښې د کفارو په مقابله کښې خپل ځان بهادر ګنړل او کافرانو له حقیر او ذلیل او کمزوری ګنړل . لکه څنګه چې رسول کریم ﷺ غزوهٔ حنین کښې کفارو سره کړی وو ‹أنا النبي لا كذب أنا ابن عبد المطلب› داشان حضرت علی ؓ به جهاد کښې فرمائیل چې ‹انا الذي سمتني أمي حيدرا› څه هغه کس یم د چا نوم چې زما مور حیدر کرار ایښودې دې. دحیدر معنی ده شیر او د کرار معنی ده راتاویدنکې او حمله کؤونکې. دا شان ناز او فخر الله ﷻ ته خوښ دې.

**قوله: وَاخْتِيَالُهُ عِنْدَ الصَّدَقَةِ:**

**په صدقه کولو باندې د خوشحالۍ کولو فضیلت:** - داشان د خیرات او صدقې د ورکولو په وخت کښې دخوشحالۍ اظهارکول هم دصدقې فخر دې کوم چې الله ﷻ ته ډیر خوښ دې. حدیث باب کښې ډیر ښه اسلوب بیان شویدې چې د غیرت په ذکر کښې ئې اولا د محبوب غیرت ذکر اوفرمائیلو. ځکه چې اکثر غیرتونه محبوب دی او کم غیرتونه مردود. خوتکبر کښې ئې اول د مردود تکبر بیان اوفرمائیلو. روستو ئې د محبوب تکبر ځکه چې اکثر تکبر مردود وی . او ډیر کم محبوب تکبرونه وی. او په یو نسخه کښې د ‹في الفخر› په ځائې ‹في الفقر› راغلی دی. یعنی کوم تکبر چې الله ﷻ ته خوښ نه دې هغه د فقر تکبر دې. ددې مطلب دادې چې الله ﷻ ته دا خبره خوښه نه ده چې یو کس د فقر په حالت کښې هم فخر اوکړی. علماء کرام فرمائی چې د فقر کولو والا تکبر د هغه تکبر نه بدتر دې کوم چې د غناء او ثروت په وجه کیږی لیکن د فقر تکبر په هغه وخت کښې بد او دالله ﷻ په نزد ناخوښه دې چې هغه د فقراؤ په مقابله کښې اوکړې شی. خو که د فقر تکبر د امراء.اواغنیاء، په مقابله کښې وی نو بیادا خوښ عمل دې . ځکه چې داسې تکبر ته صدقه وئیلې شوې د ه.

# الفصل الثالث

## [۳۳۲۰] د ولد الزنا نسب د زاني نه نه ثابتیږي

۳۳۲۰—[۱۷] (۱) ①عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: ②«قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّ فُلَانًا ابْنِي، ③عَاهَرْتُ بِأُمِّهِ فِي الْجَاهِلِيَّةِ. ④فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَا دِعْوَةَ فِي الْإِسْلَامِ، ذَهَبَ أَمْرُ الْجَاهِلِيَّةِ، ⑤الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ، وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①حضرت عمرو ابن شعیب ﷺ د خپل پلار شعیب نه او شعیب دخپل نیکه (حضرت عبدالله ابن عمرو ﷺ) نه روایت کوي ②چې یو سړی په مجلس نبوي ﷺ کښې ودریدلو، او عرض یې وکړې، چې یا رسول الله! ﷺ فلانی زما خوی دی، ③ما د جاهلیت په زمانه کښې د هغه د مور سره زنا کړې وه، ④رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې د زمانۀ جاهلیت د تیرې خبرې په زمانه د اسلام کښې دعویٰ نشي کیدی (یعني دا خبره د زمانۀ جاهلیت سره مخصوص ده، او کوم وړوکی چې د زنا په نتیجه کښې پیدا کیدلی د هغه نسب زاني د ځان سره یو ځای کولی، اوس په زمانه د اسلام کښې دا خبره درست نه ده) ⑤ماشوم د صاحبِ فراش یعنی دښځې دی او د زاني دپاره کاڼي یعنی محرومي ده یا سنګساري ده، (ابوداؤد)

**حل للغات:-** ①عَاهَرْتُ: ما زنا کړې ده.

**تسهیلات: قوله:** لَا دِعْوَةَ فِي الْإِسْلَامِ:

**د زنا په وجه د نسب دعوی کولو بطلان:-** یعنی د زنا په وجه د نسب دعوی نشی کولې . الحاصل د جاهلیت په زمانه کښې به د زنا په وجه د نسب دعوی صحیح ګڼړلې کیده او د زنا نه به نسب ثابتیدو .نورسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې اسلام کښې د زنا په وجه د نسب دعوی کول صحیح نه دی . او نه ددې نه نسب ثابتید یشی .

**قوله:** الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ:

**د مذکوره جملې مطلب:-** ماشوم صاحب د فراش دې یعنی چې د کومې ښځې دې او دهغې خاوند هم وی نو هغه بچې به دهغه خاوند وی. لیکن که دیوې ښځې ماشوم پیدا شوې وی او ددې خاوند نه وی او نه دا ښځه دچا مملوکه وی نو بیا به ماشوم مور ته منسوب وی

**قوله:** وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ:

**د زناکار دپاره رجم :-** زانی د پاره کاڼړې دې. یعنی زانی به په کاڼړو سره سنګساریږی ددې نه مراد دادې چې زانی دپاره حرمان نسب دې . یعنی دا د نسب نه محروم دې.

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الطلاق / الولد للفراش (رقم - ۲۲۷٤)

**[۳۳۳] هغه څلور ښځې چاسره چه لعان نه شي کیدې**

[۱۸] (۱) ① وَعَنْهُ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② أَرْبَعٌ مِنَ النِّسَاءِ لَا مُلَاعَنَةَ بَيْنَهُنَّ: النَّصْرَانِيَّةُ تَحْتَ الْمُسْلِمِ، وَالْيَهُودِيَّةُ تَحْتَ الْمُسْلِمِ، ③ وَالْحُرَّةُ تَحْتَ الْمَمْلُوكِ، وَالْمَمْلُوكَةُ تَحْتَ الْحُرِّ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه روایت کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل ② څلور قسمه ښځې دي چې د هغوی او د هغوی د خاوندانو په منځ کښې لعان نه کیږی ، یوه خو هغه نصرانیه (یعني عیسایي ښځه) چې د یو مسلمان په نکاح کښې وي، او دویمه یهودیه (یعني یهودي ښځه) چې د یو مسلمان په نکاح کښې وي، ③ دریمه هغه آزاده ښځه چې د یو غلام په نکاح کښې وي، او څلورمه هغه وینځه چې د یو آزاد په نکاح کښې وي، (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مُلَاعَنَةَ: لعان کول.

**تسهیلات: قوله:** أَرْبَعٌ مِنَ النِّسَاءِ لَا مُلَاعَنَةَ بَيْنَهُنَّ:

**څلور قسمه ښځو سره د لعان عدم صحت:** - یعنی څلور قسمه ښځې داسې دی کوموسره که د لعان صورت راشي نو دغه ښځو او دَ هغوی په خاوندانو کښې به لعان نه کیږی

① که یوه حره آزاده ښځه دَ یوغلام په نکاح کښې وی نو دَ هغوی په مینځ کښې لعان نه کیږی

② یوه وینځه دَ آزادخاوند په نکاح کښې وی نو دَ هغوی په مینځ کښې لعان نه کیږی

③ یوه یهودنړه ښځه ده یا عیسایئره ښځه ده چه دَ یومسلمان خاوندپه نکاح کښې وی او مسلمان خاوندپه هغوی باندې دَ زناتهمت اولګوی اوهغې تردیداوکړو نودَ هغوی په مینځ کښې به لعان نه کیږی

④ یوه عیسایئره ښځه ده چه دَ یومسلمان خاوندپه نکاح کښې وی او مسلمان خاوندپه هغوی باندې دَزناتهمت اولګوی اوهغې تردیداوکړو نودَهغوی په مینځ کښې به لعان نه کیږی

**د مذکوره څلور قسمه ښځو سره د لعان د عدم صحت وجه:** - دَدې وجه داده چه لعان یوقسم ګواهی ده ځکه چه دَدې تعریف داسې دې (شهادات مؤکدات بالایمان) اودا څلورقسم خلق دَ شهادت اهل نه دی. دوه خویهودی اوعیسائی دی کوم چه کافران دی او دوه غلامان دی اودَ کافراوغلام دواړه ګواهی معتبرنه ده. لهذا دَهغوی په مینځ کښې لعان نشته. دَدې حدیث نه دَاحنافودَدې مؤقف تاییدهم کیږی چه لعان دَ شهادت دَ قسم نه دې

۱) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب النكاح/ خيار الأمة إذا أعتقت(رقم-۲۰۷۶)

**[۳۳۳۳] حضور ﷺ په حتی الامکان د لعان نه منع کول غوښتل**

۳۳۳۳-[۱۹] (۱) ۱وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-: «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَمَرَ رَجُلًا حِينَ أَمَرَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ أَنْ يَتَلَاعَنَا ۲أَنْ يَضَعَ يَدَهُ عِنْدَ الْخَامِسَةِ عَلَى فِيهِ ۳وَقَالَ: "إِنَّهَا مُوجِبَةٌ"». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې (يو خل) د نبی کريم ﷺ په حکم دوه لعان کونکو (يعني ښځي او خاوند) لعان کولی، نو حضور ﷺ يو سړي ته حکم وکړي، ۲چې د پنځمي شاهدی په وخت د لعان کونکي په خوله لاس کيږده، ۳او وي فرمايل چې پنځمه شاهدی واجب کونکي ده، (نسايي)

**تسهيلات: قوله: أَنْ يَضَعَ:**

**د لعان نه د بچ کيدو کوشش:** - مطلب داچه نبی کريم متلاعنينو ته دَ لعان حکم ورکړو خوهلته موجود کسانو کښې ئې چاته دا هم اوفرمائيل چه کله پنځمه ګواهی راخی نودَ لعان کونکی په خُله باندې لاس کيږدئی دې دَپاره چه هغه لعان پوره نه کړی خکه چه په خُله باندې لاس کيخودو سره به دې لعان کونکی سړی ته عملی تنبيه اوشی او هغه به دَ پنځمې ګواهئی نه منع شی اولعان به مکمل نه شی. کله چه لعان اونه شی نو هغه سړې به ربښتونی خبره ښکاره کړی هغه ته به دَ دنياسزا اوشی اودَ آخرت دَ سزانه به بچ شی. لکه چه دَ نبی کريم ﷺ به پوره کوشش وو چه حتی الامکان به ئې ښځه اوخاونددَ لعان نه بچ کولوسره دَ ربښتياؤ طرف ته راوستل دې دَپاره چه دَ دنياسزا خورلوسره دَآخرت دَ سزا اوعذاب نه بچ شی

**[۳۳۳۴] شيطان ښځه او خاوند د يو بل نه د بد ظن کولو کوشش کوي**

۳۳۳۴-[۲۰] (۲) ۱وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا-: «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا لَيْلًا، ۲قَالَتْ: فَغِرْتُ عَلَيْهِ، فَجَاءَ فَرَأَى مَا أَصْنَعُ. ۳فَقَالَ: "مَا لَكِ يَا عَائِشَةُ! أَغِرْتِ؟ ۴" فَقُلْتُ: وَمَا لِي لَا يَغَارُ مِثْلِي عَلَى مِثْلِكَ؟ ۵فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "لَقَدْ جَاءَكِ شَيْطَانُكِ"

**ترجمه:** ۱او د بي بي عائشې رضي الله عنها په باره کښې منقول دی چې يو خل د شعبان په پنځلسمه شپه نبی کريم ﷺ د هغی نه پاخيدو سره لاړل، ۲بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې ماته په حضور ﷺ ډير غيرت راغلی، چې واپس راغې او زه چې په کوم کيفيت کښې مبتلا وم، هغه يې وليدلو ۳نو وي فرمايل چې اې عائشې! رضي الله عنها په تا څه شوی دی؟ آيا ته په ما غيرت کوې؟ ۴ما عرض اوکړو چې زما په شان ښځه به ستا ﷺ په شان سړي باندې

---

۱) وابوداود فی السنن كتاب الطلاق/ باب فی اللعان (رقم-۲۲۵۵) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب: الأمر بوضع اليد على فی المتلاعنين عند الخامسة (رقم-۳۴۷۲)

۲) اخرجه مسلم فی كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب تحريش الشيطان وبعثه سراياه لفتنة الناس وأن مع كل إنسان قرينا(رقم-۷۰ - (۲۸۱۵) واحمد فی المسند: ۱۱۵/۶

ځنګه غیرت ونکړي، ⑤حضور ﷺ وفرمایل چې په اصل کښې تاته شیطان راغلې دې
،یعني شیطان ته په شک شبهه کښې مبتلا کړي یې،

**حل اللغات:** - ①**غِرْتُ:** ماته غیرت راغې

> ①قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ! أَمَعِي شَيْطَانٌ؟ قَالَ: "نَعَمْ". قُلْتُ: وَمَعَكَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ ②قَالَ: "نَعَمْ! وَلَكِنْ أَعَانَنِي اللهُ عَلَيْهِ حَتَّى أَسْلَمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①ما عرض اوکړو چې یا رسول الله! ﷺ آیا زما سره شیطان شته؟ حضور ﷺ وفرمایل چې هو، ما اوویل چې آیا ستا ﷺ سره هم شیطان شته؟ ②حضور ﷺ وفرمایل چې هو، لیکن الله تعالی ﷻ زه په هغه قوي کړی یم، ددې پورې چې زه د هغه ،د وسوسو، نه سالم ،محفوظ، یم، یا ،حَتّٰی اَسْلَمَ، ترجمه دا ده. ددې پورې چې هغه مسلمان شوی دی، یعنی زما تابع شوی دی، ،مسلم،

**تسهیلات:**

**قوله: "مَالَكِ يَا عَائِشَةُ! أَغِرْتِ؟":**

**د حدیث پس منظر او وضاحت:** –یعنی په تاخه چل اوشو ولې په غیرت کښې راغلې؟ په مدینه منوره کښې نصف شعبان کښې دا واقعه پیښه شوه. نبی کریم دَ حضرت عائشه رضي الله عنها په نمبر کښې هغې سره مقیم ووچه دَ شپې ئې جنت البقیع ته تشریف یوړو دې دَپاره چه نبی کریم دَخپلو ملګرودَپاره دَمغفرت دعااوکړی کوموچه دَ دنیانه تشریف اوړلې وو او په جنت البقیع کښې دفن وو. دَحضرت عائشه رضي الله عنها خیال وو چه نبی کریم دَهغې په نمبر کښې چرته بلې ام المؤمنین کره تللې یا ځی نوځکه وریسې شاشاته لاړه. بیاچه کله معلومه شوه چه نبی کریم قبرستان ته تشریف اوړلې دې نو زر زر واپس شوه. دَدې تادئی دَ وجې نه اودَ خپیماتیادَ وجې نه ساه ساه شوه او رنګ ئې هم زیړشو. نبی کریم پوښتنه اوکړه ،مالك اغرت؟، حضرت عائشې رضي الله عنها چه کوم جواب ورکړودا دَهغې دَ ذهانت فراست عقیدت اومحبت اعلی شاهکاردې وئې فرمائیل چه زما په شان ښځه به ستا په شان دَ خاوند باره کښې ولې غیرت نه کوی؟ نبی کریم اوفرمائیل په دې شك شبه کښې اچول دَ شیطان په لمسون اودهوکه سره شوی دی.

**قوله: أَمَعِي شَيْطَانٌ؟:**

**د عائشې د پرهیزګارۍ نښه:** – داسوال حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها دَ ډیرپاکئی دَ زیاتې تقوی اودَالله تعالی په ویره باندې دلالت کوی ځکه چه دَهغې په وهم اوګمان کښې هم نه وو چه شیطان هم څه آفت دې اوهغه هغې له دَ وسوسې اچولودَپاره نیزدې راتلې شی.

**قوله** حَتّٰى أَسْلَمَ:

**د مذكوره جملې په صيغه كښې دوه احتمالات:-** ① دا صيغه اسلم دَ واحد متكلم هم دى ددې معنى دا ده چه زه دَهغه نه محفوظ يم تفصيل په اول جلد كښې تيرشوي دي

② اسلم دَ باب افعال نه دَ ماضى صيغه هم لوستلې شوې ده معنى دا چه شيطان زما طاعت كړې دې ماته وسوسه نه شى اچولې

# [۱۴]بَابُ الْعِدَّةِ

## دَ عدت اوغم بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① وجوب النفقة والسكنى على الزوج فى العدة: ۱، ۲، ۳.

② حكم الخروج من البيت فى العدة: ۴، ۹.

③ مدة عدة الحاملة : ۵.

④ عدة المتوفى عنها زوجها: ۶، ۷، ۸، ۹.

⑤ حكم الحداد على موت الزوج: ۶، ۷، ۸، ۱۰، ۱۱.

⑥ غاية إنقضاء العدة: ۱۲.

⑦ عدة الآئسة: ۱۳.

قال الله تعالى ﴿اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَاَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْ بُيُوْتِهِنَّ﴾[سورة الطلاق ۱.]

وقال الله تعالى ﴿اَسْكِنُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِّنْ وُّجْدِكُمْ وَلَا تُضَآرُّوْهُنَّ لِتُضَيِّقُوْا عَلَيْهِنَّ﴾ [سورة الطلاق ۶]

وقال الله تعالى ﴿ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا ﴾ [سورة البقرة ۲۴۰.]وقال الله تعالى ﴿ وَالّٰٓئِىْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَآئِكُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ ﴾ [سورة الطلاق ۴.]

وقال الله تعالى ﴿ وَّالّٰٓئِىْ لَمْ يَحِضْنَ وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ﴾.وقال الله تعالى ﴿وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ﴾ [سورة البقرة.]

**د لفظ عدت لغوى معنى:-** عدة باب نصر ينصر مصدر دې اودا په لغت كښې شميرته هوائى بنځه هم دَ فرقت زوج نه پس دَ خپل عدت ورځې شميرى.

**عدت اصطلاحي تعريف:**- او دَ شريعت په اصطلاح کښې دَ ښځې نه دَ خاوند دَ جدائی نه پس دَ خاص مودې پورې دَ نکاح او دَ عدت دَ منافی څيزونو نه منع کيدلو نوم عدت دې دا جدائی يا په طلاق سره کيږی يا دَ خاوند په مرګ سره کيږی

**عدت تيرولو طريقې:**-دَ عدت تيرولو دري طريقې دی

① دَ حمل وضع سره عدت ترلې شوی وی په دې شرط چه ښځه حامله وی

② دَ دريو حيضو په ذريعه سره عدت وی

③ دعدت بالاشهروی چه ښځه وړه وی يا دَ حيض راتلو سره يا دَ بوډا والی نه نه نااميده وی نو دَ دريو مياشتو په شمير به عدت تيروی. او که دَ ښځې خاوند مړشوې وی نو بيا دَ عدت دَپاره څلور مياشتې اولس ورځې مقرر دی.

**عدت تيرولو حکم:**- پورته دَ قرآنی آياتونو نه او راتلونکو احاديثو دَ تفصيلات نه او دَ امت دَ اجماع سره عدت تيرول په ښځه باندې لازم دی. په ټولو مسلمانانو ښځو باندې لازم دی چه هغوی دې دَ عدت اهتمام اوکړی او دَ الله تعالی دَ دغه حکم نه دې بې پرواهی نه کوی. په صوبه سرحد کښې ښځې دَالله تعالی په دې حکم کښې ډيره سستی کوی. دَهغه ځائی په علماؤ باندې لازم دی چه هغوی دې دَدې مسئله اهميت په اهتمام سره په وعظ کښې بيان کړی. او دَ احنافو فقهاؤ دَ احاديثو په رڼا کښې کوم دفعات متعين کړی دی هغه دې دَمسلمانانو په وړاندې ښکاره بيان کړی دې دَپاره چه دا مره شوی سنت راژوندی شی.

**دوينځې عدت:**- وينځې له که دَهغې خاوند طلاق ورکړو نو دَ هغې عدت دوه حيضه دی او که چرې دَهغې حيض نه راځی نو دَ هغې عدت يوه نيمه مياشتې دی او که چرې دَ هغې خاوند مړشی نو دَ هغې عدت دوه مياشتې پنځه ورځې وی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۳۲۴] مسئلة النفقة والسكنى فى العدة**

۳۳۲۴ـ[۱] (۱) ① عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، «عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّ أَبَا عَمْرِو بْنَ حَفْصٍ طَلَّقَهَا الْبَتَّةَ وَهُوَ غَائِبٌ، ② فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا وَكِيلُهُ الشَّعِيرَ فَسَخِطَتْهُ، ③ فَقَالَ: وَاللَّهِ، مَا لَكِ عَلَيْنَا مِنْ شَيْءٍ. فَجَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ. فَقَالَ: "لَيْسَ لَكِ نَفَقَةٌ".

**ترجمه:** ① او ابوسلمه د فاطمه بنت قيس نه نقل کوي، چې ابو عمرو ابن حفص رضی الله عنه فاطمه بنت قيس رضی الله عنها ته (چې د هغه ښځه وه) دري طلاقه ورکړه، هر کله چې هغه خپله موجود نه

۱) اخرجه مسلم فى كتاب الطلاق/باب المطلقة ثلاثا لا نفقة لها (رقم-۳۶ - (۱۴۸۰) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: إذا استشارت المرأة رجلا فيمن يخطبها هل يخبرها بما يعلم (رقم-۳۲۴۵) واحمد فى المسند: ۴۱۳/۶

وو، يعني عمرو يو خاى بهر وو، د چا په ذريعه يې زباني پيغام وليږلي، چې ما طلاق وركړيدي، [۲] بيا د ابو عمرو وكيل (كارنده) په طور د نفقه. فاطمي ﷺ ته څه وربشې وليږلې، د فاطمي ﷺ په خيال كښې د هغه وربشوو مقدار ډير كم وو، ځكه هغه په دې ناراضه شوه، [۳] وكيل اوويل چې قسم په خداى په مونږ ستا هيڅ حق نشته (ځكه چې تا ته درې طلاقه دركړل شوي دي، د هغه د نفقې هيڅ حكم نشته، دا وخت چې تا ته د وربشو كوم مقدار دركول شوي دي، هغه محض د احسان او سلوك په طور دى) د دې اوريدو سره فاطمه ﷺ د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه، [۴] او دا واقعه يې ورته بيان كړه. حضور ﷺ وفرمايل چې ستا نفقه (په ابو عمرو ﷺ باندې) واجب نه ده.

**حل اللغات:** - ① الْبَتَّةَ: درې طلاقه په يو ځل وركول. طلاق مغلظ وركول. يعني مطلقه مبتوته ② وَكِيلُهُ: وكيل، كارنده ③ الشَّعِيرَ: وربشې، ④ فَسَخِطَتْهُ: نو ناراضه شوه په هغې باندې، خفه شوه.

[۱] فَأَمَرَهَا أَنْ تَعْتَدَّ فِي بَيْتِ أُمِّ شَرِيكٍ، [۲] ثُمَّ قَالَ: "تِلْكِ امْرَأَةٌ يَغْشَاهَا أَصْحَابِي، [۳] اعْتَدِّي عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ، فَإِنَّهُ رَجُلٌ أَعْمَى، [۴] تَضَعِينَ ثِيَابَكِ فَإِذَا حَلَلْتِ فَآذِنِينِي.

**ترجمه:** [۱] بيا حضور ﷺ فاطمي ﷺ ته دا حكم وركړې چې هغه د ام شريک په كور كښې د عدت د پاره كيني، [۲] ليكن بيا ورته حضور ﷺ وفرمايل چې د ام شريک كور ته زما صحابه ﷺ (چې د ام شريک عزيز او اقارب او آل واولاد دي) خې راځي، ځكه د هغه په كور كښې ستا ناسته مناسبه نه ده، [۳] البته ته ابن ام مكتوم ﷺ سره د عدت ورځې تيرې كړه، ځكه چې هغه يو ړوند سړى دى، [۴] هلته ته خپلې كپړې ايښودلى شې، او كوم وخت چې ته حلاله شې (يعني ستا د عدت ورځې پوره شي) نو ته ماته اطلاع راكړه (چې زه ستا د دويمې نكاح فكر وكړم)

**حل اللغات:** - ⑤ يَغْشَاهَا: خې راځي هغې كره، ⑥ تَضَعِينَ: ته ايښودلى شې،

[۱] قَالَتْ: فَلَمَّا حَلَلْتُ ذَكَرْتُ لَهُ أَنَّ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ وَأَبَا جَهْمٍ خَطَبَانِي. [۲] فَقَالَ: "أَمَّا أَبُو الْجَهْمِ فَلَا يَضَعُ عَصَاهُ عَنْ عَاتِقِهِ، وَأَمَّا مُعَاوِيَةُ فَصُعْلُوكٌ لَا مَالَ لَهُ، [۳] انْكِحِي أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ، فَكَرِهْتُهُ، [۴] ثُمَّ قَالَ: "انْكِحِي أُسَامَةَ" فَنَكَحْتُهُ، فَجَعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا وَاغْتَبَطْتُ».

**ترجمه:** [۱] فاطمه ﷺ وايي بيا چې زه حلاله شوم، نو ما رسول الله ﷺ ته عرض وكړو، چې معاويه ابن ابي سفيان ﷺ او ابو جهم ﷺ ماته د نكاح پيغام راليږلى دى (ستا ﷺ څه رايي ده؟) [۲] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د ابوجهم ﷺ خبره خو دا ده چې هغه خپل كوتک د اوږې نه نه خكته كوي، او معاويه ﷺ سره څه مال اواسباب نشته، [۳] نو زما په رايي كښې خو مناسب دا دى چې ته د اسامه ﷺ ابن زيد ﷺ سره نكاح وكړه، نو ما خوښ نه كړه، خو بيا چې حضور ﷺ وفرمايل چې نكاح ورسره وكړه، نو ما د اسامه ﷺ سره نكاح وكړه، او الله تعالى ﷻ په هغه نكاح او د اسامه ﷺ په ملګرتيا

کښې خير او برکت ورکړو، او په ما رشک شروع شو (يعني زمونږ دواړه ملګرتيا داسې راست راغله، او په مونږ کښې دومره محبت او الفت پيدا شو چې چا به ليدل. نو په مونږ به يې رشک کولی)

**حل اللغات** -⑦فَلَا يَضَعُ عَصَاهُ عَنْ عَاتِقِهِ هغه خو خپله همسا د اوږې نه نه کوزوي، هر وخت وهل ټکول کوي. ⑧صُعْلُوكٌ: فقير، اى لَامَالَ لَهُ غريب دې. ⑨وَاغْتَبَطْتُ: غبطه او رشک به کولو ما

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهَا: "«فَأَمَّا أَبُو جَهْمٍ فَرَجُلٌ ضَرَّابٌ لِلنِّسَاءِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۲] وَفِي رِوَايَةٍ: «أَنَّ زَوْجَهَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا، فَأَتَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقَالَ: "لَا نَفَقَةَ لَكِ إِلَّا أَنْ تَكُونِي حَامِلًا».

**ترجمه:** [۱] او په يو روايت کښې د فاطمې ﷞ الفاظ دا دي چې حضور ﷺ وفرمايل ابو جهم ﷛ يو داسې سړی دی چې ښځې ډيرې وهي (مسلم) [۲] او د مسلم ﷫ په يو بل روايت کښې داسې دي چې د فاطمې ﷞ خاوند هغې لره درې طلاقه ورکړي وو، کوم وخت چې هغه نبی کريم ﷺ ته راغله، [۳] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ستا نفقه (ستا د خاوند په ذمه) نشته، هو که ته حامله وې (نو ستا نفقه په هغه واجب کيده)

**حل اللغات:** -⑩ضَرَّابٌ: د مبالغې صيغه ده، ډير زيات وهونکې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** "لَيْسَ لَكِ نَفَقَةٌ"

**د مطلقې د نفقې او سکنی درې صورتونه:-**

① که ښځه په درې طلاقه سره مطلقه مغلظه وی ليکن حامله هم وی نو د هغې نفقه هم د وضع حمل پورې په خاوند باندې په اتفاق سره لازم ده.

② کومه ښځه چه رجعی طلاق سره مطلقه وی نو د هغې نفقه او سکنه په اتفاق سره په خاوند باندې لازم دی.

③ که چرې ښځه مطلقه مغلظه غيرحامله وی نو د هغې په نفقه او سُکنی کښې د فقهاؤ کرامو اختلاف دې.

**دَ مطلقه مغلظه نفقه او سکنی کښې مذاهب:-**

① امام احمد بن حنبل ﷬ اسحاق بن راهويه او اهل ظواهر په نيزد مطلقه مغلظه غيرحامله دپاره نه نفقه شته او نه سکنی يعنی نه نان شته او نه مکان شته.

② دَ امام مالك ﷬ او امام شافعی ﷬ په نيز سکنی شته ليکن نفقه نشته دې. يعنی مکان شته نان نشته. ③ د احنافو په نيزد دې مطلقه دپاره سکنی هم شته او نفقه هم شته يعنی نان او مکان دواړه په خاوند باندې لازم دی.

**د اول فريق دليل:-** د فاطمه بنت قيس ﷞ روايت د دوی مستدل دې په دې کښې دا

الفاظ دي «لانفقة لك الا ان تكوني حاملا» اوهم په دې حدیث کښې هغې ته حکم ورکړې شوې دې چه ته دَ ابن ام مکتوم رضي الله عنه په کور کښې اوسیږه دَ کوم نه چه معلومه شوه چه هغې ته دَ استوګنې حق هم نشته

**دَ اول فریق دَ دلیل پنځه جوابونه :-**

① حضرت عمر فاروق رضي الله عنه چه دا حدیث واوریدو نوونې فرمائیل «لاندع کتاب ربنا وسنة نبينا بقول امرأة لنسيت اوشبه لها سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول لها السكنى والنفقته»

② سعید بن مسیب فرمائی چه فاطمه بنت قیس ته نفقه خکه ورنه کړې شوه چه دَ هغې په ژبه کښې سختي او تیزي وه لکه چه هغه ناشزه وه اوناشزې ته نان اونفقه نه شي ورکولې دَحضرت اسامه بن زید رضي الله عنه په عقدنکاح کښې چه کله فاطمه بنت قیس رضي الله عنها راغله نوهغه په دې باندې

③ کانړي اوورول اودَ هغې قول ئې مسترد کولوسره دَخفګان اظهار اوکړو.

④ حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل چه فاطمه بنت قیس دَ الله تعالى نه نه ویریږي چه وائي دَ دې دَپاره نه نفقه وه اونه سکنى وه؟

⑤ دَ دې اقوالو نه علاوه په زیربحث حدیث کښې پخپله دَدې حدیث جواب موجود دې خکه چه دَ فاطمه بنت قیس رضي الله عنها خاوند دَ ابوعمرو بن حفص وکیل دَ هغې دَ خرچ په سلسله کښې هغه ته څه اوربشې لیګلې لیکن هغې دا کم ګنړلوسره واپس کړې. دَنبي کریم په وړاندې ئې شکایت اوکړونبي کریم دَ زیاتې نفقې نه انکار اوکړو دَ اصل نان نفقې نه ئې انکار نه وو کړې

**دَ دویم فریق دلیل :-** دَ سکنی دَ ثبوت دَپاره دَ قرآن کریم دا آیت د دوی مستدل دې ﴿ أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ ﴾ [سورة الطلاق ۶.] اودَ نفقې دَ نفی دَپاره دَدې نه آیت نه استدلال کړې دې ﴿ وَإِن كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ﴾ [سورة الطلاق ۶.]

**طریقه دَ استدلال :-** طرز دَ استدلال دَ مفهوم مخالفت په توګه دې چه نفقه به صرف معتده حامله ته ملاویږي لهذا کومه ښځه چه حامله مطلقه نه وي هغې ته به په هیڅ صورت کښې هم نفقه نه ملاویږي دې حضراتودَ نفقې دَ نفی دَپاره دَ فاطمه بنت قیس رضي الله عنها دَ زیر نظر حدیث نه هم استدلال کړې دې

**دَ دویم فریق دَ دلیل جواب :-** دریم فریق وائي چې مونږ مفهوم مخالف نه منو اونه دا زمونږ په نیز څه مستند دلیل نه دې خاص کر کله چه دَ ابن مسعود په قرات کښې دا الفاظ موجود دي «وانفقوا عليهن من وجدكم» دَدې صراحت نه پس مونږ دَ نفقې نه انکار نه شو کولې

وهغه هسې شوافعو ته د الزام په توګه احناف دا جواب ورکوي چه کله تاسو سکنٰی اومنله ودغه عاجزه ښځه قتل کول غواړئی اوهغې ته وائی چه په کور کښې پرته اوسه ځکه چه په تاباندې عدت تيرول واجب دی اوتاته به هيڅ خوراك نه ملاويږی داخوعجيبه فيصله ده باقی فاطمه بنت قيس رضي الله عنها ته مکان ولې ملاؤنه شو نود دې جواب خپله حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ورکړې دې چه د فاطمه مکان په غيرآباد خوشې ځائی کښې وو چه د ښار نه يوغاړې ته واقع وو هلته هغه په دغه کور کښې خان له نه شوه اوسيدې او د حضرت سعيدبن المسيب د قول مطابق حضرت فاطمه بنت قيس رضي الله عنها به ژبان دارزی کوله خپل سخرګنئی سره به ئی جنګ کولو په دې وجه هغه د مکان د سهولت نه محرومه کړې شوه

**د دريم فريق اول دليل:** -د وجوب سکنٰی د پاره د قرآن پاك ﴿ أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ ﴾ [سورة الطلاق ۶.] آيت د دوی مستدل دې دا آيت په سکنٰی باندې قطعی دليل دې

**د دريم فريق دويم دليل:** -د قرآن پاک آيت ﴿ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِن بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ ﴾ [الطلاق ۱.] د دوی مستدل دې. دا آيت په مکان ورکولوباندې صريح دلالت کوی او په ضمنی توګه باندې دا آيت نفقه هم واجبوی. ځکه چه کله د دغه ښځې په ويستلو او وتلو باندې پابندی ده نو په لازمی توګه به دې ته نفقه ورکول لازم وی.

**د دريم فريق دريم دليل:** -د حضرت عمر رضي الله عنه عامه فيصله او د صحابه کرامو اجماع هم په وجوب نفقه باندې د دوی مستدل دې.

**د دريم فريق څلورم دليل:** -د شريعت د قواعدو مطابق به هم هغې ته نفقه ورکولې کيږی ځکه چه دلته د دغه ښځې حصارېدل په وجه د حق د زوج رغلې دې اوعدت د نکاح د اثراتونه يواثردې او د نکاح په وجه چه کله نفقه په زوج باندې لازم وه د دغه نکاح د اثر د وجې نه چه کوم حبس راغلې دې په دې کښې به هم نفقه په خاوند باندې فرض وی

**قوله:** تَضَعِينَ ثِيَابَكِ

**د مذکوره جملې په مطلب کښې اقوال:** -

① هلته به ته د عدت په حالت کښې سنګار پريږدې

② د هغه ځائی نه به ته چرته نه اوځې.

③ هلته به تاته د پردې کولوضرورت نه وی ځکه چه د هغه ځائی اوسيدونکې پخپله نابينا دې او د ام شريك د خپلوانو په شان دلته نور څوك نه ځی راځی. لهذا دغه شان به تاته د پردې ضرورت نه وی لکه څنګه چه د يوبينا سړی په مخکښې مکمل پرده کولې شی.

**د غلط مطلب ترديد:** -دا مطلب ئی نه دې چه ته بالکل هډو کپړې مه استعمالوه. بهرحال د دې جملې نه معلوميږی چه ښځه پردی سړی ته کتلې شی يعنی که د فتنې خطره نه وی

نو بعضې علماء د جواز قائل دی لیکن بعضې وئیلی دی چه ښځونه له هم سړو ته کتل منع دی خکه چه د قرآن پاك اعلان دې ﴿ قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ ﴾ [النور ۳۱.] نو ددې حدیث مطلب داشو چه ابن ام مکتوم ﷺ نابینا دې هغه تاته کتلې نه شی اوته به پخپله د هغه طرف ته نه گورې لهذا اوسیدل به دې آسان شی اود پردې به مکمل اهتمام او انتظام وی

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت:-** ① فلایضع عصاه: یعنی ابوجهیم هروخت د ادب همسا په اوګه ساتی (ضراب للنسآء) د مبالغه صیغه ده یعنی هغه ښځې ډیر وهونکې دې داهم هغه ماسبق کنائی الفاظ (فلایضع عصاه) تشریح ده

② لامال له: لکه چه ددې صفت کاشفه دې یعنی معاویه مفلس اوفقیر دې چونکه د نبی کریم نه مشوره اخستې شوې وه په دې وجه (المستشار موتمن) د قاعدې لاندې نبی کریم حقیقت حال واضحه بیان کړو

**دحدیث نه مستنبط مسائل:-** ① د فاطمه بنت قیس ﷺ په دې حدیث کښې ډیر فوائد او د امت دپاره فنده ورکونکی تعلیمات دی.

② دسړی د خپلو حقوقو دپاره وکیل ساتل جائز دی.

③ د فتوی اخستلو دپاره د اجنبی سړی اوښځې خبرې اترې کول جائز دی

④ کله چې خاوند غائب وی او په قابل اعتماد او مستند طریقه سره طلاق ورکړی نودا جائز دی

⑤ ښځه چه په کوم کور کښې دعدت تیرولو دپاره ناسته وی دهغې نه د ضرورت او حاجت د پاره بدلیدې شی

⑥ مطلقه مغلظه ته د عدت په زمانه کښې د نکاح پیغام ورکول د تعریض په توګه جائز دی

⑦ کله چه فتنه نه وی نود نیکې ښځې د ملاقات د ثواب په نیت د خپلو خپلوانوسړو دپاره مستحب دی لکه څنګه چه ام شریك کره تلل راتلل وو

⑧ د یوسړې د نکاح پیغام ورکولو باندې بل سړی ته د نکاح پیغام ورکول جائز دی خوچه کله د رومبی سړی خبره جوړه شوې نه وی

⑨ په کلام کښې د مجاز استعمال جائز دې لکه چه نبی کریم اوفرمائیل (لایضع عصاه) د نکاح په رشته کښې مالداری هیرول نه دی پکار

⑧ د غائب سړی د عیبونو تذکره کول هغه وخت جائز دی کله چه د مشورې په توګه جواب ورکولې کیږی لکه چه نبی کریم جواب ورکړې دې

**[۳۳۲۵] د مطلقه مغلظې دپاره د سکنی وجوب**

۳۳۲۵-[۳] ( )① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: إِنَّ فَاطِمَةَ كَانَتْ فِي مَكَانٍ وَحِشٍ، فَخِيفَ عَلَى نَاحِيَتِهَا، ②فَلِذَلِكَ رَخَّصَ لَهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَعْنِي فِي النُّقْلَةِ - ③وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَتْ: مَا لِفَاطِمَةَ؟ أَلَا تَتَّقِي اللَّهَ؟ تَعْنِي فِي قَوْلِهَا: لَا سُكْنَى وَلَا نَفَقَةَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې فاطمه بنت قيس رضي الله عنها چې په کوم ځای کې اوسيده هغه يو وران ځای وو، او هلته د هغه په باره کښې انديښنه وه. ②ځکه حضور ﷺ هغې ته (د عدت په ورځو کښې د خپل مکان نه د ابن ام مکتوم رضي الله عنه مکان ته) د منتقل کيدو آسانې ورکړي وه. ③او په يو روايت کښې دا الفاظ هم دی چې بي بي عائشې رضي الله عنها اوويل چې فاطمې ته څه شوی دی چې هغه د الله ﷻ نه نه ويرېږي؟ د دې نه د بي بي عائشې رضي الله عنها مراد د فاطمې رضي الله عنها د دې قول، چې نه نفقه واجب ده. نه سکنی. ترديد کول وو. (بخاري)

**حل اللغات:** - ①مَكَانٍ وَحِشٍ: د خوف، ويرې ځائې. ②نَاحِيَتِهَا: د کور په اړخ. ③النُّقْلَةِ: د منتقل کيدو.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلِذَلِكَ رَخَّصَ لَهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د عائشې رضی الله عنها د مذکوره قول مطلب:** - د حديث پاك دابتدائی الفاظو مطلب دادې چې فاطمه بنت قيس رضي الله عنها په کوم کور کښې اوسيده ، هغه په يو ويران ځائې کښې وو. هلته به هر وخت د غل وغيره ويره وه په دې وجه نبی کريم ﷺ هغې ته د حضرت ابن ام مکتوم رضي الله عنه کور ته د منتقل کيدو اجازت ورکړې وو او ددې بيان نه د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها مقصد دا خبرداري ورکول وو چې فاطمه دخپل عدت په ورځو کښې د خپل خاوند کور پريښودې وو دغير په کور کښې اوسيده. په دې وجه څوك دې هم دا ګمان نه کوی چې درې طلاقو والا ښځې دپاره سکنی نشته دې او چې کوم ځائې ئې خوښه وی نو هلته دې عدت تير کړی بلکه د فاطمه رضي الله عنها دخپل خاوند کور پريښودل او د بل کس په کور کښې د عدت تيرولو سبب دا دې کوم چې بيان شو

**قوله:** وَفِي رِوَايَةٍ:

**د دويم روايت مطلب:** - د دې الفاظو مطلب دادې چې حضرت فاطمه بنت قيس رضي الله عنها به د نبی کريم ﷺ نه دا نقل کول چې کومې ښځې ته طلاق بائن ورکړې شی نو د هغې دپاره نه

---

۱) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۵۳۲۵، ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ٥٤/ ١٤٨١ وابوداود فی السنن رقم الحديث ۲۲۹۲

نفقه شته او نه سکنی حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها دهغې ددې خبرې تردید اوکړو او وې فرمائیل چې فاطمه بنت قیس رضی الله عنها ددې قول حضرت نبی کریم ﷺ ته به منسوب کولو کښې داننه تعالی نه نه ویریږی چې نه نفقه شته او نه سکنی نبی کریم ﷺ بالکل داسې نه دی وئیلي بلکه فاطمې ته غلط فهمی شوې ده

**نوټ:** - د مظلفه مغلظه : نفقې په حکم کښې د مذاهبو تفصیل د حدیث نمبر ۳۳۲۴ به تسهیل کښې ذکرشوي دي

**[۳۳۳۰] دفاطمې د عدت په دوردان کښې دخاوند د کور څخه د تللو وجه**

۳۳۳۰ - [۳] ( ) (۱) وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: (۲) إِنَّمَا نُقِلَتْ فَاطِمَةُ لِطُولِ لِسَانِهَا عَلَى أَحْمَائِهَا. رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** (۱) او حضرت سعید بن مسیب وایي (۲) چې فاطمې (د عدت په زمانه کښې د هغې د خوند د کور نه) ځکه نقل کړل شوي وه، چې هغی د خپل خاوند د عزیزانو سره ژبن درازي کوله. (شرح السنه)

**حل اللغات** - (۱) لِطُولِ لِسَانِهَا: دهغې د زبان درازئ په وجه، (۲) أَحْمَائِهَا: د هغې د خاوند رشته داران.

**تسهیلات:**

**قوله** إِنَّمَا نُقِلَتْ فَاطِمَةُ لِطُولِ لِسَانِهَا عَلَى أَحْمَائِهَا:

**د فاطمې د خاوند پریخودو وجه:** - ګویا داحدیث پاك هم د وړاندینی حدیث جواب دي چې حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چې هرکله سکنی نشته نو نفقه به هم نه وی دا صحیح نه دی ځکه چې حضرت فاطمه رضی الله عنها ته چې په هغه کور د نه اوسیدو حکم ورکړې شوې وو دهغې سبب حدیث کښې ذکر شوې دې چې هغه ژبه وره وه که په هغه کور کښې ني عدت تیر کړې وې نو کیدیشی چې د دواړو به خپلو مینځ کښې جنګ شوې وو . دجنګ نه د بچ کیدو دپاره نبی کریم ﷺ ورته بل کور کښې د اوسیدو حکم ورکړو

**[۳۳۳۷] د عدت په زمانه کښې د څه ضرورت دپاره د کور نه بهر وتل جائز دی که نه؟**

۳۳۳۱ - [۴] (۰) (۱) «وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: طُلِّقَتْ خَالَتِي ثَلَاثًا، (۲) فَأَرَادَتْ أَنْ تَجُدَّ نَخْلَهَا، فَزَجَرَهَا رَجُلٌ أَنْ تَخْرُجَ، (۳) فَأَتَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: "بَلَى، فَجُدِّي نَخْلَكِ، (۴) فَإِنَّهُ عَسَى أَنْ تَصَدَّقِي أَوْ تَفْعَلِي مَعْرُوفًا".» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

۱) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۲۳۸٤

۲) اخرجه مسلم فی صحیح رقم الحدیث ۵۵/ ۱٤۸۳ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۲۲۹۷ وابن ماجة فی السنن رقم الحدیث ۲۰۳٤

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر ﷺ وايي چې زما خاله ته دري طلاقه ورکړې شو او هغه په عدت کښې کيناستله، [٢] بيا (يوه ورځ) هغې اراده وکړه چې (د کور نه بهر تلو سره) کجورې وشکوي، نو يو سړي هغه د کور نه د بهر وتلو نه منع کړه، [٣] هغه د نبي کريم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او دا واقعه يې ورته بيان کړه، حضور ﷺ ورته وفرمايل چې په دې کښې هيڅ حرج نشته، ولاړه شه او د خپلې ونې کجورې راوشکوه، [٤] شايد ته هغه کجورې د الله تعالى ﷻ په لار کښې ورکړې، يا د هغې په ذريعه احسان وکړې. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَجُدّ: چه راوشکوی، ② فَزَجَرَهَا: نو اورټله ني هغه . منع نې کړه. ③ لِجُدِّي: جدى د واحد مؤنث دپاره د امرصيغه ده. جداد د کهجورو راشوکولو په معنى کښې راځى

**تسهيلات:**

**قوله: فَزَجَرَهَا رَجُلٌ أَنْ تَخْرُجَ:**

**دمتوفى عنها زوجها په عدت کښې د کورنه د وتلو مسئله:** - د دې حديث نه د هغه ښځې د دروازې نه د وتلو يا نه وتلو حکم معلوميږى چه د عدت په حالت کښې په کور کښې ناسته وى په دې کښې داسې تفصيل دې چه د کومې ښځې خاوند مړشو او هغه عدت تيره وى نو په دې کښې تقريبًا د ټولو علماؤ اتفاق دې چه هغه د ورځې د کور نه وتلې شى ځکه چه هغه د خپلې نفقې پخپله ذمه واره ده نو د دغه مجبورنى د وجې نه د ورځې د وتلو اجازت دې او په هغې باندې لازم دى چه د شپې تيرولو د پاره به هم هغه کور ته راځى ځکه چه د عدت تيرولو د پاره ناسته ده.

اوس پېتې شوه د مطلقه ښځې مسئله نو د هغې په وتلو يا نه وتلو کښې د فقهاؤ اختلاف دې

**د مطلقه په عدت کښې د کور نه په وتلو کښې مذاهب:** -

① مطلقه ښځه به د عدت په دوران کښې د خاوند د کور نه اوځى که نه نو د جمهورو په نيز مطلقه هم د ورځې وتلې شى

② ائمه احناف فرمائى چه د سختې مجبورنى نه بغير د مطلقه د عدت والا د کور نه د ورځې نشى وتلې

**داول فريق دليل:** - ① د جابر ﷺ ترور ته نبى کريم د کهجورو شوکولو او باغ ته د تللو اجازت ورکړې وو

**داول فريق دليل:** د قرآن کريم د آيت عموم د د وى مستدل دې ﴿ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ ﴾ [طلاق ١.] دا مطلق آيت د حضرت جابر ﷺ په خبر واحد سره مقيد کولې نه شى لهذا بغير د څه ضرورت نه مطلقه ښځه د عدت د کور نه بهر نه شى تللې او که چرې ضرورت پيښ شى نو بيا تلل او د شپې واپس راتلل جائز دى

**د دويم فريق دلائل:** ① دَ قرآن كريم دَ آيت عموم د د وى مستدل دي ﴿ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ ﴾ [طلاق ۱.] دا مطلق آيت دَحضرت جابر رضي الله عنه په خبرواحد سره مقيد كولې نه شي لهذا بغير دَ څه ضرورت نه مطلقه ښځه دَ عدت دَ كورنه بهرنه شي تللې اوكه چرې ضرورت پيښ شي نوبيا تلل او دَ شپې واپس راتلل جائز دي.

② په مجبورنى كښې دَ وتلودَ جواز دَپاره دَحضرت جابر رضي الله عنه دَ زيربحث حديث نه استدلال كړې دې چه نبى كريم دَ دغه ښځې اجازت ته (لعلك ان تصدقي وتفعلي معروفا) سره مقيد فرمانيلې دې نودا دَ يوضرورت او حاجت طرف ته اشاره ده كه چرې صاحب نصاب شوې نوزكوة به اداكوى اوكه چرې زكوة نه وى نو نفلي صدقاتو نه به چاسره ښيګړه كوى معلومه شوه چه دَ يودينى اودنياوى ضرورت دَپاره وتل جائزګنى جائزنه دى

③ امام طحاوى رحمه الله دَحضرت جابر رضي الله عنه يوه فتوىٰ نقل كړې ده چه وتل جائزنه دى معلومه شوه چه زيربحث حديث منسوخ دي.

**مفتى به قول:** - دَ صوبه سرحد په علماؤ باندې لازم دى چه هغوى دا مسئله عوامو ته واضحه كولوسره بيان كړى ځكه چه په دې كښې هلته سستي كيږى دلته يوخان له صورت دادې كه چرې دَمعتده ښځې مكان راپريوځى يادَ غلو ډاكوانوخطره وى يادَ دغه مكان خرچ دَدغه ښځې دَ طاقت نه بهروى نوهغه په دې صورتونوكښې داكور پريخودوسره يومناسب ځائى ته منتقل كيدې شي.

**[۳۳۲۸] د حاملې عدت وضع حمل دى**

۳۳۲۸—[۵] (۱) [۱] «وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ: أَنَّ سُبَيْعَةَ الْأَسْلَمِيَّةَ نُفِسَتْ بَعْدَ وَفَاةِ زَوْجِهَا بِلَيَالٍ، [۲] فَجَاءَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاسْتَأْذَنَتْهُ أَنْ تَنْكِحَ، [۳] فَأَذِنَ لَهَا، فَنَكَحَتْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت مسور ابن مخرمه وايي، چې د بي بي سبيعه اسلميه د هغې د خاوند د وفات نه څه ورځې وروسته ولادت وشو ، [۲] نو هغه د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه، او د حضور ﷺ نه يې د دويمې نكاح كولو اجازت وغوښتلى، [۳] حضور ﷺ ورته اجازت وركړو، او هغې نكاح وكړه، (بخاري)

**حل اللغات:** - ① نُفِسَتْ: د ماشوم ولادت ئې اوشو، دولادت بيمارئ ته نفاس وائى

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ سُبَيْعَةَ الْأَسْلَمِيَّةَ

**دسبيعة الاسلميه تعارف:** - دا بنو اسلم قبيلې طرفته منسوب دى سبيعه رضي الله عنها د حارث لور

۱) اخرجه البخارى فى صحيحه رقم الحديث ۵۳۲۰، والنسائى فى السنن رقم الحديث ۳۵۰۶

ده او تعلق ئې بنو اسلم قبيلې سره دې د اسعد بن خوله په نكاح كښې وه بيا د حجة الوداع په كال د اسعد انتقال اوشو ، ددوئ احاديث په كوفه كښې زيات دى او يو جماعت ددوئ نه روايت كوى

**قوله: نُفِسَتْ بَعْدَ وَفَاةِ زَوْجِهَا بِلَيَالٍ**

**په وضع د حمل سره د متوفى عنها زوجها عتميدل:** - په دې حديث پاك كښې د حاملې د عدت بيان دې كه يو كس مړ شى او ددهٔ نه حامله ښځه پاتې شى نو دده د ښځې عدت وضع حمل دې په دې بناء علماء كرامو دا مسئله ليكلې ده چې كه د خاوند د وفات نه پس يا د طلاق نه پس ددې ماشوم پيدا شى نو دې سره به د عدت نه بهر شى او ددې دپاره بله نكاح كول جائز كيږى اگر چې ولادت د خاوند د وفات نه لږ وخت پس شوې وى

**[٢٢٢٩] د عدت په ورځو كښې د رانجو لكولو مما نعت**

٣٣٢٩-[٢] (١) ١«وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ ابْنَتِي تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا، ٣وَقَدِ اشْتَكَتْ عَيْنُهَا، أَفَنَكْحُلُهَا؟

**ترجمه:** ١ او بى بى ام سلمه ﷺ وايي چې يوه ښځه د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه ٢ او عرض يې وكړو چې زما د لور خاوند مړ شوى دى (چې د هغه په وجه هغه په عدت كښې ده) ٣ او د هغې سترګې خوږيږي نو آيا زه د هغې په سترګو كې رانجه ولګوم.

**حل اللغات:** - ①اشْتَكَتْ عَيْنُهَا: د سترګو شكايت ئې اوكړو، سترګې ئې خوږ شوې.

١فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَا" ٢مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا، كُلَّ ذَلِكَ يَقُولُ: "لَا". ٣قَالَ: "إِنَّمَا هِيَ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ، ٤وَقَدْ كَانَتْ إِحْدَاكُنَّ فِي الْجَاهِلِيَّةِ لَا تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې نا . ٢ هغې ښځې دوه دري ځله دا پوښتنه وكړه. ٣ او حضور ﷺ به ورته هر ځل دا جواب وركوى، چې نا . ٤ بيا ورته حضور ﷺ وفرمايل چې عدت څلور مياشتې او لس ورځې دي، د هغې په ځاى په ايام جاهليت كې په تاسو كې يوې ښځې به د كال په آخر كې د پچو په ويشتلو به د عدت نه ځان خلاصولو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** -②بِالْبَعْرَةِ: پچه ③الْحَوْلِ: كال.

**تسهيلات:**

**قوله: أَفَنَكْحُلُهَا؟:**

---

١) اخرجه البخارى فى صحيحه رقم الحديث ٥٣٣٦، ومسلم فى صحيحه رقم الحديث ١٤٨٨، وابوداود فى السنن رقم الحديث ٢٢٩٩

**د متوفی عنها زوجها دپاره د ترک زینت په حکم کښې مذاهب:-**
متوفی عنهازوجها، کله چه په عدت وفات کښې دَغم په ایام کښې څلورمیاشتې اولس ورځوپورې په ماتم کښې ناسته وی نو د دې دپآره د ر انجو لګولو په حکم کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې
① دَ حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزکه عذر وی اوکه عذر نه وی په یوصورت کښې ښځه په سترګوکښې رانجه نه شی لګولې
② امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دَ مجبورئی په صورت کښې په توګه دَ علاج رانجه لګولې شی لیکن دَ شپې دې لګوی اودَ ورځې دې پاکوی
③ امام مالك رحمه الله اوامام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دَ مجبورئی په وخت په توګه دَعلاج رانجه استعمالولې شی. دشپې او د ورځې فرق په کښې نشته.
**نوټ:** د دویم او دریم فریق مذهب کښې معمولی غوندې فرق دې اصل مدمقابل اول او دریم فریق دې ددې وجې دلته د اول او دریم فریق دلائل ذکرکولی شی دویم فریق د دریم فریق په دلائلو کښې ضمنا راغلو.
**د اول فریق دلیل:-** زیربحث حدیث د اول فریق مستدل دې.
**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:-** ① کیدې شی دغه ښځې بهانه کړې وی چه رانجه خوئی لګولی دی دَ زینت دَپاره اوبهانه دَ سترګودَ خوګیدو اوکړه. نبی کریم ته به دَاصل حقیقت علم شوې وی په دې وجه ئی اجازت ورنه کړو.
② کیدې شی چه دا دَ څه خاص قسم رانجه وو دکوم ممانعت ئی چه اوفرمائیلو
③ په دې حدیث کښې دَ تاویل یوواضحه قرینه داهم ده چه هم دې ام سلمه رضی الله عنها نه په یوه موقعه دَ رانجودَ لګولو دَمسئلې پوښتنه اوکړې شوه نوهغې دَ سختې بیمارئی په وخت اجازت ورکړو
**د دویم فریق اول دلیل:-** ①امام احمد اوامام ابوداؤد ذکر کړی دی چې حضرت ام سلمې رضی الله عنها څخه یوې معتدې زنانه د رانجو لګولوتپوس اوکړو نو هغوی ورته په جواب کښې اوفرمائل ((لاتكتحلي به الامن امرلابد منه يشتد عليك مكتحلين بالليل وامسحيه بالنهار)) بیا ئې اوفرمائل چې ما د خپل خاوند ابوسلمه به وفات سره هم داسې کړی وو نو نبی علیه السلام راته فرمائیلی وو ((فلاتجعليه الابالليل وتنزعيه بالنهار))
**د دویم فریق دویم دلیل:-** ② په موطاء امام مالک کښې دی ((اجعليه بالليل وامسحيه بالنهار)) چې د شپې رانجه اچوه او د ورځې ئې صفا کوه
**د دویم فریق د اول او دویم دلیل جواب:-** ددې دواړو دلیلونو څخه دا جواب ورکړې

شوې دي چې دا دواړه احاديث په عذر خفيف باندې حمل دی کله چې عذر شديد شي نو بيا ورته د ورځې هم د رانجو لګولو اجازت شته

**قوله** لَا تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ..:

**د مذکوره جملې مطلب:** - په دې جمله سره نبی کريم دَ جاهليت په زمانه کښې په ښځوباندې بې ځايه ظلمونه کولوطرف ته اشاره فرمائيلې ده اومقصدنې دا وو چه په دين اسلام کښې هرقسم آسانی ده اوتاسو بياهم دَ نورو رخصتونو درخواستونه کونی تاسوته معلومه نه ده چه په جاهليت کښې به دَ ښځودَ عدت څه قصه وه

**مشارٌاليها قصه:** حضورپاك چه دَ کومې قصې اوافسانې طرف ته اشاره کړې ده دَهغې تذکره چه کومو کتابونوکړې ده دَهغې خلاصه داده چه په جاهليت کښې به کله سړې مړکيدلو نوښځې به دَماتم کولو اوعدت تيرولودپاره يه تنګه اوتياره کوټه کښې داخليدلې دَ بهرنه به دَ دغه کوټې دروازه بندولې شوه او ليويه ئې پرې کولو دَ يوې کهړکئی په ذريعه به معتده ښځې ته دَ سپی په لوښی کښې خوراك ورکولې شو هم په دغه کوټه کښې به ئې خوراك څښاك تشې اودکې متيازې هم په هغې سملاستل اوهم په هغې کښې به کيناستل پاسيدل وو. دَ ټول کال دپاره به صرف يوه جوړه کپړې او پوره کال دپاره به هم په دغه يوځائی کښې اوسيدله. دَ کال پوره کيدونه پس چه به کله کوټه ښه سخته زهريلا کيدله نوهغه خلقو به يوسپې يا مرغئی يا څه ځناور دننه ورداخلولو او ځناور به ئی دَ هغه ښځې فرج پورې مږلو دَ سخت زهريلا ګيس دَ وجې نه هغه ځناور مړشو نوخلقو به وئيل زبردست عدت ئې تيرکړې دې بيابه ئی دغه ښځه بهراويستله او په يوخرباندې به ئی سوروله دَ ښځې مخ به دَ خر لکئی او کوناټوطرف ته کيدلو اوَ هغې په لاسونو کښې به ئی دَ اوښانو يا چيلو دَ پچونه ډکه ټوکرئی ورکوله. هغې به يوه پچه غورزوله اوماشومانو به هغې پسې منډې وهلې اودَ ډم ډم آوازونه لګولوسره به ئی خنداګانې اوقهقهې لګولوسره تلل کله چه به دغه ښځې آخری پچه غورزوله نودَهغې عدت به ختم شو. حضورپاك لکه چه اشاره اوکړه چه يوخوهغه کافرانه نظام اودَ هغې انسانيت سوز سلوك او يودَ اسلام دا شفقت اورحمت اودَ عزت اوعظمت نظام؟ دواړو کښې لوئی فرق دې.

## [۳۳۰] د عدت په زمانه کښې د ماتم کولو حکم

۳۳۰۰-[۷] (۱) وَعَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، وَزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- عَنْ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ، إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** او بي بي ام حبيبه او بي بي زينب بنت حجش د نبی کریم نه نقل کوي چې حضور وفرمايل کومه ښځه چې په الله تعالی او د آخرت په ورځ ايمان لري، د هغې د پاره دا صحيح نه دي، چې هغه په يو مړي د دريو ورځو نه زيات ماتم وکړي، هو، د خپل خاوند ماتم دځلور مياشتو اولس ورځو پورې کولی شي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** - ① تُحِدَّ: غم کوي، ماتم کوي، احداد په وزن دَ اعداد دَ باب افعال نه دي علامه ابن همام فرمائي دالفظ مجرد کښې دَنصر اوضرب نه هم راځي احداد اوحداد ترک زينت او عطريات او ډول سنګار دَ پريخودو نوم دي. په دي کښې دَ غم مفهوم پروت دې په دي وجه دې ته سوګ اوماتم وائي

**تسهیلات:**

**قوله** لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ:

**د درې ورځو نه زيات د ماتم کولو حرمت:**-په اسلام کښې دَ خاوندنه علاوه په يومړی باندې دَ دريو ورځونه زيات غم اوماتم کول جائز نه دی. شيعه ګان چه هرکال دَ امام حسين ماتم کوی داحرام دی. اسلام دَ انسان دَ طبيعت اوفطرت لحاظ ساتلې دې نو په طبعی توګه باندې انسان دريوورځو پورې بې مجاله وی. دې نه زيات ترک زينت اوترک عادت جائز نه دې اودَزړه غم اودَ سترګونه اوښکې تونيدل دَدې څه تحديدنشته، دې دَحضرت ام حبيبه متعلق ابوداؤد شريف کښې يوروايت دې چه کله دَهغې دَ پلار ابوسفيان انتقال اوشو نودرې ورځې پس هغې عطر راؤغوښتل اوپه خپلو متو باندې اومږل اووئی فرمائيل چه ماته دَدې هيڅ ضرورت نه وولیکن مادَنبی کریم نه اوريدلی دی بياهغې هم دغه حديث بيان کړو (ابوداؤد ۳۱۴/۱) دَ ښځې دَپاره دَ خاوندغم چونکه دَ ټولو غمونونه زيات دې خکه چه دَهغې ټول کور وران شی نوشريعت دَ ښځې دَ دې فطری خفګان لحاظ ساتلې دې اوځلورمياشتې اولس ورځو پورې دَماتم کولواجازت ورکړې دې او بيائی په دې باندې لازم کړې هم دی

(۱) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۵۳۳۴. ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۵۸/ ۱۴۸۶ والترمذی فی کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی عدة المتوفی عنها زوجها (رقم-۱۱۹۶) والنسائی فی کتاب الجهاد باب الرخصة للحادة أن تمتشط بالسدر(رقم-۳۵۳۷) ومالک فی الموطا کتاب الطلاق/باب ما جاء فی الإحداد (رقم-۱۰۱)

**د متوفى عنها زوجه د عدت په موده کښې حکمت:** - ملاعلى قارى رحمه الله مرقات کښې ليکلى دى چه په عام توګه په هلك کښې دري مياشتې پس ساه راځى او په جيننى کښې څلورمياشتې لګى نوشريعت څلورمياشتې اولس ورځې مقررکړې دې دپاره چه د هرقسم چې ظهوريقينى شى بعضې بچوکښې حرکت کمزورې وى په دې وجه شريعت د څلورو مياشتو اولس ورځو اضافه اوکړه چه د ښځې د حامله کيدو اونه کيدو ښه اندازه اوشى

**[۳۳۲۱] عدت والا ښځه دې د عطرياتو نه ځان اوساتى**

۳۳۳--[۸] (۱) ۞وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۞"لَا تُحِدُّ امْرَأَةٌ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا، ۞وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ، وَلَا تَكْتَحِلُ، وَلَا تَمَسُّ طِيبًا، إِلَّا إِذَا طَهُرَتْ نُبْذَةً مِنْ قُسْطٍ أَوْ أَظْفَارٍ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ۞وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: "لَا تَخْتَضِبُ"».

**ترجمه:** ۞او بى بى ام عطيه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞هيڅ ښځه دې په يو سړي د دريو ورځو نه زيات ماتم نه کوي، هو، د خپل خاوند په مرګ دې د څلورو مياشتو او لس ورځو پورې ماتم کوي (په هغه ورځو يعنى په زمانه د عدت کښې) د يمنى څادر نه علاوه نه خو دى رنګينه کپړه اغوندي، ۞نه دي رانجه لګوي، او نه دي خوشبو لګوي. البته د حيض نه د پاکيدو په وخت که لږ شان قسط يا اظفار استعمال کړي، نو قباحت نشته. (بخاري، مسلم) ۞وابوداوود داالفاظ هم زيات نقل کړي دي چې خضاب رنګ دي هم نه لګوي

**حل اللغات:** - ①مَصْبُوغًا: رنګ شوې، ②عَصْب: يمنى څادر، په يمن کښې به يوقسم څادر جوړيدو هغې ته عصب وانى ③وَلَا تَمَسُّ طِيبًا: نه به خوشبو لګوى. ④نُبْذَةً: لږ، معمولى شان. په نون باندې ضمه ده اودا لفظ په وجه د استثنى منصوب دې ⑤قُسْط: اګرباتۍ. عُود. ⑥أَظْفَار: يوقسم خوشبوئى ده د کومې ټکړې چه د نوکونو په شان وى. همزه مفتوح دې د دې مفرد خو يا نشته يا که چرې شته نو ظفر دې ⑦لَا تَخْتَضِبُ: خضاب رنګ به هم نه لګوى

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا:

**د متوفى عنها زوجها دپاره د رنګ دارو جامو اغستو لو ممانعت:** - يعنى رنګينې کپړې دې په توګه د زينت نه اغوندى که د زعفرانى رنګ وى اوکه د بل رنګ وى اوکه چرته بل څه کپړا ملاؤ نه شوه نوبيا دې رنګينه استعمال کړى مګرچه د هول سنګار خيال ئې قطعاً نه وى ځکه چه سترپټول فرض دى

---

۱ ) اخرجه البخاري فى صحيحه رقم الحديث ۵۳۴۱. ومسلم فى صحيحه رقم الحديث ٦٦/ ۹۳۸ وابوداود فى كتاب الطلاق/باب فى المتوفى عنها تنتقل (رقم-۲۳۰۲) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: الخضاب للحادة (رقم-۳۵۳۶)واحمد فى المسند: ۵/۸۵

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:** - ① إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ: دلته دعصب نه مراد هغه رنګينه څادرې کوم چه د بوټو لواوجوړولو نه مخکښې تارونه یا ورته رنګ کړې شوي وي او کله چه څادر تيار شي نو په هغې کښې سپينې او سرې قسم رنګ راځي ددې قسم څادر استعمالول جائز دي ② طُهْرَتْ: يعنې چه کله ښځه دحيض نه پاکه شي

③ قُسْطٍ: قُسط دالفظ باب طب کښې باربار راغلي دې اود دې ترجمه اګرباتنی ده دلته ددې نه يوقسم عطرمراد دی ملاعلی قاری رحمه الله ليکلی دی چه دا هندی عود دی دکوم نه چه د خوشبوئی او دوائی دواړو کار اخستې شي ښځې د حيض نه پس غسل کښې دا استعمالوی دې دپاره چه بدبوئی ختمه شي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۳۳۲] دعدت په حالت کښې دمکان بدلولو حکم

۳۳۳۲—[۹] (۱) «عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ كَعْبٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا-: أَنَّ الْفُرَيْعَةَ بِنْتَ مَالِكِ بْنِ سِنَانٍ -وَهِيَ أُخْتُ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ- [۲] أَخْبَرَتْهَا أَنَّهَا جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- تَسْأَلُهُ أَنْ تَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهَا فِي بَنِي خُدْرَةَ،

**ترجمه:** [۱] بي بي زینب بنت کعب رضي الله عنها فرمايي چې فريعه بنت مالک بن سنان چې د ابو سعيد خدري رضي الله عنه خور ده، [۲] ماته وښودل، چې هغه (یعني فريعه) د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې د دې پوښتنی کولو د پاره حاضره شوه، چې آيا هغه (د خپل عدت د تيرولو د پاره) خپل اهل (د ښځې د مور او پلار کور) بني خدره ته منتقل کيدی شي؟

[۱] فَإِنَّ زَوْجَهَا خَرَجَ فِي طَلَبِ أَعْبُدٍ لَهُ أَبَقُوا فَقَتَلُوهُ. [۲] قَالَتْ: فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ أَرْجِعَ إِلَى أَهْلِي فَإِنَّ زَوْجِي لَمْ يَتْرُكْنِي فِي مَنْزِلٍ يَمْلِكُهُ وَلَا نَفَقَةٍ.

**ترجمه:** [۱] ځکه چې د هغې خاوند د خپلو تښتيدلي غلامانو په تلاش کښې تلی وو. او هغوی مړ کړي. [۱] نو فريعه رضي الله عنها وايي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه، چې زه د خپل مور او پلار کور ته ولاړه شم؟ ځکه چې زما خاوند چې زه په کوم مکان کښې پريښې يم. هغه د هغه مالک نه وو (يعني زه چې په کوم مکان کښې اوسم هغه د هغه د ملکيت نه دی) او نه زما سره د خوراک او څښاک څه انتظام شته.

**حل اللغات:** - ① أَبَقُوا: هغوی تختيدلی دی.

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الطلاق/باب فی المتوفی عنها تنتقل (رقم-۲۳۰۰) والترمذی فی کتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أين تعتد المتوفی عنها زوجها؟ (رقم-۱۲۰٤) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب عدة المتوفی عنها زوجها من يوم يأتيها الخبر (رقم-۳۵۳۲) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ أين تعتد المتوفی عنها زوجها (رقم-۲۰۳۱)

فَقَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "نَعَمْ". [۲] فَانْصَرَفْتُ حَتَّى إِذَا كُنْتُ فِي الْحُجْرَةِ أَوْ فِي الْمَسْجِدِ، دَعَانِي، [۳] فَقَالَ: "امْكُثِي فِي بَيْتِكِ حَتَّى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ" [۴] قَالَتْ: فَاعْتَدَدْتُ فِيهِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا.» رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] فريعه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل بهتره ده چې ته د خپلې مورګنی او پلارګنی کره ولاړه شې، [۲] نو (دا اجازت حاصلولو سره) زه ولاړم، خو کوم وخت چې زه د حجري مبارکي صحن يا مسجد نبوي ته ورسيدم، [۳] نو حضور ﷺ زه بيا راوغوښتلم، او وې فرمايل چې ته اوس په هغه کور کښې په عدت کښې کينه (په کوم کې چې ستا د خاوند د مرګ خبر راغلی دی، اګرکه هغه ستا د خاوند ملکيت نه دی) ددې پورې چې کتاب يعنې عدت، خپلې مودې ته ورسيږي، [۴] فريعه وايي چې زه (د حضور ﷺ د دې حکم مطابق) تر څلور مياشتو او لس ورځو پورې په هغه مکان کښې په عدت کښې ناسته وم.

مالک، ترمذي، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:**- ① يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ: کتاب يعنې عدت خپلې نيتې ته اورسي. يعنې عدّت (څلور مياشتې اولس ورځې) پوره شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** امْكُثِي فِي بَيْتِكِ:

**دمتوفی عنها زوجها د عدت دوه صورتونه:** - ① دَ کومې ښځې چه خاوند مړ شي دَ هغې دَپاره عدت تيرول ضروري دي. که چرې حامله وي نو وضع حمل د دې عدت دې

② که چرې غير حامله وي نو څلور مياشتې اولس ورځې دَهغې عدت دې

**دمتوفی عنها زوجها د عدت تيرولو په محل کښې مذاهب:**-

په کوم کور کښې چې د متوفی عنها زوجها خاوند وفات شوې وی نو په دې کښې معمولی شان اختلاف دې چې دا ښځه به هم په هغه کور کښې عدت پوره کوی او که په بل کور ته وربدليدو سره عدت مکمل کول جائز دی

① دَ امام شافعي رحمه الله غير مشهور قول دا دې چه دَ خاوند په مرګ باندې عدت تيرولو کښې دا ښځه آزاده ده چرته چه غواړی عدت تيرولې شی. او عدت پوره کول اوترک زينت په هغې باندې لازم دی صحابه کرامو کښې دَ يوې طبقې مسلك هم دغه شان وو

② دَ امام مالك رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز دَخاوند چه په کوم کښې انتقال شوې وی هم په هغه کور کښې عدت تيرول ضروری دی او که چرته کور وران شی يا بل څه حادثه پيښه شی نو بيا بل ځائی ته منتقل کيدې شی او هم دغه دَ امام شافعي رحمه الله مشهور قول هم دې.

**داول فريق دليل:** - زير بحث حديث د دوى مستدل دې طريقه دَ استدلال داسې دې نبى كريم فريعه بنت مالك ته دَ تلو اجازت وركړې وو او دَهغې دَپاره تلل جائز هم وو ليكن روستو نى رامنع كړه چه دا مستحب دى چه هم په دغه كور كښې عدت تيركړى نودا امر دَ استحباب دَپاره دې

**داول فريق د مستدل جوابونه:** -

① نبى كريم اول دغه ښخه معذوره ګڼړلې وه نودَ تلو اجازت نى وركړو بيا نبى كريم ته معلومه شوه چه دا معذوره نه ده نونبى كريم هغه منع كړه

② باقى فريق اول چه داكوم ونيلى چه امردَ استحباب دَپاره دې نوجواب دادې چه په استحباب باندې دلته هيڅ قرينه نشته بلكه دَ وجوب قرينه موجود ده چه دَ اجازت نه پس نى منع اوفرمائيله

**د دويم فريق دليل:** - زير بحث حديث د دويم فريق دبآره هم مستدل دې طرز دَ استدلال داسې دې چه نبى كريم اول دَ تلو اجازت وركړې وو ليكن بيائى منع كړه. په دغه منع كولوسره هغه رومبې حكم منسوخ شو يا چه دا اوونيلې شى چه دَ وفات په عدت كښې دَعذر اوحاجت دَ وجې دَ خاوند دَ كور نه وتل دَتولو په نيزجائز دى. نبى كريم اول دغه ښځه معذوره ګڼړلې وه نودَ تلو اجازت ئى وركړو. بيا نبى كريم ته معلومه شوه چه دامعذوره نه ده نونبى كريم هغه منع كړه.

**نوټ:** - يادلرنى دكومې ښځې چه خاوند مړشوې وى هغه دَ ضرورت دَ وجې نه په ورځ كښې او څه حصه دَ شپې كښې دَ كورنه بهرتلې شى ليكن بغيردَ ضرورت سيل اوچكردَ پاره وتل جائز نه دى.

**په كومو ښځو ماتم نشته؟:** - امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه اووه قسمه ښځې داسې دى چه دهغوى دَ خاوندانو دَ وفات نه پس ماتم كول واجب نه دى دَدې تفصيل په درمختاركښې داسې ليكلې دې

① كافره ښځه يعنى يهوديه يا نصرانيه باندې ماتم واجب نه دې

② مجنونه اوليونئى باندې نشته دې

③ معتده عتق يعنى ام ولده باندې دَ مولى دَمرګ نه پس ماتم نشته.

④ په صغيره باندې ماتم نشته دې

⑤ دَفاسد نكاح عدت تيرونكې ښځه باندې ماتم نشته دې

⑥ وطى بشبه يعنى په غلطئى كښې چاسره چه جماع شوې وى اوهغه په عدت كښې ناسته وى په هغې باندې ماتم نشته دې

⑦ هغه ښځه چه په طلاق رجعى كښې ناسته وى په هغې باندې ماتم واجب نه دې يادلرنى

چه دَ ماتم دَعدت په ورځو کښې کیناستو سره دَ ډول سنګار ترک کولونوم دي. نودَ طلاق رجعي په عـدت کښې ترك زينت نشته بلکه زينت اختيارول دی دي دَپاره چه خاوندئي رجوع اوکړي اوچه دَ کومې ښځې خاوند مړشوې وی یا هغې ته طلاق مغلظه یا طلاق بائن شوې وی نودهغې دَ عدت موده کښې په هغې باندې ډول سنګار ترک کول واجب دی کوم ته چه ماتم وائی

## [۳۳۳۳] دَعدت دوران کښې سنګار منع دي

۳۳۳۳-[۱۰] (۱) ۱ «وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ تُوُفِّيَ أَبُو سَلَمَةَ ۲ وَقَدْ جَعَلْتُ عَلَيَّ صَبِرًا. قَالَ: "مَا هَذَا يَا أُمَّ سَلَمَةَ؟ ۳ قُلْتُ: إِنَّمَا هُوَ صَبِرٌ لَيْسَ فِيهِ طِيبٌ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي ام سلمه ﷞ (چې د حضور ﷺ بي بي مبارکه ده) روایت کوي. هر کله چې (زما اولنی خاوند) ابو سلمه ﷛ وفات شو (او زه په عدت کښې ناسته وم) نو (يوه ورځ) رسول الله ﷺ زما کور ته تشریف راوړو، ۲ هغه وخت ما په خپل مخ ایلوا (مصبر، صبر) لګولي وو، د دې لیدو سره حضور ﷺ وفرمایل چې اې ام سلمه! ﷞ دا څه دي؟ (یعنی تا د عدت په ورځو کښې دی په مخ دا څه لګولي دي؟) ۳ ما عرض اوکړو چې دا خو ایلوا ده، چې هیڅ قسم خوشبو پکې نشته،

**حل اللغات:**- ① صَبِرًا: په صاد باندې فتح ده اوباء باندې کسره ده، دَ یوترخې دوائی نوم دي کوم ته چه ایلوا وائی.

۱ فَقَالَ: " إِنَّهُ يَشُبُّ الْوَجْهَ فَلَا تَجْعَلِيهِ إِلَّا بِاللَّيْلِ، وَتَنْزِعِيهِ بِالنَّهَارِ، ۲ وَلَا تَمْتَشِطِي بِالطِّيبِ وَلَا بِالْحِنَّاءِ فَإِنَّهُ خِضَابٌ ". ۳ قُلْتُ: بِأَيِّ شَيْءٍ أَمْتَشِطُ؟ يَا رَسُولَ اللَّهِ! قَالَ: " بِالسِّدْرِ تُغَلِّفِينَ بِهِ رَأْسَكِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ وفرمایل خو ایلوا مخ ځوان جوړ وي (یعني د ایلوا لګولو سره مخ خلانده(ښائسته) کیږی ، او رنګ ښکلی کیږی ) نو ته دا مه لګوه، هو، که په څه وجه لګول بي ضروري وي، نو د شپې يې لګوه، او د ورځې يې صفا کوه (ځکه چې د شپې استعمالول سره د جوړ وسینګار ګمان به هم نه وي) ۲ دغه شان خوشبوداره ګمنزول هم مه کوه، او مه نکریزي لګوه، ځکه چې نکریزي د سور رنګ وي (او په هغه کښې خوشبو وي، چې د ماتم په حالت کښې ممنوع دی) ۳ ما عرض اوکړو چې یا رسول الله! ﷺ بیا زه په څه شي سره ګمنز کوم؟ (یعني خپل ویښتان په څه شي سره صفا کوم؟) ۴ حضور ﷺ وفرمایل چې د بیرې په پانړو سره صفا کوه، او په هغه پانړو سره د غلاف په شان خپل سر

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الطلاق/ باب فیما تجتنبه المعتدة فی عدتها (رقم-۲۳۰۵) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب الرخصة للحادة أن تمتشط بالسدر(رقم-۳۵۳۷) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب الرخصة للحادة أن تمتشط بالسدر(رقم-۳۵۳۷) ومالک فی الموطاکتاب الطلاق/باب ما جاء فی الإحداد (رقم-۱۰۸)

پټوه ,یعني د بیرې پاڼې په خپل سر په دومره مقدار کښې آچوه، چې هغه ستا سر د غلاف په شان پټ کړي، ابوداؤد، نسایي

**حل اللغات**: -۲ يَشُبُّ الْوَجْهَ: مخ خوانئ، مخ ښائسته کوی. ۳ وَلَا تَمْتَشِطِي: او مه ګومنز کوه. ۴ بِالسِّدْرِ: بیرې، د بیرې پاڼې. ۵ تُغَلِّفِينَ بِهِ: ته پټوه په دې سره، (د غلاف په شان ئې لګوه).

**تسهیلات**:

**قوله**: بِالسِّدْرِ تُغَلِّفِينَ بِهِ رَأْسَكِ:

**د متوفی عنها زوجها دعدت په دوران کښې د موجوده دورزیب وزینت حکم**: - تغلفین د غلاف جوړولو او سرپټولو په معنی کښې دی دَدغه څیزونو په ممانعت سره معلومه شوه چه دَ نوی دور ټول لپ اسټك اوناخن پالش اونور قسم کریم دَ خائست او سنګار ټول څیزونه منع دی دغه شان هرقسم عطرونه پاؤډر اودَ خوشبودَپاره صابن وغیره هم منع دی خکه چه په دې بعضې څیزونوکښې خان جوړول او سنګار دې او په بعضېوکښې خوشبوئی ده

**[۳۳۳۴] معتده ښځه دې کالی نه استعمالوی**

۳۳۳۴ — [۱۱] (۱) ۱ وَعَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا ۳ لَا تَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ مِنَ الثِّيَابِ، وَلَا الْمُمَشَّقَةَ، ۴ وَلَا الْحُلِيَّ، وَلَا تَخْتَضِبُ، وَلَا تَكْتَحِلُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: ۱ او بي بي ام سلمه رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ۲ د کومې ښځې خاوند چې مړ شي، ۳ هغه دې نه په کسم کښې رنګ شوي کپړه اغوندي، نه دې په ګیرو کښې رنګ شوي کپړه اغوندي، ۴ نه دې کالي (زیور) اچوي، نه دې په لاسو و پښو او وینښتانو نکریزي لګوي او نه دې سرمه (رانجه) لګوي، (ابوداؤد، نسایي)

**حل اللغات**: - ۱ الْمُعَصْفَرَ: اى المصبوغ بالعصفر، زیړ رنګ، کسم، یعنی په کسم کښې رنګ شوي کپړه ۲ الْمُمَشَّقَةَ: اى المصبوغة بالمشق بكسر الميم وهو الطين الاحمر، دې ته ګل خیرو (سره ښاوره) وائی په دې سره کپړه رنګ کولې شی. ۳ وَلَا الْحُلِيَّ: نه به کالی (زیورات) استعمالوی حاء باندې ضمه هم صحیح ده اوکسره هم صحیح ده او په "ی" باندې شد دې دَ حلية جمع ده کالو (زیوراتو) ته وائی.

**تسهیلات**: **قوله**: لَا تَلْبَسُ:

**د معتده دپاره د ریښمو جامو اغوستلو حکم**: - صاحب دَ هدایه لیکلی دی چه دَ څه بیمارئی یا خارښ یا سپګودَ وجې نه معتده ته په سوګ کښې دَ ریښمو کپړه استعمالول جائزدی یعنی بغیردَ مجبورئی او بغیردَ ضرورت نه ریښمن لباس استعمالول منع دی امام مالك رحمه الله فرمائی چه دَ تور رنګ ریښم او کالی استعمالول جائزدی لیکن شارحین

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الطلاق/ باب فیما تجتنب المعتدة فی عدتها (رقم-۲۳۰٤) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب ما تجتنب الحادة من الثیاب المصبغة (رقم-۳۵۳۵) واحمد فی المسند: ۳۰۲/۶

حديث ليکي دَ کالوخو ښکاره ممانعت راغلې دې او په رنګ شوې کپړو کښې هر رنګ منع دې بغيرد معصب لهذا تور رينبم هم منع کيدل پکار دی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۳۳۲۵] د مطلقه د عدت باره کښې يو بحث

۳۳۲۵—[۱۲] (۱) ۱ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -: أَنَّ الْأَحْوَصَ هَلَكَ بِالشَّامِ حِينَ دَخَلَتِ امْرَأَتُهُ فِي الدَّمِ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ، وَقَدْ كَانَ طَلَّقَهَا، ۲ فَكَتَبَ مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ إِلَى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ يَسْأَلُهُ عَنْ ذٰلِكَ. ۳ فَكَتَبَ إِلَيْهِ زَيْدٌ: ۴ إِنَّهَا إِذَا دَخَلَتْ فِي الدَّمِ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ وَبَرِءَ مِنْهَا، وَلَا تَرِثُهُ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ۱ سليمان بن يسار رحمه الله وايي چې احوص رحمه الله په ملک شام کښې هغه وخت وفات شو کله چې د هغه د ښځي دريم حيض شروع شوی وو او احوص (د خپل مرګ نه مخکې) هغې ته طلاق ورکړې وو، ۲ نو حضرت معاويه ابن ابي سفيان رضي الله عنه د دې مسئلې د معلومولو د پاره حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه ته خط وليکی، ۳ حضرت زيد رضي الله عنه، حضرت معاويه رضي الله عنه ته په جواب کښې وليکل، ۴ هر کله چې د هغې ښځې دريم حيض شروع شو، نو هغه د احوص نه جدا شوه، او احوص د هغې نه جدا شو. نه احوص د هغې وارث کيدیشي، او نه هغه د احوص وارثه کيديشي، (مالک)

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ:

**صورت د مسئلې:** – دَ مسئله صورت داوو چه حضرت احوص رحمه الله خپلې بی بی ته طلاق ورکړې وو او دَهغه ښځه دَ عدت تيرولودَپاره ناسته وه هغه په دريم حيض کښې داخل شوه چه دَهغې دَخاوند انتقال اوشو. اوس دا شک پيدا شوچه دا ښځه به دَ خاوند دَمرګ څلورمياشتې او لس ورځې کينی اوبيابه دادَخپل خاوندوارثه جوړيږی

دَدې ښځې هغه دَ طلاق والا عدت ختم شوې دې لهذا دابه دَخپل خاوندوارثه نه جوړيږی. هم دغه مسئله حضرت معاويه رضي الله عنه دَ حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه نه دَ خط په ذريعه معلومه کړه. حضرت زيد رضي الله عنه په جواب کښې اوفرمائيل چه کله دا ښځه په خپل دريم حيض کښې داخله شوې وه نوهم دغه وخت دَهغې دَ طلاق والا عدت ختم شو اوهغه آزاده شوه. لهذا دې ته به دَ خاوند په ميراث کښې هيڅ نه ملاويږی ځکه چه اوس دَدې دَ خاوندسره تعلق بالکل ختم شو

۱) اخرجه مالک في الموطا کتاب الطلاق/باب ما جاء في الخيار (رقم-۲۵)

**د حضرت زيد رضی الله عنه نه د مسئلې معلومولو مقصد:**- د دې بيان نه معلوميږی چه د حضرت معاويه رضی الله عنه د حضرت زيد رضی الله عنه د مسئله معلومولو مقصد صرف دومره ووچه دا ښخه وارثه جوړيدې شی اوکه نه اوداهم احتمال دې چه حضرت معاويه رضی الله عنه دامعلومول غوښتل چه آيا د دې ښځې به د عدت والاطلاق پاتې وی که د خاوند د مرگ عدت به تيره وی حضرت زيد رضی الله عنه جواب ورکړوچه کله دا ښځه په دريم حيض کښې داخله شوه د دې عدت ختم شو اوس نه دا د خپل خاوند ميراث اخستې شی اونه د وفات د عدت ضرورت دې ځکه چه د خاوند وفات په وخت د دې ښځې تعلق د خپل خاوندسره ختم شوې وو

**په عدت بالا طهار باندې د شوافعو استدلال:**- د دې روايت نه شوافعو د عدت بالاطهار مسئله ثابتول غواړی ځکه چه د هغوی په نيز د قرآن کريم آيت ﴿ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ ﴾ نه اطهارمراددې کله چه په دريم حيض کښې ښځه داخله شوه نودرې طهره پوره شوې دې وجه عدت ختم شو.

**د شوافعو د استدلال نه جواب:**- دا د حضرت زيد رضی الله عنه مسلك وو مونږ د نورو صحابه کرامو مسلك اخلو په کوم کښې چه خلفاء راشدين اونور اکابر صحابه کرام رضی الله عنهم داخل دی. بل دا قول د صحابی دې او احناف د مرفوع احاديث نه استدلال کوی. بل د حضرت زيد رضی الله عنه نه طلاق الامة الاثنتان وعدتها حيضتان روايت هم ثابت دې د کوم نه چه عدت بالحيض ثابتيږی معلومه شوه چه راوی د خپل مروی به خلاف فتوی ورکړې ده نود استدلال قابل پاتې نه شو بهرحال مضبوط دلائل احنافو سره دی.

**[۲۲۳٦] د مطلقه د عدت باره کښې يوه مسئله**

---[۱۳] (۱) ① وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: ② أَيُّمَا امْرَأَةٍ طُلِّقَتْ فَحَاضَتْ حَيْضَةً أَوْ حَيْضَتَيْنِ، ثُمَّ رُفِعَتْهَا حَيْضَتُهَا; ③ فَإِنَّهَا تَنْتَظِرُ تِسْعَةَ أَشْهُرٍ، ④ فَإِنْ بَانَ بِهَا حَمْلٌ فَذَلِكَ، وَإِلَّا اعْتَدَّتْ بَعْدَ التِّسْعَةِ الْأَشْهُرِ ثَلَاثَةَ أَشْهُرٍ ثُمَّ حَلَّتْ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ① و سعيد بن مسيب رضی الله عنه وايي چې حضرت عمر رضی الله عنه وفرمايل ② کومې ښځې ته چې طلاق ورکړی شوی وي، او هغې ته يو يا دوه حيضه راتلو سره بيا موقوف شوی وي، ③ نو هغه دې تر نهه مياشتو انتظار وکړي. ④ که ددې په موده کښې حمل ظاهر شو، نو د هغې حکم ظاهر دی. او هر کله چې ولادت وشي، نو عدت به پوره شي، او که حمل ظاهر نشي، نو بيا نهه مياشتې وروسته تر دريو مياشتو د عدت ورځې دې تيرې کړي، او د دې نه وروسته به حلاله وي (يعني د عدت نه به وځي) مالک.

**حل لغات:**- ① فَإِنْ بَانَ بِهَا حَمْلٌ: که ددې حمل ښکاره شو. ② ثُمَّ حَلَّتْ: بيا به حلاله وی، عدت به نې ختم شی.

۱) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الطلاق/باب جامع عدة الطلاق (رقم-۷۰)

**تسهیلات: قوله**: طُلِّقَتْ: دا دَ مجهول صیغه ده دَ طلاق په معنی کښې ده

**قوله**: حَيْضَتَيْنِ:

**د مذکوره جملې وضاحت**: - یعنی دَ عدت تیرولو دَ پاره طلاقه شوې ښځه کیناسته خوچه کله یو حیض یا دوه حیضه راغلل نوو ینه بنده شوه هم دَ دې مفهوم دَ پاره نې راتلونکې جمله ارشاد فرمائیلې ده (ثم رفعتها حيضتها) رفعتها دا دَ مجهول صیغه ده او حیضتها دَ دې نائب فاعل دې او په رفعتها کښې چه کوم دَ ها ء ضمیر دې دا منصوب بنزع الخافض دې اصل عبارت داسې دې (ثم رفعت حيضتها عنها) دَ رفع حیض نه مراد دَ حیض بندیدل دی

**قوله**: فَإِنَّهَا تَنْتَظِرُ:

**جواب شرط**: - دا دَ (ایما امرأة) شرط دَ پاره جواب دې (فذالك) دا مبتدا ء دې او دَ دې خبر محذوف دې (ای فذلك ظاهر حكمه) یعنی دَ دې حکم خو ښکاره دې چه وضع حمل سره به عدت ختم شی (والا) په دې کښې ان شرطیه مدغم دې اصل عبارت داسې دې (وان لم یبن) یعنی که چرې حمل نه وی ښکاره شوې

**قوله**: والا اعْتَدَّتْ:

**د مذکوره لفظ نحوی ترکیب**: - دا په اصل کښې (فاعتدت) دې او دَ شرط جواب دې (بعد التسعة الاشهر) دلته التسعة په مضاف باندې الف لام داخل دې حالانکه نحاة دا نه خوښه وی ځکه چه په دې کښې ثقل دې او فائده ئې نشته دې دَ دې علماء دا جواب ورکوی چه په مضاف باندې الف لام داخلول دَ اهل کوفه دَ لغت موافق دې کوم چه دَ هغوی په نیز جائز دې او په دې کښې هیڅ قباحت نشته دې لکه (الثلاثة الاثواب) بعضې علماء وائی چه "التسعة" نه "الاشهر" بدل واقع دې او دا هم په عربو کښې شائع ذائع دې

**په مذکوره حدیث کښې د ذکر شوې مسئلې صورت**: - په دې روایت کښې چه کومه مسئله بیان کړې شوې ده دَ هغې صورت دا دې چه مثلاً یوه مطلقه مغلظه ښځه دَ حیض والا ده هغې دَ دریو حیضو په اراده سره عدت تیرول شروع کړه کله چه یو یا دوه حیضونه تیر شو نو وینه بالکل بنده شوه اوس دَ دغه ښځې عدت دَ حامله ښځې په عدت کښې بدل شو خو چه دَ حمل دَ اکثریت موده نهه میاشتې هم تیرې شوې نو معلومه شوه چه هغه حامله نه ده اوس په دې باندې دَ آئسه عدت تیرول لازم دی آئسه هغه ښځه ده چه دَ حیض دَ راتلونه نا امیده شی نو دَ هغې عدت میاشتو سره وی لهذا درې میاشتې به نوره کینی عدت به تیر کړی او دَ او د دې زمانې پرواه به نه کوی په دې روایت کښې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه هم دغه مسئله بیان کړې ده

**د طلاق الفار تعریف:-** ملاعلی قاري رحمه الله دَ فتح القدیر په حواله سره دلته دَ تفریع په توګه دَ "طلاق الفار" مسئله بیان کړې ده (فار) تختیدونکی سړی ته وائی اودَ طلاق الفار مطلب دادې چه یوسړې په لاعلاجه بیمارئی کښې راګیردې دَ صحت امید ئی نشته هغه هم په دغه مرض کښې خپلې ښځې له دَدې دَپاره طلاق ورکړو چه هغه دَ میراث نه محرومه کړی اوس هغه ښځې دَ طلاق عدت تیرولو چه خاوندئی وفات شو

**د طلاق الفار د عدت حکم:-** دَ احنافو فقهاء فرمائی چه اوس به دا ښځه "ابعدالاجلین" عدت تیره وی دَعدت بالحیض زمانه هغه وخت اوږدیږی چه دَ یوحیض نه پس مثلاً دَ دیرو میاشتو پورې طهر اوږد شو اوځلورمیاشتې او لس ورځونه موده زیاته شوه اوس به دا ښځه دَ طلاق والاعدت تیره وی چه دَ عدت وفات زوج نه اوږد دې. دَ کومې زمانې پورې په رسیدوسره چه ښځه آئسه کیږی دَهغې په تعین کښې مختلف اقوال دی. یوقول دادې چه ۵۵ کالو عمردَ ایاس زمانه ده دَ یوقول مطابق ۶۰ کاله او دَ دریم قول مطابق سن ایاس ۷۰ کاله زمانه ده

# [۱۵] بَابُ الإِسْتِبْرَاءِ

**خلاصة الباب:-**

**فیه خمسة أحادیث مشتملة علی مسئلتین:**

① وجوب استبراء الرحم : ۱، ۳، ۵.

② طریقة الاستبراء: ۲، ۴.

**د استبراء لغوی:-** استبراء په لغت کښې طلب برأت او یوڅیزدَ څه عیب وغیره نه دَ پاکولو په معنی کښې راځی

**د استبراء اصطلاحی تعریف:-** دَ وینځې رحم دَ حمل نه خالی کولو طلب استبراء ده

**د استبراء سبب:-** اسباب دَ استبرا تجدد دَ ملك دې یعنی دَ وینځې مالك کیدل که داملکیت دَ اخستلو خرڅولو په ذریعه حاصل وی یاپه هبه سره وی یا مال غنیمت په تقسیم سره وی غرض دا چه په کوم سبب سره هم وی خوچه کله تجدد ملك متحقق شو نواستبراء لازم ده

**د استبراء حکمت:-** دَ استبراء حکمت دادې چه دَ وینځې نه پیداشوی بچی کښې اشتباه دَ نسب ختمیږی ځکه چه دَ استبراء نه بغیرپه وطی کولوسره چه کوم بچې پیدا کیږی په هغې کښې دا احتمال هم شته چه دَ غیر دَنطفه نه وی

**دعدم استبراء نقصانات:-**

① دا خپل طرف ته منسوب کړی نو احتمال دې چه دَ بل بچې خپل طرف ته منسوب کوی

② كه دَ بل طرف ته ئې منسوب كړو نودااحتمال دې چه خپل بچې دَ بل طرف ته منسوب كوى اودا ټول صورتونه شرعًا حرام دى هم دَدې حكمت طرف ته دَدې باب ړومبې حديث كښې پخپله نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې دَ كوم تفصيل چه راروان دې

**د استبراء صورتونه:-** ① دَ جمهورپه نيزاصل مذهب دادې چه په ملكيت كښې راتلونكې وينځه كه چرې دَ ذوات حيض نه وى نودَ استبراء رحم دَ پاره هم يوحيض كافى دې

② كه چرې په وجه دَ صغرعمر يا كبرعمر حيض نه راخى نودَ استبراء دَ پاره يوه مياشت كافى ده ③ كه په ملك كښې راتلونكې وينځه حامله وى نودَ استبراء رحم دَ پاره وضع حمل كافى دې.

**د استبراء رحم حكم:-** دَ استبراء رحم نه وړاندې جماع كول حرام دى بيا دا استبراء دَ صغيره كبيره يا باكره ثيبه ټولودَپاره لازم ده.

**د استبراء دعدم ضرورت صورتونه:-**

① وينځه صغيره ده يا باكره ده ② دَ يوماشوم وينځه وه

③ دَ وينځې مالكه ځوك ښځه وه

④ مالك دَ دغه وينځې محرم وو

**اشكال:-** دَ استبراء ضرورت خو هغه ځائى كښې وى چرته چه دَ اشتغال رحم امكان وى، دې دَپاره چه په نسب كښې اشتباه رانه شى. ځكه چه ممكن دى دَ غيرنطفه په رحم كښې موجود وى خوچه كله دَ اشتغال رحم بالكل امكان نه وى نوهلته دَ استبراء څه ضرورت دې؟ اوپه مذكوره ټولو صورتونوكښې دَ اشتغال رحم امكان نشته دې نودَ قياس تقاضاداده چه په دې صورتونوكښې دې استبراء نه وى؟

**د اشكال جواب:-** چونكه دَ استبراء سره متعلق نصوص او احاديث مطلق دى لهذا مونږ نصوص واخستل اوقياس مو پريخودو. په دې وجه مونږ په ټوګه دَ امر تعبدى هرځائى كښې استبراء ضرورى اومنله. دَمطلق نصوص مطلب دادې چه دَ جنګ حنين او جنګ اوطاس په موقع نبى كريم اوفرمائيل حامله وينځوسره دَ وضع حمل پورې جماع اونه كړئى اودَ غيرحامله سره دَ يوحيض راتلو پورې جماع اونه كړئى دلته دَ غيرحامله لفظ عام دې دَ باكره صغيره وغيره ذكرنشته دې. هم دامطلق جمهورو قبول كړو او قياس ئې ترك كړو.

**متروك العمل دوه حديثونه:-**

① دَ باب فصل ثالث روايت نمبر ۴ دَ كوم روايت چه امام مالك رحمه الله كړې دې په كوم كښې چه داراخى كه چرې وينځه دَ حيض والانه وى نوبيا دې درې مياشتې عدت دې

② دغه شان په روايت نمبر ۵ چه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دې هغه هم دَ جمهور فقهاؤ په نيزمتروك العمل دې په كوم كښې چه راغلى دى چه دَ باكره دَ پاره استبراء نشته دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

[۳۳۳۴] دَ استبراء نه بغیر جماع حرام ده

۳۳۳۴-[۱] (۱) «۱عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِامْرَأَةٍ مُجِحٍّ، ۲فَسَأَلَ عَنْهَا، فَقَالُوا: أَمَةٌ لِفُلَانٍ. ۳قَالَ: "أَيُلِمُّ بِهَا؟" قَالُوا: نَعَمْ. ۴قَالَ: لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَلْعَنَهُ لَعْنًا يَدْخُلُ مَعَهُ فِي قَبْرِهِ، ۵كَيْفَ يَسْتَخْدِمُهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ؟ أَمْ كَيْفَ يُوَرِّثُهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ؟». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱حضرت ابو درداء ﷛ وايي چې (يوه ورځ) نبی کريم ﷺ د يوې ښځې نژدې تير شو، چې د هغې زر ولادت کيدونکي وو، ۲حضور ﷺ د هغې په باره کښې د معلومولو د پاره وفرمايل (چې دا آزاده ښځه ده که وينځه ده؟) صحابه وو ﷡ عرض اوکړو چې د فلانې سړي وينځه ده، ۳حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې آيا هغه سړي د دې سره صحبت کوی؟ صحابه وو ﷡ عرض اوکړو چې هو، ۴نو حضور ﷺ وفرمايل چې ما اراده وکړه چې په هغه سړي داسې لعنت وکړم، چې د هغه سره قبر ته هم ولاړشي، يعنی داسې لعنت چې هميشه ورسره وي، په دې طور چې د هغه اثر د هغه د مرګ نه وروسته هم باقي وي، ۵هغه به څنګه خوی ته د خدمت د پاره وايي، هر کله چې دې خوی ته د خدمت د پاره ويل، يا هغه غلام جوړول حلال نه دی، يا هغه به څنګه خپل وارث ګرځوي، هر کله چې د غير خوی خپل وارث جوړول حلال نه دی، (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُجِحّ: په ميم باندې ضمه ده اودې نه پس په جيم باندې کسره ده اودې نه پس حاء ده په کوم چه شد دې اوکسره سره تنوين دې قريب الولادت ښځې ته وائی. زر ولادت کيدونکې ښځه. ② أَيُلِمُّ بِهَا؟: آيا هغه ددې سره صحبت کوی؟، داد المام نه دَ جماع په معنی کښې راغی

**تسهيلات:**

**قوله: كَيْفَ يَسْتَخْدِمُهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ؟:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:-**

① يَسْتَخْدِمُهُ: دادَ استخدام نه خادم اوغلام جوړولو په معنی کښې دې دَ (وهو) ضمير دَ استخدام طرف ته راګرځی يعنی خپل خوئی غلام جوړول حرام دی حلال نه دی.

② كيف يورثه: دادَ باب تفعل نه دې دَوارث جوړولو په معنی کښې دې يعنی دَ بل خوئی به خپل وارث څنګه ګرځولې شی حالانکه دا دَ ده دَپاره حلال نه دی.

**د حديث مطلب:-** دَ حديث مطلب داشوچه دَ استبراء نه وړاندې وطی کول دَ دې وجې نه سبب دَ لعنت دی چه په دې سره په نسب کښې اشتباه راځی. ځکه چه دَ استبراء نه وړاندې

۱) اخرجه مسلم فی صحيحه رقم الحديث ۱۳۹/ ۱۴۴۱ وابوداود فی السنن رقم الحديث ۲۱۵۶ واحمد فی المسند رقم الحديث ۶/ ۴۴۶

مثلاً وطي اوكړه او شپږ مياشتې پس بچې پيدا شو نواوس به دا بچې د چا وي دا هم احتمال دې چه د دغه نوي مالك خوئي وي او دې د خوئي په ځائې غلام كرځوي او د غلام په شان د ده نه خدمت اخلي او دا هم احتمال دې چه هغه ماشوم د بل چا خوئي وي دا نوې مالك دې خوئي جوړولو سره وارث جوړ كرځوي دا دواړه صورتونه حرام دي او په دغه حراموكښې دا سرې د استبراء نه كولو په وجه راګيرشو معلومه شوه چه استبراء نه كول د لعنت سبب او حرمت موجب دي

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۳۳۸] بغير د استبرا نه د وينځي سره د صحبت كولو ممانعت**

۳۳۳۸—[۲] (۱) ①«عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②قَالَ فِي سَبَايَا أَوْطَاسٍ: "لَا تُوطَأُ حَامِلٌ حَتَّى تَضَعَ، ③وَلَا غَيْرُ ذَاتِ حَمْلٍ حَتَّى تَحِيضَ حَيْضَةً». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوسعيد خدري ﷺ د نبي كريم ﷺ نه بطريق مرفوع نقل كوي ②چې حضور ﷺ په غزوه اوطاس كښې د ګرفتارو وينځو په باره كښې وفرمايل چې هيڅ حامله وينځې سره دې د هغه وخته صحبت ونه كړل شي، د څو پورې چې د هغي ولادت ونشي، ③او د غير حامله سره هم هغه وخته پورې دې صحبت نه كيږي، د څو پورې چې هغې ته يوحيض رانشي، (احمد، ابوداؤد، دارمي)

**حل اللغات:** ①سَبَايَا: قيديان، ②أَوْطَاس: دا د يو غزوې نوم دې.هغې طرف ته نسبت دې.

**تسهيلات:**

**قوله: لَا تُوطَأُ حَامِلٌ حَتَّى تَضَعَ:**

**د غير حاملې حيض نه راتلو په صورت كښې حكم:-** كه يوې غير حاملې ته ددې د كم عمرۍ په وجه يا د زيات عمر په وجه حيض نه راځي نو ددې استبراء دا ده چې تر يوې مياشتې پورې دې ته د نزدې كيدو نه اجتناب اوكړې شي كله چې يوه مياشت تيره شي نو بيا دې ورسره جماع اوكړي دا صورت په دې حديث پاك كښې په دې وجه نه دې ذكر كړې شوې چې دا قليل الوجوه او نادر دې.

**د وينزې د استبراء رحم حكم:-** وينځه كه د حيض په حالت كښې د چا په ملكيت كښې راشي نو په استبراء كښې به ددې حيض اعتبار نه وي بلكه دبل پورا حيض اعتبار به وي دا حديث ددې خبرې دليل دې چې وينځې دپاره د نوي ملكيت پيدا كيدل استبراء واجبوي د څلورو واړو ائمه كرامو هم دا مسلك دې.

۱) اخرجه ابوداود في كتاب النكاح/باب في وطء السبايا (رقم-۲۱۵۷) واحمد في المسند: ۶۲/۳

**د دارالحرب څخه د بندي ښځې نکاح ختميدوکښې مذاهب:-**

① چې کله دار الحرب نه يوه کافره وينځه ګرفتاره کړې شي نو د هغې اولنۍ نکاح د امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نيزختميږي (يعنې کافرانو سره د جنګ وغيره په صورت کښې ددوئ چې کومې واده شوې ښځې يا وينځې وي او هغه مسلمانان ګرفتارې کړې نو ددوئ خاوندانو سره به ددوئ د زوجيت تعلق ختم شي)

② حضرت ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چې که ښځه خاوند دواړه يو ځائې ګرفتار کړې شو نو دې صورت کښې به ددوئ نکاح برقراره وي

**[۲۳۳۹] د استبراء په غرض د حملدارې وينځې سره د جماع ممانعت**

[۳] ()[۱] وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ حُنَيْنٍ: [۲] "لَا يَحِلُّ لِامْرِءٍ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَسْقِيَ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ - يَعْنِي إِتْيَانَ الْحَبَالَى - [۳] وَلَا يَحِلُّ لِامْرِءٍ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَقَعَ عَلَى امْرَأَةٍ مِنَ السَّبْيِ حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا، [۴] وَلَا يَحِلُّ لِامْرِءٍ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَبِيعَ مَغْنَمًا حَتَّى يُقْسَمَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: "زَرْعَ غَيْرِهِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت رويفع ابن ثابت الانصاري رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د غزوه حنين په ورځ وفرمايل [۲] کوم سړی چې په الله تعالى او د قيامت په ورځ ايمان لري، د هغه د پاره دا خبره درست نه ده، چې هغه د بل کيتۍ په خپلو اوبو سره اوبه کړي (يعنې د هغه ښځې سره جماع کول جائز نه دي، چې دمينځې په طور لاس ته راغلې وي، او د بل چا د نطفې نه حامله وي) [۳] او کوم سړی چې په الله تعالى او د آخرات په ورځ ايمان لري، د هغه د پاره دا هم جائز نه دي. چې د کفارو سره په جنګ کښې د ګرفتارې شوي وينځې سره د هغه وخته جماع وکړي، د څو پورې چې يو حيض ورته راشي، يا د يوې مياشتې تيريدو انتظار کولو سره د هغې استبرا ونه کړي، [۴] او کوم سړی چې په الله تعالى او د آخرت په ورځ ايمان لري. د هغه د پاره دا هم صحيح نه دی، چې هغه مال غنيمت خرڅ کړي. د څو پورې چې هغه تقسيم نشي (يعنې په مال غنيمت کښې څه قسم تصرف او خيانت نه کوي) (ابوداؤد) او امام ترمذي رحمه الله دا روايت د لفظ زرع پورې نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① أَنْ يَسْقِيَ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ - يَعْنِي إِتْيَانَ الْحَبَالَى: چه د بل فصل په خپلو اوبو سره اوبه کړی. يعنې د بل چا د نطفې نه حامله شوې ښځې سره جماع اوکړی ② - يَسْتَبْرِئَهَا: چه استبراء نې اوکړی. يعنې د عدت تيريدو انتظار نې اوکړی ③ أَنْ يَبِيعَ مَغْنَمًا: چه مال غنيمت خرڅ کړی

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب النکاح /باب فی وطء السبايا (رقم-۲۱۵۸) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی الرجل يشتری الجارية وهی حامل (رقم-۱۱۳۱) واحمد فی المسند: ۱۰۸/۴ والنسائی فی کتاب الجهاد /باب ما تجتنب الحادة من الثياب المصبغة (رقم-۳۵۳۵)

**تسهيلات:**

**قوله: أَنْ يَقَعَ عَلَى امْرَأَةٍ مِنَ السَّبْيِ حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا:**

**استبراء رحم د ايمان تقاضا ده :-** كوم كس چې په الله ﷻ او دقيامت په ورځ ايمان لري . هغه دپاره دا صحيح نه دی چې هغه دبل اوبو سره خپلې اوبه ګډې کړي اوداشان كوم كس چې په الله ﷻ او دقيامت په ورځ ايمان لري ، هغه دپاره دا صحيح نه دی چې هغه كفارو سره جنګ کښې ګرفتاره شوې وينځې سره هغه جماع اوکړي ترڅو پورې چې د هغې استبراء رحم نه وی شوې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۳۴۰] دَاستبراء رحم يوه بله مسئله**

۳۳۴۰- [۳] (۱) ①«عَنْ مَالِكٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ②بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَأْمُرُ بِاسْتِبْرَاءِ الإِمَاءِ بِحَيْضَةٍ إِنْ كَانَتْ مِمَّنْ تَحِيضُ، ③وَثَلَاثَةِ أَشْهُرٍ إِنْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا تَحِيضُ، وَيَنْهَى عَنْ سَقْيِ مَاءِ الغَيْرِ».

**ترجمه:** ①امام مالک ﷫ وايي چې ماته دا حديث رارسيدلی دی ②چې رسول الله ﷺ د يو حيض په ذريعه د وينځو د استبراء حکم فرمايلی، په شرط د دې چې هغې وينځې ته حيض راځي، ③او که يوه وينځه به داسې وه چې هغې ته به حيض نه راتلی، نو د هغې د پاره د دريو مياشتو د مودې په ذريعه به يې د استبراء حکم کولی (يعني حضور ﷺ دا حکم جاري کړی وو. چې کومو وينځو ته حيض نه راځي د هغوئ سره دې د هغوئ مالکان دې د هغه وخته جماع نه کوي د څو پورې چې د دريو مياشتو موده تيره نشي) او حضور ﷺ د خپلو اوبو د بل داوبوسره دهغه په فصل کې ديوځاي کولو نه منع کوله ،يعني دبل دموطوءه وينځې سره دجماع کولو نه .

**تسهيلات:**

**قوله: وَثَلَاثَةِ أَشْهُرٍ:**

**د عدم حيض په صورت کښې د استبراء حکم :-** دې نه وراندې دامسئله تيره شوې ده چه جمهورو دَعام رواياتو په رڼاکښې دَ وينځې دَ استبراء رحم دَپاره دَ يوحيض حکم خودلې دې اوکه چرې حيض نه راځي نوبيا دَ يوې مياشتې حکم ورکړې دې. خوپه زير نظر روايت کښې دَ عدم حيض په صورت کښې درې مياشتې عدت تيرولو مسئله خودلې شوې ده. په دې روايت باندې حضرت شهاب زهري﷫ وغيره عمل کړې دې. جمهور فرمائی چه اصل

۱) رواه رزين

عدت كوم مقرردي هغه يوحيض دي او ښكاره خبره ده چه دَ يوحيض بدل دَيوې مياشتې كيدل پكاردى نه چه درې مياشتې (عن سقي ماء الغير) يعنى چه خپلې اوبه دَ بل په اوبو كښې داخل نه كړى مطلب دا چه پردئى وينځه سره دَ استبراء رحم نه وړاندې جماع اونه كړى

**[۳۳۳۱] دَ پيغلې وينځې دَ پاره استبرا واجب نه ده**

۳۳۳۱ - [۵] (۱) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -: أَنَّهُ قَالَ: إِذَا وُهِبَتِ الْوَلِيدَةُ الَّتِي تُوطَأُ، أَوْ بِيعَتْ، أَوْ أُعْتِقَتْ فَلْتَسْتَبْرِئْ رَحِمَهَا بِحَيْضَةٍ وَلَا تُسْتَبْرَأُ الْعَذْرَاءُ. رَوَاهُمَا رَزِينٌ.

**توجمه:** او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دى چې هغه وفرمايل هر كله چې يوه داسې وينځه چې د هغې سره جماع كول كيده، هبه كړل شي يا خرڅه كړل شي، يا آزاده كړل شي، نو هغې ته پكار دى چې د يو حيض په ذريعه خپل رحم پاک (صفا) كړى، البته د پيغلې د پاک (صفا) كولو ضرورت نشته، دا دواړه روايتونه رزين رحمه الله نقل كړي دي

**حل اللغات:** - ① الْوَلِيدَةُ: وينځه، ② الْعَذْرَاءُ: پيغله جينئ. باكره،

**تسهيلات:**

**قوله: وَلَا تُسْتَبْرَأُ الْعَذْرَاءُ.:**

**د مذكوره جملې مطلب:** - دَ حديث شريف دَ ظاهرى الفاظو مطلب دادې چه دَ پيغلې وينځې دَپاره دَ استبراء ضرورت نشته ځكه چه داخبره متعين ده چه دَهغې رحم دَ غيرِ دَ نطفې نه صفا دې ځكه چه بكارت باقى دې.

**په زيربحث حديث باندې د جمهورو عدم عمل:** - په دې روايت باندې قاضى شريح وغيره عمل كړې دې. ليكن دَ جمهور فقهاؤ مطلب هم هغه دې كوم چه دې نه وړاندې ليكلې شوې دې چه دَ جنګ اوطاس دَ وينځوپاره كښې دَ نبى كريم فرمان عام دې چه غير حامله دَ پاره استبراء رحم يوحيض دې نو دَ غيرحامله په عموم كښې پيغله هم داخل ده.

---

۱) رواه رزين

# [۱۷] بَابُ النَّفَقَاتِ وَحَقِّ الْمَمْلُوْكِ

## دَ عام نفقاتو او دَ غلامانو دَ حقوق بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه احد وثلاثون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① وجوب النفقة للزوجة والأولاد والمماليك والوالدين: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۱۳، ۲۵.

② أنواع النفقات: ۳، ۴، ۲۵، ۳۱.

③ النفقة عوض الخدمة: ۶، ۱۴.

④ حق المالك على المملوك: ۷، ۸، ۹.

⑤ حق المملوك على المالك في الملک الحقيقی كما في العبد، والحكمی كما في اليتيم: ۳، ۴، ۵، ۶، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۰، ۳۱.

**دَ نفقې دَ فرضيت ثبوت دَ قرآن نه:-** ① ﴿وَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ﴾ [سورة بنی اسرائيل ۲۶.]

② ﴿وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ [سورة بقره ۲۳۳.]

③ ﴿لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهٗ فَلْيُنْفِقْ مِمَّآ اٰتٰىهُ اللّٰهُ﴾ [سورة الطلاق ۷.]

**دَ انفاق لغوی معنی:-** انفاق او نفقه خرچ كولوته وائی. ﴿وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ نَّفَقَةٍ﴾ [سورة بقره ۲۷۰.] په آيت كښې هم دَ دې خرچ كولوذكر دې.

**دَ انفاق اصطلاحی تعريف:-** ملا علی قاری رحمه الله دَ دې شرعی اصطلاحی تعريف داسې كړې دې (وفي الشرع الادرار على الشئ بمابه بقائه) يعنی نفقه دَ هر هغه څيز نوم دې چه دَ چاژوند بچ كولو او باقی ساتلو كښې په كار راځی لكه روټئ كپړه او مكان.

**دَ نفقې دَ وجوب اسباب:-** دَ وجوب نفقه اسباب مختلف كيدې شی

① زوجيت او نكاح

② ملك او رقبه سبب

③ قرابت سبب وی

④ دَ چا اضطراری حالت

**دَ نفقات جمعې صيغې راوړلو وجه:-** چونكه مذكور اسباب مختلف دی. په دې وجه نفقات دَ جمع لفظ استعمال كړې شوې دې ځكه چه دَ زوجه نفقه جدا ده دَ والدين نفقه جدا ده دَ اولاد نفقه جدا ده او دَ غلامانو نفقه جدا ده. او كله خپل خپلوان او مسكينان او دَ مضطر خلقو نفقه ځان له واجب كيږی. په سری باندې دَ خپلې ښځې نفقه هغه وخت واجب كيږی

کله چه ښځه خپل ځان خاوند ته حواله کړی که ښځه صغیره وی که کبیره مسلمانه وی که کتابیه وی

**د ښځې د نفقې ادا کولو څوره صورت:-** که ښځه ناشزه نافرمانه وی نو دَهغې نفقه په خاوند باندې لازم نه ده، بهتره خبره خو داده چه ښځه خاوند هم په یوخائی خوری څکی خاوند گټه کوی او ښځه ئې دَ دستور مطابق خرچ کوی خوکه دا دَ خوشحالئی ماحول نه وی او ښځې دَ قاضی په ذریعه دَ ځان له خرچ مطالبه اوکړه نو قاضی به دَهغې دپاره ځان له خرچ مقرروی او ښځې ته به ئې حواله کوی خو خرچه به دَ خاوند دَ طاقت مطابق وی په کومه کښې چه به نه دَ اسراف اړخ وی اونه دَ تنګوالی وی.

**د ښځې د علاج ذمه وار والدین:-** که ښځه په غټو بیمارو کښې راګیره وی نو دَهغې خرچ دَ هغې په مورپلار دې البته دَ معمولی بیمارئی خرچه به په خاوند باندې وی. که چرې ښځه دَ حج په سفرځی نو دَ دغه سفر خرچ به دَهغې په ذمه وی په خاوند باندې نه دې.

**د ښځې د سکنی ذمه وار خاوند:-** ښځې له به مکان هم ورکولې شی چه ځان له وی خوکه هغه په مشترکه مکان کښې اوسیږی نو بیا ځان له ورکول واجب نه دی که دَ خاوند په کورکښې دَ ښځې دپاره ځان له یوه کمره مقررکړی په کوم کښې چه اختیارمنه وی نو په شرعی توګه دَهغې دَ مکان حق اداشو هم دغه کافی دې.

**والدینو او خپلوانو کښې د تلو موده:-** ښځه خپل مورپلارکره په یومیاشت کښې یوځل تللې شی په دې کښې خاوند هغه منع کولې نه شی او نورو ذی رحم محرم خپلوانوکره په کال کښې یوځل تلل راتلل دَهغې حق دې ددې نه زیات تلل راتللونه ئې خاوند منع کولې شی که دَ عدت تیرولوپه موده کښې ښځه مرتده شی نو په خاوند باندې خرچه واجب نه ده

**د نفقې بعضې مسائل:-** ① دَ نابالغه اولاد خرچ دَپلار په ذمه دې.

② والدین او اصول یعنی پلار نیکونه اونیاګانې دَ پورته پورې که چرې محتاج وی نو دَهغوی خرچې دَ اولاد په ذمه واجب دی په دې شرط چه اولاد ئې مالدار وی که چرې هغوی پخپله محتاج وی نو بیاواجب نه دې.

③ محتاج پلار ته داحق حاصل دې چه هغه دَ خپل ځوئی منقوله څیزونه خرڅ کړی خرچه ئې کړی لیکن غیرمنقوله جائیدادنه شی خرڅولې

④ البته مورته داحق حاصل نه دې.

⑤ په آقاباندې دَ غلام او وینځې نفقه واجب او ضروری ده

⑥ که چرې مولی دوی ته دَ نفقه ورکولونه انکار اوکړو نوغلام به پخپله دَ ګټلو اختیارمند شی

⑦ که چرې هغه ته دَ ګټې اجازت ورنه کړې شی نوبیابه آقاپه غلام خرڅولوباندې

مجبور کولې شي

⑧ که چاخاروی ساتلې وي نو دَهغوی خرچه دَ ساتونکی په ذمه واجب ده که چرې هغه خرچه نه کوی نو هغه به مجبور کولې شی چه یادې خرچ کوی یادې دغه خاروی خرڅ کړی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۳۳۳] د ښځې او اولاد په قدر د ضرورت نفقه په خاوند واجب ده**

۳۳۳۳ـ [۱] (۱): ①عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهَا أَنَّ هِنْدًا بِنْتَ عُتْبَةَ ②قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيحٌ وَلَيْسَ يُعْطِيْنِيْ مَا يَكْفِيْنِيْ وَوَلَدِيْ ③إِلَّا مَا أَخَذْتُ مِنْهُ وَهُوَ لَا يَعْلَمُ ④فَقَالَ خُذِيْ مَا يَكْفِيْكِ وَوَلَدَكِ بِالْمَعْرُوْفِ، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①ام المؤمنین بي بي عائشه ﷞ وايي چې هند بنت عتبه ﷞ عرض اوکړو ②چې یا رسول الله! ﷺ (زما خاوند) ابوسفیان ډیر تینګ لاسی او حریص دی، هغه ماته دومره خرچه نه راکوي چې زما او زما د اولاد د پاره کافي شي، ③البته که زه د هغه د مال نه خپله څه وکارم، داسې چې هغه ته خبر ونشي، نو زمونږ ضروريات به پوره کیږی (نو آیا دا جائز دي، چې زه د خپل خاوند د خبرولو بغیر د هغه د مال نه د ځان او د خپل اولاد د ضروریاتو په قدر څه وکارم) ④حضور ﷺ ورته وفرمایل چې د ځان او د خپل آولاد د ضروریاتو په قدر چې د شریعت موافق وي (یعني د اوسط درجې خرچ) د هغه د مال نه اخله. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ①شَحِيحٌ: بخیل ، کنجوس. ②بِالْمَعْرُوْفِ: د عُرف او شریعت مطابق.

**تسهیلات:**

**قوله:** خُذِيْ مَا يَكْفِيْكِ:

**د خاوند د مال نه بې اجازته د اخستلو حکم:**-ایعنی دَدستور مطابق واجبی ضروریات پوره کولودَپاره دَخوراك څښاك څیزونه اخستې شی. دَ معروف یعنی دَ دستورمطابق مطلب دادې چه شریعت څنګه اجازت ورکړې دې هم دَهغې مطابق دې اخلی. دَ خاوند دَمال نه مراد هغه مال دې دکوم تعلق چه دَ خوراك څښاك څیزونوسره وی که اوشی قلیل هم وی. نوکه دَ خاوندصریح اجازت هم نه وی صرف دلالةً اجازت وی نو دَ ښځې دَپاره په دومره اندازه تصرف کول کافی دی.

**ښځې دپاره دخاوند نه صراحة یا کنایة اجازت اخستل:**- لیکن دَتولو احادیثو مخې ته کولوسره معلومیږی چه بعضې حدیث کښې دَمعمولی غوندې څیز استعمالول هم بغیردَ

۱) اخرجه البخاري باب إذا لم ينفق الرجل فللمرأة أن تأخذ بغير علمه ما يكفيها وولدها بالمعروف

اجازت نه منع کړخولې شوی دی اودبعضې احادیثونه معلومیږی چه استعمالول جائز دی نودَ احادیثو په رنړا بهتر هم دغه ده چه صراحةً یا دلالةً دَ خاوند اجازت حاصلول پکاردي خکه چه بعضې معمولي څیزهم دَ څه اهمیت دَ وجې نه دَ خاوند دَ ضرورت وی بعضې څیزونه دَ علاقې دَ مخصوص حالاتودَ وجې نه دَ اهمیت حامل وی لکه په یخنئی کښې دَ غریبه څوکه یودَماچس تیلې هم دیرقیمتې کیږی. بعضې څیزونه دَ زمانې اودَ احوال دَ وجې نه اهمیت اختیاروی دغه شان دَ خاوندانو په مزاج کښې هم فرق وی بعضې خاوندان په معمولی څیزباندې کباب کیږی اوبعضې فیاض او دکولاؤ زړه مالك وی نوبهتره هم دا ده چه دَخاوندنه اجازت اخستوسره ښځه په یوڅیزکښې تصرف اوکړی. دَ زیرنظر حدیث تعلق دَ واجبی حق اخستلوسره دې کوم چه دَ ښځې دَ خاوندذمه باندې واجب وی. دَدې مسئلې تفصیل دَ مشکوة شریف ۱۷۲/۱ باندې "باب صدقة المرأة من مال الزوج" لاندې تیرشوې دې هم هلته اوګورئی.

**د حدیث نه مستنبط مسائل:** -علامه نوی رحمه الله دَدې حدیث یوڅو فائدې بیان کړی دی.

① په سړی باندې دَښځې اوبچونفقه واجب ده.

② او په اندازه دَ ضرورت واجب ده.

③ دَمسئلې دَ تپوس په وخت دَ یوسړی عیب ښکاره کول جائز دی.

④ دَ فتوی په وخت پردئی ښځې سره خبرې کول جائز دی.

⑤ دَ څه ضرورت اوشرعی امردپاره ښځه دارالقضاء ته تلې شی خوچه صراحةً یا دلالةً دَ خاوند اجازت وی.

⑥ دَخاوندپه شان ښځه هم دَ بچودَ خرچې ذمه واره ده.

⑦ قاضی اوحاکم که په یوه معامله کښې حکم جاری کول غواړی نوبغیردَ ګواه غوښتونه جاری کولې شی خوچه خپل معلومات ئی صحیح وی.

**[۳۳۳۴] د الله تعالیٰ ورکړې دولت مخکې په خپل ځان او خپل اهل وعیال خرچ کړه**

---

۳۳۳۴— [۲] (۱): ① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ ② إِذَا أَعْطَى اللَّهُ أَحَدَكُمْ خَيْرًا ③ فَلْيَبْدَأْ بِنَفْسِهِ وَأَهْلِ بَيْتِهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ابن سمره رضی الله عنه وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② هر کله چې الله تعالیٰ په تاسو کښې چاته مال او دولت ورکړي، ③ نو هغه ته پکار دی چې هغه یې مخکې په خپل ذات او په خپل اهل وعیال خرچ کړي (بیا د دې نه وروسته حسب مراتب په خپلو نورو متعلقینو، خپلوانو، فقراؤ او مساکینو خرچ کړي) مسلم.

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب الامارة باب الناس تبع لقریش، والخلافة فی قریش

**تسهیلات:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:-**

① إِذَا أَعْطَى اللهُ أَحَدَكُمْ خَيْرًا خیر نه مراد مال دې کما فی قوله تعالی «اِنْ تَرَكَ خَيْرًا».... الأية اوبل ځائې کښې دې «وَاِنَّهٗ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيْدٌ»

② فَلْيَبْدَأْ بِنَفْسِهِ: ددې جملې مطلب دادې چه الله تعالی چاته مال دولت ورکړی نو دټولو نه اول دې په هغې باندې خپل ذاتی ضروریات پوره کوی چه دده دضروریاتو نه زیاتی شی نو بیا دې په خپل اهل وعیال خرچ کوی

③ وَأَهْلِ بَيْتِهِ، أي من زوجته وأولاده: اهل بیت نه مراد ددې خاوند کور والا او ماشومان دی

**[۳۳۳۳] دغلام نفقه دهغه په مالکواجب ده**

۳۳۳۳ـ [۳] (۱): ۱ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ لِلْمَمْلُوْكِ ۲ طَعَامُهٗ وَكِسْوَتُهٗ ۳ وَلَا يُكَلَّفُ مِنَ الْعَمَلِ إِلَّا مَا يُطِيْقُ، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ د غلام په باره کښې وفرمایل ۲ د هغه روټی، جامی، د هغه د آقاپر ذمه دی، ۳ او دا چې د هغه نه دی یواځی دومره کار آخلی چې د هغه د طاقت او همت مطابق وي، مسلم

**حل اللغات:**- ① اَلْمَمْلُوْكِ: غلام، ② وَكِسْوَتُهٗ: دجامې، ③ وَلَا يُكَلَّفُ: تکلیف به نه شی ④ يُطِيْقُ: چه هغه ئې طاقت لری.

**تسهیلات:**

**قوله: طَعَامُهٗ وَكِسْوَتُهٗ:**

**غلام ته د خوراک او لباس ورکولو اندازه:-** یعنی دې ښار کښې چې عام طور سره کوم خوراك او کومه جامه ورکولې کیږی . ددې په اندازه دې غلام ته ورکړې شی شریعت ددې حد نه دې مقرر کړې.

**قوله: طَعَامُهٗ وَكِسْوَتُهٗ:**

**د مذکوره جملې په اضافت کښې دوه احتمالات:-** امام طیبی رحمه الله فرمائی چې دې ځائې کښې دوه احتماله دی

① دلته اضافت که مفعول طرفته وی نو په دې صورت کښې دکلام معنی ظاهر ده چې آقا باندې د خپل غلام نان نفقه واجب ده ددې ښار د آقا د غلامانو پشان، لکه څنګه چې نور آقا د رواج مطابق نفقه ورکوی دا شان د عرف مطابق په دې باندې آقا باندې واجب ده.

۱) أخرجه مسلم باب إطعام المملوک مما يأكل، وإلباسه مما يلبس. ولا يكلفه ما يغلبه

② یا که اضافت فاعل طرفته وی نو بیا ددې معنی ظاهر ده لکه څنګه چې راتلونکی حدیث پاك کښې لاندې ذکر کیږی امام محی السنة دا ذکر کوی چې دا خطاب د عربو هغه خلقوته دې کومو چې به خپلو غلامانو ته خراب لباس ورکولو او خراب خوراك به ئې ورکولو

**قوله: وَلَا يُكَلِّفُ مِنَ الْعَمَلِ إِلَّا مَا يُطِيقُ**

**په غلام باندې د ذمه وارۍ اچولو ضابطه:-** خپل غلام ته دداسې کار حکم مه کوئی چې هغه ئې نه شی کولې لکه د دوه درې ورځو کار وی یا څه غټ کار وی او هغه یوازې دا نشی کولې یا ددې په کولو هغه نقصان رسی، نو داسې کار پرې کول درست نه دی څکه چې حقیقی مالك په خپلو بندګانو باندې د هغوئ دطاقت او همت نه زیات بوج په یو عمل کښې او فعل کښې نه دې اینبودې او خپل بندګان ئې دهغه عمل پابند جوړ کړی دی د کوم چې هغوئ طاقت لری لهذا بندګان چې مالك مجازی دی هغوئ ته بطریق اولی ددې خبرې اختیار نشته دې چې هغوئ پخپلو غلامانو باندې داسې بوج واچوی چې هغوئ ئې پورا کولې نشی.

**په غلام د مالک درې حقوق:-** امام احمد په مسند او بیهقی په شعب الایمان او طبرانی کښې یو روایت د ابن عباس ﷺ په حوالې سره بیان کړې دې چې غلام باندې مالك دپاره درې څیزونه ضروری دی.

① کله چې غلام په مونځ ولاړ وی مالك دې هغه ته د زر کولو حکم نه ورکوی
② کله چې غلام خوراك کوی نو آقا دې خپل کار دپاره هغه نه پورته کوی
③ دا مالك دې غلام ته دومره خوراك ورکوی چې هغه پرې مریږی داسې نه چې دومره خوراك ورته ورکړی چې کولمې ته ئې هم اونه رسی.

**[۳۳۴۵] د غلام سره د حسن سلوک کولو حکم**

۳۳۴۵-[۳] (۱) ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② " إِخْوَانُكُمْ جَعَلَهُمُ اللهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ، ③ فَمَنْ جَعَلَ اللهُ أَخَاهُ تَحْتَ يَدَيْهِ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ، وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ، ④ وَلَا يُكَلِّفْهُ مِنَ الْعَمَلِ مَا يَغْلِبُهُ، ⑤ فَإِنْ كَلَّفَهُ مَا يَغْلِبُهُ فَلْيُعِنْهُ عَلَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوذر ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② غلامان ستاسو ورونه دي او (د دین او خلقت په اعتبار سره) ستاسو په شان دي، الله تعالیٰ ﷻ هغه

۱) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۶۰۵۰ ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۳۸/ ۱۶۶۱ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۵۱۵۸ والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الإحسان إلی الخدم (رقم-۱۹۴۵) واحمد فی المسند:۱۶۱/۵

ستانتو د آزمائش د پاره، ستاسو ماتحت جوړ کړی دی، [۳] نو الله تعالی ﷻ چې د کوم سړي ورور د هغه ماتحت کړی (يعني کوم سړی چې د يو غلام مالک جوړ شي) نو هغه ته پکار دی، چې خپله څه خوري په هغه دي هم خوروي، او خپله چې څه آغوندي په هغه دي هم آغوندي، [۴] او هغه نه دې څه داسې کار نه آخلي چې د هغه د طاقت نه وتلی وي، [۵] او که څه داسې کار ورنه وآخستی شي چې د هغه د طاقت نه وتلی وي، نو په هغه کار کښې دي په خپله هم د هغه مدد کوي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَحْتَ يَدَيْهِ: د لاس لاندې يعنی ماتحت ② يَغْلِبُهُ: چه په هغه غالب وی، دهغه د طاقت نه زيات وی. ③ فَلْيُعِنْهُ: نو دهغه مدد دې اوکړی

**تسهيلات:**

**قوله:** إِخْوَانُكُمْ

**د جملې په ترکيب کښې دوه احتمالات:** -علامه طيبی فرمائيلی دی چې د دې جملې په ترکيب کښې دوه احتماله دی.

① دا مبتدا محذوف خبردې.اصل عبارت داسې دې ((مماليککم اخوانکم)) او ورنړه ورته په دې اعتبارسره وئيلی شوی دی چې ټول انسانان د حضرت آدم عليه السلام اولاد دې اويا په دې اعتبار چې ټول مسلمانان ورونړه دی.په دې صورت کښې به ((جعلهم الله)) به حال شی خکه چې په کلام کښې يوقسم تشبيه ده.

② ((اخوانکم)) مبتدا ده اوددې او((جعلهم الله)) ددې خبرشی.

**قوله:** فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ، وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ:

**غلامانوته د خپل خوراک اولباس پشان د ورکولو حکم حيثيت:** - امام نووی رحمه الله فرمائی چې دې خائې کښې چې کوم د خوراك ورکولو او څکولو حکم دې هغه د وجوب په طور نه دې بلکه د استحباب به طور دې. نو په مولی باندې به د خپلو غلامانو نفقه او جامه ددې ښار د اشخاصو په اعتبار سره واجب وی که هغه د مالك د جامو د جنس نه وی يا ددې نه کم يا زيات وی که مالك د خپلې تقوی په بنياد يا د خپل په وجه خوراك کښې داشان شومتيا کوی کوم چې ددۀ د حيثيت د خلقو دمعيار خلاف وی نو داسې شومتيا دمملوك په حق کښې جائز نه ده.

**قوله:** فَإِنْ كَلَّفَهُ مَا يَغْلِبُهُ فَلْيُعِنْهُ عَلَيْهِ:

**غلام سره په کار کښې مدد کول:** - د مذکوره جملې مطلب دادې چې که غلام دپاره داسې څه مشکل کار راشی چې هغه ئې نه شی پورا کولې نو هغه سره مدد کول پکار دی.

**[۳۳۴۶] د غلام روزي بندول ګناه ده**

۳۳۴۶ـ[۵] ( ) ۱«وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - ۲جَاءَهُ قَهْرَمَانٌ لَهُ فَقَالَ لَهُ: أَعْطَيْتَ الرَّقِيقَ قُوتَهُمْ؟ قَالَ: لَا. ۳قَالَ: فَانْطَلِقْ فَأَعْطِهِمْ، فَإِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۴كَفَى بِالرَّجُلِ إِثْمًا أَنْ يَحْبِسَ عَمَّنْ يَمْلِكُ قُوتَهُ» ۵. وَفِي رِوَايَةٍ: "«كَفَى بِالْمَرْءِ إِثْمًا أَنْ يُضَيِّعَ مَنْ يَقُوتُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱او د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما په باره کښې منقول دي ۲چې يوه ورځ هغه ته د هغه کارنده راغلي، ۳نو هغه ورنه پوښتنه وکړه چې آيا تا غلامانو او وينځو ته د هغوئ طعام (روټۍ وغيره) ورکړي دي؟ هغه اوويل چې نا، ۴نو ورته يې وفرمايل چې واپس لاړشه او هغوئ ته طعام ورکړه، ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې د سړي د ګناه د پاره دا کافي ده، چې هغه خپل غلام (يا وينځې) ته طعام ورنه کړي. ۵او په يو روايت کښې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل د سړي د ګناه د پاره دا کافي ده، چې د کوم سړي روزي د هغه په لاس کښې وي (يعني د خپل اهل وعيال او غلام وينځې) او هغه د هغوئ روزي ضائع کړي، (مسلم)

**حل اللغات:**- ①قَهْرَمَانٌ: کارنده. وکيل. ②قُوتَهُمْ: د هغوی رزق. طعام ③أَنْ يَحْبِسَ: چه راګير ئې کړی. قيد ئې کړی، ④أَنْ يُضَيِّعَ: چه ضائع ئې کړی،

**تسهيلات:**

**نوټ:**- د خپل بال بچ نفقه په سړی باندې واجب ده په دې کښې څه مشکل نشته

**[۳۳۴۷] د خپل خادم او نوکر سره په طعام خوړلو کښې عار مه محسوسوه**

۳۳۴۷ـ[۶] (٠) ۱وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲"إِذَا صَنَعَ لِأَحَدِكُمْ خَادِمُهُ طَعَامَهُ، ۳ثُمَّ جَاءَهُ بِهِ وَقَدْ وَلِيَ حَرَّهُ وَدُخَانَهُ فَلْيُقْعِدْهُ مَعَهُ فَلْيَأْكُلْ، ۴فَإِنْ كَانَ الطَّعَامُ مَشْفُوهًا قَلِيلًا فَلْيَضَعْ فِي يَدِهِ مِنْهُ أُكْلَةً أَوْ أُكْلَتَيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲هر کله چې په تاسو کښې د چا خادم د هغه د پاره طعام تيار کړی، ۳بيا طعام هغه ته راوړي، نو د کوم طعام د پاره چې هغه ګرمي او دود او نور تکليفونه برداشت کړی دی، د هغې تقاضه دا ده چې آقا هغه خادم د خان سره (په دسترخوان) کينوي، او د هغه سره طعام وخوري. ۴که طعام لږ وي او خوړونکی زيات وي، نو د هغه طعام نه دی يوه دوی نمړئ اخستو سره د هغه په لاس کښې دي کيږدي، (مسلم)

۱) اخرجه مسلم فی صحيحه رقم الحديث ۴۰/ ۹۹۶ وابوداود فی السنن رقم الحديث ۱۶۹۲ واحمد فی المسند ۲/ ۱۹۳
۲) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۵۴۶۰. ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۴۲/ ۱۶۶۳ والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الأكل مع المملوك والعيال (رقم-۱۸۵۳) واحمد فی المسند: ۲/ ۴۰۹

حل اللغات - ①صَنَعَ: تيار كړی، پوخ كړی ②وَلِيَ: برداشت كړې ده ③دُخَانَهُ: لوګې ④فَلْيُقْعِدْهُ: پس كنوی دې هغه ⑤مَشْفُوهًا: پوخ شوې طعام ⑥فَلْيَضَعْ: نو كيدې ږدی. ⑦أُكْلَةً: يوه نمړئ.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيُقْعِدْهُ مَعَهُ فَلْيَأْكُلْ:**

**نوكرانو اوماتحتوسره يوځائې د خوراک كولوترغيب:-** دادې چې هيڅ يو كس دې خپلو نوكرانو سره اوخادمانو سره په يو ځائې خوراك كولو كښې شرم نه محسوسوی ځكه چې خادم او نوكر هم د مسلمان په حيثيت سره دده رور دې .

**په روټۍ كښې د ګڼړوكسانوشركت كښې بركت:-** بيا په دې كښې دا هم حكمت دې چې په يو دسترخوان ځومره زيات خلق ناست وی نو په دې خوراك كښې به بركت وی يو روايت كښې دی چې افضل خوراك هغه دې په كوم كښې چې زيات لاسونه وی

**دحديث دحكم محمل:-** دا خبره د لحاظ قابله ده چې په حديث پاك كښې خادمانو او نوكرانو سره د خوراك كولو يا ددې خوراك نه هغوئ ته لږ شان د وركولو كوم حكم وركړې شوې دې هغه د استحباب په طور دې.

**[۳۳۴۸] دغلام دپاره دوچنده اجر**

۳۳۴۸-[۷] ( ) ①وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا نَصَحَ لِسَيِّدِهِ ③وَأَحْسَنَ عِبَادَةَ اللَّهِ فَلَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او د حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②هر كله چې يو غلام د خپل آقا خير خواهي كوي (يعني د هغه په زړه او روح سره خدمت كوي) ③او بيا د الله تعالیٰ ﷻ عبادت هم په ښه شان كوي. نو هغه ته دوچنده ثواب حاصليږي ، (بخاري، مسلم)

حل اللغات - ①نَصَحَ: خيرخواه وی

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا نَصَحَ لِسَيِّدِهِ:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:-** ① إِذَا نَصَحَ لِسَيِّدِهِ د مولی خيرخواهی داده چې دهغه هر جائز حكم اومنی د هغه په عدم موجودګی كښې د هغه د مال او اولاد نګرانی اوكړی ②وَأَحْسَنَ عِبَادَةَ اللهِ چې د الله ﷻ اودرسول ﷺ داحكاماتو پابندی كوی،دمولی په خدمت كښې مشغوليدو په وجه دالله ﷻ داحكاماتو نه بې پرواه نشی

---

۱) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۲۵۴٦، ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۴۲/ ۱٦٦۴ وابوداود فی السنن رقم الحديث ۵۱٦۹

③فَلَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ ددهٔ محنت دبل دې د مخلوق خدمت هم او د خالق عبادت هم کوی يو اجر د خپل مولی د خدمت په وجه او دويم اجر د الله ﷻ د عبادت په وجه ورته ملاويږی دې نه معلومه شوه چې د خپل آقا خيرخواهي يعنی خدمت کول عبادت دې داشان حديث الباب کښې دمولی د اطاعت ذکر د الله ﷻ د عبادت نه وړاندې ذکر کولو کښې دې طرفته اشاره شوې ده چې معاملات د عباداتو په مقابله کښې زيات اهم دی.

**[٣٣٤٩] د غلام د پاره بهتره خبره څه ده؟**

٣٣٤٩—[٨] ()①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②" نِعِمَّا لِلْمَمْلُوكِ أَنْ يَتَوَفَّاهُ اللَّهُ بِحُسْنِ عِبَادَةِ رَبِّهِ وَطَاعَةِ سَيِّدِهِ، نِعِمَّا لَهُ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②د يو غلام د پاره د دې نه بهتره خبره بله کومه کيدی شي، چې هغه د خپل مالک بهترين خدمت او د خپل پروردګار ښه عبادت کولو سره الله ته خپل روح وسپاري (يعني د غلام د پاره د تولو نه سعادت دا دی چې د هغه پوره ژوند د خپل حقيقي مالک په اطاعت اوعبادت او د مجازي مالک په خدمت او فرمانبرداري کښې تير شي) بخاري، مسلم.

**حل اللغات:**- ①نِعِمَّا: ډيره بهتره خبره،

**تسهيلات:**

**قوله:** نِعِمَّا لِلْمَمْلُوكِ

**د نعما په لوستلو کښې درې اعرابات:**- امام طيبی رحمه الله فرمائي چې دا په درې قسمه لوستلې کيږی. ① دنون په کسرې سره او دعين په سکون سره نِعْمَا

② د نون په فتحې او د عين په کسرې سره ، نَعِمَا

③ د دواړو په کسرې سره نِعِمَا الحاصل غلام دپاره ددې نه بهتر بل څه کيديشی چې هغه د خپل مالك د خدمت سره سره د خپل رب کريم عبادت هم کوی او هم په دې کښې ئې خاتمه اوشی

**[٣٣٥٠] د مفرور(تښتيدلی) غلام مونځ نه قبليږي**

٣٣٥٠—[٩] ()①وَعَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②" إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلَاةٌ» . ③وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ قَالَ: «أَيُّمَا عَبْدٍ أَبَقَ فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ ".» ④وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ قَالَ: «أَيُّمَا عَبْدٍ أَبَقَ مِنْ مَوَالِيهِ فَقَدْ كَفَرَ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَيْهِمْ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

١) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ٢٥٤٩. ومسلم في صحيحه رقم الحديث٤٦/ ١٦٦٧

٢) اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ١٢٤/ ٧٠ والنسائي في كتاب تحريم الدم/باب العبد يأبق إلى أرض الشرك وذكر إختلاف ألفاظ الناقلين لخبر جرير في ذلك الإختلاف على الشعبي (رقم-٤٠٤٩) واحمد في المسند: ٣٦٥/٤

**ترجمه:** [۱] او حضرت جرير ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې غلام وتښتي نو د هغه يو مونځ نه قبليږي، [۳] په يو روايت كښې د حضرت جرير ﷺ نه دا الفاظ منقول دي چې حضور ﷺ وفرمايل كوم غلام چې وتښتيدلې د هغه نه ذمه ختمه شوه، [۴] او په يو روايت كښې د حضرت جابر ﷺ نه دا منقول دي چې (حضور ﷺ فرمايل) كوم غلام چې د خپلو مالكانو نه وتښتيدلې هغه كافر شو ، د څو پورې چې هغوئ نه واپس رانشي، (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَبَقَ: اوتښتيده، ② بَرِئَتْ: ختمه شوه، برى شوه، ③ الذِّمَّةُ: ذمه ، ④ مِنْ مَوَالِيهِ: جمع د مولى ده مالک، دخپلو مالكانو نه.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَيُّمَا عَبْدٍ أَبَقَ فَقَدْ بَرِئَتْ فِيهِ الذِّمَّةُ:

**د تختيدلى غلام غير محفوظ الدم كرځيدل:** - چه يوغلام دَ خپل مولى نه اوتختى اومرتدشى دارحرب ته لاړو نواسلام دَهغه ځان اومال اوعزت او ننګ ته چه كوم حفاظت وركړي وواوس به هغه پاتې نه شي اوكوم ځائى چه دغه غلام ملاؤ شو هغه به واجب القتل وى دَ ذمه ختميدومطلب هم دغه دي چه دَاسلامى قانون مطابق هغه سره چه دَ ځان اومال دَ حفاظت كومه معاهده وه اوس هغه پاتې نه شوه اوچونكه دا غلام مرتدشو نودَهغه اوس مونځ هم مقبول پاتې نه شو

**دغير مرتد غلام د تختيدوحكم:** - اوكه چرې هغه غلام مرتدشوې نه وى صرف دَخپل مالك نه تختيدلې اودارحرب ته هم نه وى تلې بلكه يواسلامى ملك ته لاړو نوهغه قتل كول جائزنه دى. نوهغه وخت (فقدبرئت منه الذمه) مطلب به دا شى چه دَ مولى په ذمه چه دَ دغه غلام كومه خرچه وه اودَ هغه دَ جنايت برداشت كولوكومه ذمه وارى وه هغه اوس پاتې نه شوه

**قوله:** أَيُّمَا عَبْدٍ أَبَقَ مِنْ مَوَالِيهِ فَقَدْ كَفَرَ:

**په حديث كښې د كفرپه مفهوم كښې دوه اقوال:** - ① كه چرې دَ مسلمان غلام دَ قتل كولو خبره ده نودا تشديداً تغليظًا زجراً وتهديداً فرمائيلې شوې دى.

(فقدكفر) دَدې جملې مطلب دادې كه چرې غلام دا تيخته جائز اوحلال ګنړى نو په دې سره هغه كافر كيږى

② دَ فقدكفر نه مراد كفران نعمت او ناشكرى ده چه هغه دَ خپل آقا لويه ناشكرى اوكړه. دريمه توجيه دا ده چه دا جمله هم تشديداً تغليظًا فرمائيلې ده.

## [۳۳۵۱] په غلام د زنا د تهمت لګولو نکي مسئله

۳۳۰۰ [۱۰] (۱) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «مَنْ قَذَفَ مَمْلُوكَهُ وَهُوَ بَرِيءٌ مِمَّا قَالَ [۳] جُلِدَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ كَمَا قَالَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې ما واوريدل ابوالقاسم «نبي كريم ﷺ» به فرمايل [۲] كوم سړى چې په خپل برده «غلام» د زنا تهمت ولګوي، هر كله چې هغه په حقيقت كښې د دې خبرې نه پاک وي، كومه چې د هغه په باره كښې ونيل شوي ده، [۳] نو د قيامت په ورځ به هغه سړى په دوررو وهل كيږي، هو كه هغه غلام واقعتاً داسې وي، څنګه چې ونيل شوي دي «يعني تهمت درست وي» نو بيا هغه به په دوررونه وهل كيږي «بخاري، مسلم»

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ قَذَفَ مَمْلُوكَهُ:**

**په غلام باندې د زنا د دروغو تهمت لګولو حكم:** -په دې حديث كښې په غلام باندې د زنا دروغوتهمت لګول جرم ګرځولې شوې دې اوداګناه كاردې ليكن ددې سزا په قيامت كښې كوږې خوړل ګرځولې شوې ده. ددې نه اندازه كيږي چه په دنياكښې ددې بهتان د وجې نه په آقاباندې به د كوړو سزانه شي جارى كولې يعنې حد د قذف به نه شي لګيدې البته په شرعى عدالت كښې به په هغه باندې دتعزير حكم لګولې شي.

## [۳۳۵۲] د غلام بغير د څه خطا نه د وهلو كفاره

۳۳۰۱ [۱۱] (۲) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [۲] «مَنْ ضَرَبَ غُلَامًا لَهُ حَدًّا لَمْ يَأْتِهِ، أَوْ لَطَمَهُ، [۳] فَإِنَّ كَفَّارَتَهُ أَنْ يُعْتِقَهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې ماد رسول الله ﷺ نه دا واوريدل [۲] څوک چې خپل غلام ته داسې سزا وركړي چې د هغه څه جرم نه وي «يعني بې ګناه يې ووهي» يا په چپلاخه يې ووهي، [۳] نو د هغه كفاره دا ده چې هغه غلام آزاد كړي، «مسلم»

**حل اللغات** - ① لَطَمَهُ: په څپيړه ئې اووهي.

**تسهيلات:** **قوله:** من ضَرَبَ غُلَامًا لَهُ حَدًّا:

**دحدا په اعراب كښې درې احتمالات:** -

① «حَدًّا» مفعول مطلق دې ② «حَدًّا» مفعول له دې.

③ «حَدًّا» مميز تميز وى

---

۱) اخرجه البخارى فى صحيحه رقم الحديث ٦٨٥٨، ومسلم فى صحيحه رقم الحديث ٣٧/ ١٦٦٠ وابوداود فى السنن رقم الحديث ١٣٦٥

۲) اخرجه مسلم فى صحيحه رقم الحديث ٣٠/ ١٦٥٧ واحمد فى المسند ٢/ ٦١

**قوله:** فَإِنَّ كَفَّارَتَهُ أَنْ يُعْتِقَهُ:

**د غلام د وهلو کفاره:** - په دې حديث پاك کښې د غلام بې د څه سبب نه د وهلو د کفاره يا د ګناه د اسقاط ذکر شوې دې چې کوم کس چې غلام اووهی نو هغه ته پکار دی چې هغه دا غلام آزاد کړی

**[۳۳۵۳] په ماتحت باندې د ظلم کولو ممانعت**

۳۳۵۳—[۱۲] () [۱] «وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِي، فَسَمِعْتُ مِنْ خَلْفِي صَوْتًا: [۲] "اعْلَمْ أَبَا مَسْعُودٍ لَلّٰهُ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلَيْهِ". [۳] فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللّٰهِ. [۴] فَقَالَ: "أَمَا لَوْ لَمْ تَفْعَلْ لَلَفَحَتْكَ النَّارُ - أَوْ لَمَسَّتْكَ النَّارُ -» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو مسعود انصاري ﷺ وايي چې (يوه ورځ) ما خپل غلام وهلی، د شا د طرف نه مي دا آواز واوريدلی، [۲] چې اې ابومسعوده! ﷺ ياد يې لره چې الله تعالی ﷻ په تا د ده نه هم زيات قدرت لري، څومره قدرت چې ته په دې غلام لري. [۳] ما چې په وروسته وکتل، نو رسول الله ﷺ وو، نو ما عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ (ماته په خپل دې فعل ډير ندامت (شرمندګی) دی، اوس) زه دا غلام د الله ﷻ په لار کښې آزادوم. [۴] حضور ﷺ وفرمايل چې ياد لره که تا دا غلام نه وی آزاد کړی، نو د دوزخ اور به ته سوځلي وای، يا وي فرمايل چې د دوزخ اور به درته لګيدلی وی. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَقْدَرُ: زيات قدرت لري، ② فَالْتَفَتُّ: نو ما روسته اوکتل. ③ لَلَفَحَتْكَ: سوزولې به ئې وې ته.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَلّٰهُ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلَيْهِ:

**د حديث د متن نحوی تشريح:** - لام ابتدائيه تاکيديه دې دا مبتداء دې او (اقدر) دَدې خبردې او (عليك) جارمجرور اواقدر سره متعلق دې او (منك) اقدر دَ اسم تفضيل دَپاره مفضل عليه دې او (عليه) جارمجرور دَ (عليك) کاف خطاب نه حال واقع دې عبارت داسې دې (اى الله اقدر منك حال كونك قادراعليه) لفحدَ فتح بفتح نه دې په اور باندې دَ سوزيدو په معنی کښې دې "او" دَ شك دَپاره دې (لمستك) دَ لاس لګولو په معنی کښې دې يعنی که ته خپل غلام په ظلم باندې وهې اوهغه دې نه معاف کوی نودَ دغه ظلم په وجه به ته په اور کښې سوزيږې

۱) اخرجه مسلم فى صحيحه رقم الحديث ۳۵/ ۱۶۵۹ وابوداود فى السنن رقم الحديث ۵۱۵۹ والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب النهى عن ضرب الخدم وشتمهم (رقم-۱۹۴۸)

**ه غلامانو سره نرمي اختيارول:** -علامه نووي رحمه الله فرمائی چه په دې حديث کښې غلامانو سره د نرمئ کولو حکم ورکړې شوې دې او د امت په دې باندې اتفاق دې چه د غلام په وهلو باندې د هغه آزادول واجب نه دی او مستحب او بهتر هم دغه ده چه هغه آزاد کړی د دې نه وړاندې چه کوم حديث تيرشوې دې په هغې کښې د کفارې لفظ موجود دې چه د وهلو ګناه او د دغه ظلم اثرات ختمولو د پاره کفاره د غلام آزادول دی. دا ټول استحبابی امور دی او د غلامانو سره د حسن سلوك ترغيب دې کومه چه د اسلام يوبې مثاله طريقه ده ځکه چه هم اسلام د آقانه غلام ته انصاف ورکړې دې چه د دنيا په يو قانون کښې داسې نشته او نه د دنيا يو قانون د دې څه نمونه پيش کولې شي

**بعضې انسانانو ته د غلامۍ طوق اچولو وجه:** -اسلام د الله تعالى بعضې باغی مخلوق خپل رب او خپل مولی او خالق او مالك نه د بغاوت په جرم کښې بيشکه د غلامئ طوق وراچولې دې او الله تعالى دا حکم ورکړې دې چونکه زما دا بنديګان زما د بندګئ نه مخ اړه وی په دې وجه به اوس دوی زما د غلامانو غلامان وی مګر د دې سزا سره سره د الله تعالى دې آفاقی دين اسلام دغه غلامانو ته هغه حقوق ورکړی دی چه هيڅوك ئې نه شی ورکولې يو طرف الله تعالى غلامانو ته د تابعدارئ حکم ورکړو او بل طرف ته ئې آقاګانو ته د نرمئ هغه سبق ورکړې دې چه د ټولې دنيا د پاره د حقوقو ورکولو په ميدان کښې نمونه ده [الکاشف ۶/۴۲۴.]

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۳۵۳] د اولاد په ګټه باندې د پلار حق

٣٣٥٣-[١٣] (١) ①عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، ②«أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: إِنَّ لِي مَالًا، وَإِنَّ وَالِدِي يَحْتَاجُ إِلَى مَالِي. ③قَالَ: "أَنْتَ وَمَالُكَ لِوَالِدِكَ، ④إِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ أَطْيَبِ كَسْبِكُمْ، كُلُوا مِنْ كَسْبِ أَوْلَادِكُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ①عمرو بن شعيب رحمه الله د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي ②چې (يوه ورځ) يو سړی د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضريدو سره عرض اوکړو چې زه مالداريم او زما پلار زما د مال محتاج دی، ③حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ته او ستا مال (دواړه) ستا د پلار د پاره دي، ④بيشکه ستاسو اولاد ستاسو د ټولو نه بهتره ګټه ده، نو د خپل اولاد ګټه خوري. (ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه)

---

۱) اخرجه ابوداود فی أبواب الإجارة/باب في الرجل يأكل من مال ولده (رقم-۳۵۳۰) وابن ماجه فی کتاب التجارات/ باب ما للرجل من مال ولده (رقم-۲۲۹۲) واحمد فی المسند: ۲/۲۱۴

**تسهيلات:**

**قوله: "أَنْتَ وَمَالُكَ لِوَالِدِكَ:**

**د پلار د خپل ځوي په مال کښې د تصرف کولو حکم:** - دې حدیث کښې دَ مور پلار دَ حقوق بیان دې مطلب دا چه څنګه په اولاد باندې دَ پلار تابعداری او خدمت لازم دې دغه شان دَ اولاد په مال کښې هم دَ پلار ته دَ تصرف کولو حق حاصل دې لکه چه دا حدیث دَ دې خبرې دلیل دې چه دَ پلار نفقه په بچی باندې واجب ده

**د فقهي مسئلې استنباط:** - دَ دې حدیث په ضمن کښې دا مسئله هم بیانولې شی چه که پلار دَ خوئی مال پټ کړو یا دَ هغه وینځې سره ئې زنا او کړه نو په هغه به شرعی حد نه شی جاری کولې ځکه چه دلته دَ ملکیت شبه پیدا شوې ده اولاد چونکه دَ پلار دَ محنت نتیجه ده په دې وجه اولاد ته دَ پلار ګټه ونیلې شوې ده او دَ اولاد ګټه دَ پلار دَ پاره بهترین حلال ګټه ګرځولې شوې ده او په دې باندې دَ پلار حق ثابت کړې شوې دې.

**[۳۳۵۵] دَ مربی په حق کښې دَ یتیم دَ مال حکم**

۳۳۵۵ — [۱۴] (۱) [۱] وَعَنْهُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: [۲] «أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [۳] إِنِّي فَقِيرٌ لَيْسَ لِي شَيْءٌ وَلِي يَتِيمٌ، [۴] فَقَالَ: "كُلْ مِنْ مَالِ يَتِيمِكَ غَيْرَ مُسْرِفٍ وَلَا مُبَادِرٍ وَلَا مُتَأَثِّلٍ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعیب علیه الله د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي [۲] چې (یوه ورځ) د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې یو سړی حاضر شو، او عرض یې وکړي [۳] چې زه یو مفلس سړی یم، زما سره هیڅ هم نشته، او زما په نګراني کښې یو یتیم دی (نو آیا د هغه د مال نه څه خورم؟) [۴] حضور ﷺ ورته وفرمایل چې ستا په نګراني کښې چې کوم یتیم دی، ته یې د هغه د مال نه خوړلی شي، په شرط د دې چې اسراف (فضول خرچي) مه کوه، په خرچ کولو کښې تلواري مه کوه، او مه یې د ځان د پاره جمع کوه. (ابوداؤد، نسایي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① غَيْرَ مُسْرِفٍ: اسراف . زیاتې به نه کوې. ② وَلَا مُبَادِرٍ: تادی او جلتی به نه کوې (چه د یتیم مال هرپ کول او ختمول دې مطلب وی) ③ وَلَا مُتَأَثِّلٍ: جمع کول به دې هم مقصد نه وی

**تسهيلات: قوله: إِنِّي فَقِيرٌ:**

**د سرپرست د پاره د یتیم په مال کښې د تصرف کولو شرطونه:** - یعنی دَ یتیم بچی مال دې

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الصید/باب ما جاء فی ما لولی الیتیم أن ینال من مال الیتیم (رقم-۲۸۷۲) والنسائی فی کتاب الوصایا/باب ما للوصی من مال الیتیم إذا قام علیه (رقم-۳۶۶۸) وابن ماجه فی کتاب الوصایا/باب قوله تعالی: {ومن کان فقیرا فلیأکل بالمعروف} [النساء: ۶] (رقم-۲۷۱۸)

او هغه زما په تربيت کښې دي او زه مفلس او محتاج يم نو آيا زه د دغه يتيم د مال نه څه خوړلې شم؟ نبي کريم د يتيم پالونکي او د فقير مولى ته د يتيم د مال نه د حاجت مطابق د څه اخستلو اجازت ورکړو ليکن دانې دريو شرطونو سره مشروط کړو

① چه سخت ضرورت وى او د ډيرې محتاجنى په وخت څه واخستې شى د يتيم د بالغ کيدونه وړاندې وړاندې د هغه مال خوړل مقصد نه وى د دې شرط طرف ته (غير مبادر) کښې اشاره کړې شوې ده ځکه چه بادر يبادر مبادرة فهو مبادر د تادنى کولو په معنى کښې دې

② چه حق د خدمت قوت لايموت وى څه اسراف نه وى په دې کښې د غير مسرف طرف ته اشاره ده

③ د مربى په حيلو او بهانو سره د يتيم مال په ويستلو ويستلو سره د خپل خان د پاره ذخيره کول مقصود نه وى د دې شرط طرف ته (غير متاثل) سره اشاره کړې شوې ده تاثل د ذخيره کولو په توګه يو خانى کولو ته وائى

**[۳۳۵۶] د غلامانو د حقوقو ادا کولو تاکيد**

۳۳۵۶—[۱۵] (۱) ①وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ فِي مَرَضِهِ: ③الصَّلَاةَ، وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ①او بي بي ام سلمه ﷺ د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي ②چې حضور ﷺ به په مرض الموت کښې دا فرمايل ③چې په مونځ په مضبوطي سره قايم اوسئ، او کوم خلق چې ستاسو په ملکيت کښې دي (يعني وينځې، غلامان) د هغوئ حقوق ادا کوئ. بيهقي

**حل اللغات** - ①مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ: چه ستاسو ښى لاسونه ئې مالکان وى. يعني غلامان

**تسهيلات: قوله: الصَّلَاةَ:**

**جملې نحوى وضاحت:** - دا لفظ منصوب دې او د دې فعل (الزموا) محذوف دې يعني مونځ لازم اوساتئ د دې حقوق پوره کړئ

**قوله: وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ:**

**د غلامانو د حقوقو ادا کولو حکم:** - يعني په ماتحتانو باندې ظلم مه کوئ او د هغوى حقوق اداکوئ د وينځې غلامانو حق دا دې چه د هغوى مالك دې په هغوى باندې خوراك کوى د حيثيت مطابق دې هغوى ته کپړې ورکوى ناحقه وهل تکول او کنځلو وغيره نه خان اوساتئ دلته که د وينځې او غلام سره سره د دې جملې وسيع مفهوم واخستې شى چه د خپل لاس د لاندې خلقو حقوق اداکوئ نو په دې کښې ټول نوکران مزدوران او د حاکم

---

۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۸۵۵۲

رعايا اود كور لونى واړه ترديې چه دَ لاس لاندې خناور او مرغنى وغيره ټول به په دې كښې داخل شى اواسلام دَ دغه ټولو قسمونو دَ حقوقو اعلان هم كړې دې داحديث نبى كريم دَ انتقال په وخت امت ته آخرى پيغام دې دې نه پس نبى كريم دَ امت دپاره يولفظ هم نه دې ارشادفرمائيلې بلكه ،اللهم الرفيق الاعلى، فرمائيلوسره دَ دنيانه رخصت شوې دې

**په حديث كښې د حقوق الله او حقوق العباد راجمع كول:** - په دې دوو جملوكښې نبى كريم حقوق الله اوحقوق العباد دواړه راجمع كړى دى په ړومبنئى جمله الصلوة كښې دَ حقوق الله طرف ته اشاره ده اوپه دويمه كښې حقوق العباد طرف ته اشاره ده په حضوراكرم باندې ځان قربانى كونكى كلمه لوستونكو مسلمانانوله پكاردى چه هغوى دې دَ نبى كريم دا مبارك فرمان حرزجان جوړكړى او په دې دې عمل اوكړى دنيافانى كيدونكې ده او دلته چه څه هم دى خى راخى دا يوه دهوكه ده او زمونږ په سترګودَ غفلت يوه پرده ده

٣٣٥٧ - ( )[۱] وَرَوَى أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، عَنْ عَلِيٍّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [۱] و احمد او ابوداؤد دغه شان روايت د حضرت علي ﷺ نه نقل كړى دى

## [٣٣٥٨] د خپل مملوك سره د بد سلوكي كونكي په باره كښې وعيد

٣٣٥٨ - [١٦] (ض)[۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ سَيِّئُ الْمَلَكَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابوبكر صديق ﷺ د نبى كريم ﷺ نه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] د خپل مملوك (مينځه، غلام) سره بدسلوكي كونكي به په جنت كښې (په ابتدايي مرحله د نجات ترلاسه كونكو خلقو سره) نه داخليږي . (ترمذي ، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① سَيِّئُ الْمَلَكَةِ: بد اخلاقه، بد مزاجه.

**تسهيلات:**

**قوله:** سَيِّئُ الْمَلَكَةِ:

**د ملكة په تفسير كښې دوه اقوال:** - ① ملكه طبيعت اخلاق اومزاج ته وائى يعنى مثلاً يوآقا اومالك دې دَهغه يوغلام دې دَ دغه غلام په حق كښې هغه ظلم زياتې او بداخلاقى كوى دَدې حديث نه پس راتلونكې حديث نمبر(٣٣٥٩) كښې ملكه دَ اخلاق اوطبيعت په معنى كښې استعمال كړې شوې دې او علامه طيبى ﷫ هم ملكه نه بنه اخلاق معنى

---

١ ) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الجنائز/باب ما جاء في ذكر مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-١٦٢٥)واحمد في المسند: ٦/٢٩٠

٢ ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الإحسان إلى الخدم (رقم-١٩٤٦)و اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الأدب/باب الإحسان إلى المماليک (رقم-٣٦٩١) واحمد في المسند: ١/٤

مراد اخستې ده

④ نهايه ابن اثير كښې ملكه نه صنيع يعنې د معامله اوسلوك په معنى كښې اخستې ده دواړه معانې نيزدې نيزدې دى "لايدخل الجنة" دې نه مراد دخول اولى دې يعنى د سزا خوړلو نه پس به ځي يا دا د تغليظ او تشديد د اصولو مطابق دې [الكاشف ۴۲۸/۶.]

[۲۲۵۱] د خپل مملوك سره حسن سلوك د خير او بركت باعث دى

۳۳۵۳-[۱۷] ( ) ①وَعَنْ رَافِعِ بْنِ مَكِيثٍ، أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«حُسْنُ الْمَلَكَةِ يُمْنٌ، وَسُوءُ الْخُلُقِ شُؤْمٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. ③وَلَمْ أَرَ فِي غَيْرِ الْمَصَابِيحِ مَا زَادَ عَلَيْهِ فِيهِ مِنْ قَوْلِهِ: وَالصَّدَقَةُ تَمْنَعُ السُّوءَ، وَالْبِرُّ زِيَادَةٌ فِي الْعُمُرِ.

**ترجمه**: ①او حضرت رافع ابن مكيث ﷺ نقل كوي چې نبى كريم ﷺ وفرمايل ②د خپل مملوک سره نيكي او حسن سلوک د خير او بركت باعث دى، او د خپل مملوک سره بد سلوكي د بي بركتي باعث دى، (ابوداؤد) ③او (د مشكوٰة مصنف رحمه الله فرمايي چې) ما د مصابيح نه علاوه په بل يو كتاب كښې هغه الفاظ نه دى ليدلى، كوم چې صاحب مصابيح په دې حديث كښې نقل كړي دي (او هغه زائد الفاظ دا دى) چې حضور ﷺ دا هم وفرمايل صدقه او خيرات د خراب مرګ نه خلق ساتي، او نيكي عمر زياتوي

**حل اللغات**: - ①يُمْنٌ:خير او بركت، ②شُؤْمٌ: بې بركتى. ③الْمَصَابِيح: د كتاب نوم دې. ④السُّوءَ:بدى. (دلته كښې بد مرګ مراد دې)⑤ وَالْبِرُّ:يعنى مخلوق سره احسان او ښه سلوك كول او د خالق عبدت او اطاعت مراد دې

**تسهيلات**:

**قوله حُسْنُ الْمَلَكَةِ يُمْنٌ**:

**غلامانو سره د ښه سلوک فضيلت**:- يعنى عام طور سره داسې كيږى چې مولى خپلو غلامانو سره نيكى او حسن سلوك كوى نو غلام هم د خپل مالك او مولى زيات تابعدار او خيرخواه وى او دې غلامانو ته چې كوم كار حواله كوى هغه ډير په شوق سره كوى او هم دا كارونه د خير او بركت باعث جوړيږى ددې برعكس كه هغه خپلو غلامانو سره بدسلوكى او بدخواهى كوى نو د غلامانو په زړه كښې د مالك او مولى خلاف دبغض او نفرت جذبات پيدا كيږى او آخر دا چې د خپل مالك او مولى د جان او عزت او مال ودولت هم هيڅ پرواه نه كوى

۱ ) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب/باب فى حق المملوك (رقم-۵۱۶۲) واحمد فى المسند.

**قوله:** وَالصَّدَقَةُ تَمْنَعُ السُّوءَ:

**د خراب مرگ په مصداق کښې دوه اقوال:-** ① د خراب مرگ نه مراد ناڅاپي مرگ دې اودې ته خراب مرگ په دې وجه وئيلې شوې دې چې انسان ناڅاپي د مرگ په دائره کښې راګير شي او ددې په وجه ورته د حقوق الله او د حقوق العباد په سلسله کښې د کوتاهيانو د تلافي وخت ملاؤ نشي او نه ورته د خپلو ګناهونو د توبې وخت ملاؤ شي
② د توحيد اودحق څخه د غفلت په حالت کښې مرگ ترې مراد دې

**قوله:** زِيَادَةٌ فِي الْعُمُرِ:

**دعمرپه زيادت کښې احتمالات:-** ① يعنى ددهٔ عمر زياتولې شي ، د عمر په زياتولو کښې دا هم احتمال شته چې حقيقي زياتوالي وي يعنى الله ﷻ دده عمر دنيکيانو سره معلق کړى چې دومره نيکي اوکړى نو دده عمر به زياتولې شي
② ددې نه مراد معنوى زياتوالي دې چې ددهٔ په عمر کښې برکت اچولې شي چې لږ عمر کښې زيات کار اوکړى .

**[۳۳۶۰] که غلام وهل خورلو کښې د خداى واسطه درکړي نو خپل لاس منع کړه**

۳۳۶۰ - [۱۸] (۱) ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② " «إِذَا ضَرَبَ أَحَدُكُمْ خَادِمَهُ فَذَكَرَ اللّٰهَ، فَارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ» ". ③ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ، لٰكِنْ عِنْدَهُ: "فَلْيُمْسِكْ" بَدَلَ: "فَارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ".

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② (د مثال په طور) که په تاسو کښې يو سړى خپل غلام وهي، او هغه خداى ياد کړي (يعني داسې اووائي چې تاته خداى واسطه کووم. ما معاف کړه) نو ته (د هغه د وهلو نه ) خپل لاس منع کړه. ترمذي. ③ او په شعب الايمان کښې د بيهقي ﷫ په روايت کښې د فَارْفَعُوْا اَيْدِيَکُمْ په ځاى فليمسک نقل شوي دي (او د دواړو لفظونو مطلب يو دى).

**حل اللغات:-** ① فَارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ: نو خپل لاسونه اوچت کړئ. يعنى مه ئې وهئ ② فَلْيُمْسِكْ: نو منع دې شي

**تسهيلات:**

**قوله:** فَارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ:

**د لاسونو پورته کولو څخه مراد:-** امام طيبى ﷫ فرمائي چې دا حکم په هغه وخت کښې دې چې کله دې د تاديب په طور اووهلې شي او دې اووائي چې الله دپاره ما پريږده نو

---

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ماجاء في أدب الخادم (رقم ۱۹۵۰)

دي پرېښودل پکار دی او که ده نه د حد په طور سزا ورکولي کېږی نو بیا د ده پرېښودل پکار نه دی پکار بلکه حد پورا کول پکار دی

**[۲۲۳] ورو کی غلام د هغه د مور وغیره نه مه جلا کوه**

۲۲۳ــ[۱۹] (۱) ۱وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " ۲«مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا ۳فَرَّقَ اللّٰهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَحِبَّتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱او حضرت ابو ایوب رضي الله عنه وايي چي ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل ۲چي کوم سړی د مور او د خوی په منځ کښې جدايي راولي، ۳نو د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ جل جلاله د هغه او د هغه د عزیزانو په منځ کښې جدايي راولي. (ترمذي، دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا:

**د مور او خوی په مینځ کښې د جدائی راوستلو مطلب:** –یعنی چاچه دَ وینځې او دَهغې دَ خوئی په مینځ کښې جدائی اوکړه نو په دې حدیث کښې دَ والدة نه مراد وینځه ده او (ولد) نه دَهغې بچې مراد دې چه پخپله هم غلام دې. دَدې دواړو دَ جدائیئ کولو نه مطلب دادې چه وینځه خرڅه کړې شوه یا دَ چا په لاس باندې هبه کړې شوه یا دَ څه صلح وغیره په صورت کښې جدا کړه او دَ هغې بچې پاتې شو په دې کښې به دغه کم عمره ماشوم ته خومره تکلیف وی او دَ بچی موربه خومره پریشانه وی دې باندې هم هغه خلق پوهیدې شی په چاچه دا مصیبت راغلې وی. اسلام دا تکلیف ورکونکې صورت په سختئ سره منع کړې دې په دې حدیث کښې دَ ماشوم دَ قید نه لوئی عمر والا دَ دې حکم نه خارج کړې شوی لهذا دا وعیدونه نابالغ ماشوم سره خاص دی او دَ مور او خوئی ذکر په توګه دَمثال کړې شوې مراد ترې نه هر دوه نابالغ دَ هغه دَ ذی رحم محرم نه جدا کول دی که هغه مور وی او که پلار وی دواړه طرف ته نیکونه وی او که نیاګانې وی خور رور وی دا ټول مراد دی

**د تفریق حکم:** –دَ ائمه احناف نه دَ امام ابویوسف رحمه الله په نیز دا بیع بالکل ناجائز ده مګر دَ طرفین په نیز مکروه تحریمی ده اسلام دَ رحمت دین او دَ شفقت قانون دې دې دَ غلامانو دومره خیال ساتلې دې نو د نورو شرفاؤ به په اسلام کښې کوم مقام وی

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة أن یفرق بین الأخوین أو بین الوالدة وولدها فی البیع (رقم -۱۲۸۳) واحمد فی المسند:۵/۴۱۳

[۲۰] (۱) ①«وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: وَهَبَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - غُلَامَيْنِ أَخَوَيْنِ فَبِعْتُ أَحَدَهُمَا، ②فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "يَا عَلِيُّ مَا فَعَلَ غُلَامُكَ فَأَخْبَرْتُهُ". ③فَقَالَ (رُدَّهُ رُدَّهُ)» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ①او حضرت علي كرم الله وجهه فرمايي چې رسول الله ﷺ ماته دوه غلامان راكړل، چې په خپلو كښې ورونه وو، ②بيا په هغوئ كښې يو ما خرڅ كړي، نو رسول الله ﷺ زما نه پوښتنه وكړه چې اې علي! ﷺ ستا هغه يو غلام څه شو؟ ما حضور ﷺ ته وښودل (چې هغه غلام ما خرڅ كړي) ③حضور ﷺ وفرمايل چې هغه واپس كړه، هغه واپس كړه (يعنى هغه بيع فسخ كړه) ترمذي، ابن ماجه

**حل اللغات:**- ①رُدَّهُ: هغه واپس كړه، يعنى دا بيع ختمه كړه.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ (رُدَّهُ رُدَّهُ)**

**دغلام د واپس كولو مطلب:**- دا واپس كړه ، ددې مطلب دا وو چې تا كومه بيع كړې ده هغه فسخ كړه او دا غلام ځان سره راوله چې د دواړو رونړو په مينځ كښې جدا والى رانشي.

**د رده د تكرار وجه:**- ددې داجمله د تاكيد دپاره دوه ځل فرمائيلو كښې دې ته اشاره وه چې كوم حكم دركولې شى هغه د وجوب په طور دې او بيع مكروه تحريمى ده. ددې حديث پاك نه معلومه شوه چې د يو بل په مينځ كښې د جدا والى نه راوستو حكم صرف د مور او د بچو په مينځ كښې مخصوص نه دې.

**[۳۳۳] د مور او بچې جدا كولو ممانعت**

[۲۱] (۲) ①وَعَنْهُ، «أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَ جَارِيَةٍ وَوَلَدِهَا، فَنَهَاهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ ذَلِكَ، ②فَرَدَّ الْبَيْعَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ مُنْقَطِعًا.

**ترجمه:** ①او د حضرت علي كرم الله وجهه په باره كښې منقول دى چې (يو ځل) هغه يوه وينځه او د هغې خوى يو د بل نه جدا كړل (يعني په هغه دواړو كښې يې يو خرڅ كړو، او يو يې د ځان سره وساتلى) ②رسول الله ﷺ د دې نه منع كړى، ③نو حضرت علي ﷺ هغه بيع فسخ كړه، ابوداؤد دا روايت بطريق انقطاع نقل كړى دى.

۱) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية أن يفرق بين الأخوين أو بين الوالدة وولدها فى البيع (رقم-۱۲۸۴) وابن ماجه فى كتاب التجارات/ باب النهى عن التفريق بين السبى (رقم-۲۲۴۹) واحمد فى المسند: ۹۷/۱

۲) اخرجه ابوداود فى كتاب الجهاد . باب فى التفريق بين السبى (رقم-۲۶۹۶)

**تسهيلات:**

**قوله. أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَ جَارِيَةٍ وَوَلَدِهَا، فَنَهَاهُ..الخ:**

**د ماشوم د مور پلار څخه د جدا کولو عدم جواز:** - دا پورتنی دواړه حديثونه د حضرت امام ابو يوسف رحمه الله د مسلك دليل دی چې وړوکي ماشوم او دده مور يا دده پلار لره د يو بل نه جدا کول او خرڅول جائز نه دی

**[۳۳۳] په غلام د احسان کولو اجر**

---[۳۲] ( )[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ يَسَّرَ اللَّهُ حَتْفَهُ، وَأَدْخَلَهُ جَنَّتَهُ[۳]: رِفْقٌ بِالضَّعِيفِ، وَشَفَقَةٌ عَلَى الْوَالِدَيْنِ، وَإِحْسَانٌ إِلَى الْمَمْلُوكِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] په کوم سړی کښې چې دا دري خبري وي الله تعالیٰ جل جلاله به په هغه مرګ آسانه کړي، او هغه به په جنت کښې داخل کړي [۳] ① د کمزورو او ضعيفانو سره نرمي کول ② د مور او پلار سره شفقت کول ③ په خپل مملوک احسان کول ، دا روايت امام ترمذي رحمه الله نقل کړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① حَتْفَهُ: په خپل مرګ مرکيدل، ② رِفْقٌ: نرمی.

**تسهيلات:**

**قوله: ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ:**

**د مرګ د سختو څخه د حفاظت دري صفات:** - حاصل د حديث پاك دادي چې په کوم کس کښې د امذکور دري صفات جمع وی نو الله جل جلاله هغه د مرګ د سختو نه محفوظ ساتی

**قوله: يَسَّرَ اللَّهُ حَتْفَهُ**

**د مذکوره جملې مفهوم:** - امام طيبی رحمه الله فرمائی چې (يقال مات حتف أنفه) چې فلانې په خپل مرګ مړ شو .ددې مطلب دادې چې (وهو ان يموت على فراشه) چې هغه پخپل کټ باندې مړ شو يعنی دې پرمخ او غورزيدو او (حتف أنفه) ورته په دې وجه وائی چې دده روح د پوزې په ذريعه اوويستلې شو

**قوله: رِفْقٌ بِالضَّعِيفِ:**

**د ضعيف په مصداق کښې دري اقوال:** -

① که هغه د بدن په لحاظ سره کمزورې وی

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم ـ ٢٤٩٤)

۲ که د مالی حالت په اعتبار سره کمزورې وی

۳ دعقل په اعتبار سره کمزورې وی

بهر صورت دوی سره د مهربانۍ کولو حکم ورکړې شوې دې

**[۳۳۶۵] د مونځ گزار د وهلو ممانعت**

۳۳۶۵ - [۲۳] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهَبَ لِعَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - غُلَامًا، ۲ فَقَالَ: "لَا تَضْرِبْهُ فَإِنِّي نُهِيتُ عَنْ ضَرْبِ أَهْلِ الصَّلَاةِ، ۳ وَقَدْ رَأَيْتُهُ يُصَلِّي» ". هَذَا لَفْظُ "الْمَصَابِيحِ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو امامه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ حضرت علي ﷺ ته يو غلام ورکړي، ۲ او دا حکم يې ورکړي چې دی به (بې حکم شرعي) نه وهې، خکه چې زما د رب د طرف نه زه د مونځ گزارو د وهلو نه منع شوی يم، ۳ او ما دا غلام په مونځ کولو ليدلی دی. دا الفاظ (چې په مشکوٰة کښې مذکور دی) د مصابيح دی

۳۳۶۶ - (۲) ۱ وَفِي "الْمُجْتَبَى" لِلدَّارَقُطْنِيِّ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ ضَرْبِ الْمُصَلِّينَ».

**ترجمه:** ۱ او د دارقطني په تصنيف په مجتبٰی کښې دا منقول دی چې حضرت عمر بن خطاب ﷺ وفرمايل ۲ چې رسول الله ﷺ مونږ د مونځ گزارو د وهلو نه منع کړي يو

**تسهيلات:** **قوله:** لَاتَضْرِبْهُ:

**د مونځ کوونکی د عزت او عظمت بيان:** - يعنی دَ شرعی جوازنه بغيرهغه غلام مه وهنی خکه چه دې مونځ گذار دې. دَدې حديث نه دَ مونځ گذار عزت عظمت او دَدې شرف اوفضيلت دَالله تعالی په نيزپه نور مخلوق باندې واضح کيږی اودَ مزې خبره داده چه نبی کريم فرمائی چه زما رب زه دَ مونځ گذارو دَوهلونه منع کړې يم يعنی دَ بل چاخو هډو سوال نه پيداکيږی علامه طيبی فرمائی چه کله الله تعالی په دنياکښې مونځ گذار وهلونه منع کړې ده نودَهغه دَعظيم احسان اوکرم نه اميد دې چه دَ قيامت په ورځ به هغه مونځ گذار په عذاب کښې راګيرولوسره ذليل اورسواکوی نه

**[۳۳۶۷] د مملوك خطاګانې د معاف کولو حکم**

۳۳۶۷ - [۲۴] (۲) ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ۲ «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۳ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَمْ تَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ؟ فَسَكَتَ، ۴ ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ الْكَلَامَ، فَصَمَتَ، ۵ فَلَمَّا كَانَتِ

۱ ) اخرجه احمد فی المسند: ۲۵۸/۵

۲ ) اخرجه الدارقطنی رقم الحديث ۸ من باب التشديد فی ترک الصلوٰة

۳ ) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب فی حق المملوک (رقم - ۵۱۶۴) واحمد فی المسند: ۱۱۱/۲

الثَّالِثَةَ قَالَ: "أَعْفُوعَنْهُ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعِينَ مَرَّةً» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ وايي [۲] چې (يوه ورځ) د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې يو سړی حاضر شو، [۳] او عرض يې وکړي چې يا رسول الله ﷺ مونږ څو خله د خپل غلام، وينځې خطاوي معاف کړو؟ حضور ﷺ خاموش شو (اوهيڅ جواب يې ورنه کړي) [۴] هغه سړي بيا دا سوال وکړي، دا خل هم حضور ﷺ خاموش وو، [۵] بيا چې په دريم خل هغه سړي پوښتنه وکړه، نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې هره ورځ اويا خله. ابوداؤد،

**حل اللغات:** - ① تَعْفُو: معاف کول، ② فَسَكَتَ: خاموش شو، ③ أَعَادَ: دوباره نې کړل، ④ فَصَمَتَ: نوخاموش شو.

**تسهيلات: قوله: فَسَكَتَ:**

**د حضور اكرم صلي الله عليه وسلم د خاموش كيدو وجوهات:-**

① دَ سائل دا سوال مناسب نه وو ځکه چه معاف کول خو يوخوښ عمل دې دادَ تعدادسره دَمقيدکولوڅه ضرورت دې؟

② نبی کريم ته دَ وحی انتظار وو

③ دَدې دَپاره چه سائل او سامعين دَدې سوال جواب ښه په اهتمام سره واؤرى.

**قوله:** سَبْعِينَ مَرَّةً

**د سبعين نه مراد:** - دَ اوياؤ دا عدد په عربی کښې دَ کثرت دَپاره ډيرزيات استعماليږی. چنانچه دلته هم بالکل واضح دی چه دا عدد دَ تکثيردَپاره استعمال کړې شوې دې خاص اويا خل دَمعافئی تقييدنه دې.

۳۳۳۸ ( ) [۱] وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو.

**ترجمه:** [۲] ترمذي ﷺ دا روايت د حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ نه نقل کړی دی.

**[۳۳۳۹] د مملوك په باره كښې يو هدايت**

۳۳۳۹ - [۲۵] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ لَاءَمَكُمْ مِنْ مَمْلُوكِيكُمْ فَأَطْعِمُوهُ مِمَّا تَأْكُلُونَ، وَاكْسُوهُ مِمَّا تَكْسُونَ، [۳] وَمَنْ لَا يُلَائِمُكُمْ مِنْهُمْ فَبِيعُوهُ وَلَا تُعَذِّبُوا خَلْقَ اللهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ستاسو مملوک

۱ ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی العفو عن الخادم (رقم-۱۹٤۹)

۲ ) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب فی حق المملوک (رقم-۵۱۵۷)

ميندي، غلام) چې کومه وينځه، غلام ستاسو اطاعت او خدمت (ستاسو د خواهش مطابق) وکړي (او هغه ستاسو د مزاج موافق وي) نو په هغه، هغه خوروي څه چې تاسو خپله خورئ، او هغه ته هغه اغوندي څه چې تاسو خپله آغوندي (ځکه چې هغه ستاسو زړه خوشحاله کوي، نو تاسو هم د هغه زړه خوشحاله کړئ) ۲او کومه وينځه او غلام چې ستاسو د مزاج موافق نه وي، نو هغه (ته تکليف مه ورکوئ، بلکې هغه) خرڅ کړئ، او د الله تعالیٰ ﷻ مخلوق ته تکليف ورکول صحيح نه دي، (احمد ، ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ①لَاءَمَكُمْ ستاسو د طبيعت موافق خدمت کوي،

**تسهيلات: قوله:** لَاءَمَكُمْ:

**د لاملکم لغوي تحقيق او مطلب:** - دا دَ باب مفاعله (ملائمة، ملائمة) نه راخي دَ موافقت په معنی کښې دی دَ مزاج او خواهش مطابق اوموافق مملوك مراددي يعنی کله چه غلام ستادَ مزاج موافق اوتابعدار اوفرمانبردار وی نوهغه اوساتئی اودَهغه دَ حقوقوخيال کوئی هغوی ته مناسب خوراك او مناسب لباس ورکوئی اوکه چرې داسې نه وی نوهسې هغه په عذاب کښې مه ساتئی اومه خپل ځان پرياشان کوئی بلکه هغه خرڅ کړئی دا امور ارشاديه دی نبی کريم دَ امت رهنمائی کولوسره دا حکم ورکړې دې.

**[۳۳۷۰] د څاروؤ سره د ښه سلوك کولو حکم**

۳۳۷۰ - [۲۶] (۱) ۱وَعَنْ سَهْلِ بْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «مَرَّ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِبَعِيرٍ قَدْ لَحِقَ ظَهْرُهُ بِبَطْنِهِ، ۲فَقَالَ: " اتَّقُوا اللّٰهَ فِي هَذِهِ الْبَهَائِمِ الْمُعْجَمَةِ ". ۳فَارْكَبُوهَا صَالِحَةً وَاتْرُكُوهَا صَالِحَةً» . رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱او حضرت سهل ابن حنظليه ﷺ وايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ په يو اوښ تير شو، نو وي ليدل چې (د لوږې او تندې د شدت او د سورلې او بار بردارې د زياتوب په وجه) د هغه شا د خيټې سره لګيدلې. ۲حضور ﷺ وفرمايل چې د دې بې زبانه چارپايانو په باره کښې د الله تعالیٰ ﷻ نه ويريږئ، ۳او په دوی په هغه حالت کښې سپرتيا کوئ، کله چې قوي او د سپرتيا قابل وي، او په ښه حالت کښې يې پريږدئ، چې هغه ستړی نه وي، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ①بَعِيرٍ: اوښ ②لَحِقَ ظَهْرُهُ بِبَطْنِهِ: لږيدلې وه شا دهغه خيټې دهغه سره، يعنی د لوږې تندې دلاسه کمزورې شوې وو، ③الْبَهَائِمِ: چارپايان، ځناور ④الْمُعْجَمَةِ: بې زبانه، چه خبرې نه شي کولې، ځاروی

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد ، باب ما يؤمر به من القيام علی الدواب والبهائم (رقم-۲۵۴۸) واحمد فی المسند: ۱۶۸/۵

**تسهيلات: قوله:** اتَّقُوا اللّٰهَ فِي هٰذِهِ الْبَهَائِمِ الْمُعْجَمَةِ:

**د حديث مطلب:** - دَ حديث مطلب دادي چه دا بې زبانه ځناور خود خپلې ولګې تندې بيان نه شي کولې په دې وجه دَ هغې خيال ساتنې اوبه مقرر وخت په هغوی باندې خوراك څښاك کونې علماؤ ليکلی دی چه دَدې حديث نه معلومه شوه چه کوموخلقو ځناور او مرغنې ساتلې وی نو په هغوی باندې دَهغې اوبه دانه واجب دی

**قوله:** صَالِحَةً:

**ځاروؤ سره د ښه سلوک حکم:** - يعنی په ښه خوراك څښاك سره هغوی صحت مند ساتنې اوبياپه هغوی باندې سورې او بارونه اوړنې دَ کار اخستلونه پس چه کله دا ځناور په ښه حالت کښې وی نوهغوی دَ څرن دَپاره پريږدنې دې دَ پاره چه هغوی دَدې قابل وی چه په خپله خيټه ډکه کړې شي. اسلام دَ رحمت او شفقت مذهب دې کوم چه دَ انسانانواو غلامانونه علاوه دَ ځناوررو دَ حقوقو پوره پوره خيال ساتلې دې. کوم خلق چه په دغه قوانينوباندې عمل نه کوی نودادَهغوی خپل قصور دې دَ اسلام دَ قوانينوهيڅ قصور نشته دې

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۳۷۱] د يتيم د مال په باره کښې حکم خداوندي**

[۳۳۷۱] (۱) ①عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: لَمَّا نَزَلَ قَوْلُهُ تَعَالَى: ﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ [الفاتحة: ۱۵۲ - ۳۳۳۸۰] ، وَقَوْلُهُ تَعَالَى: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا﴾ [النساء: ۱۰] الْآيَةَ ②انْطَلَقَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ يَتِيمٌ فَعَزَلَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ مِنْ شَرَابِهِ ③فَإِذَا فَضَلَ مِنْ طَعَامِ الْيَتِيمِ وَشَرَابِهِ شَيْءٌ حُبِسَ لَهُ حَتَّى يَأْكُلَهُ أَوْ يَفْسُدَ،

**ترجمه:** ①حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې کله د الله تعالىٰ ﷻ دا ارشاد نازل سوچي، د يتيم مال ته مه ورځئ. خو د هغه عادت سره چې په نيکۍ مبني وي ،يعني د آمانت او ديانت سره په نيکۍ مبني وي، او بلا شبه کوم خلق چې د يتيمانو مال په ظلم ،او بلا استحقاق، خوري. هغه په اصل کښې خپل نسونه ،خيټې، د اور نه ډکوي، ②نو د کومو خلقو سره چې ،يعني د هغوئ په نګرانۍ او پرورش کې، يتيمان وو . هغوئ سخت احتياط کول شروع کړي. او د هغوئ د خوراک او څښاک سامان يې د خپل خوراک څښاک د سامان نه جدا کړل. ③ددې پورې چې د هغه يتيمانو د خوراک څښاک نه به څه پاتې شو، هغه به يې کېښودل. چې هغه يتيمانو به په دويم وخت کښې خوړل څکل. يا به خراب شو،

۱ ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصيد/باب مخالطة اليتيم فی الطعام (رقم-۲۸۷۱) والنسائی فی کتاب الوصايا/باب ما للوصی من مال اليتيم إذا قام عليه (رقم-۳۶۷۰)

[١]فَاشْتَدَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ، [٢]فَذَكَرُوا ذٰلِكَ لِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى: ﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَى قُلْ إِصْلَاحٌ لَهُمْ خَيْرٌ وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ﴾ [البقرة: ٢٢٠] [٣]فَخَلَطُوا طَعَامَهُمْ بِطَعَامِهِمْ، وَشَرَابَهُمْ بِشَرَابِهِمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١]دا خبره په هغه نګرانانو ډیره سخته شوه، [٢]هغوئ رسول الله ﷺ ته د دې ذکر وکړې، نو الله تعالى ﷻ دا آیت نازل کړې، او کوم خلق چې ستا نه د یتیمانو و ړ و د حکم پوښتنه کوی، نو ورته اووئیلو چې د هغوئ د مصلحت رعایت کول زیات بهتر دی، او که تاسو د هغوئ سره خرچ شامل کړی، نو هغه ماشومان ستاسې (دیني) ورونه دي، [٣]نو د دې آیت د نازلیدو نه وروسته هغه نګرانانو د یتیمانو خوراک څښاک په خپل خوراک څښاک کښې شامل کړل، (ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:**- ①انْطَلَقَ: په جلتئ سره لاړل، ②فَعَزَلَ: نو جدا ئې کړل ③حُبِسَ لَهُ: ساتلې به شوه دهغه دپاره، ④فَاشْتَدَّ:نوګرانه شوه، سخته شوه. ⑤فَخَلَطُوا: نو شامل کړو هغوی. یو ځائ ئې کړو.

**تسهيلات:**

**قوله: لَمَّا نَزَلَ قَوْلُهُ تَعَالَى:**

**د مذکوره آیت د نزول الر:**- دَ اسلام په شروع کښې دَ یتیمانانو دَ مالونو باره کښې رومبې آیت نازل شو نو دَهغوی پالنه کونکی ډیر اوویریدل هغه آیت په مکمل توګه داسې دې ﴿اِنَّ الَّذِیْنَ یَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْیَتٰمٰى ظُلْمًا اِنَّمَا یَاْكُلُوْنَ فِیْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا ؕ وَسَیَصْلَوْنَ سَعِیْرًا۠﴾ [سورة النساء ١٠.]

① دَدې وعیدنه خلقو دَ یتیمانانو خوراك ځان له پخول شروع کړه په دې سره یوطرف ته دَ یتیمانانو دا نقصان وو چه خوراك به کم یا زیات شوخرابیدلوبه.

② بل طرف ته به پالونکوته ډیر تکلیف پیدا کیدلوچه دَهغوی خوراکونه به نی ځان له په ځان له پخول او جدا به نی کیخودل

**دآسانتیا راتلل:**- په دې وجه الله تعالى آسانی پیدا کړه اوروستودا آیت نازل شو ﴿وَیَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْیَتٰمٰى ؕ قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَیْرٌ ؕ وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ ؕ وَاللّٰهُ یَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ ؕ﴾ [بقرة ٢٢٠.]

مطلب دا دې چه الله تعالى دَ یتیمانو بدغوښتونکی اوخیرغوښتونکی ښه پیژنی لهذا دَ یتیمانومالونه خپلو مالونو سره یوځائی خوکړئی لیکن دَ یتیمانوهمدردی اوخیرخواهی په هرصورت کښې لازم ده خپل نیتونه مه خرابه وئی اودَ خپلو اعمالو نقصان مه کوئی اود دهوکې او فریب نه په هرحال کښې ځان ساتئی وراندې به الله تعالى مهربانی اوفرمائی

**[۳۳۷۲] په پلار، او زامنو يا دوو ورونو کښي جدايي مه راوله**

[۲۸] (۱) ①وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ②: لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الْوَالِدِ وَوَلَدِهِ، ③وَبَيْنَ الْأَخِ وَبَيْنَ أَخِيهِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوموسی رضی الله عنه وايي ②چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه سړي لعنت فرمايلی دی، چي د پلار او د هغه د زوی په منځ کښي، ③او د دوو ورونو په مينځ کښي جدايي راولي، (ابن ماجه، دارقطني)

**تسهيلات: قوله: مَنْ فَرَّقَ:**

**د تفريق نه مراد:-** دَدې تفريق اوجدائی نه مراد هغه جدائی هم کيدي شی چه دَنابالغ بچی اودَهغه دَ مشر ذی رحم محرم په مينځ کښي دَ يوپه خرڅولواودَ بل په پاتي کيدوسره پيدا کيږی. دَ کوم تفصيل چه دَحضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه حديث نمبر(۳۳۶۶) کښي تيرشوي دي.

**د جدائی مفهوم:-** دلته په دې حديث کښي دَ جدائی دا مفهوم هم اخستلي شی چه يوسړي چغلی غيبت اوفساد شرارت اونفاق سره دَ دوو رونړو په مينځ کښي يا دَ پلار اوخامنو په مينځ کښي تفرقه پيدا کوی نوهغه ملعون دي.

**[۳۳۷۳] د قيديا نو يوکس ته حواله کول**

[۲۹] (۲) ①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أُتِيَ بِالسَّبْيِ②أَعْطَى أَهْلَ الْبَيْتِ جَمِيعًا، ③كَرَاهِيَةَ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَهُمْ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ①او حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه وايي کله چي به په يوي غزا وغيره کښي قيديان راوستل شو ، ②نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم به په مونږ کښي يو سړی ته حواله کول (يعني په قيديانو کښي د يو کور چي به څومره افراد وو، هغه ټول به حضور صلی الله علیه وسلم په مونږ کښي يو سړي ته حوال کول) ③ځکه چي د هغوئ په منځ کښي جدايي را وستل حضور صلی الله علیه وسلم نه خوښوله، (ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا أُتِيَ بِالسَّبْيِ أَعْطَى أَهْلَ الْبَيْتِ جَمِيعًا:**

**دحديث د بعضي جملو وضاحت:-** ① أُتِيَ بِالسَّبْيِ : دسين فتحي سره او د باء په سکون سره (أي الأسارى) يعنی دوئ ته قيديان راوستلي شو.

۱) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب التجارات/ باب النهي عن التفريق بين السبي (رقم-۲۲۵۰)
۲) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب التجارات/ باب النهي عن التفريق بين السبي (رقم-۲۲۴۸)

۲ أَعْطِي أَهْلَ الْبَيْتِ مطلب دا دي چې نبي كريم ﷺ به د يو كور ټول قيديان يو مسلمان ته حواله كړل چې په دوئ كښې جدائي رانشي واضحه دې وي چې د يو كور په ورو قيديانو كښې تفريق درست نه دې البته د يو كور بالغ قيديانو كښې تفريق درست دې

**[۳۳۷۳] خراب خلق څوک دي؟**

| ۳۳۷۳-[۳۰] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ " «أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِشِرَارِكُمْ ۳ الَّذِي يَأْكُلُ وَحْدَهُ، وَيَجْلِدُ عَبْدَهُ، وَيَمْنَعُ رِفْدَهُ» ". رَوَاهُ رَزِينٌ. |
|---|

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ) نبي كريم ﷺ وفرمايل ۲ ايا زه تاسو ته دا ونه ښايم، چې په تاسو كښې خراب خلق څوک دي؟ ۳ نو واوري، چې خراب سړى هغه دي چې طعام تنها خوري، خپل غلام په ناحقه وهي، او چا ته په خپل بخشش او عطا سره فائده نه رسوي، (رزين)

**حل اللغات:** - ۱ بِشِرَارِكُمْ: تاسو كښې زيات خراب خلق، ناكاره خلق، ۲ يَجْلِدُ: وهي، ۳ رِفْدَهُ: خپله وركړه، بخشش،

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِشِرَارِكُمْ:

**د ټولو نه خراب خلق:** - دَدې نه پس نبي كريم دَ چادَ جواب انتظار اونه كړو وئې فرمائيل بلكه پخپله ئې درې قسم خلق په خرابو خلقو كښې اوشميرل.

**قوله:** الَّذِي يَأْكُلُ وَحْدَهُ:

**دتكبر په وجه ځانله خوراك كول:** - ۱ يعني يو هغه قسم خلق دی چه دَ ډير تكبر او ډير زيات حرص اولالچ دَ وجې نه ځان له كينې خوراك كوي.

۲ **قوله:** وَيَجْلِدُ عَبْدَهُ:

**په ماتحتو باندې ظلم كول:** - جلد كوړې وهلو ته وائي مراد ترې غلام وهل دی شرعي كوړې لګول مراد نه دی. په دې كښې دَهغه سړی دَ بداخلاقئ طرف ته اشاره ده چه دَ يو شرعي جواز نه بغير ناحق غلام وهي. خودا معنی عام ده صرف غلام پورې خاص نه ده بلكه كوم افسر اود اداري مشر چې په ماتحتو كسانو باندې ظلم كوي هغوی هم په دې كښې داخل دی.

۳ **قوله:** وَيَمْنَعُ رِفْدَهُ:

**كنجوسي:** - رفد يرفد ضرب يضرب نه مصدر دې په راء باندې كسره ده عطيه كول اودَ چا عطيه زياتولو ته وائي. مطلب دا دې چه دَ يو مستحق اوصاحب حق نه خپله عطيه بندول اودَ خپلې وركړې اوبخشش نه چاله فائده نه وركول كنجوسي اوبخل دې.

۱) رواه رزين

دَ پوره حدیث خلاصه داده چه په خلقو کښې دیر خراب سړي هغه دې په چاکښې چه بخل خپل کور جوړ کړې وی اوبد اخلاقو هم هغه راګیر کړې وی
**تفصیلی حدیث:** - په جامع صغیر کښې دَ ابن عساکر په حواله سره داشان روایت دَحضرت معاذ ﷺ نه نقل دې په کوم کښې چه څه تفصیل هم شته او په ترغیب اوترهیب کښې حافظ منذری داسې روایت دَ حضرت ابن عباس ﷺ نه نقل کړې دې په هغې کښې نور هم زیاتوالې دې دَ دغه ټولو خلاصه اومفهوم داسې دې چه نبی کریم حضرت معاذ ﷺ ته اوفرمائیل تاسو ته په خلقو کښې خراب سړې اونه ښایم؟ بیانبی کریم اوفرمائیل
① څوك چه خان له خوراك کوی
② چه خان له سفر کوی
③ خپله عطیه بنده وی
④ خپل غلام وهی. آیا دَدې نه درته خراب سړې اونه ښایم
⑤ څوك چه خلقو سره بغض ساتی اوخلق ده سره بغض ساتی. آیا دَدې نه درته خراب سړې اونه ښایم؟
⑥ چه خپل آخرت دَبل دَ دنیا دَ وجې نه خرڅ کړی آیا دَدې نه درته خراب سړې اوښایم"
⑦ چه دَ دین په خرڅولو سره دنیاګټی. دَحضرت ابن عباس ﷺ په روایت کښې داسې راغلی دی چه زه تاسو ته ستاسو خراب سړې اونه ښایم؟ صحابه کرامو عرض اوکړو یارسول الله ﷺ اوښایه. نبی کریم اوفرمائیل ستاسو خراب سړې هغه دې چه خان له سفر کوی خپله عطیه بنده وی اوخپل غلام وهی. آیا زه تاسو ته دَدې نه هم خراب سړې نه اوښایم؟ صحابه کرامو عرض اوکړو یارسول الله! اوښایه نبی کریم اوفرمائیل
⑧ کوم خلق چه دَ بل خطاګانې نه معاف کوی
⑨ دَ بل معذرت اومعافی نه قبله وی
⑩ دَ نورو ګناه اوغلطیانې نه معاف کوی آیا زه تاسو ته دَدې نه هم زیات خراب سړې اونه ښایم؟ صحابه کرامو اووئیل یارسول الله! اوښایه نبی کریم اوفرمائیل
⑪ دَ چا دَ ښیګړې چه څه امید نه شی کیدلې اودَچادَ شر نه چه خلق په امن کښې نه وی.

**[۳۲۵۴] وینځې او غلامان د خپل اولاد او ورونو په شان ساته**

۳۲۵۴-[۳۱] (۱) ① وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "② «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ سَيِّئُ الْمَلَكَةِ ③ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ أَلَيْسَ أَخْبَرْتَنَا أَنَّ هٰذِهِ الْأُمَّةَ أَكْثَرُ الْأُمَمِ مَمْلُوكِينَ وَيَتَامَى

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوبکر صدیق ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]د خپل غلام، وینځې سره بدې کونکي به په جنت کښې نه داخلیږي (د دې آوریدو سره، [۳]صحابه وو ﷺ عرض اوکړو چې یا رسول الله! ﷺ آیا تا ﷺ مونږ ته دا نه دی ښودلې، چې ستا ﷺ أمت به، غلام، وینځې او د یتیمانو د اعتبار نه د مخکښو تولو اُمتونو نه زیات وي (یعني د حضور ﷺ په اُمت کښې به غلامان، وینځې او یتیمان ډیر وي، نو آیا دومره د کثرت په حالت کښې د تولو سره د خوش خلقې سلوک کول به ممکن وي؟)

**حل اللغات** - ①سَيِّءُ الْمَلَكَةِ: بد اخلاقه.

[۱]قَالَ: نَعَمْ فَأَكْرِمُوهُمْ كَكَرَامَةِ أَوْلَادِكُمْ وَأَطْعِمُوهُمْ مِمَّا تَأْكُلُونَ[۲]قَالُوا: فَمَا يَنْفَعُنَا[۳]قَالَ: "فَرَسٌ تَرْتَبِطُهُ، تُقَاتِلُ عَلَيْهِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ[۴]" وَمَمْلُوكٌ يَكْفِيكَ فَإِذَا صَلَّى فَهُوَ أَخُوكَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱]حضور ﷺ وفرمایل چې هو (زما په امت کښې به وینځې او غلامان ډیر وي، او دومره د کثرت په حالت کښې د تولو سره د خوش خلقې سلوک کول به ډیر مشکل وي، لیکن که تاسو په جنت کښې داخلیدل غواړې، نو تاسو د هغوئ سره داسې احسان کوي، چې د هغوئ سره ستاسو د بد خلقې بدله شي، او هغه احسان دا دی چې) تاسو هغه د خان په شان عزتمند ساتی (یعني د هغوئ سره داسې نرمي او رحم کوي، چې په هغوئ د داسې کار بوج مه آچوی، کوم چې د هغوئ د طاقت نه وتلی وي، او په هغوئ ظلم او زیاتوب مه کوئ) او په هغوئ هغه خوري څه چې خپله خوري، [۲]صحابه وو ﷺ عرض اوکړو چې یا رسول الله! ﷺ مونږ ته په دنیاکې د نفع رسولو شی کوم یو دی؟ [۳]حضور ﷺ وفرمایل چې یوآس چې د الله ﷻ په لار کښې د جهاد د پاره تړلی ساتې، [۴]او یو غلام چې ستاسو کفایت کوي (یعني هغه ستاسو دنیاوي امور سر ته رسوي، چې تاسو د فارغیدو سره د آخرت امور سر ته ورسول شي) او که ستاسو غلام مونځ کوي، نو هغه ستاسو ورور دی (نو د هغه سره د ورور په شان شلوک کوی) ابن ماجه

**حل اللغات** - ②فَرَسٌ: اس③تَرْتَبِطُهُ: چه تړلې ئې ساتی

**تسهیلات:**

**قوله:** أَكْثَرُ الْأُمَمِ مَمْلُوكِينَ:

**د مذکوره جملې وضاحت:** - مطلب دا چه په دې امت کښې به دَ جهاد عمل ډیرزیات وی دَ کوم په نتیجه کښې چه به کافران ډیرزیات په قید کښې راځی نوغلامان به ډیرزیات وی اودَ جهاد په معرکه کښې به مسلمانان ډیر شهیدان کیږی نویتیمانان بچی به ډیرزیات وی سوال داکړې شوې دې چه کله دومره زیات غلامانان اویتیمانان وی نوهغوی سره به ښه سلوک اوښه طریقه څنګه کولې شی؟ نبی کریم اوفرمائیل ګرانه خوبه وی لیکن دَ جنت تللودَ پاره دا ضروری دی چه دغه غلامان دَخپل اولاد په شان اوپاللې شی اودَهغوی اکرام

او کړې شی په دې سره به د غلامانو په حق کښې د کوتاهئی اوبد اخلاقئی کفاره اداشی

**قوله: قَالُوا: فَمَا يَنْفَعُنَا:**

**د کټې حنیلوی څیز:** - بیا صحابه کرامو پوښتنه اوکړه په دنیاکښې ګټه ورکونکې څیزکوم یودې؟ ونی فرمائیل د جهاد اس اود خدمت دپاره یوغلام ګټه ورکونکی څیزونه دی اوکه چرې هغه غلام مونځ کوی نوبیا هغه ستاسو رور دې یاد رور په شان دې په دې وجه اوس هغه سره د رونړو په شان ښه سلوک کوئی

## [۱۶]بَابُ بُلُوغِ الصَّغِيرِوَحَضَانَتِهِ فِي الصِّغَرِ

**د ماشوما نوپالنه اود بلوغ بیان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① مدة البلوغ بالسن: ۱-

② صاحبة الحضانة: ۲، ۳، ۴، ۵، ۶-

③ التخير في الحضانة : ۴، ۵، ۶-

**د قرآن څخه د بلوغ د حکم اعتبار:** - ﴿وَإِذَا بَلَغَ الْأَطْفَالُ مِنكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوا كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ [سورة نور ۵۹.]

**دحضانت مفهوم:** - حضن يحضن حضناوحضانةدباب نصرنه د حاء کسره سره دي د مورخپل بچي د پالنې په غرض په ترخ کښې اخستل اودچرګې دخپلو بچو اوهګئی د وزرو لاندې ساتلو او پټولو ته حضانة وائی بیا دا لفظ د تربیت دپاره هم استعمالیدو چنانچه حاضنه هغه ښځې ته وائیلې شی چه دخپل بچی پالنه اوتربیت کوی اودلته حضانة د تربیت هم دغه عمل نوم دې په دې باب کښې به داهم بیانولې شی چه د بچی د تربیت اوپالنې حق چاته حاصل دې اود تربیت موده د هلك اود جینئی دپاره څه مقرر ده. واخلئی ددې باب په رومبی حدیث کښې تفصیل اوګورئی

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۳۳۷۲] د بلوغ عمرپنځلس کاله دې**

۳۳۷۲-[۱] (۱) عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: عُرِضْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَامَ

۱) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۲۶۶٤، ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۹۱/ ۱۸٦۸ والترمذي في كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في حد بلوغ الرجل والمرأة (رقم-۱۳۶۱) وابن ما جه في كتاب الحدود باب من لا يجب عليه الحد (رقم-۲۵٤۳)

أُحُدٍ [۲] وَأَنَا ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ سَنَةً، فَرَدَّنِي، [۳] ثُمَّ عُرِضْتُ عَلَيْهِ عَامَ الْخَنْدَقِ وَأَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً، [۴] فَأَجَازَنِي، فَقَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ: هٰذَا فَرْقٌ مَا بَيْنَ الْمُقَاتِلَةِ وَالذُّرِّيَّةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر ﷠ وايي چې په سنه ه ۳ کښې د غزوهٔ احد په موقع (په جهاد کښې د تلو د پاره) زه د رسول الله ﷺ په مخکې پيش کړی شوم، [۲] کله چې زما عمر څوارلس کاله وو، خو حضور ﷺ زه واپس واستولم (يعني په جهاد کښې د شرکت د پاره يې زه نه بوتلم) [۳] بيا د غزوهٔ خندق په موقع هر کله چې زما عمر پنځلس کاله وو، زه د حضور ﷺ په مخکې پيش کړی شوم، [۴] نو حضور ﷺ ما ته (په جهاد کښې د تلو د پاره) اجازت راکړې (ځکه چې د بالغ کيدو عمر پنځلس کاله دی) حضرت عمر بن عبدالعزيز ﷫ فرمايي چې دا عمر د جنګيدونکو او هلکانو په منځ کښې فرق کونکې دی، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① عُرِضْتُ: پيش کړی شوم، ② فَرَدَّنِي: خو زه ئې واپس کړم، ③ الْمُقَاتِلَةِ: جنګيدونکی، جنګيالی، ④ الذُّرِّيَّةِ: ماشومان، هلکان،

**تسهيلات:**

**قوله:** ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً:

**د جينئ او هلک د عدم بلوغ په عمر باندې اتفاق:** - دا خبره خو فيصله شوې ده چه جينئ دَ نهو کالونه مخکښې نه شي بالغ کيدې او هلک دَ ۱۲ کالونه مخکښې دَ طبعي نظام لاندې بالغ کيدې نه شي اودَ غير طبعي نظام اعتبار نشته لکه چه دَ يورپ ګنده هګني دَ دغه مقرر وخت نه مخکښې په وجه دَ فحاشئ بالغ کيږي.

**د ماشومانو د بلوغت قسمونه:** - دَ ماشومانو بلوغت په دوه قسمه باندې دي.

① بلوغت بالعلامات ② بلوغت بالسنين.

**د هلک د بلوغت درې نښې:** - دَ هلک دَ بالغ کيدو درې علامتونه دی. ① احتلام ورته اوشي. ② چې انزال ئې اوشي ③ په هغه کښې دَ احبال صلاحيت راشي يعنی دَ يوښځې حامله جوړولو صلاحيت په هغه کښې وی.

**د جينئ د بلوغت درې [illegible]:** - دَ جينئ دَ بالغ کيدو هم درې علامتونه دی. ① دَ هغې ماهواری شروع شي ② هغې ته احتلام اوشي ③ په هغې کښې دَ حمل دَ حصاريدو صلاحيت پيدا شي. تر دې پورې په دې مسائلو کښې دَ فقهاء کرام څه اختلاف نشته دې.

**د زيرنات ويختو په علامت بلوغ کيدو کښې مذاهب:** -

دَ دې نه علاوه يو بل علامت دې کوم ته چه "إِنْبَاتِ شَعْرٍ" يعنی دَ نامه لاندې ويښته کيدلو ته وائی. په دې کښې دَ فقهاؤ معمولی شان اختلاف دې

① دَ جمهورو په نیزدَنامه لاندې ویښته راختل دَ بلوغت نښه ده

② دَ احنافو په نیزدا علامت دَبلوغت نښه نه ده دَ ویښتونه مراد دَ نامه نه لاندې دَ سختو ویښتو راتلل دی صرف پشم او مره ویښته مراد نه دی.

**داول فریق دلیل:** - دَ بنوقریظه دَ هغه قیدیانومتعلق دَنبی کریم اوصحابه کرامو هغه فیصله د دوی مستدل ده په کومه کښې چې دغه قیدیانوته به کتلې شو چه څوك بالغ اوڅوك نابالغ دې که دَ چابه دَ نامه لاندې ویښته وو نوهغه به په بالغانو کښې شمیرلې کیدل هغه به قتل کولې شو اودَ چاچه به زیر ناف ویښته نه وو هغه به ئې نابالغ ګڼرلوسره پریخودلو او غلام به جوړولې شو.

**د دلیل جواب:** - دَ نامه لاندې ویښته دَ بلوغت علامت هغه وخت ګرځولې شی چه دَ بلوغت نور علامات مثلاً احبال انزال او احتلام نه وی اودَ عمر اندازه هم نه وی نوداکیدې شی چه دَ یووختی ضرورت لاندې دې چه عموماً دَنامه لاندې ویښته راتوکیدو په وخت هلك بالغ کیږی معامله چونکه دَ قتل کولو یا نه قتل کولو وه په دې وجه دَ احتیاط په توګه داسې کړې وې وو داڅه عام ضابطه او قاعده نه وه.

**په بلوغت بالسنین کښې مذاهب:** -

که دَ بلوغت څه علامت په هلك اوجینئی کښې ښکاره نه شی نوبیابه دَ دواړو بلوغت په کالونوسره معتبروی کوم ته چه بلوغ بالعمروائی.

① د جمهورو او دَ صاحبین مسلک دا دې چې کله هلك اوجینئی دَ پنځلسوکالوشی نودواړه به بالغ ګڼرلې شی داحکمابلوغ دې که هیڅ یوعلامت ئې هم موجودنه وی.

② داؤد ظاهری وائی چه ترکومې پورې دَ بلوغت علامات نه څه علامت ښکاره نه شی ترهغه وخته پورې بلوغت نه ثابتیږی دَ ده په نیزدَ بلوغ دَپاره دَ عمر څه حدبندی نشته دې دَامام مالك رحمه الله قول هم دغه شان دې

③ دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز چه کله هلك دَ ۱۸ کالوشی اوجینئی دَ ۱۷کالوشی نودا دواړه به بالغ شمیرلې کیږی

**د اول فریق دلیل:** - زیر بحث حدیث د دوی واضح مستدل دې اوکه چرې قریب البلوغ مراهق اقرار اوکړه چه زه بالغ شوې یم نودَ هغه قول به معتبر وی اودَ قاضی په عدالت کښې به فیصله هم دَدې مطابق کیږی "هذافرق" یعنی دَ ۱۵کالوعمردَ جنګیدو عمردې اودَدې نه کم مثلاً څوارلس کاله عمر دَ وړوکوالی عمر دې په کوم کښې چه به دَ جنګ میدان ته ماشوم نه شی لیګلې حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله هم دغه خبره فرمائیلې چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه کوم وخت دَ څوارلسوکالووو نو په جنګ احد کښې هغه ته نبی کریم ﷺ دَ جنګ اجازت ورنه کړو او په جنګ خندق کښې چه هغه دَ پنځلسو کالوشو نوورته د

جنګیدو اجازت ملاو شو هم دغه فرق دې دَ جنګیدلو قابل نوې خلمې شوی خوان اونه جنګیدونکې ماشوم په مینځ کښې

① **نوټ**:- امام ابوحنیفه رحمه الله د جمهورو مذهب ته رجوع کړې ده ددې وجې د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل ذکر کولو ته څه ضرورت پاتې نشو

② **نوټ**:- که په دفاعی جهاد کښې کم عمر هلك دَ مسلمانانوجماعت زیات خودلو په غرض سره تلل غواړی نوهغه نه شی بندولې

**[۳۳۷۷] دَ تنازعه په صورت کښې دَبچی دَ پالنې حق چاته حاصل دې؟**

۳۳۷۷—[۲] (۱) [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «صَالَحَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ: [۲] عَلَى أَنَّ مَنْ أَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ رَدَّهُ إِلَيْهِمْ، وَمَنْ أَتَاهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ لَمْ يَرُدُّوهُ، [۳] وَعَلَى أَنْ يَدْخُلَهَا مِنْ قَابِلٍ وَيُقِيمَ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، [۴] فَلَمَّا دَخَلَهَا وَمَضَى الْأَجَلُ خَرَجَ،

**ترجمه**: [۱] و حضرت برا ابن عازب ﷺ وایي چې نبی کریم ﷺ د حدیبیه په ورځ (د مکي د کفارو سره) په دري خبرو صلح کړی وه، [۲] یو خو دا چې د مشرکانو نه کوم سړی حضور ﷺ ته راشي، حضور ﷺ به هغه استوی، دویم دا چې په مسلمانانو کښې کوم سړی مشرکانو ته ولاړ شي، مشرکان به هغه نه استه وي، [۳] او دریم دا چې حضور ﷺ به آئینده کال (د مدینې نه) مکي ته تشریف راوړي، او خپله قضاء عمره به کوي، او (د ارکانِ عمره د ادائیګی او استراحت د پاره به) په مکه کښې یواځې دري ورځې قیام فرمایي. [۴] نو (آئینده کال) هر کله چې حضور ﷺ مکي ته تشریف راوړي، او مقرره موده پوره شوه (یعنې دري ورځې تیرې شوې) او حضور ﷺ د مکي نه د تللو اراده وکړه،

**حل اللغات**:- ① مِنْ قَابِلٍ: آئنده. راروان کال. ② مَضَى: پوره شوه، تیره شوه. ③ الْأَجَلُ: مقرره نیټه.

[۱] فَتَبِعَتْهُ ابْنَةُ حَمْزَةَ تُنَادِي: يَا عَمِّ! يَا عَمِّ! [۲] فَتَنَاوَلَهَا عَلِيٌّ، فَأَخَذَ بِيَدِهَا، [۳] فَاخْتَصَمَ فِيهَا عَلِيٌّ وَزَيْدٌ وَجَعْفَرٌ. [۴] قَالَ عَلِيٌّ: أَنَا أَخَذْتُهَا وَهِيَ بِنْتُ عَمِّي. [۵] وَقَالَ جَعْفَرٌ: بِنْتُ عَمِّي وَخَالَتُهَا تَحْتِي.

**ترجمه**: [۱] نو د حضرت حمزه ﷺ لور د اي زما اکا (تره) ویلو سره په حضور ﷺ پسي وروسته ولګیده. [۲] حضرت علي ﷺ د هغه د نیولو (یعنې د ځان د ملګري کولو) اراده وکړه، او د هغه لاس یې ونیولی (یعنې د ځان سره یې ملګري کړه) [۳] د دې نه وروسته د حضرت حمزه ﷺ د هغې لور د پرورش په باره کښې د حضرت علي ﷺ حضرت زید ﷺ او حضرت جعفر ﷺ په منځ کښې تنازعه پیدا شوه، [۴] حضرت علي ﷺ خو دا ونیل چې مخکې ما دا وروکی واخستې ده، او دا زما د اکا (تره) لور ده (ځکه د دې د

۱ ) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۲۷۰۰. ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۹۰/ ۱۷۸۳ والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی بر الخالة (رقم-۱۹۰٤)

پرورش د تولو نه زيات حقدار زه يم، ⑤ او حضرت جعفر رضي الله عنه دا ونيل چې دا زما د اکا (تره) لور ده، او د دې خاله (د مور خور) زما په نکاح کښې ده (ځکه د دې د پرورش د تولو نه زيات حق زما دی)

**حل اللغات**: ④ لِتَنَاوَلَهَا: نو ونې نيوله، خان سره ئې کړه، ⑤ فَاخْتَصَمَ: نو جهګړه پیدا شوه،

> ① وَقَالَ زَيْدٌ: بِنْتُ أَخِي فَقَضَى بِهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِخَالَتِهَا، ② وَقَالَ: "الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ". ③ قَالَ لِعَلِيٍّ: "أَنْتَ مِنِّي وَأَنَا مِنْكَ". ④ وَقَالَ لِجَعْفَرٍ: "أَشْبَهْتَ خَلْقِي وَخُلُقِي". ⑤ وَقَالَ لِزَيْدٍ: "أَنْتَ أَخُونَا وَمَوْلَانَا". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت زيد رضي الله عنه دا ونيل چې دا زما وريره ده (ځکه د دې د پرورش د تولو نه زيات حق زما دی) نبی کريم صلى الله عليه وسلم (د دې تنازعې فيصله داسې وکړه چې) هغه يې د هغې خاله (ترور) ته حواله کړه (چې د حضرت جعفر رضي الله عنه په نکاح کښې وه) ② او وې فرمايل چې خاله (د مور خور) د مور برابر ده، ③ بيا حضور صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل چې زه ستا نه يم او ته زما نه يې (يعني په مونږ دواړو کښې کمالِ اخلاص او يو رنګی ده) ④ او حضرت جعفر رضي الله عنه ته يې وفرمايل چې ته زما په صورت او سيرت کې زما سره مشابه يې، ⑤ وحضرت زيد رضي الله عنه ته يې وفرمايل چې ته زمونږ ورور اوزمونږ محب يې، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: ⑥ أَشْبَهْتَ: ته مشابه ئې، ⑦ وَمَوْلَانَا: محبوب، چاسره چې مينه کولې شی

**تسهيلات**:

**قوله**: فَقَضَى بِهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِخَالَتِهَا:

**د ماشوم د پالنې (پرورش) استحقاق**: - ① دَ وړوکی بچی دَ پالنې حق دَتولونه مخکښې دَهغه مورته دې که هغې ته طلاق شوې وی اوکه نه. که موردَ طلاق ملاويدلونه پس دَ بچی دَ پالنې نه انکاراوکړی نوصحيح دا ده چه هغه به مجبوره کولې نه شی اوکه دَخپلې مورنه علاوه دَ پالنې دَپاره څوک هم نه وی نودَبچی دَ خان بچ کولودَپاره به بيا مور په پيښوورکولو باندې مجبوره کولې شی

② که چرې دَ مورنه دَ پالنې حق ساقط شو يا مور موجود نه وه بلکه مړه شوې ده نودَ پالنې حق دَ مورطرف ته په نياګانو باندې دې که فرض کړه دغه نيا نه وی نودَ پلار طرف نه نيا ته داحق حاصل دې

③ که چرې دغه نيانی هم نه وی نودَ بچی دَ پالنې حق به دَ هغه حقيقی خور ته حاصل شی دې نه پس به بيا ميرنې خورته حاصليږی

④ که چرې په دوی کښې څوک نه وی يادَ پالنې اهل نه وی نوبيا دَ تولو نه زياته مستحق دَمور خور (ترور)

⑤ اودې نه پس دَ پلار خور (ترور) که چرې په مورپلار کښې یو مسلمان دې او دویم غیرمسلم دې نودَ پالنې حق مسلمان ته حاصل دې

**دَ مورنه دَ پالنې دَ حق دَ ساقط کیدو صورتونه:-** ① اوکه چرې مورنۍ مرتد شوې وه نودَ بچی دَ پالنې حق به دَ هغې نه ساقط شی

② که چرې مورنۍ بدکاره اوبدکرداره وی نوهغه به هم دَ پالنې دَحق نه محرومه کولې شی

③ که چرې مورنۍ دَ بچی دَ پالنې په وخت کښې نکاح اوکړه نواوس به کتلې شی چه که چرې هغې دَ بچی محارم او صله والوکښې نکاح کړې ده نودَ پالنې حق به نه ساقط کیږی خو که چرې هغې په اجانبو کښې نکاح اوکړه نوهغه به دَ پالنې دَحق نه محروم شی

**دَ حق حضانت دَپاره دَ حریت لزوم:-** دَ پالنې چه دکومومستحق عزیزانو او خپلوانو ذکر شوې دې دَدې تولو دَپاره آزاد کیدل ضروری دی لهذا وینځې یا ام ولده ته دَ پالنې حق حاصل نه دې البته که چرې مورنۍ ذمیه ده نوهغې ته دَ پالنې حق حاصل دې په دې شرط چه ماشوم دَ پوهې حد ته نه وی رسیدلې

**دَ پالنې موده:-** دَ پالنې حد اووه کاله یا نهه کاله مقرردې او صاحب قدوری رحمه الله لیکلی دی چه کله ماشوم خان له دَ خوراك څښاك انتظام کولې شی پخپله دَ اودس اوکپړو بدلولو اهل شی نودَ هغه دَ پالنې حق ختمیږی. اوس پلار دا ماشوم په زوربانډې په خپل تحویل کښې اخستې شی اوکه چرې جینئی وی نودَهغې دَ حیض راتلو او دَ شهوت قابل کیدو پورې دَ پالنې حق مور اونیا ته حاصل دې. زیر بحث حدیث کښې رسول الله ﷺ دَمورخوریعنی ترور دَ مور په ځائې فرمائیلوسره حق حضانه هغې ته ورکړې دې

**قوله:** يَاعَمِّ! يَاعَمِّ!:

**نبي کریم ﷺ ته دَ تره په نوم دَ آواز کولو وجه:-** نبی کریم چونکه دَحضرت حمزه رضي الله عنه رضاعی رور هم وو په دې وجه دَ حضرت حمزه رضي الله عنه لور نبی کریم ته دَ تره په نوم بانډې آواز اوکړو حدیبیه دَمکې نه ۱۵ میله فاصله بانډې دَ جدہ طرف ته واقع ده دَ صلح حدیبیه واقعه په ۶ھ کښې پیښه شوې وه کافرانونبي کریم دَ عمره کولونه منع کړو راتلونکی کال دَعمرة القضاء په موقع بانډې دَحضرت حمزه رضي الله عنه لورملاؤ شوې وه

**قوله:** بِنْتُ أَخِي:

**دَ حضرت زید او حضرت حمزه دَ وررولۍ وجه:-** دَ حضرت زید رضي الله عنه بن حارثه رضي الله عنه اوحضرت حمزه رضي الله عنه په مینځ کښې نبی کریم مواخاة قائم کړې وو په دې وجه حضرت حمزه رضي الله عنه دَ حضرت زید رضي الله عنه رور اوګرځیدو نوهغوی په خپل استحقاق پالنه کښې اووئیل دازما وریره ده نبی کریم دَ دریواړودَ تسلئی دَ پاره دَ اعزاز او خصوصی امتیاز کلمات ارشاد اوفرمائیل مګر حق حضانه ئی حضرت جعفر رضي الله عنه ته ورکړو

ملاعلی قاری ﷫ لیکلی دی چه حضرت زید بن حارثه ﷛ په خپله باره کښې دا کلمات واؤریده نو دَ خوشحالئی نه ئې په تاوید وسره ټوپونه اووهل "اخونا" دې نه هم هغه مواخات او رورولی مراد ده او "مولانا" نه مراد محبوب دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳۳۷۸] د کم عمره ماشوم د پرورش د ټولو نه زیاته حقداره د هغه مور ده

۳۳۷۸—[۴] (١) ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-: ٢ «أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّ ابْنِي هَذَا كَانَ بَطْنِي لَهُ وِعَاءً، وَثَدْيِي لَهُ سِقَاءً، وَحِجْرِي لَهُ حِوَاءً ٣ وَإِنَّ أَبَاهُ طَلَّقَنِي، وَأَرَادَ أَنْ يَنْزِعَهُ مِنِّي. ٤ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ مَا لَمْ تَنْكِحِي"». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت عمرو ابن شعیب ﷫ د خپل پلار بزرگوار (حضرت شعیب ﷫) نه او هغه د خپله نیکه (حضرت عبدالله ابن عمرو ﷠) نه نقل کوي ٢ چې یوې ښځې عرض اوکړو چې یا رسول الله! ﷺ زما دا زوی چې (تر یو مودې پورې) زما نس (خیټه) د ده لوښې وو (یعني تر دومره مودې پورې دې زما په خیټه کښې وو) زما سینه د ده مشک وه (یعني تر مودې پورې به یې زما د سینې نه پئ څکلې) او زما غیږه د ده زانګو وه (یعني تر مودې پورې دې ما په خپل غیږ کښې پاللی دی) ٣ او س د ده پلار ماته طلاق راکړی دی، او زما خوی زما نه په زور آخستل غواړي؟ ٤ رسول الله ﷺ (د دې آوریدو سره) وفرمایل د څو پورې چې ته د چا سره نکاح ونه کړې، د دې ماشوم د پرورش کولو ته د ټولو نه زیاته مستحقه یې. (احمد، ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① بَطْنِي: زما خیټه . ② وِعَاءً: لوښې، ③ سِقَاءً: مشکیزه، د اوبو څکلو ځائې، ④ وَحِجْرِي: زما غیږه، ⑤ حِوَاءً: زانګو . ⑥ أَنْ يَنْزِعَهُ: چه په زوره ئې واخلی،

**تسهیلات: قوله:** - أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ:

**تعارض او دهغې جواب:** - دَ دې حدیث په ظاهره راتلونکې دَحضرت ابوهریره ﷛ روایت سره واضح تعارض دې څکه چه په هغې کښې غلام ته اختیار ورکړې شوې دې اودلته مور احق او مستحق دَ پالنې ګرځولې شوې ده دَدې جواب دادې چه په زیرنظر حدیث کښې ضابطه او قاعده بیان کړې شوې ده او راتلونکې دَ ابوهریره ﷛ دواړه روایتونو کښې یوجزئی عارضی احتمالی صورت بیان دې نو په دې کښې به تاویل کوو لکه څنګه چه تفصیل راځی

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الطلاق/ من أحق بالولد (رقم-۲۲۷۶) واحمد فی المسند: ۲/ ۱۸۲

**[۳۳۷۰] دَ پالنې مودې نه پس دَتخییر غلام مسئله**

۳۳۷۰-[۳] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -: «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② خَيَّرَ غُلَامًا بَيْنَ أَبِيهِ وَأُمِّهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷺ وايي ② چې نبي کريم ﷺ يو هلك ته اختيار ورکړي چې که هغه غواړي، د پلار سره دي وسيږي، او که غواړي د خپلې مور سره دي وسيږي، ترمذي

**تسهيلات: قوله: خَيَّرَ غُلَامًا:**

**د والدينو د تفريق په صورت کښې د ولد حقدار:** - په والدين کښې جدائي واقع کيدونه پس دَ کم عمراولاد دَ پالنې حقدار دَهغوی مورده په دې کښې دَ چاهم اختلاف نشته دې. البته دَ کم عمرئي دَدې مودې تعين اودَدې په تفصيلاتو کښې څه اختلاف دې

**د کم عمرئ په تعيين کښې مذاهب:** -

① دَ شوافعو اوحنابله په نيز ماشوم به دَ اووه کالوپورې دَ مور په پالنه کښې وی دې نه پس به هغه ته اختيارورکولې شی چه هغه مور پلار کښې څوك اختياروی. هغه چه کوم يوهم اختيارکړو هم هغه سره به ځی. خلاصه دا چه احناف په هيڅ يوصورت کښې دَماشوم دَ تخيير په حق کښې نه دی اوشوافعو دَ اووه کالو نه پس دَ ماشوم دَ تخييرقائل دی

② دَشعور دَزمانې باره کښې احناف وائی چه کله ماشوم په خپله خوړل څکل کولې شی پخپله اودس کولې شی اوکپړې بدلولې شی نودا ماشوم باشعوردې. بعضې احنافو دَ سن شعوردَپاره اووه کاله خودلی دی بعضې دَ جينئی دَپاره نهه کاله اودَ هلك دَپاره اووه کاله عمرخودلې دې فتویٰ دَ اووه کالو په قول باندې ده. احناف فرمائی چه په دې عمر کښې ماشوم پلار ته حواله کول پکاردی ځکه چه تعليم اوتربيت اوادب اوثقافت کښې د پلارسوچ زيات قابل اعتماد اوډير مؤثرپانيداروی او دغه وخت کښې ماشوم ته هم ددې څيزونو ضرورت وی. اودَدې نه په کم عمر کښې هلك اوجينئی دواړه به دَ مور په پالنه کښې وی ځکه چه دَ دغه زمانې مناسب تربيت مور په ښه اندازکښې کولې شی.

**د دويم فريق دلائل:** - ① دَ حضرت براء بن عازب ﷺ روايت د دوی مستدل دې چه نبی کريم دَحضرت حمزه ﷺ لور خپلې خاله (ترور) ته حواله کړه

② عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -: «أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّ ابْنِي هٰذَا كَانَ بَطْنِي لَهُ وِعَاءً، وَثَدْيِي لَهُ سِقَاءً، وَحِجْرِي لَهُ حِوَاءً، وَإِنَّ أَبَاهُ طَلَّقَنِي، وَأَرَادَ أَنْ يَنْزِعَهُ مِنِّي. فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ مَا لَمْ

۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۱۳۵۷ واحمد فی المسند ۲/ ۲۴٦

تَنْكِحِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ

په دې کښې چه ذکر دی چه نبی کریم ماشوم خپلې مورته حواله کړو او په کم عمر بچی کښې دَ اختیار ورکولو هیڅ خبره نه ده فرمائیلې

③ حضرت عمر رضی الله عنه خپلې يوې بی بی ته طلاق ورکړې وو دَ هغې يو بچې پيدا شو يوځل حضرت عمر رضی الله عنه مسجد قباء سره تیریدو نو دې هلك (عاصم) هلته لوبې کولې حضرت عمر رضی الله عنه اوچت کړو نو جنګ جوړ شو نو صدیق اکبر رضی الله عنه دَ مور په حق کښې فیصله اوکړه دا دَ صحابه کرامو په مخکښې فیصله وه نو اجماع صحابه اوشوه

④ هغه ټول روايات د دوی دلائل دی چرته چه دَ تخییر نه بغیر نبی کریم ﷺ فیصله فرمائیلې ده

**داول فریق دلائل:** - ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَيَّرَ غُلَامًا بَيْنَ أَبِيهِ وَأُمِّهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

زیربحث حدیث د اول فریق مستدل دې په دې کښې چه په واضحه توګه ذکر دې چه نبی کریم بچې ته په مور پلار کښې دَ يو اختيارولو اجازت ورکړې وو.

② عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَعَنْهُ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَتْ: إِنَّ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي وَقَدْ سَقَانِي وَنَفَعَنِي، فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: هَذَا أَبُوكَ وَهَذِهِ أُمُّكَ، فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ. فَأَخَذَ بِيَدِ أُمِّهِ فَانْطَلَقَتْ بِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

**د اول فریق د دلائلو جوابونه:** - ① کوم ځائی چې په احادیثو کښې دَ اختیار ورکولو خبره راغلې ده هغه باشعور بالغ او (ممیز) بچی باره کښې ده ځکه چه په احادیثو کښې دَدې تصریح ده اودې سره روایت کښې هم دا جمله موجود ده چه مور نې اووئیل "وقدسقانی ونفعنی" اودې سره متصل روستو راتلونکی روایت کښې داالفاظ دی "وقدنفعنی وسقانی من بئر ابی عنبة" یعنی دې ماشوم ماله دَ ابوعنبه دکوهی نه اوبه راوړې اومې څکلې دَدې بیان نه په واضحه توګه دامعلومیږی چه هغه بچې بالغ وو یا مراهق وو اودَداسې بچی په اختیار کښې خود چا هم اختلاف نشته دې ځکه چه بالغ خودمختیار دې

② دلته دَ يوې مجبورئی دَ وجې نه بچی ته په مورپلار کښې دَ يو دَ اختيارولو اختيار ورکړې شوې وو اودَ هغې وجه دا وه چه دَ دغه هلك پلار کافر وو اونبی کریم غوښتل چه دا هلك دې دَ مور په پالنه کښې لارشی که چرې نبی کریم دَ مسلمان مور حق کښې دَ شروع نه فیصله کوله نو خلقو به اعتراض کولو چه دَ مسلمان طرفداری ئې اوکړه په دې وجه نبی کریم ماشوم ته اختیار ورکړو او ابوداؤد شریف کښې دی چه هلك دَ اختیار ملاویدلو نه

بس پلار طرف ته روان شو نونبی کریم دعا اوکړه "اللهم اهده" اې الله دده لار خودنه اوکړه چنانچه هلك مور اختيار کړه نود نبی کريم دعا د خصوصيت پيغمبري وه په دې باندې د بل چا قياس نه شي کولې

**خلاصه:** - بهرحال عام ضابطه هم هغه ده چه مالکيه او احناف خپله کړې ده باقي په جزئيات کښې به تاويل کولې کيږي

**[۳۳۸۰] بچي ته په والدينو کښې هر يو سره د پاتې اختيار**

۳۳۸۰—[۵] ( ) [۱] وَعَنْهُ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقَالَتْ: إِنَّ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي وَقَدْ سَقَانِي وَنَفَعَنِي، [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: هَذَا أَبُوكَ وَهَذِهِ أُمُّكَ، فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ. فَأَخَذَ بِيَدِ أُمِّهِ فَانْطَلَقَتْ بِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي [۲] چې يوه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حضره شوه. [۳] عرض يې وکړي چې زما خاوند غواړي چې زما خوی زما نه بوزي. حالانکه هغه په ما باندې اوبه څکې او نفع راته رسوي (يعني هغه اوس د دې عمر شوی دی. چې زه د هغه د خدمت نه فائده پورته کوم) [۴] نبی کريم ﷺ هغه هلک نه وفرمايل چې دا ستا پلار دی او دا ستا مور ده. په دوی کښې چې ته کوم يو خوښوې د هغه لاس ونيسه. نو هلک د مور لاس ونيولو او هغې د خان سره بوتلو. (ابوداؤد. نسايي. دارمي)

**حل اللغات** - (۱) سَقَانِي: په ما باندې اوبه څکی

**تسهيلات:**

**قوله** فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ:

**د مذکوره حديث مفهوم:** - ددې حديث پاك نه معلوميږي چې نبی کريم ﷺ کوم ماشوم ته اختيار ورکړو هغه د شعور عمرته رسيدلی وو او د مور د خدمت قابل وو

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۳۸۱] د مطلقې ښځې په حق کښې د ابوهريره کردار**

۳۳۸۱—[۶] (۰) [۱] عَنْ هِلَالِ بْنِ أُسَامَةَ، عَنْ أَبِي مَيْمُونَةَ سُلَيْمَانَ مَوْلًى لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ، [۲] قَالَ: «بَيْنَمَا أَنَا جَالِسٌ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ فَارِسِيَّةٌ، مَعَهَا ابْنٌ لَهَا، وَقَدْ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا، [۳] فَادَّعَيَاهُ، [۴] فَرَطَنَتْ لَهُ تَقُولُ: يَا أَبَا هُرَيْرَةَ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي.

۱) اخرجه ابوداود في كتاب الصوم . باب وقت فطر الصائم (رقم - ۲۳۵۱) والنسائي في كتاب الهبة باب ذكر الإختلاف لخبر عبد الله بن عباس فيه (رقم - ۳۶۹۶) وابن ماجه في كتاب الأحكام باب تخيير الصبي بين أبويه (رقم - ۲۳۵۱)
۲) اخرجه ابوداود في كتاب الطلاق / من أحق بالولد (رقم - ۲۲۷۷)

**ترجمه:** [۱] حضرت هلال ابن اسامه ﷺ د حضرت ابي ميمونه ﷺ نه چې د هغه نوم سليمان وو، او په اهلِ مدينه کښې د چا آزاد کړی غلام وو، نقل کوي [۲] چې هغه اوويل (يوه ورځ) زه د ابوهريره ﷺ سره ناست ووم، هغه ته د فارس يوه ښځه راغله، چې د هغې سره د هغې هلک هم وو، او د هغې خاوند هغې ته طلاق ورکړي وو، [۳] او د ښځې او خاوند په منځ کښې د هغه هلک په باره کښې تنازعه وه، [۴] هغې ښځې د ابوهريره ﷺ سره په فارسي ژبه کښې خبري کولو سره ورته اوويل چې اې ابوهريره! ﷺ زما خاوند زما خوی زما نه آخستل غواړي،

[۱] فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: اسْتَهِمَا عَلَيْهِ. رَطَنَ لَهَا بِذٰلِكَ. [۲] فَجَاءَ زَوْجُهَا، وَقَالَ: مَنْ يُحَاقُّنِي فِي ابْنِي؟ [۳] فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: اللّٰهُمَّ إِنِّي لَا أَقُولُ هٰذَا إِلَّا أَنِّي كُنْتُ قَاعِدًا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي، وَقَدْ نَفَعَنِي وَسَقَانِي مِنْ بِئْرِ أَبِي عِنَبَةَ—

**ترجمه:** [۱] ابوهريره ﷺ ورته اوويل چې تاسو دواړه په دې خبره قرعه واچوئ (د چا په نوم چې قرعه راوزي، هغه دې هلک واخلي) حضرت ابوهريره ﷺ هم د هغې ښځې دا مفهوم په فارسي ژبه کښې ادا کړي، [۲] بيا د هغه ښځې خاوند راغلی چې زما د خوی په باره کښې زما سره څوک تنازع کوي، [۳] ابوهريره ﷺ اوويل يا الله! ﷻ زه دا خبره د خپل طرف نه نه وايم، بلکې حقيقت دا دی چې زه (يوه ورځ) د حضور ﷺ په خدمت کښې ناست وم، [۴] نو يوه ښځه راغله، هغې عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ زما خاوند زما نه زما د خوی بوتلل غواړي، او هغه ماته فائده رسوي، او د ابوعتبه د کوهي (څاه) نه په ما اوبه څکي.

[۱] وَعِنْدَ النَّسَائِيِّ: مِنْ عَذْبِ الْمَاءِ - فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "اسْتَهِمَا عَلَيْهِ". [۲] فَقَالَ زَوْجُهَا مَنْ يُحَاقُّنِي فِي وَلَدِي؟ [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "هٰذَا أَبُوكَ وَهٰذِهِ أُمُّكَ، فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ". [۴] فَأَخَذَ بِيَدِ أُمِّهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ هِلَالِ بْنِ أُسَامَةَ.

**ترجمه:** [۱] او په نسايي کښې دا الفاظ دي چې هغه (د ښار نه بهر په کافي فاصله) خوږې اوبه راوړلو سره په ما څکي (د دې آوريدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل چې تاسو دواړه په ده قرعه واچوئ. [۲] خاوند اوويل چې زما د خوی په باره کښې زما سره څوک تنازع کوي، [۳] بيا رسول الله ﷺ هغه هلک ته وفرمايل چې دا ستا پلار دی او دا ستا مورده، په دې دواړو کښې چې دې کوم يو خوښ وي، د هغه لاس ونيسه، [۴] نو هغه هلک د مور لاس ونيولی (او هغې د ځان سره بوتلو) ابوداؤد، نسايي، دارمي

**حل اللغات:** - ① مَوْلٰی: آزاد کړې شوې غلام. ② رَطَنَتْ: دغه ښځې په فارسي ژبه کښې يا عجمي ژبه کښې خبرې اوکړې ③ اسْتَهِمَا: قرعه، پچه واچوئ دواړه، ④ مَنْ يُحَاقُّنِي: څوک دی چه جهګړه کوي ما سره، ⑤ مِنْ بِئْرِ أَبِي عِنَبَةَ: د ابوعنبه د کوهي نه، ⑥ مِنْ عَذْبِ الْمَاءِ: د خوږو اوبو نه.

تسهیلات

قوله امرأة فارسیة

د فارسیة د نسبت دوه مطلبونه:- ① دا نسبت د فارس او سیدونکي وه او هم دغه واضح ده

② د فارسیه نه مراد عجمیه ده یعنی هر عجمی ښځه وه عربو به عام توګه باندې عجمیان فارس او فارسي په نوم سره یادول

قوله رطن لها بذلك: یعنی حضرت ابو هریره رضی الله عنه هم دغه ښځې سره په فارسي یا عجمي ژبه کښې خبرې اترې اوکړې د کومې بیان چه راوي په عربي ژبه کښې اوکړو

قوله فرطنت

د لفظ فرطنت تحقیق:- د راء فتحه او کسره دواړو سره دې په حقیقت کښې دا هغه کلام ته ونیلی شی چه د چا په پوهه کښې رانه شی بیا ددې اطلاق په عجمي ژبه باندې کیدلو ځکه چه عرب به د عربي لغت نه علاوه په یو لغت نه پوهیدل نو هغوی د عربي کلام نه علاوه هر کلام ته عجمي اونیل یعنی د پوهیدونه بالاتر د ګونګیانو ژبه حضرت ابو هریره رضی الله عنه که په فارسي ژبه کښې جواب ورکړې دې او په مینځ کښې څوک ترجمان نه وو نو ددې نه معلومه شوه چه د عجمو په علاقو کښې جهاد کولو سره صحابه کرامو فارسي ژبه څه نه څه زده کړې وه دلته د ابو هریره رضی الله عنه په وړاندې چه د کوم ماشوم تنازعه وړاندې کړې شوې وه دغه شان قضیه د رسول الله ﷺ مخې ته هم راغلې وه نو حضرت ابو هریره رضی الله عنه د هغې تذکره اوکړه

اشکال:- البته دا وهم کیږی چه نبی کریم غلام ته تخییر هم ورکړې وو او قرعه سره نې فیصله هم فرمائیلې وه حضرت ابو هریره رضی الله عنه صرف قرعه ولې اختیار کړه او تخییرنی ولې پریخودو؟

د اشکال جواب:- حضرت ابو هریره رضی الله عنه هم د نبی کریم په شان تخییر او قرعه دواړو سره فیصله فرمائیلې وه لکه چه زیلعي د ابن حبان نه روایت نقل کړې دې په هغې کښې دا الفاظ دی: ان اباهریره خیر غلامابین ابیه وامه، مګر راوي د اختصار نه کار اخستلو سره د قرعه اندازۍ ذکر اوکړو او تخییرنی پریخودو

د قرعه اندازۍ دوه حیثیتونه:- د قرعه اندازۍ دوه حیثیتونه دی د قرعه اندازۍ یا خسنړۍ ویستلو شرعي حیثیت څه دې؟ ځکه چه ددې حدیث نه د قرعه اندازۍ واضح ثبوت ملاویږی نو ددې تحقیق دا دې

① قرعه اندازی د زړه د تطییب دپاره وی چې د هر یو حصه مقرروی مګر د راجح او مرجوح دپاره قرعه اندازی وی

② چه په قرعه اندازۍ سره د نوی حق اثبات اوشی یو ته حق ملاؤشی او بل محروم شی

**د قرعه اندازي په حيثيت کښې مذاهب:-**

① امام شافعي رحمه الله او اسحاق بن راهويه رحمه الله دا خيال دې چه په مطلق قرعه اندازي سره حق ثابتيدې شي

② ائمه احناف فرماني چې په مذکوره دواړه قسمه قرعه اندازي کښې اول قسم جائز ده دَدې نه انکار په احنافو کښې چاهم نه دې کړې اومذکوره دويم قسم قرعه اندازي دَ اسلام په شروع کښې وه کوم وخت چه دَ جوارئي دَ حرمت حکم نه وو راغلې خوچه کله په قمار اوجوارئي باندې پابندي اولګيدله نودَ قرعه اندازئي دا قسم هم منسوخ شو خلاصه دا چه کله چرې قرعه اندازي احدالمتساويين کښې دَ ترجيح دَپاره اودَ زړه دَ تسلئي دَپاره وي نودا جائز ده اوکه چرې دَ شروع نوي حق دَپاره وي نوناجائزده اومنسوخ ده طحاوي دَدې دَمنسوخ کيدوذکرکړې دې

**داول فريق دليل:**- زيرنظر حديث د دوي مستدل دې

**د دليل جواب:**- باقي په زير نظر حديث کښې اصل صورت دَ صلح جوړشوې دې نو حضوراکرم ﷺ دَ جګړې دَ ختمولودَپاره دَ صلح په توګه دَ قرعه اندازئي حکم فرمائيلې وو په توګه دَ شرعي حجت ئي په قرعه اندازئي سره فيصله نه وه کړې

# [۱۴] كِتَابُ الْعِتْقِ

## دَغلام دآزادولوبيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على ثلث مسائل:**

① أجر الإعتاق: ۱، ۳، ۴، ۵.

② التنويع في الإعتاق: ۲، ۳.

③ فضيلة الشفاعة في الإعتاق: ۶.

**د عتق لغوي معاني:** دَعتق ديرې معانې دي

① عتق په معنی دَقديم په دې اعتبارسره بيت الله دَ قديم کورنوم سره يادولې کيږي دَالله تعالى ارشاد دې ﴿ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴾ [الحج ۲۹] ﴿ ثُمَّ مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴾ [الحج ۳۳]

② عتق په معنی دَقوت هم په دې اعتبار بيت الله ته عتيق وئيلې شي خکه چه بيت الله په هره زمانه کښې دهرسري دَ لاس قوت اوملکيت دَخپل خان نه دفع کوي

③ عتق دَ مملوکيت نه دَ وتلوپه معنی کښې راخي دلته په کتاب کښې هم دغه معنی مراد ده يعني دَ غلامئي اومملوکيت اوکمزورئي نه وتلوسره دَ قوت آزادئي اوحريت طرف ته راتلل دادَ عتق لغوي معانې دي

⑥ عتق په معنی د حسن او جمال او شرافت او آزادئی په دې اعتبار سره صدیق اکبر رضی الله عنه ته عتيق ونيلې شی چه هغه ښائسته هم وو شريف او سردار هم وو او د اور نه آزاد هم وو

**د عتق اصطلاحی معنی:** او په شرعی اصطلاح کښې د عتق تعريف داسې دې «قوت حكمية يصير المرء به اهلا للشهادة والولاية والقضاء» يعنی عتق د هغه حکمی او معنوی قوت او طاقت نوم دې د کوم په ذريعه چه سړې د قضاء گواهئی او تصرف کولو اهل کیږی

**په اسلام كښې د غلامئ يو معقول دليل:** اسلام د يو کافر سړی د غلام جوړولو چه کوم جزت ورکړې دې نو د دې يو معقول وجه داده چه څنگه چه يو کافر د خپل خالق مالك وذخپل رازق بغی جوړيږی نو الله تعالی حکم ورکوی ترکومې چه زما دا بنده زما بندگی و غلامی نه اختيار ه وی نو دې به زما د غلامانو غلام وی اوس دا سړې د انسانانو د ډلې نه خارج شواو د خناورو په زمره کښې داخل شوې دې ﴿ أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ﴾ [اعراف **۱۷۹**] اوس به ده سره د خناورو سلوك كولې شی لهذا د ده خرڅول اخستل په خدمت کښې ساتل ټول هرڅه جائزشو دامضمون داسې هم گنړلې شنی چه کله داکافران د خپل رب د اطاعت اوحکم منلونه منحرف شونود دوی حيثيت د مالك اوحاکم د پاره د باغی فوج په شان شو اوس د حکومت وفادار فوج يعنی مسلمانانوته حکم دې چه دا باغيان ښکته کړنی ترهغه وخته پورې چه دا باغيان يا واپس راؤگرځی د وفادارئی اعلان وکړی ي قتل شی او يا په قيد کښې راگيرشی بين الاقوامی قوانين اوقاعدې په دې ضبطه بندې گوته نه شی اوچتولې بلکه د دې قاعدې تائيد د ټولې دنيا باشعوره انسانان کوی بي به دافسوس مقام وی که يو بدباطن ملحد زنديق په اسلام باندې په دې وجه اعتراض کوی چه اسلام د بعضې سرکشو په قابوکښې راوستلو د پاره د غلامئی سزا تجويز کوی

**په اسلام كښې د غلامانو سره د خيرخواهی حكم او اهميت:** بيا چه کله د دغه باقی فوج زور ختم شی او بعضې کسان قيد کيدو سره غلامان جوړشی نو اسلام د هغوی ډيرزيات خيال ساتی او خيرخواهی نی کوی او په ډير تاکيد سره د دغه خيرخواهئی حکم ورکوی د هغوی آزادی او خلاصول ډير لوئی ثواب گنړی

**په عهد نبوی او دورِ صحابه كښې د غلامانو د آزادولو عملی نمونه:**

① هم دغه وجه ده چه نبی کريم د خپل عمر مبارك برابر په هرکال يو غلام آزاد کړې دې رسول الله ﷺ مبارك پخپله ۶۳ غلامان آزاد کړی دی

① حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ۷۰ غلامان آزاد کړی

② صديق اکبر او عثمان غنی رضی الله عنهما بې شميره غلامان آزاد کړی دی

③ حضرت عائشه رضي الله عنها ۶۷ غلامان آزاد کړی،
④ حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه ديرش زره غلامان آزاد کړی
⑤ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما زر غلامان آزاد کړی

**د غلامانو د آزادولو حکمتونه:** غرض داچه دَ غلام جوړولو په دې قانون کښې ډيرزيات حکمتونه او ډيرې فائدې دی

① باغی مخلوق په ادب شی اوتابعدار شی ② غلامانو آزادونکوته چه کوم عظيم ثواب ملاويږی هغه هم تاسو په احاديثو کښې لوستلی دی

③ غلامان چې آزاد شی نو هغوی ته دَ مسلمان کيدو موقع ملاويږی په زرګونو په لاکهونو غلامان مسلمانان کيدوسره په دنيااوآخرت کښې کامياب کيدوسره جنت ته لاړل آخر حسن بصری رحمه الله او ابن سيرين رحمه الله په شان جبال العلم اودَ دين اسلام نوموړی حضرات هم دَدغه غلامئ دَ پل نه تيريدوسره دَامت مسلمه امامان جوړشوی دی.

**د غلام د آزادولو شرطونه:** ① دَ غلام آزادولودَپاره شرط دادې چه آزادونکې آقا بالغ وی نابالغ مشوم دې نه وی

② عقلمند دې وی ليونې دې نه وی. چه کوم غلام آزاده وی دَهغه مالک دې وی اوخود مختار دې وی

**د غلام د آزادولو مختلف حکمونه:**

① بعضې کښې مباح لکه دَ چادَ ايصال ثواب دَ پاره چه غلام آزادولې شی.
② بعضې صورتونو کښې دَغلام آزادول ګناه ده کوم وخت چه دَ آزادولو نه پس دَ هغه دَ بدمعاشئ او فساد خطره وی يا دَ مرتد کيدوخطره وی
③ بعضې صورتونو کښې غلام آزادول صرف دَ ثواب اوعبادت عمل وی لکه يوغلام صرف دَ الله تعلی دَ رضا دپاره آزادول
④ په بعضې صورتونو کښې غلام آزادول واجب وی لکه چه په کفاره کښې وی

## الفصل الأول

### [۳۲۸۲] د غلام د آزادولو ثواب

۳۲۸۲ـ[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ -: [۲] "«مَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً مُسْلِمَةً [۳] أَعْتَقَ اللَّهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ مِنَ النَّارِ [۴] حَتَّى فَرْجَهُ بِفَرْجِهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) أخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۵۷۱۵ ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۲۳/ ۱۵۰۹ والترمذی فی كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی ثواب من أعتق رقبة (رقم-۱۵۴۱) واحمد فی المسند: ۲/ ۴۴۷

**ترجمه:** [۱]حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲]کوم سړی چې یو مسلمان (برده) له د غلامۍ نه نجات ورکړي، [۳]نو الله تعالی به د هغه هر عضو (اندام) له د هغه برده د هر عضو په بدله کې د دوزخ د اور نه نجات (خلاصون) ورکړي. [۴]ددې پورې چې د هغه شرمګاه له به د هغه برده د شرمګاه په بدله کې نجات ورکړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①أَعْتَقَ: آزاد کړی. ②رَقَبَةً: څټ، مراد ترې غلام دې. ③عُضْو: اندام.

**تسهیلات: قوله:** رَقَبَةً مُسْلِمَةً:

**د مطلق غلام په آزادولو کښې ثواب:** دلته دَمسلمان دَ ښځې قید څه احترازی قیدنه دې بلکه صرف په افضل اوثواب کښې زیاتوالی طرف ته اشاره ده ګنی دَ غیرمسلم په آزادولو کښې هم ډیرثواب دې

**قوله:** بِكُلِّ عُضْوٍ:

**د اندامونو په مقابله کښې اندامونه آزادیدل:** دَ بکل عضوذکرکولونه پس دَ فرج اوشرمګاه ذکرپه خاص توګه یاخودَدې دَپاره اوکړې شو چه په کلام کښې ښه ترغیب او سختوالی پیدا شی یا دَدې اندام ذکر خکه اوکړې شوچه دې نه دَ زنا په شان لویه ګناه کیږی نواشاره اوکړې شوه چه دَ غلام آزادولو سره دومره لوئی جرم هم معاف کیږی نودَ وړو ګناهونونه به څه وائې دَ اعضاء دَدې تذکره په رنړاکښې علماؤ لیکلی دی آزادونکی له پکاردی چه هغه دَخپل جنس مثل آزادکړی یعنی که سړې دې نوهغه دې سړې غلام آزادکړی اوکه چرې ښځه ده نو هغه دې ښځه غلام آزاده کړی دَدې دَپاره چه دَ اعضاء ښه تقابل اوشی بل مقطوع الذکر اوخصی غلام دې نه وی نودَ هغې آزادول اولی اوافضل دی

**[۳۳۸۲]دَټولو څخه افضل عمل**

---[۲] (۱) [۱]وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ - عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ -: [۲]«أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ؟ [۳]قَالَ: (إِيمَانٌ بِاللَّهِ، وَجِهَادٌ فِي سَبِيلِهِ) [۴]قَالَ: قُلْتُ: فَأَيُّ الرِّقَابِ أَفْضَلُ؟ [۵]قَالَ: (أَغْلَاهَا ثَمَنًا وَأَنْفَسُهَا عِنْدَ أَهْلِهَا).

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوذر رضی الله عنه وایي چې ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه [۲]چې کوم عمل ښه دی؟ [۳]نو وي فرمایل په الله تعالی ایمان راوړل او د هغه په لار کې جهاد کول. [۴]او ابوذر رضی الله عنه وایی چې بیا ما عرض اوکړو کوم برده آزادول ښه دی؟ [۵]حضور ﷺ وفرمایل چې کوم ګران قیمته وي او خپل مالك ته ډیر خوږ وي

**حل اللغات:** ①الرِّقَابِ: جمع د رقبة څټ، مراد ترې غلام دې. ②أَغْلَاهَا: ګران، قیمتی. ③وَأَنْفَسُهَا: ډیر ښه، عمده.

---

۱) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۲۵۱۸. ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۱۳۶/ ۸۴ وابن ماجه فی کتاب العتق /باب العتق (رقم-۲۵۲۳)واحمد فی المسند: ۱۵۰/۵

قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ؟ قَالَ: (تُعِينُ صَانِعًا أَوْ تَصْنَعُ لِأَخْرَقَ). قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ؟ قَالَ: (تَدَعُ النَّاسَ مِنَ الشَّرِّ، فَإِنَّهَا صَدَقَةٌ تَصَدَّقُ بِهَا عَلَى نَفْسِكَ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ما عرض اوکړو چې که زه داسې ونه کړل شم (**يعني د سستۍ د مخه نه بلکه د عجز او عدم استطاعت د مخه نه غلام آزاد نه کړې شم**) نو حضور ﷺ وفرمايل بيا د کار کونکي مدد کوه، يو کوم سړی چې د څه څيز په جوړولو نه پوهيږي، هغه ته هغه څيز وښايه. ما عرض اوکړو که دا هم ونه کړې شم (**نو بيا څه وکړم؟**) حضور ﷺ وفرمايل چې د خلقو ته د بدۍ رسولو نه پرهيز وکړه، ياد لره چې د هغه په ذريعه ته خپل نفس سره نيکي کوې.

(بخاري مسلم)

**حل اللغات** تُعِينُ: مدد کوه، صَانِعًا: جوړونکي، کار کونکي، أَخْرَقَ: ناپوهه، چه په يو څيز جوړولو نه پوهيږي. تَدَعُ النَّاسَ: پريږده خلق، (نقصان ورته مه رسوه)

**تسهيلات:**

**قوله** - وَجِهَادٌ فِي سَبِيلِهِ

## د جهاداو صلاة په افضليت کښې مذاهب:

د ايمان په افضل کيدو کښې خود چاڅه کلام نشته دې ځکه چه د ايمان نه بغير د يو عمل هيڅ اعتبار نشته دې ليکن علماؤ په دې کښې کلام کړې دې چه د ايمان نه پس د ټولو نه افضل عمل آيا جهاد دې که مونځ دې صاحب فتح القدير په دې باندې کلام کړې دې بهرحال

① د علماؤ يوې طبقه دې طرف ته تلې ده چه د ايمان نه پس د ټولو نه افضل عمل جهاد دې

② د علماؤ يوې طبقه دې طرف ته تلې ده چه د ايمان نه پس افضل عمل مونځ دې

**د اول فريق دلائل:** ① زير بحث حديث د دوی مستدل دې

② د کتاب الحج د شروع په احاديثو کښې د حضرت ابوهريره ﷺ يو حديث کښې دا الفاظ موجود دي قال سئل رسول الله ﷺ اي العمل افضل قال ايمان بالله ورسوله قيل ثم ماذا قال الجهاد في سبيل الله (مشکوة صفحه ۲۲۱)

دې نه معلوميږي چه د ايمان نه پس جهاد په ټولو اعمالو کښې افضل عمل دې

③ د بخاري شريف يو روايت دې ((جاء رجل الى النبي صلى الله عليه وسلم فقال دُلَّنِيْ على عمل بعد الجهاد قال لا اجده)) (بخاري) يعني يارسول الله ! ماته په اسلام کښې داسې عمل اوښايه چه د جهاد برابر وي اود جهاد په شان وي نبی کريم اوفرمايل زه د جهاد په شان برابر عمل نه وينم دې روايت نه هم دغه خلقو د ايمان نه پس جهاد په افضل عبادت دې

**د دويم فريق دلائل:** ① كتاب الصلوة كښې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه يوروايت كښې راغلى دى چه د ايمان نه پس افضل عمل "الصلوة لوقتها" دې (مشكوة صفحه ۵۸) هلته په دې حديث باندې په حاشيه كښې صاحب لمعات پوره تفصيل كړې دې

**په روايانو كښې تطبيق:** دلته د مونځ او جهاد متعلق تطبيق په صورت كښې علماؤ دا خودلى دى چه على الاطلاق او عمومى فضيلت هم مونځ ته حاصل دې اگرچه د جهاد فضيلت هم موجود دې دې نه بهتر تطبيق دادې چه جهادچه كله د فرض كفايه په درجه كښې وى نومونځ دې نه افضل دې ځكه چه مونځ په هرحالت كښې فرض عين دې ليكن كه جهاد فرض عين شى نوبيا جهاد د مونځ نه افضل كيږى [اشعة المعات]

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:** ① **تُعِينُ صَانِعًا:** صانع صنعت د تجارت پيشه او كاريگرئى ته وائى يعنى چه د كوم پيشه ور اوكاريگر اوصاحب تجارت سړى كاروبار نه چليږى يا دهغې خرچه د ده د بال بچ دپاره كافى نه وى يا هغه سړې كاريگر خودې مگر د كارجوړولونه عاجز دې نود داسې سړى امداد كوه كه هغه په كوم صورت كښې هم وى دې دپاره چه د هغه كاروبار روان شى.

② **أَوْتَصْنَعُ لِأَخْرَقَ:** اخرق اناړى او ناتجربه كار اود كاروبار كولونه جاهل سړې ته وئيلى شى مطلب دادې چه يوماهر اوصاحب فن سړې دې هغه له پكاردى چه كروبار صنعت وحرفت اومهارت نه ناواقف سړى سره په خپل فن كښې امداد اوكړى د دواړو جملو مطلب د يومسلمان رور سره د امداد كولوترغيب دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۳۸۴] دغلام آزادول د دخول جنت سبب

> ۳۳۸۴ - [۳] (۱) ① عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- ② فَقَالَ: عَلِّمْنِي عَمَلًا يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ. ③ قَالَ: " لَئِنْ كُنْتَ أَقْصَرْتَ الْخُطْبَةَ لَقَدْ أَعْرَضْتَ الْمَسْأَلَةَ، ④ أَعْتِقِ النَّسَمَةَ وَفُكَّ الرَّقَبَةَ). ⑤ قَالَ: أَوَلَيْسَا وَاحِدًا؟

**ترجمه:** ① حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ) د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې يو بانډچي (كليوال) راغلى. ② او عرض يي وكړي چې ماته داسې يو عمل وښايه چې د هغه په ذريعه زه (په ابتدايي مرحله كې نجات حاصلونكو خلقو سره) په جنت كې داخل شم. ③ حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل اگر چې تا په سوال كولو كې ډير د اختصار نه كار آخستلې دى. ليكن اهم سوال دى كړي دى ④ بيا حضور صلى الله عليه وسلم ورته دا عمل وښودلى چې) ته يوانسان

---

۱) اخرجه احمد فى المسند: ۲۹۹/۴ والبيهقى فى شعب الايمان (رقم-۴۳۳۵۰)

آزاد کړه او برده ته نجات ورکړه، ⑤بانډچي (کلیوال) عرض وکړو چې آیا دا دواړې خبرې یعني انسان آزادول او غلام ته نجات ورکول یو نه دي؟

**حل اللغات** ①أَقْصَرْتَ: د اختصار نه دې کار دې واخسته، ②الْخُطْبَةَ: په خطبه کښې. ③أَعْرَضْتَ: پیش دې کړه. ④الْمَسْأَلَةَ: مسئله، سوال. ⑤النَّسَمَةَ: نسمه روح ته وائي او په نفس باندې هم دَدې اطلاق کیږي. ⑥وَفُكَّ: آزاد کړه، فاء باندې ضمه ده او کاف باندې تشدید مفتوح اومکسور دواړه شان لوستلې شي

①قَالَ: "لَا، ②عِتْقُ النَّسَمَةِ أَنْ تَفَرَّدَ بِعِتْقِهَا. ③وَفَكُّ الرَّقَبَةِ أَنْ تُعِينَ فِي ثَمَنِهَا، ④وَالْمِنْحَةُ الْوَكُوفُ، ⑤وَالْفَيْءُ عَلَى ذِي الرَّحِمِ الظَّالِمِ، ⑥فَإِنْ لَمْ تُطِقْ ذَلِكَ فَأَطْعِمِ الْجَائِعَ، ⑦وَاسْقِ الظَّمْآنَ، ⑧وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ، ⑨وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ، ⑩فَإِنْ لَمْ تُطِقْ ذَلِكَ فَكُفَّ لِسَانَكَ إِلَّا مِنْ خَيْرٍ»). رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ①حضور ﷺ ورته وفرمایل چې نا، ②انسان آزادول خو دا دي چې ته دهغه په آزادولو کې تنها او مستقل یې، ③او برده ته نجات ورکول دا دی چې ته د هغه د قیمت په ورکولو کې د هغه مدد وکړې ④او په جنت کې د داخلیدو دا هم عمل دي چې) ته یو محتاج ته د پیئو والاچیلۍ (بزه، اوښه) ورکړې، ⑤او د هغه ظالم رشته دار سره مهرباني او احسان وکړې کوم چې په تاظلم کوي، ⑥که ستا نه دا نشي کیدی، نو په وږي خه وخوره، ⑦او په تږي اوبه وڅکه، ⑧او (خلقو ته) د نیکي تلقین او تبلیغ کوه، ⑨او د بدی نه خلقو ته د خان ساتلو تلقین کوه، ⑩او که ته دا هم نشي کولی، نو بیا د کم نه کم دومره خو کوه چې د ښې خبرې نه علاوه خپله ژبه بنده ساته، (بیهقي)

**حل اللغات** ⑦الْمِنْحَةَ: پئیو والاخاروې، ⑧الْوَكُوفَ: زیات پئ ورکونکې خاروې ⑨الْفَيْءَ: مهرباني، نرمي. ⑩ذِي الرَّحِمِ: رشته دار، ⑪الْجَائِعَ: وږې، (چه ډوډۍ ته محتاجه وی) ⑫الظَّمْآنَ: تږې، (چه اوبو ته محتاجه وی) ⑬فَكُفَّ: بنده ساته

**تسهیلات:**

**قوله:** أَعْتِقِ النَّسَمَةَ وَفُكَّ الرَّقَبَةَ:

**د أعتق اوفُكَّ قریب المعنی کیدل:** دا دواړه لفظونه دَ معنې په اعتبارسره نیزدې بلکه یوشان وو په دې وجه سوال کونکي پوښتنه اوکړه چه دا دواړه خو یودي نبي کریم فرق ور اوخودلو چه عتق هغه وي چه مثلاً تا خان له څوك آزاد کړو په دغه آزادولو کښې ته مستقل ئې. او (فك) هغه وي لکه چه دَ یوغلام په آزادولو کښې تاچا سره دَ پیسو امداد اوکړو. دَدې معمولی فرق نه دا خبره واضح شوه چه دَ شارع کلام بالکل سرسري نه دی کنټرل پکار څکه چه شارع ﷺ هم باریك اشارو کښې کله مسئله بیانوي. او قرآن اوحدیث کښې دَدې نظائرموجوددي دَپوهیدلو ضرورت دې لهذا معتق مولی، مدبر، مکاتب، ام ولده اورقیق وغیره الفاظو کښې فرق کول پکاردي

قوله: وَالْمِنْحَةُ:

د لفظ المنحة تحقیق: دَ میم کسره سره دَ عطیه په معنی کښې وی دلته دَ منحه نه هغه وبنه غوا یا چیلئی مراد ده چه څوك صاحب خیریومحتاج ته دَ دې دپاره ورکوی ترکومې چه په هغې کښې پیئی وی نوهغه دې پیئی حاصله وی کله چه پیئی ختم شی نومالك ته دې واپس کړې شی په عربوکښې دَدې دیرزیات رواج وو

قوله: الْوَكُوف:

د کوف نه مراد: واؤمفتوح اودې نه پس په کاف پیښ دې داد منحه صفت دې کثیراللبن څناور مراد دې دَ کوم پیئی چه داسې یوشان څڅیږی لکه چه دَ چت نه اوبه څڅیږی پریوخی (وکف) چت چاؤدې کیدوته وائی.

**[۳۳۸۵] دجمات په جوړولو په جنت کښې د کور جوړيدل**

۳۳۸۵-[۴](۱)[۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- قَالَ:[۲] ((مَنْ بَنَى مَسْجِدًا لِيُذْكَرَ اللَّهُ فِيهِ[۳] بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ،[۴] وَمَنْ أَعْتَقَ نَفْسًا مُسْلِمَةً كَانَتْ فِدْيَتَهُ مِنْ جَهَنَّمَ،[۵] وَمَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ)). [۶] رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن عبسه ﵁ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې يو (کوشنی يا لوی) مسجد (د نام ونمود د پاره نه بلکه) په دې نيت جوړ کړي، چې په هغه کې د الله ﷻ ذکر کيږي، [۳] نو د هغه د پاره به په جنت کښې يو لوی مکان جوړول کيږي. [۴] او کوم سړی چې يو مسلمان برده آزاد کړي، نو هغه برده به د هغه سړي د پاره د دوزخ د اور نه د نجات سبب وي، [۵] او کوم سړی چې د الله ﷻ په لار کې (يعني په جهاد کې يا په حج کې يا په طلب علم کې يا په اسلام کې څنګه چې په يوروايت کې فرمايل شويدی) سپين ږيری شي، نو د هغه بوډاتوب به د قيامت په ورځ به د هغه د پاره رڼا وي او د هغه په سبب به د هغې ورځې د تيارو نه نجات تر لاسه کړي، [۶] دا روايت صاحب مصابيح (په خپل اسناد سره) په شرح السنة کې نقل کړي دی

**حل اللغات:** ① فِدْيَتَهُ: د هغه بدله، ② شَابَ شَيْبَةً: خوانی زړه کړی (سپين ږيري شی).

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ بَنَى مَسْجِدًا لِيُذْكَرَ اللَّهُ فِيهِ**

**جمات په جوړولو باندې په جنت کښې کور جوړيدل:** يعنی داسې ځائې کښې مسجد جوړ کړی چې هلته دالله ﷻ عبادت کيږی که هغه وقف مسجد وروکې وی يا لوې، ځانله ئې جوړ کړی يا نور خلق ځان سره يوځائې کړی او جوړئې کړی په دې شرط چې نيت کښې

---

۱) اخرجه النسائي في السنن كتاب المساجد /باب الفضل في بناء المساجد (رقم-۶۸۸) واحمد في المسند: ۳۴۲۰

اخلاص وى نو انشاء الله ددې ثواب به ضرور ملاويږى اودا د عبادتونو ټولو انواع لره شامل دي

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۳۸۶] دعالم د پاره د روايت بالمعنى جواز

۳۳۸۶-[۵] (۱) ۱ عَنِ الْغَرِيفِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ، قَالَ: ۲ أَتَيْنَا وَاثِلَةَ بْنَ الْأَسْقَعِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- ۳ فَقُلْنَا: حَدِّثْنَا حَدِيثًا لَيْسَ فِيهِ زِيَادَةٌ وَلَا نُقْصَانٌ، ۴ فَغَضِبَ وَقَالَ: ۵ إِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَقْرَأُ وَمُصْحَفُهُ مُعَلَّقٌ فِي بَيْتِهِ فَيَزِيدُ وَيَنْقُصُ. ۶ فَقُلْنَا: إِنَّمَا أَرَدْنَا حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنَ النَّبِيِّ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ-.

**ترجمه:** ۱ حضرت غريف ابن ديلمي رحمه الله (تابعي) وايي ۲ چې مونږ د حضرت واثله رضي الله عنه ابن اسقع (صحابي) په خدمت کې حاضر شو، ۳ او عرض مو وکړي چې مونږ ته څه حديث بيان کړه، چې په هغه کې څه کمی بيشي نه وي، ۴ حضرت واثله رضي الله عنه (د دې خبري اوريدو سره) په قهر شو، او هغه اوويل ۵ چې تاسو خلق (شپه او ورځ) قرآن وايئ، او ستاسو قرآن کريم ستاسو په کور کې ځړيږي، بيا هم د دې باوجود (د سهو او خطا د مخه) کمي بيشي کيږى (يعني هر کله چې يو سړی د قرآن کريم تلاوت کوي نو د هغه قرآن کريم د هغه په کور کي. يا د هغه سره موجود وي، او په دې صورت کې که هغه ته څه شبهه وي، نو هغه قرآن کتلی شي، ليکن د دې با وجود په تلاوت کې د غلطي سره څه لفظ پريږدي، يا څه لفظ زيات کړي. نو معلومه شوه چې ضبط وتکرار او د پوره احتياط باوجود د روايت په نقل کولو کې د الفاظ کمی بيشي ضرور راځي) ۶ مونږ عرض اوکړو چې زمونږ مطلب خو يواځې دا دی چې تاسو د حضور صلى الله عليه وسلم نه کوم حديث اوريدلی وي، مونږ ته هغه اووايئ،

**حل اللغات** ① مُصْحَفُهُ: د هغه قرآن کريم ② مُعَلَّقٌ: رازوړند وی

۱ فَقَالَ: «أَتَيْنَا رَسُولَ اللهِ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- فِي صَاحِبٍ لَنَا ۲ أَوْجَبَ يَعْنِي: النَّارَ بِالْقَتْلِ. ۳ فَقَالَ: (أَعْتِقُوا عَنْهُ ۴ يُعْتِقِ اللهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ مِنَ النَّارِ») . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ نو حضرت واثله رضي الله عنه دا حديث بيان کړي چې (يوه ورځ) مونږ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې د خپل يو دوست په معامله کې راغلو ۲ چې هغه (خودکشي کولو سره يا بل څوک عمداً) قتلولو سره د ځان د پاره د دوزخ اور واجب کړي وو، ۳ حضور صلى الله عليه وسلم (د واقعي اوريدو سره) وفرمايل چې د هغه سړي د طرف نه غلام آزاد کړي، ۴ الله تعالى به د هغه غلام د هر اندام په بدله کې د قاتل هر اندام ته د دوزخ د اور نه نجات ورکړي، (ابوداود)

**حل اللغات** ③-فِي صَاحِبٍ لَنَا: د خپل يو دوست په معامله کښې ④ أَوْجَبَ: واجب کړي ئې دي.

۱) اخرجه ابوداود في كتاب العتق/باب في ثواب العتق (رقم - ۳۹۶۴)

**تسهيلات:**

**قوله فَغَضِبَ:**

**د روايت بالمعنى د جواز دليل:** حضرت واثله بن اسقع رضي الله عنه ګڼړل چه دا خلق د نبي کريم د ژبې مبارکې الفاظ بعينه هم هغه شان د نقل کولو مطالبه کوي لکه څنګه چه نبي کريم ارشاد فرمائيلي وي په دې وجه غصه شو ليکن کله چه دغه حضراتو صحابي پوهه کړو چه زمونږ مطلب دادې نودَهغه غصه ختمه شوه (ومصحفه معلق) دغه وخت قرآن کريم په مجلدشکل کښې نه وو بلکه جدا جدا څيزونوباندې ليکلې شوې وو اوبياني دغه ټول څيزونه او پاڼړې په يوه کپړه کښې ترلوسره په ديوال پورې زوړند ساتلو هم دغه پس منظر په دې الفاظوکښې بيان کړې شوې دې. دَدې کلام نه معلومه شوه چه روايت بالمعنى جائزدې کله چه مفهوم اومقصود يووي نخبة الفكر وغيره اصول حديث کتابونوکښې ليکلي دي چه روايت بالمعنى دَ عالم نه بغيربل څوک نه شي کولې.

**قوله: أَوْجَبَ يَعْنِي: النَّارَ بِالْقَتْلِ**

**مذکوره جملې په وئيلو کښې دوه اقوال:** يعني هغه خودکشي کړې وه نوځکه واجب النارشوې وو يا هغه بل څوک سړې قتل کړې وو دَ کوم په وجه چه هغه واجب النار شوې وو

① ملاعلي قاري مرقات کښې ليکي چه کيدې شي دا مقتول دَمعاهدين نه وي اوپه غلطئي سره دې قتل کړې شوې وي اودغه سوال کونکوخيال اوکړو چه قتل خطاء هم موجب جهنم دې په دې وجه هغوي داقسم الفاظ اداکړل چه هغه واجب النار وو نونبي کريم اوفرمائيل غلام آزاد کړه کفاره کافي ده.

② زجاجة المصابيح په حاشيه کښې دَدې مصنف ليکلي دي چه دَ غلام دَ آزادولوحکم به روستوورکړې شوې وي اودَ قتل دَ وجې نه چه کومه سزا شوې وه کيدې شي هغه دغه خلقو پوره کړې وه

**[۳۳۸۷] د غلام د آزادۍ دپاره په سفارش د صدقې اطلاق**

۳۳۸۰—[۲] (۱) ①وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ الشَّفَاعَةُ ③بِهَا تُفَكُّ الرَّقَبَةُ»". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ①او حضرت سمره رضي الله عنه ابن جندب وايي ②چې رسول الله ﷺ وفرمايل بهترينه صدقه هغه سفارش دى ③چې د هغه په نتيجه کې (د برده) غاړې ته خلاصون حاصل شي. (بيهقي)

**حل اللغات:** ①تُفَكُّ: ته خلاص کړې، آزاد کړې

۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم-۷۶۸۲)

**تسهیلات**

**قوله** شَفَاعَةُ

**د شفاعت دوه مطلبونه:** ① د سفارش مطلب دا دې چه سفارش کولو سره ئې غلام آزاد کړو ② بل مطلب دا دې چې بوسړی خپل غلام قتل کول غوښتل بل هغه وهی بل پرې د پکه کوي نو به دغه تنازعه کښې سفارش کولو سره د غه مظلوم غلام بچ کول د بهترین صدقه ده

## [۱] بَابُ إِعْتَاقِ الْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ وَشِرَاءِ الْقَرِيبِ وَالْعِتْقِ فِي الْمَرَضِ

**د عبد مشترک آزادولو او د رشته دار د اخستلو او په حالت مرض کښې د غلام د آزادولو بیان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل**

① حكم إعتاق العبد المشترك: ۱، ۲، ۱۰.
② حكم الإعتاق في المرض: ۳.
③ قضية شراء الغلام المحرم وحكمه: ۴، ۶.
④ حكم المدبر وأم الولد: ۵، ۷، ۸.
⑤ حكم مال العبد: ۹، ۱۸.
⑥ حكم الشرط في الإعتاق: ۱۱.
⑦ حكم المكاتب: ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵.
⑧ حكم الإعتاق عن الميت: ۱۶، ۱۷.

قال الله تعالى ﴿فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا﴾ [النور ۳۳]

**دباب خلاصه:** د پورتنی باب او عنوان لاندې د کومو مسئلو او احکامو متعلق چه احادیث راغلي هغه مسائل او احکام په درې قسمه دي

① په باب کښې یو عنوان د عبد مشترك مسئلو او احکامو د بیان په نسبت کړې شوې دې او ددې متعلق احادیث ذکر دي

② د باب دویم عنوان د رشته دار غلام باندې اخستلو سره د هغوی د آزادیدو حکمو او مسئلو سره متعلق دې او څه احادیث ددې عنوان متعلق دی

③ دریم عنوان په مرض الوفات کښې د غلام آزادولو احکام او مسائل دی او څه احادیث ددې عنوان متعلق دی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۲۸۸] د مشترک غلام د آزادولو په باره کښي يو هدايت

۲۲۸۸—[۱] (۱) [۱]عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ -: [۲]( «مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِي عَبْدٍ [۳]وَكَانَ لَهُ مَالٌ يَبْلُغُ ثَمَنَ الْعَبْدِ، [۴]قُوِّمَ الْعَبْدُ عَلَيْهِ قِيمَةَ عَدْلٍ، [۵]فَأُعْطِيَ شُرَكَاؤُهُ حِصَصَهُمْ، [۶]وَعَتَقَ عَلَيْهِ الْعَبْدُ، [۷]وَإِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]کوم سړی چې د يو مشترك غلام خپله حصه آزاده کړي [۳]نو د هغه د پاره بهتره دا ده که، د هغه سره دومره مال وي چې د هغه غلام د باقي حصو د قيمت په قدر وي، [۴]نو د انصاف سره (يعني بغير د کمي او بيشی) د هغه غلام (د باقي هغه حصو) قيمت دی ولګول شي. [۵]او د هغه غلام نورو شريکانو ته دي د هغوئ د حصو قيمت ورکړي، [۶]نو هغه غلام به د هغه د طرف نه آزاد شي، [۷]او که د هغه سره دومره مال نه وي، نو بيا د هغه غلام کومه حصه چې هغه سړي آزاده کړيده هغه به آزاده شي (او د نورو شريکانو حصي به مملوك وي) بخاری مسلم

**حل اللغات:** ①شِرْكًا لَهُ: چه دده ورسره شراکت وی. ②ثَمَنَ الْعَبْدِ: د غلام قيمت. ③قُوِّمَ: قيمت دي ولګولي شی. ④قِيمَةَ عَدْلٍ: قيمت د انصاف، بغير کمی بيشی

**تسهيلات:** **قوله:** مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِي عَبْدٍ..الخ:

### د يو څو اصطلاحي الفاظو تشريح

په دې بحث کښي د يوڅو مشکل الفاظو تشريح ورکول ضروری ده دې د پاره چه لوستونکوته آسانی وی

① **تضمين:** هم د دې معنی ضمان اداکول تاوان ورکول دی مطلب دا چه کله مالدار ملګری د بل ملګری سره شريك غلام کښي خپله حصه آزاده کړه نوهغه به د خپل ملګری د حصي تاوان ورکول

② **استسعاء:** دا د طلب محنت کسب اوګټي طلب کولوپه معنی کښي دی مطلب داچه غلام آزادونکي کوم وخت فقير اولاچار وی نود هغه بل شريك ملګري دې د غلام نه د خپلي حصي برابر ګټه وصول کوی

③ **ولاء:** کوم سړي چه غلام آزادکړی د غلام د مرګ نه پس د هغه ميراث به آزدونکی ته

---

۱) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۲۵۲۲. ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۱/ ۱۵۰۱ وابوداود فی السنن رقم الحديث ۳۹۴۰ والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی العبد يکون بين الرجلين فيعتق أحدهما نصيبه (رقم-۱۳۴۶) والنسائی فی کتاب البيوع/باب الشرکة فی الرقيق (رقم-۴۶۹۹) وابن ماجه فی کتاب العتق/باب من أعتق شرکا له فی عبد(رقم-۲۵۲۸)

ملاويږي هم د دغه ميراث نوم ولاء ده كه چرې دوو كسانو غلام آزاد كړو نوولاء به دواړو ته ملاويږي

④ **معتق**: دا د اسم فاعل صيغه ده يعنى آزادونكې، يوغلام آزادونكى ته معتق وائى

⑤ **حالت يسار**: يسار مالدارئى ته وائى حالت يسار يعنى د مالدارئى په حالت كښې اوحالت اعسار يعنى د تنګدستئى په حالت كښې

اعتاق كښې دتجزى مطلب دادې چه جزوى اعتاق او جزوى آزادى معتبر ده

⑥ **مجانا**: يعنى مفت آزادول

⑦ **تجزى**: دا لفظ دلته اعتاق سره استعمال شوې دې دا د جزء جزء او ټكړې ټكړې كيدو په معنى كښې دې په

**قوله**: مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِي عَبْدٍ الخ

**د إعتاق په تجزى قبلولو كښې مذاهب**:

داصل مسئلې شروع كولو نه وړاندې مناسب ده چې په كوم اصولى اختلاف باندې دا مسئله بنا ده دهغې وضاحت اوشى هغه مسئله دا ده چې اعتاق تجزى او تقسيم قبلوى كه نه؟

① د جمهورو په نيز اعتاق تجزى قبلوى. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم اعتاق تجزى قبلوى البته د فقهى اواجتهادى اختلاف د وجې نه په مسئله كښې فرق راغلو كوم چه پورته بيان كړې شو

② د صاحبينو مسلك دادې چه اعتاق قطعًا تجزى نه قبلوى هم دغه وجه ده چه د مشترك غلام هره يوه حصه هم كه يوشريك آزاده كړه نو پوره غلام به هم هغه وخت آزاد شى

هركله چې دا معلومه شوه نو اوس اصل مسئلې ته راشئ

**د عبد مشترك د آزادولو په حكم كښې مذاهب**:

دحضرت ابن عمر رضي الله عنه په مذكوره حديث كښې دا مسئله بيان كړې شوې ده چه كله د دوو سړو په مينځ كښې يوغلام مشترك وى اويوشريك خپله حصه آزاده كړې وى نو په دې كښې د فقهاء كرامو اختلاف دې

① جمهور امام مالك رحمه الله امام شافعى رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى كه چرته آزادونكې معتق مالدار وى نوهغه له پكاردى چه د شريك د حصې قيمت هم اداكړى نوپوره غلام به دهغه د طرف نه آزاد شى او ولاء به هم آزاد كونكى ته ملاويږى. اوكه چرې آزادكونكې غريب وى نوصرف هم دهغه حصه به آزاده شى اود هغه د شريك حصه به غلام پاتې وى. ددوى په نيزد غلام اعتاق كښې تجزى جائز ده لهذا نيم آزاددې اونيم غلام دې يوه ورځ به دې دخپل مالك په خدمت كښې تيره وى او يوه ورځ به آزاد فارغ اوعيش كوى

② امام ابویوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله یعنی صاحبین فرمائی چه آزادونکی مالداروی نو د غلام باقی نیم قیمت به د دویم شریك ته اداکوی نو غلام به د ده د طرف نه آزاد شی او د ولاء حق به هم ده ته ملاویږی او که چرې آزادونکی غریب وی نو غلام به پخپله کوشش او محنت کوی پیسه به گټی او په خپل نیم قیمت به شریك مالك ته ورکولو سره آزادی حاصلوی دې ته استسعاء ونیلی شی بهرحال د صاحبینو په نیز به په هرصورت کښې غلام آزادیږی ځکه چه د هغوی په نیز اعتاق تجزی نه قبلوی او دې آزادونکی د خپل شریك غلام حصه برباده کړه لهذا د ضمان په توګه به خپل شریك ته د هغه د حصې قیمت ورکوی که چرې هغه سره مال وی ګنی په غلام باندې استسعاء لازم ده

③ امام ابوحنیفه فرمائی که د مشترك غلام آزادونکی مالدار وی نو د هغه شریك ملګری ته د دریو خبرو اختیار حاصل دې

۱- یاخودې هغه هم خپله حصه آزاده کړی او په ولاء کښې به دواړه شریك وی یا دې هغه آزادونکی نه د خپل ملګری نه د تاوان په توګه د خپلې حصې قیمت واخلی

۲- اویادې په غلام باندې کوشش کولوسره خپله حصه وصول کړی که چرې آزادونکې پخپله غریب دې نو د هغه شریك ملګری ته به د دوو خبرو اختیار حاصل وی چه

۳- یخودې هغه هم فی سبیل الله خپله حصه آزاده کړی اویادې په غلام باندې سعی اوکړی او خپل حق دې وصول کړی

**داول فریق دلیل:** زیر بحث د حضرت ابن عمر رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې دا حدیث په دې خبره کښې بالکل واضح دې که چرې آزادونکی مالدار دې نوهغه به بل شریك ته صرف ضمان اداکوی او که چرې هغه غریب دې نوبیاخو به هم غلام پاتې وی بل صورت نشته دې

**د دویم فریق دلائل:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ((مَنْ أَعْتَقَ شِقْصًا فِي عَبْدٍ أُعْتِقَ كُلُّهُ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ اسْتُسْعِيَ الْعَبْدُ غَيْرَ مَشْقُوقٍ عَلَيْهِ)). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

② وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: «أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ شِقْصًا مِنْ غُلَامٍ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: "لَيْسَ لِلَّهِ شَرِيكٌ". فَأَجَازَ عِتْقَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

په دواړو احادیثو کښې په واضح توګه باندې ذکر دی چه اعتاق تجزی نه قبلوی بلکه که چرې آزادونکی مالدار دې نوهغه به خپل شریك ملګری ته تاوان اداکوی او که فقیر وی نو په غلام باندې به سعی کوی د حدیث الفاظ دادی ,,قال ان کان غنیا ضمن وان کان فقیرا سعی العبد فی حصة الاخر،،

**د دریم فریق دلائل:** امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله د جمهورو او صاحبینو دواړو د مستدلاتو نه خپل مسلك ثابت کړې دې او امام طحاوی رحمه الله هم د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه یو اثر د دلیل په توګه پیش کړې دې شاه انورشاه کشمیری رحمه الله د مسنداحمد یوروایت او د مصنف

عبدالرزاق یوروایت دَ امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله دَ مسلك په تائیدکښې نقل کړې دې بهرحال د صاحبینو مسلك دَ ظاهري حدیث په رڼاکښې ډیرواضح دې اوبیا دَ جمهورو مسلك واضح دې

**نوټ:** دا خبره دَ یاد ساتلوده چه امام ابوحنیفه دَ کوم اعتاق دَ تجزی اوعدم تجزی خبره فرمائی هغه "اعتاق بمعنی إزالة ملك" دې لهذا چه کوم وخت یوشریك خپله حصه آزاده کړه نو پوره غلام آزاد نه شو او صاحبینوچه کوم اعتاق ته غیرمتجزی ونیلې هلته اعتاق بمعنی اثبات الحریة دې، لهذا دَ یوشریك حصه آزادولوسره پوره غلام آزادیږی دَ ائمه احناف چه په خپل مینځ کښې کوم اختلاف دې دا په حقیقت کښې دَ اعتاق په تفسیرکښې دې صاحبین دَ اعتاق تفسیر "اثبات الحریة" سره کړې دې او "اثبات الحریة" کښې دَ تجزی څوك هم قائل نه دی او امام ابوحنیفه رحمه الله دَ اعتاق تفسیر "ازالهٔ ملك" سره کړې دې اودَ ازالهٔ ملك کښې دَ تجزی ټول فقهاء قائل دی لهذا دا اختلاف لکه چه لفظی اختلاف دې یا دَ تعبیر اوتفسیر اختلاف دې

**[۳۳۸۹] د مشترك غلام د بعضې حصې په آزادی د ټول غلام آزادی**

۳۳۸۹—[۲] (۱) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②(«مَنْ أَعْتَقَ شِقْصًا فِي عَبْدٍ أُعْتِقَ كُلُّهُ ③إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ، ④فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ ⑤اسْتُسْعِيَ الْعَبْدُ غَيْرَ مَشْقُوقٍ عَلَيْهِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①و حضرت ابوهریره رضی الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل ②کوم سړی چې د (مشترك) غلام خپله حصه آزاده کړي، نو هغه غلام به پوره آزاد شي او دا آزادي به د آزادونکي سړي د طرف نه متصور کیږي) ③او که هغه سړي سره دومره مال وي چې هغه د خپلي حصي نه علاوه د باقي حصو د قیمت ادائیګی وشي، نو نورو شرکاؤ ته دي د هغوئ د حصو قیمت ورکړي) ④او که د هغه سره دومره مال نه وي. ⑤نو بیا هغه غلام دی د هغه باقي حصو) په قدر قیمت او مزدوري یا د نورو شرکاؤ په خدمت مامور کړل شي. لیکن غلام دي په داسې کار محنت او مشقت کې نه مبتلا کوي چې د هغه د طاقت نه وتلي وي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** ①شِقْصًا: حصه. ②اسْتُسْعِيَ: کوشش، محنت، مزدوری به کوی. ③غَيْرَ مَشْقُوقٍ: چه د وَس اوطاقت نه زیات مشقت نه وی

۱) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۲۵۰۴ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۳/ ۱۵۰۳ وابوداود في السنن رقم الحديث ۳۹۳۷ والترمذي في كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في العبد يكون بين الرجلين فيعتق أحدهما نصيبه (رقم-۱۳۴۸) وابن ماجه في كتاب العتق/باب من أعتق شركا له في عبد(رقم-۲۵۲۷) واحمد في المسند: ۲/ ۲۵۵

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ أَعْتَقَ شِقْصًا فِي عَبْدٍ أُعْتِقَ كُلُّهُ

**نوټ:** په دې حدیث کښې ښکاره ثابته ده چې اعتاق تجزی نه قبلوی د بعضې حصې په آزادیدو به ټول غلام آزادیږي.

**[۳۳۹۰] د مرګ په وخت کښې د غلام د آزادولو حکم**

۳۳۹۰-[۳](۱) ① وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-: ② «أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ سِتَّةَ مَمْلُوكِينَ لَهُ عِنْدَ مَوْتِهِ ③ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُمْ، ④ فَدَعَا بِهِمْ رَسُولُ اللّٰهِ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- فَجَزَّأَهُمْ أَثْلَاثًا، ⑤ ثُمَّ أَقْرَعَ بَيْنَهُمْ، ⑥ فَأَعْتَقَ اثْنَيْنِ وَأَرَقَّ أَرْبَعَةً، ⑦ وَقَالَ لَهُ قَوْلًا شَدِيدًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه راوي دي ② چې یو سړي د خپل مرګ په وخت خپل شپږ غلامان آزاد کړل، ③ او د هغه سړي سره د هغه غلامانو نه علاوه بل څه مال نه وو (بیا د هغه سړي د مرګ نه وروسته چې رسول الله ﷺ ته علم وشو)، ④ نو حضور ﷺ (هغه غلامان را وبلل او (د دوو دوو په تعداد کې) هغوئ یې درې حصې کړل ⑤ او بیا د هغوئ په منځ کې یې قرعه واچوله، ⑥ دغه شان د هغوئ نه دوه خو یې آزاد کړې او څلور یې غلامان وساتل، ⑦ او د آزادونکي په حق کې (د ناراضګي د اظهار کولو د پاره) سخت الفاظ وفرمایل،

**حل اللغات:** ① فَجَزَّأَهُمْ: نو حصې حصې ئې کړل، ② أَثْلَاثًا: درې درې حصې، ③ أَقْرَعَ: قرعه اندازي، پچه ئې واچوله، ④ وَأَرَقَّ: غلامان ئې اوساتل،

① وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْهُ وَذَكَرَ (لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ لَا أُصَلِّيَ عَلَيْهِ) بَدَلَ (وَقَالَ لَهُ قَوْلًا شَدِيدًا). ② وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: قَالَ: ③ (لَوْ شَهِدْتُهُ قَبْلَ أَنْ يُدْفَنَ ④ لَمْ يُدْفَنْ فِي مَقَابِرِ الْمُسْلِمِينَ).

**ترجمه:** ① او د نسایي په روایت کې چې د حضرت عمران رضي الله عنه نه منقول دی د سخت الفاظ فرمایلو په ځای دا الفاظ دي چې ماخو دا اراده کړې وه، چې د دې سړي د جنازې مونځ ونه کړم. ② او د ابوداود په روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ (د هغه سړي په حق کې په طور د تنبیه او تهدید) دا وفرمایل ③ که زه د هغه د دفن کیدو نه مخکې د هغه جنازې ته رسیدلی وی، ④ نو هغه به د مسلمانانو په قبرستان کې دفن کولې نشو.

**حل اللغات:** ⑤ قَوْلًا شَدِيدًا: سخت الفاظ، د غصې خبرې، ⑥ هَمَمْتُ: ما قصد، اراده کړې ده

۱) اخرجه مسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۵۶/ ۱۶۶۸ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۳۹۵۸ والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن یعتق ممالیکه عند موته ولیس له مال غیرهم (رقم-۱۳۶۴) والنسائی فی کتاب الجنائز/باب الصلاة علی من یحیف فی وصیته (رقم-۱۹۵۸) وابن ماجه فی کتاب الأحکام/باب القضاء بالقرعة (رقم-۲۳۴۵) واحمد فی المسند: ۴۲۸/۴

**تسهیلات**

**قوله** أَعْتَقَ سِتَّةَ مَمْلُوكِينَ

**په مرض الموت کښې د دریمې حصې نه د زیات وصیت کولو حکم:** مملوکین د مملوك جمع ده یعنی شپږ غلامان دغه سړی آزاد کړل اوهم دغه شپږ غلامان د هغه ټوله سرمایه وه په مرض الموت کښې دهغه غلامانوسره دهغه د وارثانوحقوق تړلې شوې وو په دې آزادولوسره دغه سړی د وارثانوحق ضائع کړو په دې وجه نبی کریم د خفګان اظهاراوکړو اوبیانی غلامان درې حصې کړه خسنړې ئې واچولونو په دریوحصوکښې یوه حصه کښې عتق نافذ کړو اودریوکښې دوه یعنی څلورغلامان ئې پریخودل ددې حدیث نه دامسئله معلومه شوه که یوسړې په خپل مرض الوفات کښې خپل غلامان آزاد کړی اوهغه سره ددې غلامانونه علاوه نورڅه مال نه وی نودا عتق به په دریوحصوکښې په یوه حصه کښې نافذ کیږی په دې کښې د ټولو فقهاؤ اتفاق دې البته دا مسئله چه کوم کوم غلام به آزادیږی اود آزادنی کیفیت اوصورت به څه وی دې کښې اختلاف دې

**د فقهاؤاختلاف:** ①جمهور فرمائی چه مجموعه غلامان به دریوحصوکښې تقسیم کولې شی اوبیا به په دریوکښې د یوې حصې د پاره خسنړې اچولې شی مثلاً د شپږو غلامانو درې حصې به جوړکړې شی اود خسنړی په ذریعه به دریوکښې یوه حصه یعنی دوه غلامان به آزادکړې شی او دریوکښې دویمه حصه یعنی څلور به هم هغه شان غلامان پاتې وی کوم چه به وارثانوته ملاویږی لکه چه د عمران بن حصین ﷺ په دې روایت کښې بیان کړې شوی دی

② امام ابوحنیفه ﷺ فرمائی چه په مذکوره صورت کښې هرڅومره غلامان وی د هریوغلام به دریوحصوکښې یوه حصه آزادشی او باقی دوثلث په آزادنی کښې به غلام پخپله سعی اومحنت کولوسره ګټه کوی او رقم به راوړی مالك ته به ئې ورکوی اوخپل ځان به خلاصوی لکه چه د مرض الموت دا اعتاق د مړی په ثلث مال کښې نافذ ګڼړلې شی اودا ثلث به په ټول مال کښې خوریږی

**دلائل:** جمهوروحضرت عمران بن حصین ﷺ د روایت نه استدلال کړې دې چه د ظاهری الفاظ په لحاظ په خپله مدعاباندې واضح دلیل دې امام ابوحنیفه ﷺ فرمائی چه قرعه اندازی د اثبات حق دپاره نه وی بلکه د تطییب په خاطر کیږی اود اسلام په شروع کښې به قرعه اندازی د اثبات حکم دپاره کیدله خوچه کله جواری حرام اوګرځیدله نود قرعه اندازئی دا حکم هم موقوف شو اوس قرعه اندازی صرف مقرر حصصو د تعیین دپاره د تطییب په خاطر باقی ده د اثبات حق په حق کښې منسوخ ده امام طحاوی ﷺ د قرعه اندازئی داصورت منسوخ کیدو باندې ډیر دلائل پیش کړی دی. د مصنف عبدالرزاق یو

روایت هم په دې نسخ باندې دال دې د کوم الفاظ چه دادی «روي عبدالرزاق باسناد رجاله ثقات ان رجلا من بني عذرة اعتق مملوكا له عند موته وليس له مال غيره فاعتق رسول الله صلى الله عليه وسلم ثلثه وامره ان يسعى في الثلثين» دغه شان د مسنداحمد یوحدیث سره په واضحه توګه معلومیږی چه د هر غلام به یوثلث آزادیږی

**د امام صاحب د جمهورو د دلیل جواب:** ① د دې حدیث تعلق د حرمت قمارنه د وړاندې زمانې سره دې کله چه د قماریعنی جوارئ د حرمت حکم راغلو نود اثبات حق د پاره د قرعه اندازئ حکم هم حرام اوګرځولې شو. قرآن اوحدیث کښې د قمارحرمت څه پټه خبره نه ده لهذا د اثبات حق د پاره د قرعه اندازئ حکم منسوخ شوې دې

②دویم جواب دادې چه د دې حدیث واقعه یوه جزئی واقعه ده داضابطه نه شی جوړیدې په حدیث کښې ډیر احتمالات هم کیدې شی اود دې په الفاظو کښې اضطراب هم دې په بعضو کښې د آزادولو اوبعضو کښې د مدبر جوړولو الفاظ دی بعضو کښې د شپږو غلامانو ذکردې او بعضو کښې د یوغلام ذکردې

**[۲۳۹۱] د پلار د حق ادا کولو یوه طریقه**

[۳] (۱) ①(وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②( «لَا يَجْزِي وَلَدٌ وَالِدَهُ ③إِلَّا أَنْ يَجِدَهُ مَمْلُوكًا ④فَيَشْتَرِيَهُ فَيُعْتِقَهُ» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②یو خوی د خپل پلار بدله نشي اداء کولی، ③خو په دې صورت کې چې هغه خپل پلار د چا غلام و مومي ④او هغه په رانیولو سره آزاد کړي (مسلم)

**حل اللغات:** ①لَا يَجْزِي: بدله به نه ورکوي

**تسهیلات:**

**قوله فَيُعْتِقَهُ:** کله چرې یوسړې خپل یوذی رحم محرم یا خاص کر د پلار مالك جوړشی اوهغه په څه طریقه د ده په ملکیت کښې راشی نوهغه به هم آزاد وی په دې کښې د چا اختلاف نشته البته د دغه آزادئ کیفیت او تفصیل کښې لږ شان اختلاف دې

**د ذی رحم محرم د آزادیدو په طریقه کښې مذاهب:**

①د اهل ظواهرغیرمقلدین حضراتو په نیزذی رحم محرم به صرف په اخستلوسره نه آزادیږی بلکه د اخستلونه پس به آزادولې شی نوهله به آزادیږی ②د جمهور فقهاؤ په نیز

(۱) اخرجه مسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۲۵/ ۱۵۱۰ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۵۱۳۷ والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی حق الوالدین (رقم-۱۹۰۶) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب بر الوالدین (رقم-۳۶۵۹) واحمد فی المسند: ۲/ ۲۳۰

صرف په مالك جوړيدوسره به آزاديږي د آزادولو ضرورت نشته دي

**د اول فريق دليل**: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه زيربحث روايت د دوی مستدل دي چه په دې كښې فيعتقه لفظ كښې فاء د تعقيب مع الوصل دپاره ده يعنى اول نى واخستلو او د حسنلونه پس خوئي پلار آزادكړو معلومه شوه چه صرف په مالك جوړيدلو سره آزاديږي نه بلكه د مالك جوړيدلو نه پس آزادول ضروري دي

**د دويم فريق دلائل**: د حضرت سمرة رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دي

○ ------ عن الحسن عن سمرة - رضي الله عنهما - عن رسول الله - عليه الصلاة والسلام - قال: «من ملك ذا رحم فهو حر» رواه الترمذي وأبوداود وابن ماجه

⊙ د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت دي كوم چه امام نسائى رحمه الله نقل كړي دي ذهغې الفاظ د سې دي عن ابن عمر انه عليه السلام قال من ملك ذارحم محرم عتق عليه؛ په دې دواړو حديثونو كښې په نفس ملك باندې د اعتاق حكم لګولې شوې دې د مستقل آزادنى هيڅ ذكر نشته دې معلومه شوه چه صرف مالك جوړيدل د آزادنى دپاره كافي دی

**د اول فريق د مستدل جواب**: په دې روايت كښې (فيعتقه) كښې فاء سببيت دپاره ده په دې صورت كښې به ترجمه داسې كيږي چه هغه خپل پلار غلام اووينى او هغه ددې دپاره واخلى چه هغه آزاد كړی ددې مسئلې څه تفصيل د حضرت سمرة رضي الله عنه حديث نمبر (۳۳) كښې هم راروان دي

## [۳۳۹۲] د مدبر غلام د خرڅولو حكم

[۵] (۱) ⑴ (وعن جابر أن رجلا من الأنصار دبر مملوكا) ⑵ ولم يكن له مال غيره فبلغ ⑶ النبي - عليه الصلاة والسلام - فقال: ⑷ من يشتريه مني؟ ⑸ فاشتراه نعيم ابن النحام بثمانمائة درهم. متفق عليه.

**ترجمه**: ⑴ حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې يو انصاري خپل غلام مدبر كړي. ⑵ او د هغه سره د هغه غلام نه علاوه نور څه مال نه وو. ⑶ كوم وخت چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د دې نه خبر شو . نو وئي فرمايل ⑷ چې دا غلام زما نه څوك رانيولې شي. ⑸ نو يو سړي نعيم ابن نحام هغه غلام په اته سوه درهمه واخستې (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ⓵ دبر اى اثبت العتق عن دبر. څوك چې خپل غلام ته اووايي چې ته زما د مرګ نه وروسته آزاد ئې. نو هغه ته مُدبّر وائى

⑴ وفي رواية لمسلم: ⑵ فاشتراه نعيم بن عبد الله العدوي بثمانمائة درهم، ⑶ فجاء بها إلى النبي - عليه الصلاة والسلام - فدفعها إليه ⑷ ثم قال: ابدأ بنفسك فتصدق عليها ⑸ فإن فضل شيء فلأهلك فإن فضل عن

---

۱) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۶۷۱۶ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۵۸/ ۹۹۷ والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في بيع المدبر(رقم-۱۲۱۹)

أَهْلِكَ شَيْءٌ فَلِذِي قَرَابَتِكَ، ⑥فَإِنْ فَضَلَ عَنْ ذِي قَرَابَتِكَ شَيْءٌ فَهَكَذَا وَهَكَذَا، ⑦يَقُولُ: فَبَيْنَ يَدَيْكَ وَعَنْ يَمِينِكَ وَعَنْ شِمَالِكَ اقْضِ دَيْنَكَ.

**ترجمه:** ①د مسلم په یو روایت کې داسې دي ②چې یو سړی نعیم ابن عبدالله عدوي هغه غلام د اته سوه درهم په عوض کې واخستې ، ③هغه اته سوه درهمه یې د نبي کریم ﷺ په خدمت کې پیش کړل، او نبي کریم ﷺ هغه درهم هغه سړي ته ورکړل (د چا چې غلام وو) ④او ورته وي وئیل ته دا روپۍ د ټولو نه مخکې په خپل ذات خرچ کړه، او د دې په ذریعه ثواب حاصل کړه، ⑤او د دې نه وروسته که څه پاتې شي، نو په خپل اهل وعیال یې خرچ کړه. که په هغوئ د خرچ کولو نه وروسته هم څه پاتې شي، نو هغه خپل په اقرباؤ خرچ کړه، ⑥او بیا په هغوئ د خرچ کولو نه وروسته که څه پاتې شي، نو ته هغه داسې او داسې خرچ کړه، ⑦راوي وایي چې د داسې او داسې نه مراد دا دی چې هغه په خپل مخ، په خپل ښي او په خپل چَپ طرف خرچ کړه (یعني ستا مخې ته او ښي او چَپ طرف ته چې کوم سائل سوالګر) جمع وي هغوئ ته یې د الله ﷻ د پاره ورکړه.

**تسهیلات:**

**قوله دَبَّرَ مَمْلُوكًا**

**د مدبر دوه قسمونه اوتعریفونه:** مدبرپه دوه قسمه دي. ① مدبرمطلق دې دا هغه وی چه مالك هغه ته اووائی چه زما دَمرګ نه پس ته آزادئی

② مدبرمقید دا هغه وی چه مالك هغه ته داسې اووائی که زما په دې موجوده بیمارئی کښې زه مړشوم نوته آزادئی اوس دَمدبرمطلق خرڅولو یا نه خرڅولو کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې

**د مدبر په خرڅولو کښې مذاهب:**

① امام شافعي رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه دَمدبرخرڅول جائزدی

② امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمائی داسې غلام چه مدبروی دَهغه آزادول خوجائز دی لیکن دَهغه خرڅول یاچاته هبه کول یا په څه توګه باندې دَ خپل ملك نه ویستلوسره دَ بل په ملك کښې ورکول جائزنه دی اوخپل خان سره نی.دَ خادم او غلام په توګه ساتلې شی که چرې وینځه وی نوهغې سره جماع هم کولې شی اودَبل چا په نکاح کښې هم ورکولې شی لیکن دَ خپل ملك نه ویستل جائزنه دی دَمدبرمقیدحکم دې نه مختلف دې دَهغه خرڅول جائز دی هبه کول جائز دی خپل خان سره ساتل هم جائز دی اودَخپل ملك نه ویستل هم جائز دی اودَ مالك په مرګ سره مدبرمقید هم هغه شان آزادیږی لکه څنګه چه مدبرمطلق آزادیږی

**داول فریق دلیل:** زیربحث دحضرت جابر رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه بنکل واضح دی نبی کریم فرمانیلی "من یشتریه" دحضرت نُعیم باره کښې دی چه "فاشتراه" نو په دغه خرڅولو او اخستلو کښې هیڅ شبه نشته دې لهذا دمدبر بیع جائز ده

**د دویم فریق دلیل:** ① د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه حضرت عثمان رضی الله عنه وغیره اکثرصحابه او تابعینو روایاتو او آثار د دوی مستدلات دی چنانچه بدائع صنائع کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله دامقوله نقل ده هغوی فرمانی "لولا قول هئولاء الاجلة لقلت بجواز بیع المدبر" که چرې دعلم ددې غرونو قول مخې ته نه وې نو مابه د مدبر د بیع دجواز فتوی ورکونه.

② د دارقطنی یوروایت هم د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه داسې دی "المدبر لا یباع ولا یوهب وهو حر من ثلث المال" (بحواله نصب الرایه ۲۸۵/۳) دا حدیث سره ددې چه موقوف دې لیکن د غیرمدرك بالقیاس په صورت کښې موقوف حدیث د مرفوع په حکم کښې وی.

**داول فریق د دلیل جواب:** ① رسول الله صلی الله علیه وسلم د دغه مدبر مدبریت ختم کړو او ددې نه پس نې هغه خرڅ کړو دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم خصوصیت وو.

② د حدیث په مدبرمقیدباندې محمول دې او دمدبر مقید په بیع کښې زمونږ اختلاف نشته دې

③ دلته د بیع اطلاق په اجاره باندې شوې دې او په اجاره باندې د بیع اطلاق کیږی نو دلته د بیع نه بیع الخدمت یعنی اجاره مراد ده او بعضې روایاتونه ثابت دی چه دا مدبرنې په اته درهمه اجاره باندې ورکړې وو نصب الرایه ۳/۲۸۵-۲۸۶.

**فائده: د نعیم بن نحام د نوم تحقیق:** دمشکوة شریف په ټولو نسخوکښې دلته نعیم بن نحام لیکلې شوې دې شارحین وائی دا د کاتب غلطی ده ځکه چه نعیم دهغه صحابی رضی الله عنه نوم دې او نحام دهغه لقب دې ځکه چه په حدیث کښې راغلی دی چه نبی کریم فرمانیلی چه زه کله جنت ته داخل شوم نوما د نعیم (نحمة) واوریده نحمه ووب آواز یا د ټوخی آواز ته وائی هم په دې سره دهغه لقب نحام شو ګنی دهغه د پلار نوم عبدالله دې حضرت نعیم رضی الله عنه په مکه مکرمه کښې مسلمان شوې وو بیائی د صلح حدیبیه په زمانه کښې مدینې ته هجرت اوکړو او دوی سره د خاندان څلویښت کسان هم وو او د شام په زمکه باندې په یوغزوه کښې شهید شوې وو

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۳۹۲] د محرم په ملکیت کښې په راتلو سره د غلام آزادیدل

۳۳۹۲-[۲] (۱) [۱] عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ - قَالَ: [۲] ((مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ فَهُوَ حُرٌّ)) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حسن بصري رحمه الله د حضرت سمره رضي الله عنه نه او هغه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې د رانیولو په وجه (او یاد هبه یا وراثت په ذریعه) د خپل ذي رحم محرم مالك شي نو هغه به آزادیږي. (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① ذَا رَحِمٍ: رشته دار.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ:

**د ذي رحم محرم مصداق:** دَ ذي رحم محرم نه هغه خلق مراد دي دَچا چه په خپل مینځ کښې کله هم نکاح نه شي کیدې مثلاً تره، وریره، پهوپهي، خاله، نانا، ناني، دادا، دادي اصول فروع او س دَ فقهاؤ دې کښې اختلاف دې چه کوم قرابت دَ حریت موجب دې اوکوم یونه دې

**د قرابت موجب ملکیت کښې (۲) مذاهب:**

① دَامام شافعي رحمه الله په نیز قرابت ولادت یعنی اصول اوفروع موجب حریت دی لهذا دا حریت پلاران اونیکونه مئیندې او نیاګانې دَ پورته پورې اوځامن اولونړه دَ ښکته پورې کښې به ثابت وی او قرابت اخوت وغیره کښې به حریت ثابت نه وی

② احناف مالکیه او حنابله جمهورفرمائي چه دَ هرقسم قرابت والاچه کله به دَ خپل ذی رحم محرم مالك جوړیږی نوهغه غلام به آزادشی که هغه قرابت ولادت وی اوکه قرابت اخوت وی

**داول فریق دلیل:** دَمالك اوآقادَ رضامندئی نه بغیر صرف اخستلوسره دَ غلام آزادیدل دَ قیاس خلاف دی لیکن قرابت اوولادت یعنی اصول او فروع کښې داحکم خلاف القیاس ثابت شوې دې لهذا دا نص به په خپل مورد کښې به بند اومنحصروی نودَ اصول اوفروع نه سوا به اخوت وغیره شامل نه وی

**داول فریق د دلیل جواب:** چه کله صریح حدیث موجوددې نودَ قیاس څه ضرورت دې

**د دویم فریق دلیل:** دَحضرت سمره رضي الله عنه زیربحث حدیث د دوی مستدل دې چه په خپل مفهوم اومضمون کښې مطلق دې چرته چه دَ ذی رحم محرم الفاظ راغلی دی لهذا دا

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب العتق/ کتاب الطب/باب فیمن ملك ذا رحم محرم (رقم-۳۹۴۹) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن ملك ذا رحم محرم (رقم-۱۳۶۵)

مطلق په خپل اطلاق باندې به جاري ساتلې شي په دې کښې د قرابت اوولادت څه تخصيص نشته دې نو اصول فروع او اخوت وغيره ټولو ته به شامل وي.

**[۳۳۹٤] د مالک د وفات څخه روسته د اُمّ ولد آزاديدل**

۳۳۹۴-[۷] (۱) ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ - قَالَ: ۲ «وَإِذَا وَلَدَتْ أَمَةُ ۳ الرَّجُلِ مِنْهُ فَهِيَ عَنْ دُبُرٍ مِنْهُ - أَوْ بَعْدَهُ» -). رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې وي فرمايل ۲ هر کله چې يوه وينځه د هغه (د نطفې نه) وروکی راوړي، ۳ نو هغه وينځه د هغه سړي نه وروسته يـ وي فرمايل چې د هغه د مرګ نه وروسته آزاده ده (دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِذَا وَلَدَتْ أَمَةُ الرَّجُلِ مِنْهُ:

**د يوکس څخه دهغه د وينځې د پيداکيدو مطلب:** مطلب دادې چې کومې وينځې نه د مالك بچې پيدا شي نو هغه به ددې مالك د مړ کيدو نه پس آزاده شي ، او دمالك په ژوند کښې نه آزاديږي خو مالك دا وينځه نه خرڅولې شي اونه ئې هبه کولې شي په دې مسئله باندې د علماء کرامو اجماع او اتفاق دې ددې برخلاف چې کوم روايت منقول دې هغه منسوخ دې ددې تفصيل ددې راتلونکې حديث په ضمن کښې راروان دې

[۳۳۹۵] دامهات الاولاد د تجارت څخه دعمر رضی الله عنه ممانعت

۳۳۹۵-[۸] (۲) ۱ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «بِعْنَا أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَبِي بَكْرٍ، ۲ فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ نَهَانَا عَنْهُ، ۳ فَانْتَهَيْنَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې مونږ د رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رضي الله عنه په زمانه کې د وړو مندي (ام ولدی) خرڅولې، ۲ ليکن حضرت عمر فاروق رضي الله عنه چې خليفه شو ، نو هغه د دې د خرڅولو نه مونږ منع کړو ۳ نو مونږ منع شو . (ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله** وَإِذَا وَلَدَتْ أَمَةُ الرَّجُلِ:

**د ام ولد تعريف:** ام ولده هغه وينځې ته وائي چه د مولی د جماع کولو نه د هغې بچې پيداشوې وی د ام ولده په خرڅولو اونه خرڅولو کښې د فقهاء اختلاف دې

---

(۱) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب العتق/باب أمهات الأولاد (رقم-۲۵۱۵) واحمد في المسند: ۳۰۳/۱

(۲) اخرجه ابوداود في كتاب العتق/ كتاب الطب/باب في عتق أمهات الأولاد(رقم-۳۹۵٤) وابن ماجه في كتاب العتق/باب أمهات الأولاد (رقم ۲۵۱۷)

## د ام ولد د بیعې په حکم کښې مذاهب:

① اهل ظواهر غیر مقلدین حضرات فرمائی چه دَ ام ولده خرڅول جائز دی

② دَ جمهور فقهاؤ اوتابعینو په نیز دَ ام ولده خرڅول جائزنه دی شیخ ابن قدامه په عدم جواز باندې دَ صحابه کرامو ﷡ اجماع نقل کړې ده

**داول فریق دلیل:** ① دَ حضرت جابر ﷛ دَ حدیث نمبر (۳۳۹۵) د دوی مستدل دې چه (بعنا امهات الاولاد علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم)

**داول فریق د دلیل جواب:** اول دَ ام ولده خرڅول جائزوو بیا منسوخ شو دَصدیق اکبر ﷛ دور مختصر وو داخلی او بیرونی خطرات وو په دې وجه هغوی دَ مسائلودَ منضبط کونودې ره فارغ نه وو بیا دَ عمر فاروق ﷛ په دورکښې دَ ام ولده په خرڅولو باندې بندی اولګیده اودَ عدم جواز عام اعلان اوشو دَ حضرت عمر فاروق ﷛ دَ دور یوه دا واقعه نه ده بلکه داسې ډیرواقعات راغلی دی دابه دَ صحابه کرامو په مشوره اواتفاق سره کیدل چه دَ اجماع امت حیثیت لری.

**د دویم فریق دلائل:**

① زیربحث دَحضرت جابر ﷛ حدیث نمبر (۳۳۹۵) هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ امهات اولاد خرڅولو ممانعت حضرت عمر ﷛ دَ صحابه کرامو سره دَ مشورې نه پس کړې وو نوصحابه کرامو قبول کړو نو په عدم جواز باندې اجماع اوشوه

② دَحضرت ابن عباس ﷠ حدیث نمبر (۳۳۹۴) هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه (فهي معتقة) الفظ راغلی دی چه کله دَ بچی په راوړلو سره ام ولده آزاده شوه او په هغې باندې دَ عتق حکم اولګیدو نوبیابه دَهغې خرڅول څنګه جائز شي

③ دَحضرت ماریه قبطیه ﷠ واقعه هم د دوی مستدل ده دا دَ نبی کریم وینځه وه کومه چه دَ مقوقس بادشاه دَ تحفه په توګه دَ مصرنه دَنبی کریم دَ خدمت دپاره رالیګلې وه دهغې د بطن نه چه کله ابراهیم پیدا شو نونبی کریم اوفرمائیل (اعتقها ولدها) ابن ماجه دارقطنی

### [۳۳۹٦] دَ معتق غلام دَ مال حکم

۳۳۹٦-[۹] (۱) ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «مَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ، ۳ فَمَالُ الْعَبْدِ لَهُ ۴ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ السَّيِّدُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ که یو سړی خپل

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب العتق/باب فیمن أعتق عبدا وله مال (رقم-۳۹۶۲) وابن ماجه فی کتاب العتق/باب من أعتق عبدا وله مال (رقم-۲۵۲۹)

غلام آزاد کړي او د هغه غلام سره څه مال وي، [۳] نو د غلام هغه مال د هغه د مالك دی.
[۴] نو که مالك د هغه شرط وکړي نو بیا هغه مال به د هغه غلام وي، ابوداؤد، ابن ماجه

**تسهیلات: قوله وَلَهُ مَالٌ،**

**اعتراض:** غلام د هیڅ مال مالك نه وی دَهغه په ملکیت کښې چه څه وی هغه به دَ مولی وی بیا دلته څنګه اوفرمائیل (وله مال)

**جواب:** ددې جواب دادې چه داغلام مثلاً ماذون وی چه مولی ورته دَ ذاتی ګټې اجازت ورکړې وی اوهغه محنت مزدوری کولوسره مال راجمع کړې وی نودَ آزادولو په وخت به دا مال دَ غلام وی که دَ مولی به وی په دې کښې اختلاف دې

**د عبد ماذون کټلي مال په مالکیت کښې مذاهب:**

① دَامام مالك رحمه الله حسن بصری رحمه الله اواهل ظواهروغیره دامسلك دې چه دا مال دَغلام دې هغه ته به ملاویږی

② دَ جمهور فقهاؤ مسلك دادې چه دَغلام دَ عتق په وخت کوم مال غلام سره دې هغه دَهغه دمولی دې اوکه هغه وخت مولی دا اووائی چه دامال به دَ غلام وی نودادَ دغه مولی دَطرف نه دَغلام دپاره صدقه او هبه ده

**داول فریق اول دلیل:** زیربحث د حضرت ابن عمر رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې طریقه دَ استدلال داسې دې چه (فما العبدله) ضمیر دَ عبدطرف ته راګرځی چونکه عبدقریب هم دې لهذا دَ ضمیرحق هم دغه دې چه (العبد) طرف ته راجع کړې شی دَ حدیث مطلب به داسې شی پس دَ غلام هغه مال هم دَ غلام دې اوکه مولی دا شرط اولګوی چه دَ غلام مال به زما وی نودهغه شرط به منلې شی

**د اول فریق د اول دلیل جواب:** په زیر بحث حدیث کښې له ضمیر مولی طرف ته راجع دې نوداد جمهورو مستدل دې مولانا فضل محمد صاحب فرمائی چه زیربحث حدیث کښې (ان یشترط السید) الفاظ دې توجیه سره په ظاهره موافقت نه لری دَ اسلوب کلام تقاضا ده چه ضمیردَ غلام طرف ته راوګرځی والله اعلم

**داول فریق دویم دلیل:** دَحضرت ابن عمر رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې (عن ابن عمر عن النبی صلی الله علیه وسلم قال من اعتق عبدا وله مال فالمال للعبد) (رواه احمد) په دې روایت کښې هیڅ ضمیرنشته بلکه تصریح ده چه مال به هم غلام ته ملاویږی

**د اول فریق د دویم دلیل جواب:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دا روایت خطاء دې (قیل الحدیث خطأ) لهذا قابل دَ استدلال نه دې

**د دویم فریق دلائل:** زیربحث د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حدیث نمبر(۳۳۴۱) د دوی هم مستدل

دي دَاستدلال طريقه دا ده چي (فمال العبدله) کښي له ضميرد مولى طرف ته راجع دي مطلب داشو چه دَغلام مال به هم مولى ته ملاويږي اوکه مولى دا شرط اولګوی چه دامال به غلام ته ملاويږي نوبيابه مال دَغلام وی اودَ مولى دَ طرف نه به دا هبه اوصدقه شي

⑥ دا روايت هم د دوی مستدل دي (من باع عبدا وله مال فماله للبائع) (متفق عليه) په دي روايت سره دَ زير بحث حديث تفسيراوتشريح هم اوشوه چه (فمال العبدله) کښي لـه ضميرد مولى طرف ته راجع دي

⑦ (عن ابن مسعود قال سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول من اعتق عبدا فمال للذي اعتق) بيهقي. ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کښي دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه نور روايات هم دَ جمهورو په حق کښي نقل کړی دی

**[۳۳۹۷] دَپوره غلام دَآزادولو ترغيب**

---

۳۳۹۷-[۱۰] (۱) ①وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: ②«أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ شِقْصًا مِنْ غُلَامٍ ③فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④فَقَالَ: "لَيْسَ لِلَّهِ شَرِيكٌ". ⑤فَأَجَازَ عِتْقَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

**ترجمه:** ①او حضرت ابو مليح رحمه الله (تابعي) د خپل پلار مکرم (حضرت اسامه رضي الله عنه ابن عمير رضي الله عنه صحابي) نه روايت کوي ②چي يو سړی د خپل غلام څه حصه آزاده کړه، ③هر کله چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته د هغه ذکر وشو، ④نو حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چي د الله جل جلاله هيڅوك شريك نشته. ⑤بيا دا حکم يي وکړي چي دا غلام دی بالکل آزاد کړل شي، (ابوداود)

**حل اللغات:** ①شِقْصًا: يوه حصه.

**تسهيلات:**

**قوله: لَيْسَ لِلَّهِ شَرِيكٌ".**

**د مذکوره جملي مطلب:** مطلب دادي چه په يوعبادت کښي هم الله تعالى سره څوك شريك کول نه دی پکار او اعتاق عبادت دي لهذا کله چه يوسړي نيم غلام آزاده وی اونيم غلام ساتی نولکه چه دا سړي الله تعالى سره په دي غلام کښي شريك شو نيم دَالله تعالى دي اونيم دَ دغه سړی دي اودَ الله تعالى څوك شريك نشته دي نودا عمل مناسب نه دي

**د اعتاق په عدم تجزی باندي دليل:** دَدي حديث نه معلوميږی چه اعتاق تجزی نه قبلوی اوهم دغه دَ صاحبين مسلك دي

**د دليل نه جواب:** دَ جمهورو اوامام ابوحنيفه رحمه الله تولو په نيزاعتاق تجزی قبلوی دَهغوی په نيزدَدي حديث مطلب دادي چه نبی کريم دَ پوره غلام آزادولو ترغيب ورکړي دي چه کله آزادول دی نوبيا پوره ثواب اوګټئ

---

۱) اخرجه ابوداود في كتاب العتق/ كتاب الطب/باب في العتق على الشرط (رقم-۳۹۳۳)واحمد في المسند: ۵/۷۴

## [۲۳۹۸] د مشروط آزادۍ یوه واقعه

۳۳۹۸ـ[۱۱](۱) ۱ وَعَنْ سَفِينَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: كُنْتُ مَمْلُوكًا لِأُمِّ سَلَمَةَ، ۲ فَقَالَتْ: أُعْتِقُكَ وَأَشْتَرِطُ عَلَيْكَ أَنْ تَخْدُمَ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَا عِشْتَ ۳ فَقُلْتُ: إِنْ لَمْ تَشْتَرِطِي عَلَيَّ مَا فَارَقْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَا عِشْتُ. ۴ فَأَعْتَقَتْنِي وَاشْتَرَطَتْ عَلَيَّ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت سفینه وایي په ابتداء کې زه د بي بي ام سلمه رضی الله عنها په ملکیت کې وم ۲ هغې ماته وفرمایل چې زه ستا آزادول غواړم، لیکن دا شرط درباندې عائد کوم، چې د خو ژوندی یې د رسول الله ﷺ خدمت به کوې، ۳ ماورته عرض اوکړو چې د رسول الله ﷺ خدمت خو زما د پاره د سعادت او خوشبختی د ټولو نه لویه ذریعه ده، که ته دا شرط نه کړې عائد بیا هم زه د رسول الله ﷺ نه په ژوند کې نه جدا کیږم، ۴ نو بي بي ام سلمه رضی الله عنها زه آزاده کړم، او د حضور ﷺ د خدمت شرط یې په ما عائد کړې (ابوداود، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① مَا عِشْتَ: چه ترڅو پورې ژوندې یې.

**تسهیلات:**

**قوله** وَعَنْ سَفِينَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

**د حضرت سفینه رضی الله عنه تعارف:** حضرت سفینه رضی الله عنه دَ ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها غلام ووهغې نبی کریم ته دَ خدمت دَپاره ورکړې وو حضرت ام سلمه رضی الله عنها هغه آزادکړو اودَ نبی کریم دَخدمت شرط ئې اولګولو ونیلی شی چه سفینه دَ هغه لقب وو اودَ هغه په اصل نوم کښې اختلاف دې بعضې رباح خودلې دې بعضې مهران ونیلې اوبعضې روحان خودلې دې ونیلی شی چه داد فارس وو او دوی ته دَ سفینه ونیلوجه دا شوه چه یوځل دې نبی کریم سره په سفرکښې وو یوځوکسان سترې شونوهغوی خپله وسله او نور سامان دهغوی په اوګو باندې واچوله چنانچه هغوی دیرزیات سامان په خپل خان باندې بارکړې اوچت کړې وو نونبی کریم اوفرمانیل (انت سفینة) یعنی ته کشتئی ئی (مرقات) نوبس هم دغه نوم ئی شو

**د حضرت سفینه رضی الله عنه کرامت:** دَ شام په زمکه کښې په جهاد کښې صحابه کرامو سره راګیر شوې وو بیادې دَ قیدنه اوتختیدو او دَ ځنګل په نامعلومه لار باندې روان شو مخې ته ازمرې راغلو هغه ورته اوونیل اې ابوالحارث زه دَ محمدعربی ﷺ غلام سفینه یم ازمری لکې خوزوله اودَ هغه په حفاظت کښې راؤراندې شو اوهغه ئی آبادئی ته راؤرسولو علامه خطابی رحمه الله فرمانیلی دی دا په حقیقت کښې دَ ام سلمه رضی الله عنها دَ طرف نه وعده وه لیکن دَ شرط په نوم سره یاد کړې شوې ده او اکثر فقهاء دَغلام آزادولونه پس

---

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب العتق/ کتاب الطب/باب فی العتق علی الشرط (رقم-۳۹۳۲) واحمد فی المسند: ۲۲۱/۵

هيڅ يوشرط باقي ساتل صحيح نه ګڼرى ځکه چه دا داسې شرط دې چه ملکيت سره متعلق نه دې ځکه چه غلام آزادشوې دې او دَ آزادسړى نه دَ اجرت او مزدورۍ نه علاوه فنده نه شى اوچتولې تفصيل دَ ملاعلى قارى رحمه الله په مرقات کښې دې

**[۳۳۹۹] دَ مکاتب دَ آزادۍ دپاره دَ بدل کتابت دَ ادا کولو فرضيت**

۳۳۰۰-[۱۲] (۱) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ [۳] مَا بَقِيَ عَلَيْهِ مِنْ مُكَاتَبَتِهِ دِرْهَمٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعيب دَ خپل پلار نه او هغه دَ خپل نيکه نه او هغه دَ نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] مکاتب دَ هغه وخته غلام وي. [۳] د دې بوزې چې دَ هغه په بدل کتابت کې يو درهم هم باقي پاتې نشي. ابوداود

**حل اللغات** ① الْمُكَاتَبُ: چاسره چه مکاتبه شوى وى. يعنى مکاتب هغه غلام ته وائى چه مولى هغه ته اوونيل چه ته دومره پيسې اداکړه نوته به آزاد شې

**تسهيلات:**

**قوله - «الْمُكَاتَبُ**

**د مکاتب تعريف:** مکاتب هغه غلام ته وائى چه مولى هغه ته اوونيل چه ته دومره پيسې داکړه نوته به آزاد شې

**هغه بدل کتابت چې موجب د حريت وى. په هغې کښې مذاهب:**

① جمهور فرمائى که په بدل کتابت کښې يوه روپئى هم باقى پاتې وى نو هغه به غلام وى آزاد به نه وى او که آخرى روپئى ورکولو نه عاجزراغلو نو په مکمل توګه به غلام پاتې وى

② بعضې علماء او ابراهيم نخعى رحمه الله وائى چه مکاتب څومره رقم اداکړو هغه هومره آزاددې او څومره پيسې چه باقى پاتې وى دومره به غلام وى دې

**د اول فريق دليل:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث نمبر (۳۴۰۲) د دوى مستدل دې

**داول فريق د دليل جواب:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت امام ترمذى رحمه الله ضعيف ګرځولې دې لهذا هغه روايت دَ نورو صحيح رواياتو په مقابله کښې دَ استدلال قابل نه دې بل په دې روايت باندې ابراهيم نخعى رحمه الله نه علاوه چاهم عمل نه دې کړې

**د دويم فريق دليل:** جمهورو دَ واضح احاديث نه استدلال کړې دې او تقريباً پوره امت په دې نظريه قائم دې چه دَمکاتب آخرى روپئى اداکولو وخت پورې هم غلام دې

۱) اخرجه ابوداود فى كتاب العتق/باب فى المكاتب يؤدى بعض كتابته فيعجز أو يموت (رقم-۳۹۲۶)

## [۲٤۰۰] د مکاتب غلام څخه د مالکې د پردې کولو حکم

۳۰۰۰-[۱۳] (۱) (۱) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «إِذَا كَانَ عِنْدَ مُكَاتَبِ إِحْدَاكُنَّ وَفَاءٌ [۳] فَلْتَحْتَجِبْ مِنْهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] او بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي رسول الله ﷺ ښځو ته وفرمايل [۲] هر كله چې په تاسو كې د يوې ښځې مكاتب غلام سره دومره روپۍ وشي چې په هغه سره هغه خپل پوره بدل كتابت اداء كړلی شي. [۳] نو بيا هغه مالكې ته پكار دی چې د هغه مكاتب نه پرده كوي. ترمذي ابوداود ابن ماجه،

**حل اللغات** ①وَفَاءٌ: پوره. برابر ②فَلْتَحْتَجِبْ: نو پرده دې ترې كوی

**تسهيلات**

**قوله فَلْتَحْتَجِبْ** يعنی چه مكاتب سره د بدل كتابت رقم راغلو نواوس د هغه مالكې له پكار دی چه د هغه نه پرده اوكړی كله چه هغه غلام وو نو د هغه نه پرده نه وه ليكن اوس دې پرده كوی

**اشكال**: احاديثو كښې صفا توګه باندې راغلی دی چه كه په مكاتب باندې يودرهم هم باقي پاتې وی نوهغه غلام دې نودلته اوس هغه آزاد ګرځولو سره څنګه د پردې حكم وركړې شوې دې؟

**د اشكال درې جوابونه**: ① د پردې داحكم په توګه د تقوی او احتياط وركړې شوې دې

② د حكم امهات المؤمنين سره مخصوص وو ځكه چه د هغوی خوشان جدا وو اوس پاتې شو د خبره چه د غلام نه د مالكې پرده ضروری ده يا ضروری نه ده ددې تفصيل باب النظر الی المخطوبه حديث نمبر (۳۰۹۸) كښې تيرشوې دې

③ اوس دې هغه ښځه د پردې تياري كوی د پردې دپاره دې په ذهنی توګه باندې تياره اوسيږی ځكه كوم يووخت هم هغه غلام آزاديدې شی

## [۲٤۰۱] د مكاتب د لسو ديناروپه نه اداكولو عدم آزادی

۳۰۰۰-[۱۴] (۲) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ كَاتَبَ عَبْدَهُ عَلَى مِائَةِ أُوقِيَّةٍ [۳] فَأَدَّاهَا إِلَّا عَشْرَ أَوَاقٍ - [۴] أَوْ قَالَ: عَشَرَةَ دَنَانِيرَ - [۵] ثُمَّ عَجَزَ [۶] فَهُوَ رَقِيقٌ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

۱) اخرجه ابوداود فی كتاب الطب/باب فی الطيرة (رقم -۳۹۱۸) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم باب ما جاء فی المكاتب إذا كان عنده ما يؤدی (رقم ۱۲۶۱) وابن ماجه فی كتاب العتق/باب المكاتب (رقم-۲۵۲۰)

۲) اخرجه ابوداود فی كتاب العتق/باب فی المكاتب يؤدی بعض كتابته فيعجز أو يموت (رقم-۳۹۲۷) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی المكاتب إذا كان عنده ما يؤدی (رقم-۱۲۶۱) وابن ماجه فی كتاب العتق/باب المكاتب (رقم-۲۵۱۹) واحمد فی المسند: ۱۷۸/۲

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار حضرت شعیب نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] که یو سړی خپل غلام د سل اوقیه په بدله کې مکاتب کړي، [۳] او هغه غلام ټول اوقیې ادا کړی شوی، خو لس اوقیې یې اداء نه کړې شوی [۴] یا دا یې وفرمایل چې لس دینار یې اداء نه کړی شول (دلته راوي ته شك شوی دی چې حضور ﷺ لس اوقیه فرمایلی وو یا د لس دینار ذکر یې کړې وو) [۵] او بیا هغه د هغه بدلې د ادائیګی نه عاجزه شو ، [۶] نو هغه مکاتب به (بدستور) غلام وي. (ترمذي، ابوداود ، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① أُوقِيَة: دَ اوقیه جمع اواق دې یو اوقیه دَ څلویښتو دراهم وی ② دَنَانِيرَ: اشرفۍ .دا یوه سکه وه چې د سرو زرو به وه.

**تسهیلات:** **قوله:** ثُمَّ عَجَزَ فَهُوَ رَقِيقٌ:

**دعجز په صورت کښې مالک ته د عقد کتابت د فسخ کولو حق:** د دې حدیث پاك متعلق ملا علی قاری ﷫ فرمائی چې ابن الملك ﷫ فرمائی چې دا حدیث پاك په دې خبره باندې دلالت کوی چې د مکاتب د خپل بدل دکتابت د څه حصې دادا نه قاصره کیدل د پورا بدل کتابت د ادائیګی نه قاصر کیدل دی . لهذا داسې صورت کښې مالك ته دده بدل کتابت د فسخ کولو حق حاصل دې او فسخ کتابت نه پس هغه مکاتب بدستور غلام وی . او کوم چې دې غلام بدل کتابت ادا کړې دې هغه به هم ددې مالك ملکیت کښې راشي

**[۳۳۰۲] مکاتب ته د عتق په حساب سره میراث ملاویدل**

۳۳۰۲—[۱۵] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «إِذَا أَصَابَ الْمُكَاتَبُ حَدًّا أَوْ مِيرَاثًا [۳] وَرِثَ بِحِسَابِ مَا عَتَقَ مِنْهُ» ". [۴] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ قَالَ: [۵] " «يُودَى الْمُكَاتَبُ بِحِصَّةِ مَا أَدَّى دِيَةَ حُرٍّ، [۶] وَمَا بَقِيَ دِيَةَ عَبْدٍ» ". وَضَعَّفَهُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷠ د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] که یو مکاتب د دیت یا میراث مستحق شي، [۳] نو هغه ته به د هغه دیت یا میراث هغه قدر حاصلیږي ، څومره چې هغه آزاد شوی دی، [۴] (ابوداود ، ترمذي) او د ترمذي ﷫ په یو روایت کې داسې دی چې حضور ﷺ وفرمایل [۵] د مکاتب په دیت کې به د هغه حصې په قدر مال ورکول شي، چې هغه د خپلې آزادی قیمت یعنی بدلِ کتابت اداء کړي وي،

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب فی التناجی (رقم-۴۸۵۲) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المکاتب إذا کان عنده ما یؤدی (رقم-۱۲۵۹)والنسائی فی کتاب القسامة/باب دیة المکاتب (رقم-۴۸۱۱)

(۶) او د هغه حصې په قدر به قيمت ورکول کيږي. او اوس به په طور د غلام باقي وي. دې روايت نه ترمذي عليه الرحمه ضعيف ويلی دی

**حل اللغات** ① أَصَابَ: اورسيږی. اصاب د حاصلولو او مستحق جوړيدو په معنی کښې دې

② حَدًّا: حد. مقدار، دلته د ديت او ميراث استحقاق مراد دې،

③ دِيَةَ حُرٍّ: د آزاد قيمت.

**تسهيلات: قوله:** وَرِثَ:

**د حديث د مختلفو جملو وضاحت:** ① دَ حسب په وزن باندې دَ معلوم صيغه ده بعضې نسخوکښې مجهول هم دې "بحسب" دالفظ دَ حساب او مقدار په معنی کښې دې

② "وفي رواية له" دا ضمير دترمذي طرف ته راګرځي

③ "يودي" دا دَ مجهول صيغه ده دَ ودى يدى دية نه دې دلته دَ "يُعطى" په معنی ورکولو په کښې دې "اَدّي" دا دَ دال مشدد دسره دَ اداکولو په معنی کښې دې

④ "دية حر" دا منصوب دې او "يُؤدي" دَپاره مفعول به دې او دَ "ما ادي" مفعول به محذوف دې کوم چه النجوم دې دکوم معنی چه قسط او حصه ده او "دية عبد" هم منصوب دې اصل عبارت داسې دې "اي يعطى المكاتب دية حر بحساب ما اداه من النجوم ويعطى دية العبد بحساب ما بقي عليه" يعنی مکاتب ته دَخپلې آزادئ په حساب کښې هغه ته به دَ ديت نه ورکولې شي

**دحديث وضاحت د مثال په رنړا کښې:** په دې حديث باندې دَ يومثال په ذريعه باندې داسې پوهه شئ چه مثلاً زيد مکاتب وو هغه نيم بدل کتابت اداکړې ووچه دَهغه پلار مړشو اودې واحد خان له وارث وو نودَ پلاردميراث نه به نيم ميراث زيد ته ملاويږی دادميراث مثال شو دَديت مثال داسې دې چه مثلاً دې مکاتب دَ خپل کتابت نيم مال ادا کړې وو چه دې چا قتل کړو اوس دَ دغه مکاتب وارثانوته به دَ هغه دَ ديت نه نيم مال ملاويږی اونيم مال به د مکاتب مالك ته ملاويږی لکه چه دَ غلام کومه حصه وه دَهغې ديت به مالك ته ملاويږی اود آزادئ چه کومه حصه وه دَهغې ديت به ورثاء ته ملاويږی بهرحال په دې حديث باندې صرف ابراهيم نخعي رحمه الله عمل کړې دې دَ باقي جمهور فقهاؤ په نيز داحديث معمول به نه دې بلکه هغه حديث معمول به دې په کوم کښې چه راغلی دی چه ((المكاتب عبد ما بقي عليه من مكاتبته درهم))

# الفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۴۰۲] د مالي عبادت ثواب مړي ته رسېدل**

۳۴۰۳ - [۱۲] (۱)[۱] وعن عبد الرحمن بن أبي عمرة الأنصاري - رضي الله عنه -: [۲] أن أمه أرادت أن تعتق، [۳] فأخرت ذلك إلى أن تصبح، [۴] فماتت. [۵] قال عبد الرحمن: فقلت للقاسم بن محمد: [۶] أينفعها أن أعتق عنها؟

**ترجمه:** [۱] د حضرت عبد الرحمن ابي عمره انصاري رحمه الله (تابعي) په باره کې منقول دی [۲] چې د هغه مور (يوه ورځ) د يو برده د آزادولو اراده وکړه. [۳] خو هغه تر راتلونکې صبا پورې خپلې ارادې ته عملي جامه وانه غوستلی شوه. [۴] چې د دې دنيا نه رخصت شوه. [۵] عبد الرحمن وايي چې ما حضرت قاسم ابن محمد ته دا صورت ذکر کړي. او د هغه نه مې پوښتنه وکړه. [۶] که زه د خپلې مور د طرف نه برده غلام آزاد کړم. نو آيا په دې سره به هغې ته نفع ورسيږي؟

[۱] فقال القاسم: [۲] أتى سعد بن عبادة رسول الله - صلى الله عليه وسلم - فقال: [۳] إن أمي هلكت، [۴] فهل ينفعها أن أعتق عنها؟ [۵] فقال رسول الله - صلى الله عليه وسلم -: "نعم". رواه مالك.

**ترجمه:** [۱] حضرت قاسم رحمه الله وفرمايل [۲] چې (يو ځل) حضرت سعد ابن عباده رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو. او عرض يې وکړي [۳] چې زما مور اچانک وفات شويده. [۴] که زه د هغې د طرف نه برده آزاد کړم. نو آيا په دې سره به هغه ته نفع ورسيږي؟ [۵] رسول الله ﷺ وفرمايل چې هو. نفع به ورته ورسيږي. (مالك)

**تسهيلات:**

**قوله** عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ الأَنْصَارِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ:

**د عبدالرحمن بن ابی عمره تعارف:** دا صحابی نه دي بلکه تابعی دي عمره په عين فتحه اوميم باندې سکون دي (فماتت) د سحر راتلونه وراندې مړه شوه اودانيک کارياتې شويه دي وجه علماؤ ليکلی دی (في التاخير آفات فالعجلة محمودة في الطاعات) (فقال القاسم)

**د اووه فقهاؤ تذکره:** دا قاسم بن محمد دي د صديق اکبر رضي الله عنه نمسې دي اود مديني منورې د مشهور اووه فقهاؤ نه دي د فقهاء سبعه تذکره چا په دې دوو شعرونو کښې کړې ده

| الا كل من لا يقتدى بأئمة | فقسمته ضيزى من الحق خارجة |
| --- | --- |
| فخذهم عبيد الله عروة قاسم | سعيد ابو بكر سليمان خارجة |

**د ايصال ثواب حکم:** قاسم بن محمد د حضرت سعد رضي الله عنه واقعه بيان کړه په کوم کښې چه د

---

(۱) اخرجه مالک في الموطا رقم الحديث ۱۳ من کتاب العتق

سائل د سوال جواب دې د حديث نه د ايصال ثواب مسئله راوځي ددې تفصيل به د حضرت سعدبن عباده رضي الله عنه په حديث کښې ملاويږي دلته دا اوګڼړئ چه د مالي عباداتوثواب مړي ته رسيږي په بدني عباداتوکښې د فرائض او واجبات نه رسيږي اود نفلي ايصال ثواب جائزدې

**[۲۴۰۴] د مړي د طرفه د مالي عبادت صحت**

[۱۷] (۱) ① وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، قَالَ: ② تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ فِي نَوْمٍ نَامَهُ، ③ فَأَعْتَقَتْ عَنْهُ عَائِشَةُ أُخْتُهُ رِقَابًا كَثِيرَةً. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ①حضرت يحيى ابن سعيد رحمه الله (تابعي) وايي ②چې حضرت عبد الرحمن بن ابي بکر رضي الله عنه اوده وو، چې د خوب په حالت کې اچانک وفات شو. ③نو بي بي عائشه رضي الله عنها چې د هغه خور وه، د هغه د طرف نه ډير غلامان (او وينځې) آزادي کړي. (مالك)

**تسهيلات:**

**قوله نَوْمٍ نَامَهُ:**

**د حضرت عائشه رضی الله عنها د يو څو غلامانو آزادولو وجه:** يعني د خوب په حالت کښې انتقال شو حضرت عائشه رضي الله عنها داسې ناڅاپي مرګ بنه اونه ګڼړلو په دې وجه ئې د کفارې په توګه ډيرغلامان آزادکړل يائې په دې وجه آزادکړل چه د حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه په ذمه باندې دومره غلامان آزادول وو د حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه انتقال مکې مکرمې سره نيزدې حبشي مقام باندې شوې وو اوهم د هغه ځائې نه راوړلې شوې وو او په جنت المعلاة کښې دفن کړې شوې وو حضرت عائشه رضي الله عنها د هغه په قبر باندې د حاضرئې په وخت دوه شعرونه هم وئيلې وو کوم چه په مشکوة ج ۱ کښې باب الجنائز صفحه ۱۴۹ باندې ذکردی

وكنا كندماني جذيمة حقبة ❊ من الدهر حتى قيل لن يتصدعا

فلما تفرقنا كاني ومالكا ❊ لطول اجتماع لم نبت ليلة معا

**[۲۴۰۵] د خرڅ شوي غلام د مال حکم**

[۱۸] (۲) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَنِ اشْتَرَى عَبْدًا ③ فَلَمْ يَشْتَرِطْ مَالَهُ ④ فَلَا شَيْءَ لَهُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ②کوم سړی چې يو غلام رانيسي. ③او د هغه د مال شرط ونه کړي. ④نو آخستونکي ته به د هغه د مال نه هيڅ نه حاصليږي. (دارمي)

---

[۱] اخرجه مالک في الموطا رقم الحديث ۱۴ من کتاب العتق

[۲] اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ۲۵۶۱

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَمْ يَشْتَرِطْ:**

**د شراء په وخت کښې د غلام په لاس کښې د موجوده مال حکم:** يعني يوسړي به غلام واخستلو دَهغه غلام په لاس کښې چه کوم مال وو اخستونکې مشتري دَعقد کولو په وخت دَدې شرط نه وولګولې چه دامال زما وي لکه چه غلام به زما وي نودَاخستلونه پس به هغه مال دې مشتري ته نه ملاوېږي ځکه چه په حقيقت کښې هغه مال دَ غلام دَمولي دې اوهم دغه مولي ته به واپس کيږي. اوکه مشتري شرط اولګوي چه دَغلام دامال به هم ماته راکوئي نومال به مشتري ته ملاوېږي اودَمالك دَ طرف نه به دا هبه اوعطيه په حکم کښې شميرلې کيږي

## [۲] بَابُ الْاَيْمَانِ وَالنُّذُوْرِ

### دَقسمونواونذرونوبيان

**قوله: الْاَيْمَانِ**

**ديمين لغوي معنى:** ايمان د يمين جمع ده علامه ابن همام رحمه الله فرمائي چه دَ يمين لفظ په لغوي توګه قسم، ښې لاس او قوت کښې په مشترکه توګه باندې استعماليږي

**د يمين وجهٔ تسميه:** قسم ته يمين ځکه وائي چه دَعربوخلق دَ عهد اوپيمان په وخت دَ يوبل په لاس کښې لاس ورکوي اودامعامله به په ښي لاس سره کيدله.

**ديمين اصطلاحي تعريف:** علماؤ دَ قسم اصطلاحي تعريف داشان کړې دې (اليمين في الشرع توكيد الشئ بذكر اسم الله اوصفته) دلته دَ قسم او نذر متعلق ځلور بحثونه دي کوم چه په ترتيب سره ليکلې کيږي

**مباحث اربعه:**

**اول بحث: د يمين درې قسمونه:**

① **يمين غموس:** دا هغې قسم ته وائي چه دَ ماضي په زمانه ئي دَ څه دروغو قسم اوخوړلو چه په الله قسم مادا کارکړې وو حالانکه هغه ته معلومه ده چه داکارئي نه ووکړې په يمين غموس کښې هيڅ کفاره نشته دې داګناه کبيره ده دَدې وجې نه به دې سړي ته په دوزخ کښې غوټې ورکوي -غمس وغموس- دَ غوپې په معنى کښې دې

② **يمين لغو:** داهغه قسم دې چه په خبرو خبروکښې دَ قسم دَ ارادې نه بغير سړې وائي والله بالله يا وائي په الله قسم يا په قسم چه وائي يايوسړي داسې قسم اوخوړلو چه دَهغه خيال اوګنان داوو چه واقعي داکار داسې ووخوهغه ته غلط شوې وو اوهغه کلرهغه شان نه وو دا ټول لغو قسمونه دي په دې کښې نه کفاره شته اونه ګناه کبيره ده. سره دَدې چه مسلمان له

دَدې نه هم ځج کېدل يکږدي امام شافعي رحمه الله فرمائي چه ما دَالله تعالى دَ نوم په عظمت نه دَ دروغو قسم خوړلي وي اونه دَ رښتياؤ

③ **يمين منعقده:** دا هغه قسم دې چه يوسړې په نبه خور او سوچ سره دَ راتلونکې زماني دَ يوکار نه کولو قسم اوخوري اوبيا قصداً دَهغې خلاف ورزي کوي نودا سړې حانث کيږي اوس به دې دَ قسم کفاره ورکوي په عربي کښې دَ قسم الفاظ والله بالله تالله دي

**دويم بحث :دَ قسم الفاظ**

**د قسم دپاره موضوع له اسماء:** په قسم کښې دَالله تعالى ذاتي اسم يا صفتي اسم استعماليږي لهذا دَدې احترام ضروري دې چه دا مات نه کړې شي اودَ الله تعالى دَنوم مبارك بې ادبي اونه شي اونه به دا مبارك نوم پريخودوسره بل چاته دا عظمت ورکړي اودَهغه دَ نوم قسم اوخوري

**غيرشرعي قسمونه:** دَ پلارانو اونيکونو دَ نومونو قسم خوړلو ممانعت راغلې دې دغه شان ستَ دَ خن او سر قسم خوړل جائزنه دي

**دقسم دارومدار:** دَ قسم مدار په عرف باندې دې په دې وجه دَالله تعالى په هغه صفاتوباندې قسم نه شي خوړلې چه په عرف عام کښې دَ قسم دَپاره نه استعماليږي لکه رحمت مغفرت وغيره صفات چه دي اودَ کومو صفاتو قسم چه په عرف کښې خوړلې کيږي لکه عظمت او شان دَ بزرګئي وغيره نو په دې سره قسم واقع کيږي

**دقسم الفاظ:** په عام توګه شريعت دَ قسم الفاظ والله، بالله، تالله خودلې دي "لعمرالله" لفظ سره هم قسم خوړلې شي داهم قسم دې دَدې مطلب دادې چه تاته دَ عمر دَرکونکي قسم په قسم کښې ان شاء الله استعمالولوسره دَ قسم اثرختميږي په دې شرط چه دا لفظ متصلاً استعمال کړې شي دې ته په قسم کښې استثناء وائي

**دريم بحث: د قسم کفاره:**

**د قسم په کفاره کښې ترتيب:** ① دَ قسم ماتولوکفاره داسې ده چه يوغلام دې ازادکړي که دغلام آزدولو وس نې نه وي يا غلام نه وي لکه په موجوده وخت کښې

② نوداول صورت په نشتوالي کښې دې لس مسکينانوته دوه وخته درميانه خوراك ورکړي

③ د د دويم صورت طاقت هم نه لري نو بيادې لسو مسکينانوته کپړې ورکړي.

④ که يوسړې په دې دريولسم کفاراتو باندې قادر نه وي نوهغه دې مسلسل درې روژې اوساتي

**په کوم صورت کښې او په چا چې کفاره نشته:** ① دَ قسم ماتولونه وړاندې دَ احنافو په نيزدَ قسم کفاره نشته دې

④ مأشوم یا اوده شوی سړی یا لیونی اوپاګل سړی دَ قسم اعتبار نشته دې په دې وجه په دې کښې هم کفاره نشته
⑤ دَ کافر په قسم کښې کفاره نشته دې
**نوټ**: د نذر لغوی او شرعی معنی وغیره به دې باب پسې راروان باب ،،باب النذور،، کښې راشی هغې ته انتظار اوکړئ

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۳۰۶] د نبی علیه السلام د قسم الفاظ**

۳۳۰۶-[۱] (۱) ⓵عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا -: «أَكْثَرُ مَا كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَحْلِفُ: ⓶" لَا، وَمُقَلِّبِ الْقُلُوبِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ⓵و حضرت ابن عمر ﷠ راوي دی چې رسول الله ﷺ به اکثره چې قسم خوړلو. ⓶نو فرمایل به یې نه ده داسې زما دی قسم وی د زړونو په ګرځونکی، (بخاري)

**حل اللغات**: ①يَحْلِفُ: چه قسم به ئې کولو، ②مُقَلِّبِ: ګرځونکې، اړونکې،

**تسهیلات**:

**قوله**: "لَا، وَمُقَلِّبِ الْقُلُوبِ

**د قسم مخکښې وړاندې د ،،لا،، په راوړلو کښې څلور اقوال**: عربی کلام کښې دَ قسم نه مخکښې دَ لا کلمه زائد راوړل معروف اومشهور دی لکه چه ﴿لَآ أُقْسِمُ بِهَٰذَا الْبَلَدِ﴾ اسورة البلد ۱﴿لَآ أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ [سورة القيامة ۱]. دَ الله تعالی په کلام کښې راغلی دی
① بعضې ونیلی چه دا لا مضمون دَ قسم دَ نفی دَ تاکید دَپاره ذکرکولې شی مطلب داچه دَ قسم حاجت او ضرورت نشته لیکن زه بیاهم قسم خورم
② علامه طیبی ﷫ فرمائی چه دَ لا کلمه دَ سابق کلام دَنفی دَپاره راځی "ولانفی لکلام السابق" یعنی چه کوم ستا خیال دې هغه صحیح نه دې زه قسم خوړلوسره وایم چه حقیقت داسې دې
③ بعضې علماؤ ونیلی دی چه دَ قسم نه مخکښې دا لا دَ تجسس دَپاره ذکرکولې شی
④ حضرت مولانامفتی محمد شفیع ﷫ معارف القرآن کښې لیکلی دی چه دَ قسم نه مخکښې حرف لام زائد دې کله چه قسم دَ یومخالف دَ خبرې دَ رد کولودَپاره خوړلې شی نو دَهغې په شروع کښې حرف لا دَ هغه سړی دَباطل خیال دَ نفی دَپاره زائد استعمالیږی اودَ

[۱] اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۷۳۹۱ وابوداود في السنن رقم الحديث ۳۲۶۳ واحمد في المسند ۲/ ۲۶

عربو په محاوراتو کښې دا استعمال معروف او مشهور دې زمونږ په ژبه کښې هم بعضې وخت دَ یو قابل تاکید مضمون دَ بیان نه مخکښې ونیلی شی "نه ناداسې نه ده" وراندې خپل مقصد بیانوی [معارف القرآن ۸/۶۲۳]

**دحدیث څخه معلومې شوی مونږ فائدې:** ① دلته حضورپاك دَ الله تعالی په صفتی اسم سره قسم خوړلې دې معلومه شوه چه دا جائز دی او دا هم معلومه شوه چه قسم دَ ضرورت نه بغیر دَ تاکید کلام دَپاره خوړلې شی

② "والذي نفس محمد بيده" سره حضورپاك تعليم ورکړې دې چه زه دَالله تعالی بنده يم پخپله خدائی نه يم زما دَ ځان مالك هم هغه الله تعالی دې دې سره دَ الله تعالی دَ لوئې شان او لوئی بيانول مقصود دی.

③ حضورپاك چه کوم قسم خوړلې دې په هغې کښې دَ امت دَپاره لوئی فائده ورکونکې تعليم پټ دې چه دَ غير الله قسم مه خورئ

**[۳۳۰۷] په غير الله د قسم خوړلو ممانعت**

۳۳۰۷-[۲] () [۱] وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «إِنَّ اللَّهَ يَنْهَاكُمْ أَنْ تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ [۳] مَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللَّهِ [۴] أَوْلِيَصْمُتْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابن عمر ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله ﷻ تاسو د دې خبرې څخه منع کوي، چې تاسو د خپلو پلرونو قسم واخلی، [۳] کوم سړی چې قسم اخلي هغه ته پکار دی چې هغه د الله ﷻ په نوم یا د صفاتو قسم واخلي، [۴] یا چپ پاتې شي. بخاری، مسلم

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ يَنْهَاكُمْ أَنْ تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ:

**د پلار نیکه په نوم د قسم خوړلو څخه مراد:** دَ پلار نیکه ذکر په توګه دَمثال دې مراد دادې چه دَ غیر الله قسم خوړل جائز نه دی دَ پلار نیکه ذکر دلته په دې وجه سره شوې دې چه دَ عربو معاشره کښې به خلقو دَ پلارانو او نیکونو دَنومونو قسمونه خوړل په دې وجه دا په خاص توګه باندې منع اوګرخولې شو

) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۶۶٤۶ ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۳/ ۱۶۳۶ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۳۲٤۹ والترمذی فی کتاب النذور والأیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الحلف بغیر الله (رقم-۱۵۳٤)والنسائی فی کتاب الأیمان والنذور/باب الحلف بالآباء (رقم-۳۷۶۷)وابن ماجه فی کتاب الکفارات / النهی أن یحلف بغیر الله (رقم-۲۰۹٤) ومالک فی الموطا کتاب النذور والأیمان/باب جامع الأیمان (رقم-۱٤) واحمد فی المسند: ۷/۲

**د غیرالله په نوم د قسم خوړلو د ممانعت وجه:** اود غیرالله د نوم قسم خوړل ئې په دې وجه ناجائز گرځولې شوی دی چه مقسم به یعنی د چادنوم چه قسم خوړلې شی دهغه عظمت او د هغه اوچت شان مقصود اومتصور وی په دې وجه دا عظمت الله تعالی سره خاص دې دغیرالله دنوم قسم خوړلو سره دغیرالله مشابهت الله تعالی سره پیدا کیږی کوم چه د شرك یوه حصه ده

**اول اشکال:** یوطرف ته نبی علیه السلام د غیرالله په نوم د قسم خوړلوځخه منع کړې ده خو بل طرف ته الله تعالی په خپله د ډیرو څیزونو قسمونه خوړلی دی نوبندگان منع کولی شی او الله تعالی په خپله په غیرالله قسمونه خوری په دې کښې څه وجه ده؟

**د اول اشکال جواب:** الله تعالی خالق اومالك دې دهغه دپاره دا امور تکلیفیه دا پابندی نشته دې بل چه الله تعالی دکومو څیزونو قسم خوړلې دې هغه الله تعالی په حقیت کښې په خپل وحدانیت باندې د گواه په توگه پیش کړې دې هلته نور تصورات نشته دې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د غیرالله د نوم قسم خوړلوسره متعلق فرمائیلی که زه د الله تعالی دنوم په یوورخ کښې سل قسمونه اوخورم اومات ئې کړم هغه ددې نه بهتر ده چه زه د غیرالله قسم خوړلوسره سر ته اورسوم.

**دویم اشکال:** د حضورپاك نه په یوه موقع باندې نقل دی چه حضورپاك اوفرمائیل "افلح وابیه" ددې مذکوره حدیث سره واضح تعارض دې؟

**د دویم اشکال جواب:** ددې دممانعت نه مخکښې خبره د ممانعت روستو راغلې دې

**[۲۴۰۸] دبتانو په نوم د قسم خوړلو ممانعت**

۳۴۰۸- [۳] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«لَا تَحْلِفُوا بِالطَّوَاغِي ③ وَلَا بِآبَائِكُمْ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالرحمن ابن سمره رضی الله عنه وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② نه د بتانو قسم خورئ، ③ او نه د خپلو پلرنو قسم کوئ. (مسلم)

**حل اللغات:** ① بِالطَّوَاغِي: بُتان.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د حدیث وضاحت ددې ځخه وړاندې حدیث نمبر (۳۴۰۷) کښې تیرشوې دې.

(۱) اخرجه مسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۶/ ۱۶۴۸ والنسائی فی کتاب الأیمان والنذور/باب الحلف بالطواغیت (رقم-۳۷۷۴) واحمد فی المسند: ۲/ ۳۰۹

**[۲۴۰۹] په غیرالله د قسم خوړلو کفاره**

۳۴۰۹-[۳] ( ) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②"«مَنْ حَلَفَ فَقَالَ فِي حَلِفِهِ: بِاللَّاتِ وَالْعُزَّى ; ③فَلْيَقُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ. ④وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ: تَعَالَ أُقَامِرْكَ ⑤فَلْيَتَصَدَّقْ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهریره ﷺ د نبي کریم ﷺ څخه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ②کوم سړی چې قسم واخلي، او په خپل قسم کې دا الفاظ ادا کړي چې زه په لات او عزی قسم اخلم، ③نو هغه ته پکار دی چې هغه لاإله إلا الله ووایي، ④او کوم سړی چې خپل یو دوست ته دا ووائي چې راځه دواړه جواري وکړو، ⑤نو هغه ته پکار دی چې هغه صدقه او خیرات وکړي. «بخاري مسلم»

**حل اللغات** ①تَعَالَ: راځه، راشه. ②أُقَامِرْكَ: زه تاسره جواری کوم، چه خپلو کښې جواری اوکړو مقامره د قمار نه دي ③فَلْيَتَصَدَّقْ: نو صدقه دې ورکړی،

**تسهیلات:**

**قوله** حَلَفَ فَقَالَ فِي حَلِفِهِ: بِاللَّاتِ وَالْعُزَّى; فَلْيَقُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ.

**د کلمهٔ توحید په وئیلو کښې دوه اقوال:** یعنی د لات منات او بتانو د نوم قسم خوړلو نه پس لا اله الا الله وایئ

① که یو کس چرې د زړه نه د عقیده په توګه داسې د بتانو قسم خوړلې دې نو دا سړې مرتد شوې دې اوس دې د تجدید ایمان او مسلمان کیدو د پاره لا اله الا الله دې اووائی

② که نوی مسلمان شوی سهواً دا قسم اوخوړلو او په غلطئ سره نې دا کلمه د خلې نه اووتله نو لا اله الا الله به په توګه د استغفار وی

**قوله** وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ: تَعَالَ أُقَامِرْكَ; فَلْيَتَصَدَّقْ:

**جوارۍ ته د دعوت ورکولو کفاره:** که چرې یو سړی بل مسلمان ته د جوارئ کولو دعوت ورکړو نو هغه د ګناه دعوت ورکولو سره د ګناه ارتکاب اوکړو اوس د دې کفاره داده چه داسړې دې صدقه اوکړی د حدیث نه معلومه شوه چه د جوارئ دعوت ورکول او د دې ترغیب ورکول هم ګناه ده نو چه کوم سړې بخپله په دې قبیح کار کښې اخته وی هغه به څومره ګناهګار وی.

---

( ) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۶۶۵۰ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۵/ ۱۶۴۷ وابوداود في السنن رقم الحديث ۱۲۴۷ والترمذي في كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۱۵۴۵) والنسائي في كتاب الأيمان والنذور/باب الحلف باللات (رقم-۳۷۷۵) واحمد في المسند: ۳۰۹/۲

## [۲۴۱۰] د غیر مملوکه څیز د نذر منلو عدم صحت

[۵] (۱) وَعَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "«مَنْ حَلَفَ عَلَى مِلَّةٍ غَيْرِ الْإِسْلَامِ كَاذِبًا، فَهُوَ كَمَا قَالَ. وَلَيْسَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَذْرٌ فِيمَا لَا يَمْلِكُ، وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَيْءٍ فِي الدُّنْيَا عُذِّبَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَمَنْ لَعَنَ مُؤْمِنًا فَهُوَ كَقَتْلِهِ، وَمَنْ قَذَفَ مُؤْمِنًا بِكُفْرٍ فَهُوَ كَقَتْلِهِ، وَمَنِ ادَّعَى دَعْوَى كَاذِبَةً لِيَتَكَثَّرَ بِهَا لَمْ يَزِدْهُ اللَّهُ إِلَّا قِلَّةً»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ثابت بن ضحاك رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كوم سړى چې د اسلام خلاف د يو بل مذهب د دروغو قسم واخلي، ۳ نو هغه هغه شان دى څنګه چې هغه اوويل يعنى دروغجن دي، ۴ او په هيڅ انسان د هغه نذر پوره كول واجب نه دى چې د هغه هغه مالك نه وي، ۵ او كوم سړى چې په دنيا كې خپل ځان په يو څيز مثلاً چاړه وغيره سره هلاك كړي، نو هغه به د قيامت په ورځ د هغه شي په عذاب كې مبتلا كړل شي يعني كه يو سړى په چاړه وهلو سره خودكشي وكړي، نو په قيامت كې به د هغه په لاس كې هغه چاړه وركول شي چې هغه به يې په خپل بدن كې وهي، او د څو پورې چې د حق تعالى جل جلاله د طرف څخه د نجات (خلاصون) حكم نه وي شوى، هغه به مسلسل په دې عذاب كې مبتلا وي. ۶ او كوم سړى چې په يو مسلمان لعنت اووائي، نو هغه د د اصل ګناه په اعتبار سره د سې دى. څنګه چې هغه هغه مسلمان قتل كړي وي، ۷ او دغه شان كوم سړى چې په يو مسلمان د كفر تهمت ولګولي، نو ګويا هغه هغه مسلمان قتل كړي څكه چې د كفر تهمت لګول د قتل د اسبابو څخه دى، نو د كفر تهمت د قتل كولو پشان دى. ۸ او كوم سړى چې د دروغو دعوى وكړي چې د هغه په مال او دولت كې اضافه وشي، نو الله جل جلاله به د هغه په مال او دولت كې كمى وكړي. (بخارى، مسلم)

**حل اللغات** ① نَذْرٌ: منت، منخته. ② لَعَنَ: لعنت نې اوونيلو. ③ قَذَفَ: تهمت نې اولګولو

**تسهيلات:**

**قوله مَنْ حَلَفَ عَلَى مِلَّةٍ غَيْرِ الْإِسْلَامِ كَاذِبًا، فَهُوَ كَمَا قَالَ.**

**په غير اسلامي ملت د قسم خوړلو دوه صورتونه:** ① كه څوك مسلمان اووائي چه كه ما فلانكي كار اوكړو نوزه به يهودى، نصرانى، هندو، سكه، قاديانى، آغاخانى يم

② كه څوك مسلمان اووائي چه كه ما فلانكي كار اوكړو نوزه به د دين اسلام نه بيزاره يم يا د قرآن پاك نه به بيزاره يم يا د مكې نه به بيزاره يم يا د الله تعالى او كلمه نه به بيزاره

[۱] ) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۶۰۴۷ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۱۷۶/ ۱۱۰ والترمذي في كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية الحلف بغير ملة الإسلام (رقم-۱۵۴۳) والنسائي في كتاب الأيمان والنذور/باب الحلف بملة سوى الإسلام (رقم- ۳۷۷۰) وابن ماجه في كتاب الكفارات / من حلف بملة غير الإسلام (رقم-۲۰۹۸) واحمد في المسند: ۳۳۴

یم

**په ملت غیر اسلام باندې د حالف په حکم کښې دوه مذاهب:**

په مذکوره صورتونو کښې که دغه حالف بغير ملة الاسلام دغه محلوف عنه کار اوکړونو دده په حکم کښې اختلاف دې

① بعضې شوافعو فرمائی چه دَ ظاهری حدیث په اعتبار سره داسړې کافر شو خکه چه ده دَاسلام حرمت دَخپو لاندې کړو اوپه کفرباندې دَ رضامندنی اظهار اوکړو

② جمهور علماء فرمائی چه په دې قسم سره دا سړې نه کا فرکیږی

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې خکه چې په دې کښې د دغه حالف باره کښې نبی علیه السلام فرمائی چې ((فهوکما قال)) یعنی ده چې په کوم ملت قسم خوړلې دې دې هم هغه شان دې. که په یهودیت ئې قسم خوړلې وی نو یهودی به وی اوکه په مجوسیت ئې قسم خوړلې وی نو مجوسی به وی.

**د اول فریق د دلیل جواب:** دې حالف ته دا نسبت په دَ زجر اوتوبیخ باندې حمل دې لکه څنګه چې په بعضې نورو احادیثو کښې داسې الفاظ په تشدید او زجرباندې محمول دی لکه په دې حدیث کښې چې ((لاایمان لمن لاعهدله)) یعنی چې په چا کښې د وعدې پابندی نه وی په هغه کښې ایمان نشته. دغلته هم عالمان دا په تشدید او زجرباندې محمول کوی ی لکه ((من ترك الصلوة متعمداً فقد کفر)) حدیث په زجر اوتوبیخ باندې محمول دې.

**د دویم فریق دلیل:** دوی دا فرمائی چه دکفر تعلق عقیدې او قصد او ارادې سره دې اودَدې سړی اراده دکفر نه ده بلکه دَنفس منع کولو دَپاره هغه دا عمل کړې دې.

**د مذکوره مسئلې دوه صورتونه:** ① درمختار کښې لیکلی دی په دې مسئله کښې زیاته صحیح خبره داده چه داسې قسم خورونکې که چرې دَخپل قسم برعکس کار اوکړی نو هغه به نه کافر کیږی په دې شرط چه دَهغه مقصد قسم خوړل وی کافر کیدل نه وی

② که هغه پوهیږی چه دَدې قسم خلاف کولو سره سړې کافر کیږی اوبیا هم خلاف ورزی کوی نوپه دې صورت کښې به هغه کافرشی خکه چه په دې صورت کښې هغه بنه په رضا اورغبت سره په کفرباندې راضی شوې دې

**په مذکوره صورت کښې د کفارې په وجوب کښې دوه اقوال:** ① دَمالکیه او شوافعو حضراتو په نیز چونکه دا یمین اوقسم نه دې لهذا په دې کښې کفاره هم نشته دې داسړې ډیر زیات ګناهګار شوې دې ده له دَ استغفار کولو ضرورت دې اوځه کفاره نشته دې

② احناف اوحنابله بلکه دَجمهورو مسلك دادې چه په دې کښې کفاره ده خکه چه دا قسم دې اوپه قسم کښې دَحنث په صورت کښې کفاره وی.

**قوله وَمَنِ ادَّعَى دَعْوَى كَاذِبَةً لِيَتَكَثَّرَ بِهَا لَمْ يَزِدْهُ اللهُ إِلَّا قِلَّةً:**

**د دعوي په ثبوت د څيز عدم حلت:** يعني كه يو سړي د دروغو دعوى اوكړى دې دپاره چه دهغه په مال اودولت كښې زياتوالي اوشى نو الله تعالى دهغه مال كمه وى په دې حديث كښې اكثر دا قاعده بيان كړې شوې ده چه اكثر خلق صرف د مال وهلو او په مال كښې د زياتوالى كولو په خاطر خلقوته ښائى چه زه داسې خاوند د جاه اوجلال يم زما داسې عظمت اوشان دې اويا زه داسې د كمال نه ډك بزرګ يم دغه شان علامة الدهريم. الغرض خان ښائى اوكمالات اوفضائل بيانوى دې دپاره چه په دې سره خپل فوائدوكښې زياتوالې اوكړى نو الله تعالى دهغه فوائد كموى

**قوله وَمَنْ لَعَنَ مُؤْمِنًا فَهُوَ كَقَتْلِهِ**

**په مسلمان باندې لعنت كول د هغه د قتل سره برابر كيدل:** تهمت كه چرته ثابت شى نو هغه موجب قتل دې لهذا كوم سړى چه په يو مسلمان باندې د دروغو تهمت اولګولو نو دا د مسلمان د قتل په شان دى اوكه د كفر تهمت هم ثابت شو نو دا موجب قتل دې نو څوك چه د كفر د دروغو تهمت په چا باندې لګوى دا د هغه د قتل په شان دى

**[۳۴۱۱] كه د قسم په ماتولو كښې خير وي نو قسم ماتول پكار دى**

٣٤١١-[٢] () [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «إِنِّي وَاللهِ إِنْ شَاءَ اللهُ لَا أَحْلِفُ عَلَى يَمِينٍ فَأَرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا ; [٣] إِلَّا كَفَّرْتُ عَنْ يَمِينِي وَأَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] و حضرت ابي موسى ﷺ وايي چې رسول ﷺ وفرمايل [٢] قسم په خداى كه زه په يو شي قسم واخلم. او بيا د هغه قسم خلاف كول ښه وګڼم، [٣] نو زه به خپل قسم مات كړم. او د هغه كفاره به اداء كړم، دغه شان هغه څيز به اختيار كړم كوم چې بهتر دى، (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا كَفَّرْتُ عَنْ يَمِينِي وَأَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ**

**د مذكوره جملي وضاحت:** يعني قسم به په خائى نه ساتم بلكه ښه كاركولو سره به قسم ماتوم اوكفاره به اداكوم

---

() اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ٦٧١٨ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ٧/ ١٦٤٩ وابوداود في السنن رقم الحديث ٣٢٧٦ والنسائي في كتاب الأيمان والنذور/باب الكفارة قبل الحنث (رقم-٣٧٨٠) *وابن ما جه في* كتاب الكفارات / من حلف على يمين فرأى غيرها خيرا منها (رقم-٢١٠٧)واحمد في المسند: ٣٩٨/٤

**کفاره قبل الحنث کښې دوه مذاهب:**

تنبیه دَ قسم کفاره اداکولو کښې بعضې احادیثو کښې دکفاره ورکولو الفاظ مخکښې راغلی دی اودَ حنث کیدو الفاظ روستو راغلی دی اوبعضې احادیثو کښې دَ حانث کیدو الفاظ مخکښې راغلی دی اودکفاره ورکولو الفاظ روستو راغلی دی هم په دې وجه دفقهؤ په دې کښې اختلاف پیدا شو چه کفاره قبل الحنث ده که بعد الحنث ده

① امام مالک رحمه الله امام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله جمهور فرمائی چه قبل الحنث کفاره اداکولې شی لکه چه دَ قسم خوړلو په وجه سره کفاره لازم شوه

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه قبل الحنث کفاره نه شی اداکیدې حنث په کفاره باندې مقدم دې ترکومې پورې چه سړې حانث شوې نه وی کفاره لازم نه راځی

**داول فریق اول دلیل:** ①دَقرآن عظیم دا آیت د دوی مستدل دې ﴿ذٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ﴾ طریقه دَ استدلال داسې دې چه په آیت کښې حلف اویمین دکفاره دَپاره سبب او وجه او دَ علت په توګه بیان کړې شوې دې لهذا قسم خوړلوسره کفاره اداکیدې شی دحانث کیدو ضرورت نشته دې

**داول فریق د اول دلیل جواب:** دلته دَ "اذاحلفتم" نه پس "وحنثتم" لفظ محذوف دې یعنی دَ قسم خوړلونه پس کله چه حانث شې نوبیا کفاره اداکړه دامحذوف داسې دې لکه څنګه چه ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ﴾ کښې "وانتم محدثون" محذوف دې

**د اول فریق مزید درې دلائل:** ② زیر بحث د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې

③ دَ حضرت عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه حدیث نمبر(۳۴۳) هم د دوی مستدل دې

④ دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث نمبر (۳۴۳) د دوی مستدل دې په دې درې واړه احادیثو کښې دکفاره ذکر مقدم دې او دَحنث ذکر روستوکړې شوې دې دا د دې خبرې دلیل دې چې کفاره قبل الحنث ورکول جائز دی

**دمذکوره درې واړو دلائلو جواب:** دې احادیثوکښې واؤ د مطلقَ جمع دَپاره دې دَترتیب دَپاره نه دې یعنی کفاره هم اداکړه اوحانث هم شه اونیک کار هم کوه هسې په عربی کښې د محاوره ذوق بنائی چه په دې احادیثوکښې دَ ترتیب هیڅ پابندی نه ده لکولې شوې د جمهورو احترام په خپل ځائی مسلم دې لیکن دې احادیثوسره دَهغوی مسلک ثابتول دېیرزیات بعید معلومیږی

**داول اول فریق د دلیل عقلی الزامی جواب:** که یوسړی قسم اوخوړلواوبیائی دَ خپل قسم پوره خیال اوساتلو اوحانث نه شو بلکه په خپل قسم کښې بریٔ الذمه شو نودَ چا په نیز هم

په دې سرې باندې کفاره لازم نه ده که چرې صرف د قسم خوړلو سره کفاره لازم کیدله نو په دغه سړی باندې به د حانث کیدونه بغیر کفاره ورکول لازم وو حالانکه د دې اول فریق هم قائل نه دې

**د دویم فریق دلائل:** ① د حضرت عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه د حدیث د آخری حصه د دویم فریق د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دا الفاظ دی ,,فأت الذي هوخيروكفرعن يمينك ،، دلته صراحت سره اول د حنث ذکر دې او بیا د واؤ عاطفه سره د کفاره ذکر دې

② عقلی دلیل هم د دوی مستدل دې هغه دا چه کفاره اداکول د جرم د وجې نه وی او قسم خوړل جرم نه دې، خکه چه انبیاء کرام او اولیاء عظام اوعلماء کرام په کلام کښې کثرت سره قسم موجود دې کله چه قسم خوړل جرم نه دې نو هغه د کفاره د پاره څنګه سبب جوړشو؟ اوحانث کیدل جرم دې چه د الله تعالى د نوم بې اکرامی اوشوه نو د کفاره د پاره سبب جوړیږی نوترکومې پورې چه حنث نه راځی کفاره نشته دې

**[۳٤۱۲] د عهدې د مطالبې کولو څخه ممانعت**

[۳٤۱۲-۷] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ سَمُرَةَ! لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ ; ③ فَإِنَّكَ إِنْ أُوتِيتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ إِلَيْهَا، ④ وَإِنْ أُوتِيتَهَا عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا، ⑤ وَإِذَا حَلَفْتَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا ⑥ فَكَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ وَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ ". ⑦ وَفِي رِوَايَةٍ: " فَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ وَكَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الرحمن ابن سمره رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم يوه ورځ ماته وفرمايل ② چې اې عبد الرحمانه! د سرداری خواهش مه کوه (يعني د دې خبرې طلب مه کوه چې زه دې د فلاني ځای حاکم او سردار جوړ شم) ③ ځکه که ستا په طلب سرداری درکول شي نو ته به هغه سرداري ته حواله شې. ④ او که غیر د غوښتنې څخه سرداری درته حاصله شي، نو په هغه کې به ستا مدد کیږي. ⑤ او که ته په يوه خبره قسم واخلې. او بيا ووينې چې د هغه قسم خلاف کول د هغه قسم د پوره کولو څخه ښه دی. ⑥ نو ته د هغه قسم کفاره ورکړه. او هغه کار وکړه کوم چې ښه دی. ⑦ او په يو روايت کې داسې دي چې هغه څيز په عمل کې راوله کوم چې ښه دی او د خپل قسم کفاره ورکړه. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْإِمَارَةَ: امارت، حاکم، سرداری. ② وُكِلْتَ: ته به اوسپارلې شې، حواله به شې ③ أُعِنْتَ: ستا مدد به کولې شی

---

(۱) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۷۱٤٦ ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۱۹/ ۱٦٥۲ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۳۲۷۷ والترمذی فی کتاب النذور والأیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن حلف علی یمین فرأی غیرها خیرا منها (رقم-۱٥۲۹) والنسائی فی کتاب الأیمان والنذور/باب الکفارة بعد الحنث (رقم-۳۷۹۱م) وأحمد فی المسند: ٥/٦۲

**تسهیلات: قوله عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ**

**عبدالرحمن بن سمره او د کابل فتح**: یادساتنی د بخاری شریف په روایت کښې دی چه حضرت عبدالرحمن بن سمره ﷛ کابل فتح کړو او په چوك کښې اودریدو سره د غنیمت مال باره کښې ئې تقریر اوکړو ابوداؤد شریف ۱/۱۷۷ کښې دی چه هغوی د فتح کابل په موقع باندې د صلوة خوف مونځ ورکړې وو د مذکوره حدیث روایت هم د دغه عبدالرحمن بن سمره ﷛ نه دې

**قوله: لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ:**

**د امارت د قبلولو دوه صورتونه:**

① یعنی امارت اوحکومت څه معمولی کارنه دې بلکه دا ډیره لویه ذمه واری ده هرسړې دا ذمه واری او بوج نه شی اوچتولې که چرې د حرص لالچ او سیادت اوقیادت په خواهش کښې راغلې او د دې مطالبه کولو سره حاصل کړو نود الله تعالی امدادبه درسره شامل حال نه وی نوناکام به شئ ② که چرې حرص اوخواهش دې نه وی اوخلقو مجبوره کولوسره ذمه وارجوړشوې نود الله تعالی امدادبه درسره وی اوکامیاب به شئ

**قوله: فَرَأَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا:**

**د قسم د ماتولو دوه صورتونه:** ① یعنی که د ګناه کولوقسم ئې اوخوړلو چه په الله تعالی قسم زه به مورپلارسره خبرې نه کوم نود دې قسم ماتول به واجب وی اوکفاره به اداکول وی ② که چرې د یومستحب کارنه کولو قسم ئې اوخوړلو مثلاً د یوې میاشتې پورې به خپلې بی بی سره کوروالې نه کوم نود داسې قسم ماتول به مستحب او اولی

**[۳۴۱۲] د غوره عمل اختیارول اود قسم کفاره ورکول**

۳۴۱۳ - [۸] () ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا ③ فَلْيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ، وَلْيَفْعَلْ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷛ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② که یو سړی په یوه خبره قسم واخلي. او بیا هغه دا وګنې چې د هغه خلاف کول د قسم پوره کولو څخه بنه دی. ③ نو هغه دې کفاره ادا کړي او هغه کار دې وکړي (یعني قسم دې مات کړي) (مسلم)

**تسهیلات:**

**نوټ** د زیربحث حدیث تسهیل دې څخه وړاندې حدیث نمبر (۳۴۱۲) کښې تیرشو

() اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ۱۲/ ۱۶۵۰ والترمذي في كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في الاستثناء في اليمين (رقم-۱۵۳۲)

**[۳۳۳] په ناجائز قسم باندې ټینګیدل مناسب نه دی**

۳۴۱۴—[۹] (۱) ⓵وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶"«وَاللّٰهِ لَأَنْ يَلَجَّ أَحَدُكُمْ بِيَمِينِهِ فِي أَهْلِهِ⓷ آثَمُ لَهُ عِنْدَ اللّٰهِ⓸ مِنْ أَنْ يُعْطِيَ كَفَّارَتَهُ⓹ الَّتِي افْتَرَضَ اللّٰهُ عَلَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ⓶ قسم په خدای په تاسو کې د یو سړي په خپل قسم اصرار کول (یعنې د هغه قسم د پوره کولو ضد کول) چې د خپل اهل وعیال سره معلق وي، ⓷ د الله ﷻ په نزد هغه زیات ګنهګار دي ⓸ په نسبت د دې چې هغه هغه قسم مات کړي، او د هغه کفاره ادا کړي. ⓹ چې په هغه فرض شویده بخاري مسلم.

**حل اللغات:** ⓵ يَلَجَّ: اصرار کول، ټینګ پاتې کیدل، ضد کول

**تسهیلات:**

**قوله** لَأَنْ يَلَجَّ أَحَدُكُمْ بِيَمِينِهِ فِي أَهْلِهِ آثَمُ لَهُ:

**د خپل بال بچ سره د تعلق نه ساتلو قسم خوړلو ګناه:** د حدیث مطلب دا چه قسم خوړلو کښې د الله تعالی هتك او بې ادبی ده د الله تعالی د عظمت خلاف ورزی خویقیناً ګناه ده لیکن د دې ګڼه نه هغه ګناه زیاته ده چه یوسړې خپل بال بچ سره د تعلق پریخودو قسم اوخوری او بیا ضد کولو کولو باندې کلك شی اوهم داسې کلك وی بلکه هغه له پکاردی چه د تعلق پریخودو قسم دې مات کړی اودکفاره فریضه کومه چه الله تعالی مقرر کړې ده هغه اداکړی

**قوله** آثَمُ لَهُ:

**د ..ثم.. په نحوی تحقیق کښې دوه اقوال:** ⓵ بعضې شارحینو آثم لفظ د اسم تفضیل په معنی کښې اخستې دې

⓶ بعضو "الصيف احر من الشتاء" په طرز باندې نفس فعل یعنی اثم په معنی کښې اخستې دې (کذا فی الطیبی) [الکاشف ۷/۲۶].

**[۳۴۱۵] د قسم ورکونکی د نیت اعتبار**

۳۴۱۵—[۱۰] (۱) ⓵وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶«يَمِينُكَ عَلَى مَا يُصَدِّقُكَ عَلَيْهِ صَاحِبُكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ⓶ ستا قسم هغه وخت صحیح کیږي، هر کله چې ستا ملګری (یعنې قسم درکونکی) تا رښتینی وګڼي، مسلم

---

(۱) اخرجه البخاري في صحیحه رقم الحدیث ۶۶۲۵ ومسلم في صحیحه رقم الحدیث ۲۶/ ۱۶۵۵ واحمد في المسند ۲/ ۳۱۷

(۱) اخرجه مسلم في صحیحه رقم الحدیث ۲۰/ ۱۶۵۳ وابوداود في السنن رقم الحدیث ۳۲۵۵ والترمذي في کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الیمین علی ما یصدقه صاحبه (رقم-۱۳۵۴)

**تسهيلات:**

**قوله يَمِينُكَ عَلَى مَا يُصَدِّقُكَ عَلَيْهِ صَاحِبُكَ:**

**په جګړه کښې د مستحلف د يمين اعتبار:** يعني چه په دوو کسانو کښې څه مالي جګړه ده اومدعي منکر ته قسم ورکوي نو په دې کښې به د قسم ورکونکي د نيت اعتبار کيږي د قسم خوړونکي د نيت اعتبار به نه کيږي

**د مذکوره مسئلې صورت:** مثلاً قسم خوړونکي په ژبه باندې څه الفاظ وائي او په زړه کښې څه توريه يا د تاويل نيت ئې پټ کړې دې نو د هغې اعتبار نشته مثلاً ارشد اقبال ته اووئيل چه تازما اس قتل کړې دې اقبال قسم اوخوړلو چه ما اس نه دې قتل کړې او په نيت کښې د ارشد د اس په ځائې د فريدون د اس د قتل قسم خوړې نو د دې اعتبار به نه وي په راتلونکي روايت کښې (على نية المستحلف) الفاظو مطلب هم دغه دې "مستحلف" يعني قسم ورکونکې.

**په يمين کښې د حالف د نيت د اعتبار صورت:** که د چا د حق تلف کيدو مسئله نه وي يا يو سړې مظلوم وي نو بيا په قسم کښې توريه او د تاويل اعتبار کيږي (ملخصاً من زجاجة المصابيح)

**[۲۴۱۶] په يمين کښې د مستحلف د نيت اعتبار**

[۱۱] ( ) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «الْيَمِينُ عَلَى نِيَّةِ الْمُسْتَحْلِفِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قسم اعتبار د قسم ورکونکي په نيت وي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْمُسْتَحْلِفِ: قسم خوړونکې.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث وضاحت د دې څخه وړاندې حديث نمبر (۳۴۱۵) کښې تيرشوې دې

**[۲۴۱۷] په يمين لغو کښې عدم مؤاخذه**

[۱۲] ( ) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ﴾ [البقرة: ۲۲۵] [۳] فِي قَوْلِ الرَّجُلِ: لَا وَاللهِ، وَبَلَى وَاللهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. [۴] وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ لَفْظُ الْمَصَابِيحِ [۵] وَقَالَ: رَفَعَهُ بَعْضُهُمْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی [۲] چې دا آيت ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغْوِ فِي﴾

---

) اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ۲۱/ ۱۶۵۳ وابن ماجة في السنن رقم الحديث ۲۱۲۰

) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۶۶۶۳ وابوداود في السنن رقم الحديث ۳۲۵۴

أَيْمَانِكُمْ يعني الله ﷻ ستاسو په لغو قسمونو ستاسو مواخذه نه کوي. [۳]د هغه سړي په حق کي نازل شوى دى چي لَاوَالله او بَلٰى وَاللهِ وايي، (بخاري) [۴]په شرح السنة کي دا روايت په لفظ د مصابيح نقل شوى دى، [۵]او په شرح السنة کي ونيل شوى دى چي د بعضي راويانو مطابق دا حديث بي بي عائشي ﷝ څخه مرفوعاً نقل کړى دى يعنى د هغه راويانو مطابق دا حديث د حضور ﷺ ارشاد درامي دى.

**حل اللغات:** ①بِاللَّغْوِ: عبث، عادتی قسمونه. ②لَاوَاللهِ، وَبَلٰى وَاللهِ: دا دواړه د قسم الفاظ دی. چه اهل عربو به عام طور خبرو کښي دغسي قسمونه خوړل

**تسهيلات:** **قوله:** لَاوَاللهِ، وَبَلٰى وَاللهِ:

**په عربو کښي د يمينِ لغو رواج:** دَ اهل عربودا عادت وو چه هغوى خپل مينځ کښي دَ خبرو اترو په وخت په خبره خبره باندې په دې الفاظو سره قسم خوړلو "لاوالله‌بلى‌والله" دَ دغه خلقو به په دې الفاظوسره قسم خوړل مقصودنه وو بلکه په کلام کښي دَ زور پيدا کولو دپاره ې په توګه دتکيه کلام به ئې داسې قسم خوړلو هم دغه يمين لغو دې په کوم کښي چه نه کفاره ده او نه ګناه ده.

**د يمينِ لغو بل صورت:** ائمه احناف دَ قسم دا صورت هم لغو ګرځولې دې چه يوسړې په يوه خبره باندې قسم اوخورى اودَ هغه په خيال کښي دا وى چه زه صحيح قسم خورم ليکن په حقيقت کښي دَ هغه نه غلطى کيږى. بهرحال دَ لغوقسم دَ دې شرعى سهولت مطلب دا نه دې چه يومسلمان هيڅ بې هيڅه خپله ژبه په قسمونو باندې ککړه کړى اوکله چه ئې خله کولاويږى هم په څه قسم باندې کولاويږى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳٤۱۸] په غيرالله د قسم خوړلو حرمت

۳۴۱۸ - [۱۳] (۱) [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ، وَلَا بِأُمَّهَاتِكُمْ، [۳]وَلَا بِالأَنْدَادِ، [۴]وَلَا تَحْلِفُوا بِاللهِ إِلَّا وَأَنْتُمْ صَادِقُونَ» . رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهريره ﷛ وايي چي رسول ﷺ وفرمايل [۲]تاسو مه د خپلو پلرونو په نوم قسم اخلى. او نه د خپلو ميندو [۳]او نه د بتانو په نوم. [۴]او د خداى ﷻ قسم هم تاسو په هغه صورت کي اخلى هر کله چي تاسو رښتيني يئ يعني د دروغو قسم مه اخلى كه د هغه تعلق د تيري زماني سره وي يا د آئنده زماني سره. ابوداود، او نسايي

**حل اللغات:** ①بِالأَنْدَادِ: په شريکانو، په بُتانو

---

(۱) اخرجه ابوداود فى كتاب الأيمان والنذور/باب فى كراهية الحلف بالآباء (رقم-۳۲٤۸) والنسائى فى كتاب الأيمان والنذور/باب الحلف بالأمهات (رقم-۳۷٦۹)

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث وضاحت وړاندې حدیث نمبر (۳۴۰۷) کښې تیرشوې دی

**[۲٤۱۹] په غیرالله باندې د قسم خوړلو حکم**

۳۴۱۹ – [۱۴] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللّٰهِ [۳] فَقَدْ أَشْرَكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل [۲] چې چې د الله جل جلاله څخه د غیر قسم واخستلو [۳] نو هغه شرک وکړي. (ترمذي)

**تسهیلات: قوله: فقداشرك:**

**په غیرالله باندې د قسم خوړلو دوه صورتونه:** ① مطلب دادې چه په اصل کښې محلوف به معظم وی یعنی د چا د نوم چه قسم خوړلې شی هغه معظم هم ګڼړلې شی او هغه "ضار ونافع" هم ګڼړلې شی هغه د خپلو امورو ضامن او بعضې وخت هغه غیب دان هم ګڼړلې شی نوچه کوم سړی د الله تعالی نه سوا بل څوك داسې معظم ګڼړلو سره قسم اوخوړلو نو هغه د شرك جلی یـ شرك خفی ارتکاب اوکړو ځکه چه هغه د الله تعالی په بعضې صفاتو کښې غیرالله شریك کړو اوداسې په تعظیم کښې الله تعالی سره غیرالله شریك ګرځول شرك فی التعظیم دې لهذا وئی فرمائیل "فقداشرك" هغه شرك اوکړو

② که چرې داسې عقیده ئی نه وی بلکه صرف د خپل زور عادت مطابق د خوئی یا پلار یا نیکه د نومونو قسم اوخوړلو نودا سره د دې چه ګناه ده لیکن په دې کښې شرك نشته دې

**[۲٤۲۰] په "امانة" باندې د قسم خوړلو ممانعت**

۳۴۲۰ – [۱۵] (۲) [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ حَلَفَ بِالْأَمَانَةِ [۳] فَلَيْسَ مِنَّا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت بریده رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې د امانت قسم واخستلو [۳] هغه زمونږ څخه نه دی. ابوداؤد

**تسهیلات: قوله مَنْ حَلَفَ بِالْأَمَانَةِ**

**په امانت د قسم خوړلو څخه ممانعت:** امانت د الله تعالی په نومونو کښې یو نوم هم نه دی بلکه د الله تعالی د فرائض نه دې په دې وجه داسې قسم خوړلو سره قسم نه منعقد کیږی

---

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الأیمان والنذور/باب فی کراهیة الحلف بالآباء (رقم-۳۲۵۱) والترمذی فی کتاب النذور والأیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الکفارة قبل الحنث (رقم-۱۵۳۰) واحمد فی المسند: ۲/۸۶

(۲) اخرجه ابوداود فی کتاب الأیمان والنذور/فی باب کراهیة الحلف بالأمانة (رقم-۳۲۵۳) واحمد فی المسند: ۵/۳۵۲

**ممانعت وجه**: او دا کوم چه فرمائيلې شوی دی چه داسې زمونږ څخه نه دې. دا ځکه چه دا طريقه دَ عيسايانو ده هغوی په عبادات باندې قسم خوری لکه چه دادَ غيرالله په نوم باندې قسم شو کوم چه ناجائز دې

او که دَامانت په ځائي باندې امانة الله او وئيل او لفظ دَالله طرف ته نې اضافت اوکړو نو دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به قسم منعقد کيږی ځکه چه دا په دغه وخت اسم صفتی جوړشی کوم چه به دَ امين نه مشتق شی خودَ نورو ائمه حضراتو په نيز اضافت سره استعمالولو سره هم قسم نه منقعد کيږی نه به حانث کيږی او نه به کفاره راځی

**قوله فَلَيْسَ مِنَّا**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① دا کلام دَ اسلوب حکيم په توګه باندې دې چه دَدغه سړی زمونږ سره تعلق نشته دې. ښکاره خبره ده چه کوم سړې دَ محبوب دَ طرف نه داسې اعلان واؤری نو هغه به دَ دې فعل دَ ارتکاب نه خپل ځان بچ اوساتی يا دا تشديد او تغليظ دې

② صرف دې قسم مسئله کښې داسړې دَاهل اسلام په طريقه باندې نه دې دَدې مطلب دا نه دې چه دا سړې کافرشو

**[۳٤۲۱] د اسلام څخه د بيزارۍ د قسم خوړلو حکم**

---

[۱۲] ( ) ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَنْ قَالَ: إِنِّي بَرِيءٌ مِنَ الْإِسْلَامِ ③ فَإِنْ كَانَ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ، ④ وَإِنْ كَانَ صَادِقًا فَلَنْ يَرْجِعَ إِلَى الْإِسْلَامِ سَالِمًا» . رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

**ترجمه**: ① او حضرت بريده رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړی چې داسې اووائي که ما داسې کړي وی يا داسې مې نه وی کړي، نو زه د دې اسلام څخه بري يم، ③ که هغه په خپله خبره کې دروغجن وی نو هغه به هغه شان شي څنګه چې هغه ويلي دي، ④ او که هغه په خپله خبره کې رښتينی وی بيا هم هغه د اسلام طرف ته واپس صحيح سلامت نه راځي،

**حل اللغات**: ① إِنِّي بَرِيءٌ: زه بری يم. بيزاره يم.

---

[1] اخرجه ابوداود فی كتاب الأيمان والنذور /باب ما جاء فی الحلف بالبراءة وبملة غير الإسلام (رقم-۳۲۵۸) والنسائی فی كتاب الأيمان والنذور /باب الحلف بالبراءة من الإسلام (رقم- ۳۷۷۲) وابن ماجه فی كتاب الكفارات / من حلف بملة غير الإسلام (رقم-۲۱۰۰) واحمد فی المسند: ۳۵۵/۵

**تسهيلات:**

**قوله** فَإِنْ كَانَ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ:

**د مذكوره جملې په مطلب كښې دوه اقوال:** ① ملاعلي قاري رحمه الله د دې حديث د دې جملې لاندې ليكي چه دا جمله د تشديد، تغليظ، تحديد او زجراو توبيخ په توګه ده په دې سره واقعةً دا سړې كافر شوې نه دې خكه چه دا يمين غموس دې په كوم كښې چه ګناه شته كفر نشته "وان كان صدقاً" اوكه چرې په خپل خيال او خپل قسم كښې رښتونې دې يعنى هغه داسې قسم اوخوړلو كه چرې ما فلانكې كارنه وى كړې نوزه د اسلام نه ويزاره يم اوفي نواقع هغه رښتونې وى هغه دغه كاركړې وى نوبيا هم دا سړې د ګناه نه خالى نه شى پاتې كيدې خكه چه شريعت د داسې قسم خوړلونه منع كړې ده او ده داسې قسم خوړلې دې نو د ګناه ارتكاب ئې اوكړو

② كه يو سړې اووئيل چه كه ما فلانكې كارنه وى كړې يعنى مثلاً د مسلمانانو د پاره مې كوم نه وى كښتلې نوزه د اسلام نه ويزاره يم په دې قسم كښې كه چرې دا سړې دروغژن وى نو دې واقعةً د اسلام نه ويزاره شو "فهو كما قال" هم دغه مطلب دې.

**[۳٤۲۲] د نبى عليه السلام د قسم خوړلو بيان**

---[۱۷] (١) ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا اجْتَهَدَ فِي الْيَمِينِ ③قَالَ: "لَا، وَالَّذِي نَفْسُ أَبِي الْقَاسِمِ بِيَدِهِ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي ②چې رسول الله صلى الله عليه وسلم چې به په بعضو موقعو په خپل قسم كې زور پيدا كوى، ③نو داسې قسم به يي آخستلو، يا .قسم دى په هغه ذات چې د هغه په لاس كې د ابو القاسم ساه ده (دا خبره نه ده، بلكه دا خبره ده)

**حل اللغات** ①اِجْتَهَدَ فِي الْيَمِينِ: سختى او زور به ئې پيدا كولو په قسم كښې.
②نَفْسُ: ساه، روح. ③أَبِي الْقَاسِمِ: د رسول الله صلى الله عليه وسلم كنيت دې

**تسهيلات:**

**قوله** وَالَّذِي نَفْسُ أَبِي الْقَاسِمِ بِيَدِهِ

**د ابوالقاسم نه مراد:** د نبى عليه السلام چې كوم خامن په وړوكوالى كښې وفات شوى وو په هغوى كښې د يو نوم قاسم وو نو بى عليه السلام به خپل نوم په كنيت سره واخستلو او قسم به ئې اوخوړلو. كيدې شى په دې كښې د حضرت قاسم سره د مينې د اظهار دپاره هغوى داسې قسم خوړولو

---

(١) اخرجه ابوداود في كتاب الأيمان والنذور/باب ما جاء في يمين النبي صلى الله عليه وسلم ما كانت (رقم - ٣٢٦٤)

**[۳۴۲۳] د نبي عليه السلام د قسم يو قسم الفاظ**

----[۱۸] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَتْ يَمِينُ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا حَلَفَ: "لَا، وَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به قسم اخستلو، نو قسم به يې داسې وو. لَا، وَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ، ابوداود. ابن ماجه،

**تسهيلات: قوله** لَا، وَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ

**نوټ** د لا کلمه د قسم په اول کښې راوړلو تحقيق حديث نمبر (۳۴۰۶) په شرح کښې تيرشوي دي

**[۳۴۲۴] د قسم سره د ان شاء الله ويلو حکم**

----[۱۹] ( ) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ [۳] فَقَالَ: إِنْ شَاءَ اللّٰهُ [۴] فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ، وَذَكَرَ التِّرْمِذِيُّ جَمَاعَةً وَقَفُوهُ عَلَى ابْنِ عُمَرَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] څوک چې په يوه خبره قسم واخلي، [۳] او د قسم سره ان شاء الله هم اووايي، [۴] نو په هغه: حنث ځلاق نه کيږي ترمذي ابوداود نسايي ابن ماجه دارمي، او امام ترمذي ﷺ د خينې محدثينو په باره کې ذکر کړي دی، چې هغوئ دا روايت په حضرت ابن عمر ﷺ موقوف کړي دی يعني د دې محدثينو په نزد دا روايت د حضرت ابن عمر ﷺ ارشاد دی.

**حل اللغات** ① فَلَا حِنْثَ: نو حنث پرې نشته. قسم ني نه دي مات.

**تسهيلات:**

**قوله** فَقَالَ: إِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ:

**قسم باندې د ان شاء الله په ويلو الر کښې څلور اقوال:** ① که چرې قسم طلاق عتاق وغيره عقود کښې ان شاء الله لفظ متصل استعمال کړي شي نو د جمهورو په نيز هم هغه قسم يا څه عقد به نه منعقد کيږي

) اخرجه ابوداود فى كتاب الأيمان والنذور /باب ما جاء فى يمين النبى صلى الله عليه وسلم ما كانت (رقم-۳۲۶۵) وابن ماجه فى كتاب الكفارات / يمين رسول الله صلى الله عليه وسلم التى كان يحلف بها (رقم-۲۰۹۳) واحمد فى المسند: ۲۸۸/۲

) اخرجه ابوداود فى كتاب الأيمان والنذور /باب الاستثناء فى اليمين (رقم-۳۲۶۱) والترمذى فى كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى الاستثناء فى اليمين (رقم-۱۵۳۱) والنسائى فى كتاب الأيمان والنذور /باب الاستثناء (رقم-۳۸۳۰) وابن ماجه فى كتاب الكفارات / الاستثناء فى اليمين (رقم-۲۱۰۵) ومالک فى الموطا كتاب النذور والأيمان /باب ما لا تجب فيه الكفارة من اليمين (رقم-۱۰)

② دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما طرف ته منسوب دی چه هغوی به ان شاء الله یوکال بعدهم مؤثرمنلو

③ حضرت مجاهد رحمه الله به ډیرو کلونوپورې مؤثر منلو

④ سعید بن جبیر رحمه الله د څلورو میاشتو پورې مؤثر منلو

⑤ دَامام مالك رحمه الله په نیز که ان شاء الله متصل وی اوکه منفصل وی دهغې څه اثر په یو عقد اوعهد باندې نه کیږی قسم به واقع کیږی څکه چه ټول امور هم دَ الله تعالی په رضا کښې دی نودَدې ونیل اونه ونیل برابر دی قسم وغیره به په خانې وی لیکن دا رائې دَ دې قسم ټولو احادیثو نه مخالف ده په دې وجه دَدې څه اعتبارنشته دې

**د ان شاء الله په اتصال او انفصال کښې دوه اقوال:** ① بعضې ونیلی دی چه په مجلس کښې د خبرو دَ سلسلې جاری کیدو پورې دَدې وخت دې اوکله چه کلام بدل شو یعنی دویم کلام شروع شو نو اوس دَ ان شاء الله اثر ختم شو احناف به هم دغه مسلك خپلوی

② بعضې ونیلی دی چه ترکومې پورې مجلس قائم وی نوان شاء الله به دَ مجلس دَ قیام پورې مؤثر وی شوافعو به هم دغه مسلك خپلوی.

**وجه د اختلاف:** څکه چه دَ دواړو اصول اوقواعد داسې دی چه یو فریق په مسائل کښې دَ مجلس دَ ختمیدو داعتبار کړې دې او دویم فریق یعنی احناف سلسله دَ کلام په اختتام باندې اعتبار کړې دې

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[د۳۳۲۵] خپلوانو سره د خپلولی ساتلو دپاره د قسم ماتول**

د۳۳۲۵—[۲۰] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: ۲ «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَرَأَيْتَ ابْنَ عَمٍّ لِي آتِيهِ أَسْأَلُهُ فَلَا يُعْطِينِي وَلَا يَصِلُنِي، ۳ ثُمَّ يَحْتَاجُ إِلَيَّ فَيَأْتِينِي فَيَسْأَلُنِي، ۴ وَقَدْ حَلَفْتُ أَنْ لَا أُعْطِيَهُ وَلَا أَصِلَهُ، ۵ فَأَمَرَنِي أَنْ آتِيَ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ ۶ وَأُكَفِّرَ عَنْ يَمِينِي». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ ابو الاحوص عوف بن مالک د خپل پلار رضی الله عنه څخه روایت کوی، دَ دوی پلار فرمائی ۲ اې دالله رسوله! تاسوڅخه فرمائې زما د تره خوې دې، چې کله زه محتاج یم نو زه هغه ته ورشم څه ترې غواړم نوهغه ماته څه نه راکوی او نه زما د خپلولی خیال ساتی ۳ خو بیا په بله موقع دې ماته محتاج شی او ما ته راشی زما څخه غوښتنه کوی دده دې سلوک ته چې ما اوکتل نو ۴ ما قسم خوړلې دې چې نه به ده ته څه ورکړم او نه به دده سره خپلولی اوپالم ۵ نونبی علیه السلام ماته حکم اوکړو چې ته هغه طریقه

۱) اخرجه النسائي في كتاب الأيمان والنذور /باب الكفارة بعد الحنث (رقم ۳۷۸۸) وابن ماجه في كتاب الكفارات / من حلف على يمين فرأى غيرها خيرا منها (رقم ۲۱۰۹) واحمد في المسند: ۴/ ۱۳۶

اختيار كړه كومه چې ښه ده ، يعني ته ورته ورکړه كوه او خپلولي ورسره هم ساته ⑥ وباقي تا چې كوم قسم خوړلي دې نو دا حكم نې راته اوكړو چې ،زه د خپل قسم كفاره وركړم

①وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: «قُلْتُ: يَارَسُوْلَ اللهِ! ②يَأْتِينِي ابْنُ عَمِّي ③فَأَحْلِفُ أَنْ لَا أُعْطِيَهُ وَلَا أَصِلَهُ، ④قَالَ: كَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ»".

**ترجمه** ① او په يو روايت كښې دې فرمائي چې ما عرض اوكړو اې دالله رسوله ② زما د تره خونې ماته راشي ،زما څخه غوښتنه كوي، ③ خو ما قسم خوړلې دې چې زه به ده ته څه نه وركوم او نه به ورسره خپلولي ساتم، ④ نو نبي عليه السلام راته اوفرمائيل دخپل قسم كفاره وركړه ،او ده ته وركړه هم كوه او خپلولي ورسره هم ساته،

**حل اللغات** ① أَرَأَيْتَ: آيا ته ګورې، تاته پته شته، ② فَلَا يُعْطِيني: نو ماله څه نه راكوي، ③ وَلَا يَصِلُني: ونه راسره تعلق ساتي،صله رحمي راسره نه كوي،

**تسهيلات:**

**نوټ** د مامور به دادا كولو دپاره د قسم ماتول پكار دى ددې وضاحت وړاندې هم په دې باب كښې په مختلف احاديثو كښې شوې دې هغې ته رجوع اوكړئ.

# [۳] بَابٌ فِي النُّذُوْرِ

## دَ نذرونو يعنى منختو بيان

**قوله** بَابٌ فِي النُّذُوْرِ

**په دې كښې مباحث اربعه:**

**اول بحث: د نذر لغوى معنى**: نذر منختې ته وائي

**د نذر اصطلاحى تعريف**: غيرواجب څيز په خپل خان باندې واجب كولو نوم نذر يا منخته ده اوپه تفسير كبير كښې د نذر تعريف داشان دې ،النذر ما الزمه الانسان على نفسه،

**دوئم بحث: د نذر حكم**: نذر چه كله دَ ګناه نه وى نودَ ټولو فقهاؤ په نيزدا جائزدې دَ قرآن پاك اعلان دې ﴿ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ ﴾ [سورة الحج ٢٩]

**دريم بحث: د نذر دوه قسمونه**: ① نذر مطلق دې داهغه وى په كوم كښې چه منذور عمل دَ يوې ورځې يا وخت سره مقيد كړې شوې نه وى

② نذر مقيد دې دا هغه وى كوم كښې چه منذور عمل يوورځ يا مياشت يا دَ يوخاص وخت پورې مقيد كړې شى دَ رومبى مثال لكه چه څوك اووائى ،لِلّٰهِ على صوم شهر، دَ دويم مثال دادې ،الله على صوم شهر رجب هذه السنة،

**څلورم بحث: د نذر د صحت شرطونه:**

① **عدم معصيت:** منذور عمل ګناه نه وي ځکه چه په حديث کښې دي "لا نذر في معصية" لکه چه څوک نذر اومني چه که زما کار اوشو نوزه به د فلانکي بزرګ په مزار باندې څادر خوروم به مولود کوم يا به يولسمه کوم يا به د غوث اعظم مونځ کوم د داسې منختې پوره کول جائز نه دي لهذا دديې نه د وتلو د پاره د قسم کفاره اداکول سره د ګناه نه بچ کيدل ضروري دي

② **د مشروع الجنس څيز منخته:** منخته به د داسې څيزوي د کوم جنس چه په شريعت کښې مشروع او واجب وي لکه مونځ روژه حج وغيره نوکه چا داسې منخته اوکړه که زما فلانکي کار اوشو نوزه به د فلانکي مريض پوښتنه کوم دا نذر صحيح نه دي ځکه چه پوښتنه کول په شريعت کښې د داسې جنس نه ده چه واجب نه دي

③ **د غيرواجب څيز منخته:** د کوم څيز منخته يوسړې کوي نو هغه دې په د غه وخت يې په د تلونکي وخت د هغه په ذمه فرض يا واجب نه وي مثلاً داسې اووائي چه که زما کار اوشو نوزه به د مسخوتن مونځ کوم يا د رمضان روژې به ساتم بهرحال د ناجائز منختونه مستعت نونه بچ کيدل ډير ضروري دي لکه څنګه چه د جائز منختې پوره کول ضروري دي د منختې د پاره دا هم ضروري دي چه هغه په طاعت کښې وي او په طاعت مقصوده کښې وي په وسائل کښې نه وي په ژبه سره وي او د الفاظو ادائيګي سره وي صرف د زړه په نيت سره نه وي او د نذر او منختې پوره کولو پخه اراده ئې هم وي

**فائده: دوباره د باب النذور راؤړلو وجه:** صاحب مشکوة دې ځخه وړاندې باب الايمان والنذور کښې هم د نذور عنوان ورکړې وو او دلته بيا د باب النذور مستقل عنوان ذکر کوئ کيدې شي هلته دکاتبينونه سهوشوې وي شيخ عبدالحق رحمه الله اشعة اللمعات کښې ليکلي دي چه هلته د نذر بيان په ضمني توګه باندې وواصل بيان د قسم وو او دلته ئې نذر مستقل او خان له ذکر کړې دي

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۲۲۲] د نذر منلو څخه ممانعت**

۳۴۲۲ —[۱] (۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«لَا تَنْذُرُوا، [۳] فَإِنَّ النَّذْرَ لَا يُغْنِي مِنَ الْقَدَرِ شَيْئًا، [۴] وَإِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِهِ مِنَ الْبَخِيلِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۶۶۰۹ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۵/ ۱۶۴۰ والنسائي في كتاب الأيمان والنذور باب النذر يستخرج به من البخيل (رقم -۳۸۰۵) وابن ماجه في كتاب الكفارات / النهي عن النذر (رقم- ۲۱۲۳) واحمد في المسند: ۲/ ۱۱۸

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷺ او حضرت ابن عمر ﷺ دواړه راويان دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] تاسو نذر مه منئ، [۳] ځکه چې نذر د تقدير څه څيز لرې کولی نشي، [۴] البته د نذر په ذريعه د بخيل (څه مال ضرور) خرڅ کيږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ① لَاتَنْذُرُوا: نذر مه منئ، ② لَايُغْنِي: نشي لرې کولې، فائده نه ورکوي، ③ مِنَ الْقَدَرِ: د تقدير نه. ④ يُسْتَخْرَجُ: راويستلې شي، خرچ کولی شي

**تسهيلات**

**قوله** لَاتَنْذُرُوا فَإِنَّ النَّذْرَ لَايُغْنِي مِنَ الْقَدَرِ شَيْئًا

**اشکال:** د مذکوره حديث په الفاظو کښې د منختې ممانعت په صراحت سره ذکر دې حالانکه قرآن عظيم د نذر جواز او دهغې په پوره کولو کښې حکم ورکوي بل د ډيرو احاديثو نه د منختې جواز معلوميږي

**د اشکال جواب:** په حقيقت کښې دلته په دې حديث د سخي، بخيل او کنجوس سړي موازنه کړې شوې ده او د دواړو تقابل بيان کړې شوي دې چه د سخي سړی شان دادې چه هغه بغير د غرض او بغير د لالچ او بغير د منختې نه د الله تعالى په لار کښې مال خرچ کوی هغه صرف خپل رب راضي کول غواړی او د مال ورکول په عوض کښې هيڅ شرط نه لګوی

**قوله** وَإِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِهِ مِنَ الْبَخِيلِ

**نذر د کنجوس څخه د انفاق ذريعه:** ليکن بخيل او کنجوس او کنجوس ته د دې توفيق نه وی هغه که چرې خپل مال خرچ کول هم غواړی نو دهغې دپاره منخته واسطه جوړوی او د زړه د غرض پوره کولو دپاره وائی که الله تعالى زما داکار او کړو يا د دې نقصان نه نی بچ کړم نو زه به دهغه په نوم باندې دومره پيسې خرچ کوم نو په دې حديث کښې د سخي د قربتي د صفت بيان دې او د کنجوس اغراض او مقاصد او د لالچ او سودا ګرنی بيان دې

**د نذکر د کراهت صورت:** قاضي عياض رحمه الله فرمائی چه کوم وخت د نذر منونکی او وئيل چه الله تعالى به زما کارکوی نو زه به داکار کوم ګنی نه به نی کوم داسې شرط لګولو سره اخلاص ختميږی نو نذر مکروه کيږی

**د نذر درې صورتونه او د هريو حکم:** ① علامه طيبي رحمه الله فرمائی که د نذر منونکی داعقيده وی چه په دغه منختې سره به د الله تعالى تقدير بدل شی او پخپله به دا منخته نافع او رضا شی (جلب منفعت او دفع مضرت کار کوی) نو داسې منخته کول حرام دی

② که چر په منخته منلو کښې عقيده خرابه نه وی مګر صرف خود غرضي او مطلب پوره کيدل مقصود وی نو دا منخته مکروه ده ځکه چه نيت کښې خلوص نشته دې

③ که چرې خالص نيت سره د اطاعت په غرض سره منخته کوی نو دا مستحب ده

**د حديث څخه د نبی عليه السلام مراد:** بهرحال په مذکوره حديث کښې د غلطې عقيدې د

وجې نه د منختې ممانعت راغلې دې او د نیت په خلوص سره د منختې ترغیب ورکړې شوې دې مطلق د منختې نه منع کول مقصود نه دی زیربحث حدیث کښې "فأن النذر لا یغنی من القدر شیأ" الفاظو کښې چه د کوم علت طرف ته اشاره کړې شوې ده په هغې سره د علامه طیبي رحمه الله تفصیل او توضیح تائید کیږي [الکاشف ۷/۳۵-۳۴]

## [۳۳۲۷] د معصیت د نذر د پوره کولو حرمت

۳۳۲۷—[۲] (¹) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ نَذَرَ أَنْ يُطِيعَ اللّٰهَ فَلْيُطِعْهُ، [۳] وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَعْصِيَهُ فَلَا يَعْصِهِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې داسې نذر ومني چې په هغه سره د الله جل جلاله اطاعت کیږي. نو هغه ته پکار دی چې د هغه اطاعت وکړي (یعني نذر دې پوره کړي) [۳] او کوم سړی چې داسې نذر ومني چې په هغه سره د الله جل جلاله نافرماني کیږي، نو د هغه نافرماني دې نه کوي (یعني داسې نذر دې نه پوره کوي. بخاري.

**تسهیلات: قوله:** وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَعْصِيَهُ فَلَا يَعْصِهِ:

### د ګناه په نذر کښې د کفارې په وجوب کښې دوه مذاهب:

تمهید په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه د معصیت نذر او منخته منل جائز نه دی مثلاً دا منخته که چا منلې وی که زما ورک شوې خوئی ملاؤ شو نوزه به پیر بابا په مزار باندې ځان ړ خوړوم. ګډا به کوم. د دې منختې پوره کول د چا په نیز هم جائز نه دې لیکن اختلاف په دې کښې دې چه د معصیت په منخته کښې کفاره شته که نه؟

① د امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نیزنه د معصیت منخته جائز ده اونه د هغې پوره کول جائز دی او نه په دې کښې کفاره شته

② امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه د معصیت منخته ماتول ضروری ده او بیا د هغې کفاره اداکول هم واجب ده کومه چه د قسم کفاره ده

**داول فریق دلائل:** ① زیربحث حدیث د دوی مستدل دې

② راتلونکی د عمران بن حصین رضي الله عنه حدیث نمبر(۳۳۲۸) هم د دوی مستدل دې په دواړو رایاتو کښې طریقه د استدلال داسې دې چه دلته د کفارې ذکر نشته دې که چرې په منخته

¹) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ۶۶۹۶ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۳۲۸۹ والترمذی فی کتاب النذور والأیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب من نذر أن یطیع الله فلیطعه (رقم-۱۵۲۶) والنسائی فی کتاب الأیمان والنذور/باب النذر فی الطاعة (رقم-۳۸۰۶) وابن ماجه فی کتاب الکفارات / النذر فی المعصیة (رقم-۲۱۲۶) ومالک فی الموطا کتاب النذور والأیمان/باب العمل فی المشی إلی الکعبة (رقم-۸)

دَ معصيت كنبې كفاره وې نو په احاديثو كښې به دَ دې تذكره وې.

**داول فريق د دلائلو مجموعي جواب:** كه چرې په مذكوره زيربحث حديث كښې دَ كفاره وركولو اويا نه وركولو ذكر نشته دې نو عدم ذكر دَ عدم حكم دليل خونه وى كه چرې په زيربحث حديث كښې د كفاره ذكرنشته نو په نورو احاديثو كښې دَدې ذكر موجود دې لهذا دَ كفاره وركولوحكم به خپلولې شى دې حضراتو چه كوم دَ حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه دَ روايت نه استدلال كړې دې دَهغې هم دغه جواب دې

**د دويم فريق دلائل:** ① دَحضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه دَ حديث نمبر(۳۴۲۹) د دوى مستدل دې چې الفاظ ئى دادى «كفارة النذر كفارة اليمين»

② دَ فصل ثانى دَ حضرت عائشه رضي الله عنها حديث نمبر(۳۴۳۵) هم د دوى مستدل دې په كوم كښې چه صفا الفاظ راغلى دى چه: «لانذر فى معصية وكفارته كفارة اليمين»

③ هم دې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث نمبر (۳۴۳۶) هم د دوى مستدل دې.

**د معصيت د نذر په كفاره كښې فرق:** دَدويم فريق بعضې علماؤ دَدې قسم منختې په كفاره كښې څه فرق كړې دې چه كه په دې منخته كښې چرته معصيت لذاته يعنى شرب خمر يا دَ زناكولو منخته وى نونه دَدې پوره كول جائز دى اونه په دې كښې كفاره شته اوكه چرې په منخته كښې معصيت لغيره دې مثلاً په اخترونو كښې يا ايام تشريق كښې دَ روژو منخته كړې وى نو دَدې په ماتولو كښې به دَ قسم كفاره راځى. دغه شان په دواړه قسمه روايتونو باندې عمل اوشو.

**فائده: د امام شعبي او امام ابوحنيفه مباحثه:** وئيلى شى چه امام ابوحنيفه رحمه الله شيخ شعبى رحمه الله له راغلو اودَ نذر معصيت دَمسئلې تپوس ئى اوكړو هغوى اوفرمائيل چه كله دَ ګناه او معصيت منخته اوكړې شى نو په دې كښې هيڅ كفاره وغيره نشته دې امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل نو بيا په ظهاركښې كفاره ولې ده حالانكه هغه هم ګناه ده ځكه خپلې ښځې ته مور وئيل څومره لويه خرابه خبره ده؟ شعبى رحمه الله حيران شو او وئى فرمائيل "انت من الآرائيين" يعنى ته دَ اصحاب رائې نه ئى شيخ شعبى رحمه الله دَ امام ابوحنيفه رحمه الله استاذ دې.

**[۳۴۲۸] د ګناه د نذر د پوره كولو ممانعت**

۳۴۲۸ــ[۳] ([1]) ⓵ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶ "«لَا وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةٍ وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ الْعَبْدُ»". ⓷ رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةٍ: "لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ اللهِ".

---

[1] ) اخرجه مسلم فى صحيحه رقم الحديث ٨/ ١٦٤١ وابوداود فى السنن رقم الحديث ٣٣١٦ وابن ماجه فى كتاب الكفارات / النذر فى المعصية (رقم-٢١٢٤) واحمد فى المسند: ٤/ ٤٣٠

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم نذر چې د ګناه باعث وي، د هغه پوره کول جائز نه دی، او هم داسې د کوم څیز چې هغه بنده مالك نه وي. [۳] مسلم، او د مسلم رحمه الله په یو روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمایل د کوم نذر سره چې د الله تعالی نافرماني کیږي، د هغه پوره کول جائز نه دي. بخاري.

**حل اللغات** ① لَاوَفَاءَ پوره کول نې نشته، پوره کول نې جائز نه دی.

**تسهیلات:**

**نوټ** ددې حدیث پوره تشریح په وړاندې حدیث نمبر (۳۴۲۸) کښې تیره شوې ده

**[۳۴۳۹] د نذر د قسم د ماتولو کفاره**

| ــــ[۴] (۱) [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: [۲] «كَفَّارَةُ النَّذْرِ كَفَّارَةُ الْيَمِيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عقبه رضي الله عنه ابن عامر د رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] د نذر کفاره د قسم د کفاري پشان ده. (مسلم)

**حل اللغات** ① كَفَّارَةُ: کفاره، بدل، د نقصان ازاله

**تسهیلات: قوله كَفَّارَةُ النَّذْرِ كَفَّارَةُ الْيَمِيْنِ:**

**د قسم په کفاره کښې ترتیب:** ① دَ قسم ماتولو کفاره داسې ده چه یو غلام دې ازاد کړی که د غلام ازدولو وس نې نه وی یا غلام نه وی لکه په موجوده وخت کښې

② نو د اول صورت په نشتوالی کښې دې لس مسکینانو ته دوه وخته د رمینه خوراك ورکړی

③ د د دویم صورت طاقت هم نه لری نو بیا دې لسو مسکینانو ته کپړې ورکړی

④ که یو سړی په دې دریو قسم کفاراتو باندې قادر نه وی نو هغه دې مسلسل درې روژې اوستی

**په کوم صورت کښې او په چا چې کفاره نشته:** ① دَ قسم ماتولونه وړاندې دَ احنافو په نیزدَ قسم کفاره نشته دې

② ماشوم یا اوده شوی سړی یا لیونی اوپاګل سړی د قسم اعتبار نشته دې په دې وجه په دې کښې هم کفاره نشته

③ دَ کافر په قسم کښې کفاره نشته دې

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ۱۳/ ۱۶۴۵ والترمذي في كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في كفارة النذر إذا لم يسم (رقم ۱۵۲۸) والنسائي في كتاب الأيمان والنذور /باب كفارة النذر (رقم- ۳۸۳۲)

**[۳۳۳۰] د نا ممكنه اعمالو د نذر منلو ممانعت**

۳۳۳۰—[۵] ( ) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «بَيْنَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَخْطُبُ إِذَا هُوَ بِرَجُلٍ قَائِمٍ، [۳] فَسَأَلَ عَنْهُ، فَقَالُوا: أَبُو إِسْرَائِيلَ [۴] نَذَرَ أَنْ يَقُومَ وَلَا يَقْعُدَ، وَلَا يَسْتَظِلَّ وَلَا يَتَكَلَّمَ وَيَصُومَ، [۵] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مُرُوهُ فَلْيَتَكَلَّمْ وَلْيَسْتَظِلَّ وَلْيَقْعُدْ وَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ فرمايي [۲] چې (يوه ورځ) دنبي كريم ﷺ اچانك په يو سړي نظر ولګيدلو چې ولاړ وو، [۳] حضور ﷺ د هغه سړي په باره كې پوښتنه وكړه چې د ده نوم څه دى؟ او دا وخت ولي ولاړ دى؟، خلقو ورته اوويل چې د ده نوم ابو اسرائيل ﷺ دى، [۴] او ده دا نذر منلى دى چې ولاړ به وي، نه به كيني نه به سورى ته راځي او نه به خبرې كوي، او (هميشه) به روژې نيسي، [۵] رسول الله ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې ده ته اووايئ چې خبرې كوي او سورى ته راځي، كيني، اوخپله روژه دې پوره كړي. (بخاري)

**حل اللغات** ( ) لَا يَسْتَظِلَّ: نه به سورى (سايه) ته كيني،

**تسهيلات:**

**قوله:** أَبُو إِسْرَائِيلَ نَذَرَ أَنْ يَقُومَ وَلَا يَقْعُدَ، وَلَا يَسْتَظِلَّ وَلَا يَتَكَلَّمَ وَيَصُومَ:

**دابواسرائيل رضى الله عنه منخته:** يعنى حضورپاك تپوس اوكړوچه دا سړې ولې ولاړ دې خلقو اوئيل دا ابواسرائيل دې ده منخته كړې ده چه ولاړ به وى دغه سړى چه د كومو خبرو منخته كړې وه په هغې كښې په بعضې باندې خوعمل كول آسان اوممكن وو ليكن په بعضې باندې عمل كول ممكن نه وو.

**قوله:** أَنْ يَقُومَ وَلَا يَقْعُدَ،

**هميشه دولاړې نذر كول:**

"ان يقوم" يعنى دهميشه اودريدو منخته نى كړې وه نودې پوره كول ممكن نه وو ځكه چه داد چاد طاقت خبره هم نه ده او په مونځ كښې په سجده اوقعده كښې كيناستل فرض دى په دې وجه ددې منختې دماتولوحكم نى وركړو

**قوله:** وَلَا يَسْتَظِلَّ

**هميشه دپاره ځان باندې سيورى نه،** "ولايستظل" يعنى كله به سورى ته نه راځى داهم ممكن نه وو ځكه چه هميشه په نمر كښې اودريدل خودكشى ده اوپه جمع سره دمونځ دپاره جمات ته راتلل ضرورى وو په دې وجه ددې منختې ماتولو حكم هم وركړې شو

---

[۱] ) اخرجه البخارى فى صحيحه رقم الحديث ۶۷۰۴ وابوداود فى السنن رقم الحديث ۳۳۰۰ وابن ماجه فى كتاب الكفارات / من خلط فى نذره طاعة بمعصية (رقم-۲۱۳۶)

**قوله** وَلَا يَتَكَلَّمَ وَيَصُومَ

**همیشه دپاره د خبرو نه کولو نذر:** "لایتکلم" داهم ممکن نه وو چې همیشه دپاره به خبرې نه کوی ځکه چه په مونځه کښې وینا کول د قرأت په صورت کښې فرض دی د قرآن عظیم تلاوت دې اود یومسلمان د سلام جواب ورکول واجب دی دغه شان د صله رحمئ دپاره خپلوانوسره خبرې کول دهغوی حق دې په دې وجه دَدې نذر اومنختې ماتولوحکم ورکړې شو دَدې حدیث نه داخبره معلومه شوه چه هرهغه فعل اوعمل په کوم سره چه انسان په مشقت کښې پریوځی اوقرآن اوحدیث دهغې حکم نه وی ورکړې لکه پیدل خپې ابله گرځیدل یا په نمر کښې کیناستل داد ثواب کار نه دې (زجاجة المصابيح ۵۹۵/۲

**قوله** وَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ

**د ممکن العمل نذر پوره کول:** رسول الله ﷺ هغه ته د روژو پوره کولوحکم ورکړوچه د پوره کولو روژې به ستې اوایام منهیه دَدې نه بهر دی یعنی وړوکې اختر لونی اختر اودې ورځې په تشریق ایام منهیه دی که یو سړی دَدې ورځو د روژو منځته اوکړه نودَ ائمه احناف په نیزنه دې دَدې ماتول اوبیا کفاره اداکول به لازم وی یاد لرنی چه همیشه روژې ستل دَ هغه دپاره جنر دی څوك چه دَدې دَ لرلو طاقت لري.

**[۳۳۳] دپیدل حج د کولو نذرمنلو څخه مما نعت**

—[۱] (۱) وَعَنْ أَنَسٍ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى شَيْخًا يُهَادَى بَيْنَ ابْنَيْهِ، [۲] فَقَالَ: "مَا بَالُ هَذَا؟" [۳] قَالُوا: نَذَرَ أَنْ يَمْشِيَ. [۴] قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى عَنْ تَعْذِيبِ هَذَا نَفْسَهُ لَغَنِيٌّ" [۵]. وَأَمَرَهُ أَنْ يَرْكَبَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ د بیت الله شریفي د سفر په دوران کې یو بوډا ولیدلو چې (د ضعف او کمزوری په وجه) د خپلو دوو خامنو په مینځ کې (د هغوی په اوږو لاس ایښې) په لار روان وو. [۲] حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې په ده څه شوي دي؟ [۳] صحابه ؤ رضی الله عنهم عرض اوکړو چې دې سړي بیت الله شریفي ته د پیاده (په پښو) تلو نذر منلی دی. [۴] حضور ﷺ وفرمایل چې داسې خپل ځان په تکلیف کې اچولو سره الله ﷻ ته پروا نشته. [۵] بیا حضور ﷺ هغه سړي ته په سورلی د تلو حکم وکړي (بخاری مسلم)

**حل اللغات** (۱) الشَّيْخُ بوډا، کمزوری. (۲) يُهَادَى: داد مجهول صیغه ده د دوو سړو په اوږو باندې دواړه لاسونه اچولوسره په گرانه گرځیدو ته وائی (۳) بَالُ: په معنی د حال دې. (۴) نَفْسَهُ: دَتعذیب اومصدر دپاره مفعول به دې (۵) لَغَنِيٌّ: دا لفظ په دې باندې دلالت کوی چه هغوی ته څومره تکلیف وو

---

[۱]) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۱۸۶۵ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۹/ ۱۶۴۲ والنسائي في كتاب الأيمان والنذور /باب: ما الواجب على من أوجب على نفسه نذرا فعجز عنه (رقم- ۳۸۵۴) واحمد في المسند: ۱۱۴/۳

(۱) ۱ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: ۲ "ارْكَبْ أَيُّهَا الشَّيْخُ: ۳ فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنْكَ وَعَنْ نَذْرِكَ".

**ترجمه:** ۱ او د مسلم رحمه الله په یو روایت کې د ابوهریره رضی الله عنه څخه داسې دی ۲ چې حضور ﷺ هغه بوډا ته وفرمایل په سورلی لځه، ۳ ځکه چې الله ﷻ ستا څخه او ستا د دې په تکلیف کې اچونکې نذر څخه بې نیازه دی

**تسهیلات: قوله وَأَمَرَهُ أَنْ يَرْكَبَ:**

**د پیدل حج کولو نذر منل،** که چا دَ بیت الله دَ زیارت دَپاره پیدل تللو نذر منلې وی او داسې نې ونیلی وی چه زه به پیدل په خپو بیت الله ته ځم په دې صورت کښې د عالمانو اقوال مختلف دی

① امام شافعی رحمه الله فرمائی که دَ پیدل تللو طاقت اوقدرت نی وی نولاړ دې شی ګنی دَ عجز اومجبورئی په صورت کښې دې سور شی اومنخته ماتولوسره دې دم اداکړی اوهم دغه دَدې کفاره ده

② دَ امام شافعی رحمه الله یو قول داهم دې چه دَعجز په صورت کښې هیڅ هم نشته اودَ قدرت په صورت کښې که نی نذر مات کړو او سورشو نودم به پرې وی

③ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه داسې منخته کولونه پس که دَ پیدل تلو طاقت نی وی وکه نه وی تلل لازم دی بلکه هغه ته اختیاردې چه هغه دې سوریدو سره سفر اوکړی ویودم دَدې دکفاره په توګه باندې اداکړی

**د نذر د انعقاد په صحت باندې اتفاق:** دَدې دواړو مسلکونو اتفاقی خبره خودومره شته چه داسې منخته کولوسره نذر منعقد کیږی او پیاده خپو باندې تلل لازم دی

## د پیدل حج نذر کولو کښې د نذر نه کولو په صورت کښې دوه مذاهب:

① که څوک په دې باندې عمل نه کوی اودا منخته ماتول غواړی نوهغه به څه کوی؟ نو شوافعو فرمائی چه دَ مجبورئی په صورت کښې دم دې اودَمجبورئی نه کیدو دَ وجې نه به پیدل تلل متعین دی

② احناف فرمائی چه په پیدل تللو باندې دَقدرت لرلوباوجود که چرې دا سړې دا منخته ماتول غواړی اوسوریدو سره تلل غواړی نوداسې کولې شی البته یودم به اداکوی او کم دم چیلئی ده اوکوم خانی چه دَ بدنه ذکر دې نوهغه مستحب دې

**په احنافو باندې اعتراض:** منخته خودهغه څیز کولې شی دکوم په جنس کښې چه څه شرعی فعل واجب وی اودَ بیت الله شریف طرف ته پیدل سفرکول واجب فعل نه دې نودَ قیاس تقاضاخودادہ چه په دې سړی باندې په دې منخته کښې هیڅ هم لازم نه وی. حالانکه

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ۱/ ۱٦٤۳ وابن ماجة في السنن رقم الحديث ۲۱۳۵

دَعلمه . کرامو په نيز دَدې نذر په ماتولو کښې په دې سړی باندې دم دې

**داعتراض جواب:** دَ قياس تقاضاخوهم دغه ده اوهم داسې کيدل پکارو ليکن دَاستحسان يعنی قياس خفی د وجې نه دا نذر معتبر گرځولې شوې دې ځکه چه دَخلقو په عرف کښې داسې الفاظ اد کولوسره حج يا عمره لازمی گڼړلې شی او په قسم اومنځته کښې دَ عرف ډير لوئی دخل دې دويمه وجه داده چه د حضرت علی رضی الله عنه نه يواثر نقل دې چه داسې نذر منلوسره حج يا عمره لازمی کيږی نو په دې وجه هم قياس پريخودلې شوې دې

**په احناقو دويم اعتراض:** کله چه دَ منځتې دَماتولو کفاره دَ قسم دَ کفاره په شان ده نويا دَ دغه نذر اومنځتې دَ ماتولو په صورت کښې دم ولې لازمی کيږی اودَ قسم کفاره ولې نه راځی؟

**د دويم اعتراض جواب:** دَنذر دا معامله حج اوعمره سره تړلې شوې ده او په حج اوعمره کښې چه کله نقصان راځی نوهغه هم په دم سره پوره کولې شی "قال ونقائص النسك تجبر بـ سعر" نکه چه دَ دَ حج اوعمره خصوصيت دې "كذافي زجاجة المصابيح مختصراً".

**په مذکوره صورت کښې د کور ځخه د پيدل روانيدو وجوب:** باقی چا چه دَ پيدل حج منځته وکړه نو په هغه باندې لازم دی چه دَ کورنه دَ طواف زيارت پورې پيدل لاړشی هم دغه راجح قول دې او په حديث الباب کښې چې نبی عليه السلام هغه ناذر ته د نذر ماتولو حکم کړې دې نو زمونږ په دې قول کښې چې د کور ځخه دې پيدا حج شروع کړی دحديث مخالفت نشته ځکه چې دغه نذر خو په احرام کښې وو هغه خو د حج شروع پيدل کړې وه ددې وجې په حنفو اعتراض نه راځی

**[۳۴۳۳] وارثانو ته د مړی د نذر پوره کولو حکم**

۳۴۳۳-[۵] (۱) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- : أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- «اسْتَفْتَى النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي نَذْرٍ [۲] كَانَ عَلَى أُمِّهِ [۳] فَتُوُفِّيَتْ قَبْلَ أَنْ تَقْضِيَهُ [۴] فَأَفْتَاهُ أَنْ يَقْضِيَهُ عَنْهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ځخه روايت دی چې سعد بن عباده رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ځخه د هغه نذر په باره کې مسئله وپوښتله [۲] چې د هغه مور منلی وو. [۳] او هغه د هغه د پوره کولو ځخه مخکې مړه شوه. [۴] حضور صلی الله علیه وسلم سعد رضی الله عنه ته دا فتوی ورکړه چې هغه دې د خپلې مور د طرف ځخه هغه نذر پوره کړې. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** ① اِسْتَفْتَى: طلب د فتوې نې اوکړو. دمسئلې تپوس نې اوکړو

---

۱) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۶۶۹۸ ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۱/ ۱۶۳۸ والترمذی فی كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی قضاء النذر عن الميت (رقم-۱۵۴۶)

**تسهيلات:**

**توله: فَأَفْتَاهُ أَنْ يَقْضِيَهُ عَنْهَا:**

**د سعدبن عباده د مور د منختې په مصداق کښې څلور اقوال:**

دَ حضرت سعدبن عباده رضی الله عنه مور څه منختې بعضې علماؤ فرمائيلی دی چه

① هغې دَ روژې دَ ساتلو نذر منلې وو

② هغې دَ غلام دَ آزادولو منخته نې کړې وه

③ هغې دَ صدقه منخته نې کړې وه.

④ صحيح خبره داده چه دَ هغې منخته مبهم وه. دَ نذر معين او نذر مطلق تذکره هم نه وه

**د سعد بن عباده د مور دپاره نذر پوره کول:** دارقطنی کښې يوروايت دې چه نبی اکرم ﷺ حضرت سعد رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه دَخپلې مور دَ طرف نه کوهې اوباسه اووقف ئې کړه نوهغوی هم داسې اوکړل اوبيائې اوفرمائيل چه دادَ سعد دَمور دَپاره دې.

**د مړی د نذر پوره کولو دوه صورتونه:** ① که يوسړې دَ منختې دَ پوره کولووصيت اوکړو اوهغه دَ منختې تعلق بدنی عباداتو سره وی نودَهغه وصيت پوره کول دَ جمهور علماؤ په نيز جائز نه دې ځکه چه "لايصلی احدعن احدولايصوم احدعن احد" صريح حديث راغلې دې اهل ظواهر دَ زير بحث حديث په ظاهرباندې عمل کړې دې چه په وارث باندې دَ مورث منخته پوره کول په هرحال کښې لازم دی.

② د هغه دَ منختې تعلق دَ مال سره دې نو اوس ددې دوه صورتونه دی

(الف) که دغه مړی پَ ترکه کښې مال پريخودې وی دَ مړی دَ دريمې حصې دَ مال نه به هغه منخته پوره کولې شی. اودَ مړی په وارثانوباندې دَ دې حکم پوره کول لازم دی

(ب) که چرې دَ مړی مال نه وی نو په وارثانوباندې دَ دغه منختې پوره کول لازم نه دی. اوکه وارثان په توګه دَ احسان هغه پوره کول غواړی نودا تبرع اواحسان دې

**[۳۴۳۳] د خپل ټول مال د خيرات کولو ممانعت**

۳۴۳۳-[۸] ( )[۱]«وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ[۲] إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي[۳] صَدَقَةً إِلَى اللهِ وَإِلَى رَسُولِهِ. [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَمْسِكْ بَعْضَ مَالِكَ [۵] فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ". [۶] قُلْتُ: فَإِنِّي أُمْسِكُ سَهْمِي الَّذِي بِخَيْبَرَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَهَذَا طَرَفٌ مِنْ حَدِيثٍ مُطَوَّلٍ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت کعب ابن مالك رضی الله عنه وايي چې ما عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ [۲] زما د مکمل او په پوره طور سره د توبې تقاضه خو دا ده چې زه د خپل ټول مال څخه

---

( ) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ۶۶۹۸ ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۵۳/ ۲۷۶۹ وابوداود فی السنن رقم الحديث ۳۳۱۷ والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة التوبة (رقم-۳۱۰۱)

دست کش شم (يعنې لاس واخلم) ۳ او هغه د الله ﷻ او د رسول ﷺ د پاره خيرات کړم ۴ رسول کريم ﷺ ورته وفرمايل چې ستا په حق کې ښه دا ده چې ته څه مال وګرځوه ، ۵ما عرض اوکړو (ښه دی) زه د خيبر خپله حصه ګرځوم، دا روايت د يو اوږده حديث ټکړه ده.

**حل اللغات** ①أَنْ أَنْخَلِعَ: چه زه لاس واخلم، اوباسم، ②أَمْسِكْ: اوساته، ايسار کړه، ③سَهْمِي: زما حصه، ④طَرَفٌ: ټکړه، حصه، ⑤مُطَوَّلٍ: اوږد، طويل

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي صَدَقَةً إِلَى اللهِ وَإِلَى رَسُوْلِهِ:

**د غزوهٔ تبوک څخه د کعب بن مالک رضی الله عنه پاتې کيدل** :دتبوک دپاره دَ رسول اللہ دَ طرف نه دَ نفيرعام اعلان شوې وو په دې وجه په هرعاقل بالغ سړی باندې جهاد کښې وتل فرض عين شوې وو حضرت کعب بن مالك ﷺ او دَهغه نور دوه ملګری حضرت هلال بن اميه ﷺ او حضرت مراره بن ربيع ﷺ شاته پاتې شوې وو.

**اشکال**: د کعب بن مالک د توبه په واقعه کښې دې غزوه کښې ئې نبی عليه السلام د حضرت کعب رضی الله عنه د ټول مال د صدقه کولو څخه منع کړې دې خو په غزوه تبوک کښې د ابوبکررضی الله عنه څخه دهغوی د کور ټول مال قبول کړې دې دا ولې؟

**داشکال جواب**: وجه دَ فرق داده چه دَهريو ايمانی کيفيت جدا جدا وو دَ دې حديث تعلق باب النذورسره داسې دې چه دَحضرت کعب ﷺ مال پيش کول لکه چه دَ نذر دَ وجې نه وو

**فائده: پنځه ملغلري:**

① دَدې دريواړو نومونه ياد ساتلودَپاره لفظ «مکه» ياد لرئی څکه چه دَ هريودَنوم ړومبې حرف په دې لفظ کښې موجود دې «ميم» کښې حضرت مراره بن ربيع ﷺ اشاره ده او په «کاف» کښې حضرت کعب بن مالك ﷺ ته اشاره ده او په «ه» حضرت هلال بن اميه ﷺ ته اشاره ده

② ليلة المعراج کښې د انبياء کرامو سره د ملاقات ترتيب دغه شان په معراج کښې په کوم آسمان کښې کوم نبی سره دَ رسول الله ﷺ ملاقات شوې وو دکوم چه په احاديثوکښې په ترتيب سره واقعه بيان کړې شوې ده نودَدې دَ يادولودَپاره

③ د تفسير جلالين د مصنفينو پيژندګلو دغه شان دَ جلالين دوه مصنف جلال الدين سيوطی او جلال الدين محلی کښې دَحروف هجا په اعتبارسره ړومبې حرف سين دې دويم ميم دې نودَ ړومبې حصې مصنف سيوطی دې دَ دويمې محلی دې

④ په کوم نبي کريم صلي الله عليه و سلم کوم کتاب نازل شوې دې د دې پيژندګلو دغه شان «تعمرفعمراسعزيد» په دې حروفو کښې دَ هرنبی نوم او په هغه باندې نازل شوې کتاب اودَ ژبې طرف ته اشاره ده مثلاً «تعمر» ته اوګورئی «ت» تورات «ع» عبرانی کښې ميم موسٰی عليه السلام

باندې نازل شوې "المعر" کښې "ف" فرقان "ع" عربی "م" محمد ﷺ باندې نازل شوې
په "اسم" الف انجیل، سین سریانی ژبه کښې "ع" عیسی علیه السلام باندې نازل شوې
په"مزید" کښې زبور "ی" یونانی ژبه کښې دال داود علیه السلام باندې نازل شوې دې
⑤ هابیل و قابیل کښې د قاتل او مقتول پیژنګلو دغه شان هابیل او قابیل کښې دَ قاتل دَ معلومولو دَپاره قاف په ذهن کښې ساتنې دَ کوم په نوم کښې چه رومبې حرف قاف دې هغه قاتل دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۴۳۵] د ګناه د منختې حرمت

۳۴۳۵-[۱] ()[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةٍ، [۳] وَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه . وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د ګناه نذر پوره کول جائز نه دی. [۳] او د هغه نذر کفاره د قسم د کفارې پشان ده، (ابوداود ترمذي نسايي)

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث پوره تشريح په وړاندې حديث نمبر (۳۴۳۸) کښې تيره شوې ده

## [۳۴۳۶] د نذر کفاره غير معين

۳۴۳۶-[۲] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «مَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَمْ يُسَمِّهِ [۳] فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ». [۴] وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا فِي مَعْصِيَةٍ [۵] فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ، [۶] وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَا يُطِيقُهُ [۷] فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ، [۸] وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا أَطَاقَهُ فَلْيَفِ بِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَوَقَفَهُ بَعْضُهُمْ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې غير معين نذر ومني (يعني يواځې دا اووائي چې زه نذر منم او د دې خبرې تعين ونه کړي، چې د کوم څيز نذر مني، مثلًا د روژې يا د صدقې) [۳] نو د هغه نذر کفاره د قسم کفاره ده (يعني د غير معين نذر په صورت کې هغه به هغه کفاره اداء کوي کومه چې د قسم د ماتولو په صورت کې ورکول کيږي) [۴] دغه شان کوم سړی چې د يو داسې څيز نذر ومنلي

() اخرجه ابوداود فی کتاب البیوع/باب فی المزارعة (رقم-۳۳۹۲) والترمذی فی کتاب النذور والأیمان عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء عن رسول الله صلی الله علیه وسلم أن لا نذر فی معصیة (رقم-۱۵۲۵) والنسائی فی کتاب العمری/باب ذکر إختلاف ألفاظ الناقلین لخبر جابر فی العمری (رقم- ۳۷۳٤) واحمد فی المسند: ۶/۲۴۷

() اخرجه ابوداود فی کتاب الأیمان والنذور/باب من نذر نذرا لا یطیقه (رقم-۳۳۲۲) وابن ماجه فی کتاب الکفارات / من نذر نذرا ولم یسمه (رقم-۲۱۲۸)

چې گناه ده. نو د هغه پوره کول جائز نه دی او [۵] د هغه کفاره د قسم کفاره ده. [۶] او کوم سړی چې د داسې شی نذر ومني چې د هغه د پوره کولو هغه طاقت نه لري (لکه یو سړی د غره د پورته کولو یا په پښو بیت الله شریفې ته د تلو نذر ومني یا دغه شان ناممکن العمل څه څیز په خن په طور د نذر واجب کړي) [۷] نو د هغه کفاره د قسم کفاره ده، [۸] او کوم سړی چې د داسې شي نذر ومني چې د هغه د پوره کولو هغه طاقت لري، نو هغه ته پکار دي چې هغه نذر پوره کړي، (ابوداود ابن ماجه) بعضې راویانو دا حدیث په حضرت ابن عباس رضي الله عنهما باندې موقوف کړي دی

**حل اللغات** ① أَطَاقَهُ: چه طاقت ئې لری، ② فَلْيَفِ: نو پوره دې کړی

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَمْ يُسَمِّهِ:**

**د دې جملې په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نیز دې حدیث مطلب دې چا نذر مطلق پریخودواو د یوخاص فعل نوم نی وانخستلو چه په ما باندې د الله تعالی دپاره روژه ده یا حج دې یا عمره ده خوکه په زړه کښې نی د څه څیزنیت وی نو په هغې باندې به عمل کول وی گنی دا نذر مطلق دې ددې کفاره د یمین یعنی قسم د کفارې په شان ده.

② د شوافعو حضراتو په نیز په دې حدیث کښې نذر لجاج وجدال بیان دې یعنی چه یوسړی نذر اومنلو که ما فلانکی سړی سره خبرې اوکړې نو په ما باندې د یوې میاشتې روژې یا حج دې لازم وی اوس که هغه خبرې اوکړې اونذر نی مات کړو نو په ده به د یمین کفاره راځی په ظاهر حدیث کښې "لم یسمه" الفاظو نه د احنافو اومالکیو د رائې تائید کیږی

**[۳۳۳۰] د جائز نذر د پوره کولو حکم**

۳۳۳۰ - [۱۰] (۱) [۱] وَعَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «نَذَرَ رَجُلٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَنْحَرَ إِبِلًا بِبُوَانَةَ، [۳] فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرَهُ، [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " هَلْ كَانَ فِيهَا وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ الْجَاهِلِيَّةِ يُعْبَدُ؟ [۵] " قَالُوا: لَا. [۶] قَالَ: " فَهَلْ كَانَ فِيهِ عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِهِمْ؟ " [۷] قَالُوا: لَا. [۸] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " أَوْفِ بِنَذْرِكَ، [۹] فَإِنَّهُ لَا وَفَاءَ بِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ، [۱۰] وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ثابت ابن ضحاک رضي الله عنه وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو سړي دا نذر ومنلی چې هغه به په بوانه کې (چې د مکې په خکته علاقه کې واقع د يو ځای

(۱) اخرجه ابوداود في كتاب الأيمان والنذور باب ما يؤمر به من الوفاء بالنذر (رقم-۳۳۱۳)

نوم وو، اوښ ذبح کوي، [۳] بيا هغه سړی رسول الله ﷺ ته راغلی او حضور ﷺ يې د خپل نذر څخه خبر کړي، [۴] رسول الله ﷺ د صحابه و ؓ څخه معلوم کړل چې آيا په زمانه د جاهليت کې په دې مقام کې يو بت وو چې د هغه پرستش (عبادت) کيدلې؟ [۵] صحابه و ؓ عرض اوکړو چې نا، [۶] بيا حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې آيا هلته د کفارو په ميلو کې څه ميله لګيدله؟ [۷] صحابه و ؓ عرض اوکړو چې نا، [۸] د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ هغه سړي ته وفرمايل چې ته خپل نذر پوره کړه، [۹] ځکه چې د هغه نذر پوره کول جائز نه دي چې د څه ګناه خبره وي، [۱۰] او په ابن آدم (انسان) د هغه شي نذر پوره کول هم ضروري نه دی کوم چې د هغه په ملکيت کې نه وي، (ابوداود)

**حل اللغات:** ①أَنْ يَنْحَرَ: چه اوښ قرباني کوی، چرته چه نحر لفظ راشی نو هلته د اوښ قرباني کول مراد وی ②بِبُوَانَةَ: په باء باندې پيش او واؤ مفتوح غيرمشدد دې مکه مکرمه سره نيزدې ينبع مقام کښې د سمندر په غاړه د د ځرن د يو ځائی نوم دې د نجدپه علاقه هم د اوبود يو ځای نوم بو نه دې هغه مرادنه دې ③وَثَنٌ: جمع اوثان ده په معنی د بت ④عِيدٌ: عيد د اعياد جمع ده، ميله خوشحالی، ⑤أَوْفِ: پوره کړه،

**تسهيلات:**

**قوله: هَلْ كَانَ فِيهَا وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ الْجَاهِلِيَّةِ يُعْبَدُ؟**

**د مشرکانو په عبادتخانو کښې د ذبح کولو څخه ممانعت:** په جاهليت کښې چه به چرته مشهورې ميلې لګيدلې د دغه ځايونو به خاص خاص نومونه وو هم د دې حضورپاک پوښتنه کړې ده، دې د پاره چه هغوی ته معلومه شی چه په دې ځائی کښې د کافرانو څه نښې نښانې خونشته دې کله چه معلومه شوه چه څه خاص علامت نشته نو حضورپاک هلته د ذبح اجازت ورکړو

**کافرانو څخه د مشابهت څخه ځان ساتل:** د دې نه دا معلومه شوه چه کافرانو سره مسلمانانو له خپل افعال او اقوال او خپل عباداتو او عاداتو کښې مشابهت نه دی ساتل پکار ځکه چه (من تشبه بقوم فهو منهم) د مذکوره حديث نه معلومه شوه چه د نذر چه د کوم مکان تعين کړې شوی وی او په هغې باندې عمل ممکن وی نو هم په هغه ځائی نذر پوره کول لازم دی

**[۳۳۲۸] د تنبل وهلو نذر منل**

۳۳۲۸—[۳] () [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، [۲] «أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي نَذَرْتُ أَنْ أَضْرِبَ عَلَى رَأْسِكَ بِالدُّفِّ. [۳] قَالَ: "أَوْفِي بِنَذْرِكِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، [۴] وَزَادَ رَزِينٌ: قَالَتْ: «وَنَذَرْتُ أَنْ أَذْبَحَ

) اخرجه ابوداود في كتاب الأيمان والنذور/باب ما يؤمر به من الوفاء بالنذر(رقم-۳۳۱۲)

بِمَكَانِ كَذَا وَكَذَا، [۵] مَكَانٌ يَذْبَحُ فِيهِ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ، [۶] فَقَالَ: "هَلْ كَانَ بِذَلِكَ الْمَكَانِ وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ الْجَاهِلِيَّةِ يُعْبَدُ؟" [۷] قَالَتْ: لَا. [۸] قَالَ: "هَلْ كَانَ فِيهِ عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِهِمْ؟" [۹] قَالَتْ: لَا. [۱۰] قَالَ: "أَوْفِي بِنَذْرِكِ»".

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعيب ﷺ د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه (حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ) څخه روايت کوي [۲] چې يوې ښځې عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ ما دا نذر منلی دی (چې کله تاسو د جهاد څخه واپس تشريف راوړئ، نو) زه به ستاسو په مخکې تنبل (دريا) غږوم. [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل ته خپل نذر پوره کړه. (ابوداود) [۴] او رزين عليه په دې کې دا الفاظ نور نقل کړي دي چې هغه ښځې دا هم اوويل او ما دا نذر منلی دی چې زه به په فلانې فلانې مقام کې [۵] چرته چې په زمانه د جاهليت کې به خلقو څاروي ذبح کول، حيوان ذبح کړم، [۶] حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې آيا هلته د زمانهٔ جاهليت د بتانو څخه يو بت وو؟ [۷] هغې ښځې اوويل چې نا. [۸] بيا خپنې حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې هلته د کفارو د ميلو څخه يوه ميله لګيدله؟ [۹] هغې ښځې اوويل چې نه. [۱۰] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې خپل نذر پوره کړه.

**حل اللغات:** ① عَلَى رَأْسِكَ: ستاسو په مخکښې، ② بِالدُّفِّ: طنبل، ③ كَذَا وَكَذَا: فلانی فلانی ځ ئ کښې.

**تسهيلات: قوله:** إِنِّي نَذَرْتُ أَنْ أَضْرِبَ عَلَى رَأْسِكَ بِالدُّفِّ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** دَدې جملې مطلب دادې چه ستاسو په وړاندې به تمبل وهم عام شارحينو هم دغه مطلب اخستې دې ليکن داحاصل معنی ده که چرې په حقيقی معنی باندې عمل اوکړې شی چه ستاسو په سر به تمبل غږوم نو هم ممکن ده ځکه چه دَ تمبل غږونکی وينځه کله اودريږی تمبل غږه وی اوحضورپاك ناست وی او تشريف فرما وی نودا به په سرباندې تمبل غږول وی اوترجمه به داشی چه زه به ستاسو په سرباندې تمبل غږوم شيخ عبدالحق رحمه الله فارسی کښې هم دغه ترجمه کړې ده اوبيائی حاصل معنی بيان کړې ده

**اشکال:** تمبل غږول څه طاعت او نيك عمل نه دې دَزيات نه زيات يومباح عمل دې حالانکه دَ نذر منلودَپاره دَ طاعت کيدل ضروری دی نودا نذر څنګه صحيح کيدې شی؟

**داشکال جواب:** علامه خطابی رحمه الله په جواب کښې فرمائی سره دَدې چه تمبل غږول يومباح عمل دې خوچه کله دا تمبل غږول حضورپاك سره دَ ډير مينې اوعقيدت سره متعلق وی اوجهادی معرکونه صحيح سالم دَ فتح په انداز کښې واپس راتلوسره متعلق وی په کوم کښې چه دَ کافرانوسرښکته په خفګان کښې کيدل وو اودَ منافقانو توهين تحقير او تذليل وو نو په دې وجه اوس داعمل دَ بعضې نيکو په شان شونو دَدې نذر صحيح شو.

**[۳۳۳۹] د دريمې حصې مال څخه د زيات د صدقه کولو ممانعت**

۳۴۳۹-[۳] ()[۱] «وَعَنْ أَبِي لُبَابَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -: أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَهْجُرَ دَارَ قَوْمِي الَّتِي أَصَبْتُ فِيهَا الذَّنْبَ، [۳] وَأَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي كُلِّهِ صَدَقَةً [۴] قَالَ: "يُجْزِءُ عَنْكَ الثُّلُثُ"». رَوَاهُ رَزِين.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابو لبابه ﷺ څخه روايت دی چې هغه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو [۲] چې زما کامله توبه دا ده چې زه د خپل قوم کور پريږدم، چرته چې زما څخه ګناه صادره شويده، [۳] او دا چې زه خپل ټول مال خيرات کولو د پاره د هغه څخه فارغه شم. [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د دريمې حصې مال صدقه ستا د پاره کافي ده، (رزين)

**حل اللغات:** ① أَنْ أَهْجُرَ: آيا زه پريږدم، ② أَصَبْتُ: زه رسيدلې يم، مانه صادر شويده، ③ أَنْخَلِعَ: چه زه جدا شم، فارغ شم، ④ يُجْزِءُ: کافي کيږي ،

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَهْجُرَ دَارَ قَوْمِي الَّتِي أَصَبْتُ فِيهَا الذَّنْبَ:**

**د حديث پس منظر:** په مدينه منوره کښې د جنګ خندق په موقع باندې ۴ هجرى کښې د بنو قريظه يهوديانو کله چه وعده ماته کړه نو د جنګ خندق نه فارغيدو سره مسلمانانو د حضور پاک سره ۲۵ ورځو پورې د بنو قريظه د يهوديانو محاصره اوکړه. کعب بن اسد چه د دغه يهوديانو مشر وو هغه داسې تقرير اوکړو. اې يهوديانو! اې د انبياء کرام اولاد! د دې مشکل نه د وتلو د پاره په دريو خبرو کښې د يوې انتخاب اوکړئ

① يا ايمان راوړئ او تاسو ته معلومه ده چه دا نبى هم هغه نبى آخرزمان دې د چاچه تاسو په انتظار وئې

② که چرې داسې نه وی نو خپلې ښځې اوبچې په خپله قتل کړئ او بيا په مسلمانانو باندې په يوځل حمله اوکړئ هغوی تباه اوبرباد کړئ يا پخپله مړه شئ

③ يا داسې اوکړئ چه د هفتې په ورځ په مسلمانانو باندې ناڅاپې حمله اوکړئ دوی به ناخبره وی مونږ به روستو د هفتې په ورځ د جنګ د وجې نه استغفار اوتوبه اوکړو. قوم د خپل سردار يوه خبره هم اونه منله

**د ابولبابه د مدعو کولو فيصله:** بيا دا فيصله اوشوه چه ابولبابه راؤغوارئ کيدې شى څه حل راؤخى ابولبابه ﷺ چونکه بنو قريظه سره اوسيدلو د هغه هم هلته کور وو او هغوی سره د ده پخوانى تجارتى اومعاشرتى تعلقات هم وو. کله چه د حضور پاک په اجازت سره دوی

---

[1]) اخرجه ابوداود فى كتاب الأيمان والنذور/باب فيمن نذر أن يتصدق بماله (رقم-۳۳۱۹) ومالک فى الموطا كتاب النذور والأيمان/باب جامع الأيمان (رقم-۱۶)

د هغوی محلونوته لاړل اود بنځو اوماشومانو چغې صورې نی واوریدې نو نرم شو یهودیانو هغوی ته اووئیل که چرې مونږ د حضرت محمد ﷺ په حکم باندې د قلعه ګانونه ښکته راکوز شو او هغه به مونږ سره څه سلوك کوی؟ حضرت ابولبابه ﷺ د مرئی طرف ته اشاره اوکړه یعنی تاسو ټول به ذبح کړی

**د ابولبابه رضی الله عنه ځپل ځان په ستنه پورې تړل**: دا وینا کول ووچه هغه په هوش کښې راغلو اوس لادوه قدمه وړاندې روستوشوې نه وو چه پښیمانه شوچه ما خود حضورپاك راز ښکاره کړو هغه نیغ مسجدنبوی ته راغلو اوځپل ځان نی ستنې پورې اوتړلو دغه ستن اوسه پورې د اسطوانه ابولبابه ﷺ په نوم سره مسجدنبوی کښې د حضورپاك منبر او روضه مبارکې په مینځ کښې ریاض الجنه کښې ولاړه ده د اووو ورځوپورې هغه تړلې وو نه به نی خوراك کولو اونه به نی اوبه څکلې صرف د قضاحاجت د پاره به پرانستلې شو اووه ورځې پس بې هوشه راپریوتلو آخرالله تعالی د هغه توبه قبوله کړه اود توبه دا آیت نازل شو ﴿ وَآخَرُونَ اعْتَرَفُوا بِذُنُوبِهِمْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا عَسَى اللَّهُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۝ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ ﴾[سورة توبه الایه ۱۰۲]. خلقو زر زر هغه کولاوول غوښتل خوهغه منع کړل او وئی فرمائیل چه پخپله به حضورپاك په خپلو لاسونو مبارکو سره مـ کولاووی

**قوله** يُجْزِءُ عَنْكَ الثُّلُثُ:

**د ټول مال د صدقه کولو څخه ممانعت**: کله چه حضورپاك هغه کولاو کړو نو هغه اوفرمائیل چه زه بنوقریظه سره خپل کور پریږدم ځکه چه دغه مکان هم د دې واقعه سبب جوړشوې دې اوزه خپل پوره مال صدقه کوم ځکه چه دا مال د تجارت هم د دغه واقعه سبب جوړشوې دې حضورپاك د مال باره کښې اوفرمائیل چه صرف یوثلث صدقه کړه درېیو کښې یوه حصه خیرات کافی دې رسول الله ﷺ مبارك د مکان باره کښې هیڅ اونه فرمائیل لکه چه حضورپاك د مکان د پریخودو اشاره اوکړه ځکه چه چرته شیطانی اثرات پریوځی د هغه ځانی نه بدلیدل ضروری دی

## [۳۴۴۰] په یوخاص ځائی کښې د مونځ کولو نذرمنل

۳۴۴۰— [۳] ( ) [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - : [۲] «أَنَّ رَجُلًا قَامَ يَوْمَ الْفَتْحِ [۳] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي نَذَرْتُ لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ إِنْ فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكَ مَكَّةَ أَنْ أُصَلِّيَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ رَكْعَتَيْنِ [۴] قَالَ: "صَلِّ هَاهُنَا". [۵] ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ [۶] فَقَالَ: "صَلِّ هَاهُنَا". [۷] ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ [۸] فَقَالَ: "شَأْنَكَ إِذًا"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

---

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الأیمان والنذور/باب من نذر أن یصلی فی بیت المقدس (رقم-۳۳۰۵) واحمد فی المسند: ۳ ۳۶۳

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ ابن عبد الله وايي [۲] چې د مکي د فتح په ورځ يو سړي په مجلس نبوی کې ودریدلو [۳] او عرض يې وکړي چې يا رسول الله ﷺ ما د الله ﷻ دا نذر منلی وو، که الله ﷻ تاسو ته د مکي فتح عطاکړي، نو زه به په بيت المقدس کې دوه رکعته مونځ وکړم، [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ته په دې ځای (مسجد حرام) کې مونځ وکړه، ځکه چې دلته مونځ کول افضل دی، باوجود د دې چې بيت المقدس ته تلو سره هلته د مونځ کولو په نسبت دلته مونځ کول زيات آسانه دی، [۵] هغه سړي بيا دا عرض وکړو، [۶] حضور ﷺ ورته هغه جواب ورکړي چې په دې ځای کې مونځ وکړه. [۷] هر کله چې هغه په دريم ځل هم عرض وکړو، [۸] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې اوس تاته ختيار دی (يعني که ته دلته مونځ کول نه غواړي نو ته پوهه شه، تاته د خپل نذر مطابق په بيت المقدس کې د مونځ کولو اختيار دی)، ابوداؤد، دارمي

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنْ فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكَ مَكَّةَ أَنْ أُصَلِّيَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ رَكْعَتَيْنِ

**په مقدس ځائې کښې د عبادت د ادا کولو نذر منل:** که الله تعالی د مکې فتحه راکړه نو زه به په بيت المقدس کښې د شکرانې دوه رکعته نفل کوم په دې سره هر مسلمان اندازه کولې شی چه د صحابه کرامو جذبات د جهاد دپاره او داعلاء کلمة الله دپاره څومره اوچت وو

**قوله.** فَقَالَ: "صَلِّ هَاهُنَا". ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ فَقَالَ: "شَأْنَكَ إِذًا"

**دتعين عدم لزوم:** يعنی هم دلته مکه کښې اوکړه بيت المقدس ته د تللو ضرورت نشته دې

**په معين ځائې کښې د نذر د ادا کولو په حکم کښې دري مذاهب:**

که يو سړی د خپل نذر دپاره يو مکان او مقام متعين کړو چه زه به دا عبادت هلته کوم نو آيا دا تعين به برقرار وی يا هريو ځائی کښې نذر پوره کولې شي

① امام زفر ؒ فرمائی چه تعين نی اوکړو نو په دغه سړی باندې لازم دی چه نذر دې هم په هغه ځائی کښې اداکړی هغه فرمائی چه اوګورنی الله تعالی د وقوف دپاره عرفات مقرر کړې دې د شپې تيرولو دپاره نی د مزدلفه تعين کړې دې او د رمی جمرات دپاره منی مقرر ده په دې کښې تغيرجائزنه دې

② د نورو ائمو باره کښې په شرح السنه کښې ليکلی دی چه هغوی د ادنی او اعلی فرق کوی يعنی که نذر نی په غوره کښې ادا کول منلی وی نو په مفضول کښې دې نه اداکوی او که چرې په مفضول کښې نذر منلې وی نو په افضل کښې اداکولې شی

مثلاً چا په مسجد اقصی کښې دوه رکعته نفل اداکولو نذر اومنلو نو هغه په مسجد نبوی او مسجد حرام کښې اداکولې شی خو که په مسجد نبوی کښې د دوو رکعتو نفل کولو نذر اومنلو نو په مسجد حرام کښې اداکولې شی خو که په مسجد حرام کښې دوه رکعته نفل

کولو نذر او منلو نو هغه په مسجد اقصی کښې نه شی اداکولې او که په مسجد حرام کښې د دوه رکعته نفل کولو نذر او منلو نو په مسجد نبوی کښې نه شی اداکولې

④ ملا علی قاری رحمه الله په مرقات کښې لیکلی دی چه امام ابوحنیفه رحمه الله د دې تعین قائل نه دې بلکه مکان او مقام سره متعین نذر چرته چه هم وی پوره کولې شی

## [۳۴۳۱] د نا ممکن څیز د نذر منلو حکم

٣٤٣١—[١٥] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [٢] «أَنَّ أُخْتَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ مَاشِيَةً، [٣] وَأَنَّهَا لَا تُطِيقُ ذَلِكَ. [٤] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنْ مَشْيِ أُخْتِكَ، [٥] فَلْتَرْكَبْ وَلْتُهْدِ بَدَنَةً ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي [٢] چه د عقبه ابن عامر خور دا نذر ومنلی، چې هغه به په پښو حج کوي، [٣] لیکن د دې طاقت يې نه لرى، [٤] نبي کريم صلی الله علیه وسلم حضرت عقبه رضی الله عنه ته وفرمايل چې بلا شبه الله تعالی ته ستا د خور د پښو د تلو ضرورت نشته، [٥] نو هغې ته پکار دی چې هغه (هر کله په پښو نشي تللی، نو) په سورلی دی کیني او د هغې مال څخه د کفارې په طور دی بدنه ذبح کړي (د حنفیه په نزد د بدنه څخه مراد اوښ یا غوا ده، لیکن د شوافع په نزد د بدنه اطلاق یواځې په اوښ کیږي) (ابوداود او دارمي)

[١] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ: فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] أَنْ تَرْكَبَ وَتُهْدِيَ هَدْيًا. [٣] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " إِنَّ اللَّهَ لَا يَصْنَعُ بِشَقَاءِ أُخْتِكَ شَيْئًا، [٤] فَلْتَرْكَبْ وَلْتَحُجَّ رَاكِبَةً [٥] وَتُكَفِّرْ يَمِينَهَا» ".

**ترجمه:** [١] د ابوداود په یو روایت کې دا الفاظ دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم هغې ته حکم وکړي [٢] چې په سورلي دي سپره شی او يوه قرباني دي وکړي. [٣] او د ابوداود په یو روایت کې دا الفاظ دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل الله تعالی ستا خور ته د دې مشقت هیڅ ثواب نه ورکوي (یعني ستا خور چې داسې مشقت برداشت کوي، د دې به ورته هیڅ ثواب نه حاصلیږي) [٤] نو هغه ته پکار دی چې هغه (هر کله په پښو نشي تلی نو په سورلی کیناستو سره د حج سفر دی پوره کړي، [٥] او د خپل قسم کفاره دي ورکړي)

**حل اللغات** ① مَاشِيَةً: پیدل. په خپو تلل ② وَلْتُهْدِ: او قرباني دې کړی. ③ بَدَنَةً: اوښ یا غوا ④ هَدْيًا: هدی هغه څناور ته وائی چه د کعبې شريفې د پاره اولیګلې شی دې د پاره چه په حرم کښې ذبح کړې شی ⑤ شَقَاءِ: مشقت. سختی برداشت کول

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الأیمان والنذور/باب من رأی علیه کفارة إذا کان فی معصیة (رقم-٣٢٩٧) واحمد فی المسند: ٢٥٣/١

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ تَرْكَبَ وَتُهْدِيَ هَدْيًا

**د هَدْيًا مصداق:** دَ قرآن آيت دې ادنى هدى چيلئى ده او اعلى هدى بدنه يعنى اوښ او غوا ده

**نوټ:** د پيدل حج نذر منلو په صورت کښې چې کوم تفصيل دې هغه د دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۳۴۳۱) په تشريح کښې تير شوې دې

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ لَا يَصْنَعُ بِشَقَاءِ أُخْتِكَ شَيْئًا:

**د مذکوره جملې مطلب:** لايصنع دَ صنع نه دې او دَ لايفعل په معنى کښې دې. صنع کاريګرنى ته وانى دلته عمل مراد دې. "شقاً" دَ شين فتحه سره دَ محنت او مشقت او چتولو په معنى کښې دې. ترجمه داده چه الله تعالى ستاد خور په دې مشقت او چتولو سره هيڅ هم نه کول غواړى ځکه چه هغه دَ دفع مضرت او جلب منفعت نه پاك دې (كذا يفهم من المرقات واشعة اللمعات) [اشعة المعات: ۳/۲۲۴].

**[۳۴۳۴] د ښځې سرتور سر د حج کولو نذر منل**

۳۴۳۴- [۸] () ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَالِكٍ، «أَنَّ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ أُخْتٍ ② لَهُ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ حَافِيَةً غَيْرَ مُخْتَمِرَةٍ. ③ فَقَالَ: "مُرُوهَا فَلْتَخْتَمِرْ وَلْتَرْكَبْ ④ وَلْتَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① و حضرت عبد الله ابن مالك ﷺ وايي کوم وخت چې عقبه ابن عامر (د سفر په دوران کې) د خپلې خور په باره کې پوښتنه وکړه ② چې هغه دا نذر منلى وو، چې هغه به په خپې آبله پښو او سر تور سر حج ته ځي، ③ نو حضور ﷺ وفرمايل هغه ته حکم ورکړه چې خپل سر پټ کړي، او په سورلى کيني، ④ او هغى ته پکار دى چې درې روژې ونيسي، (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** ① حَافِيَةً: خپې آبله، بغير پيزار ② غَيْرَ مُخْتَمِرَةٍ: سرتور سر "اختمار" دَ خمار نه او خمار لوپټې ته وانى اختمار او مختمره داد لوپټې په سر کولو معنى کښې دې

**تسهيلات: قوله:** ولتصم ثلاثة ايام:

**دعقبه بن عامر د خور په قصه کښې د کفارې باره کښې درې قسمه مختلف روايات:**

---

[1] ) اخرجه ابوداود فى كتاب الأيمان والنذور /باب من رأى عليه كفارة إذا كان فى معصية (رقم-۳۲۹۳) والترمذى فى كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-۱۵۴۴) والنسائى فى كتاب الأيمان والنذور /باب إذا حلفت المرأة لتمشى حافية غير مختمرة (رقم-۳۸۱۵) وابن ماجه فى كتاب الكفارات / من نذر أن يحج ماشيا (رقم-۲۱۳۴) واحمد فى المسند: ۴/۱۴۹

دَ حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه دَ خور په قصه کښې دَ کفارې اداکولو باره کښې مختلف الفاظ راغلي دي

① څه رواياتو کښې دَ دريوورځو دَ روژو ساتلو ذکر دې لکه چه په زير بحث حديث کښې دې

② څه رواياتو کښې دَ هدى ذکر راغلې دې لکه څنګه چه دَدې نه مخکښې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث نمبر (۳۴۳۱) کښې دَ هدى ذکر دې

③ هم په دغه حديث نمبر (۳۴۳۱) کښې دَ "بدنه" ذکر هم دې په دې کښې چې کوم تفصيل دې د هغې بيان وړاندې تيرشوې دې

**د منذور کيفيت د نه ادا کولو په صورت کښې د جزاء په لزوم کښې دوه مذاهب:**

په دې خبره باندې دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه مشى الى بيت الله نذرصحيح دې اوناذر له پيدل حج يا عمره کول پکاردي اوکه دَ پيدل تلونه عاجز شي نو په سورلئى دې سورشى تردې پورې خواتفاق دې اختلاف په دې کښې دې چه

① امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي چه دَ منختې ماتولو په صورت کښې به دَ يمين يعنى دَ قسم کفاره اداکولې کيږى که هغه دَ مشي الى بيت الله منخته وى اوکه بل څه وى ؟

② دَ جمهورو خبره ليکلې شوې ده چه دَ منختې ماتولو دَ وجې نه په دې سرې باندې دم واجب دې

**داول فريق دليل:** زير بحث حديث دَ حضرت عبدالله بن مالك رضي الله عنه د دوى مستدل دې په دې کښې دَ دريو روژو ذکر دې او روژې نيول کفاره ديمين ده نوپه ده به کفاره د يمين لازميږى

**داول فريق د دليل درې جوابونه:** ① بعضې شارحين دَدې حديث مطلب دا اخلى چه کوم وخت يوسړې دَ پيدل تلونه عاجز وى نودم دې ورکړى اوکه چرې په دم ورکولوباندې قادرنه وى نودهغې بدله کښې دې درې روژې اوساتى

② دحضرت عقبه رضي الله عنه خورچه کله ترك مشى الى بيت الله منخته ماتولوسره سوره شوه نودې وجې نه حضور پاك دَ کفاره په توګه دَدم ورکولوحکم ورکړو څکه چه دَ نقائص حج کفاره په دم سره اداکيږى خلاصه دا چه دَحضرت عقبه رضي الله عنه خورته دَ کفاره يمين او هدى دواړو حکم ورکړې شوې وو کفاره يمين په ترك اختمار باندې او دَهدى په ترك مشى باندې په دې وجه داحديث دَ ضابطه دليل نه شى جوړيدې

③ دمجموعى رواياتونه معلوميږى چه دَ حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه خوردَ دوو خبرو منخته کړې وه يودا چه هغه به په سرباندې لوپټه نه اچوى اودويم دا چه هغه به پيدل خپې ابله حج ته څى ترك اختمار يعنى لوپټه نه په سرول چونکه معصيت اوګناه ده څکه چه دَ ښځې دَ سرويښته عورت دې دَدې پټول ضرورى دى اودَ معصيت منخته ماتول ضرورى

کیږی او په دې کښې په اتفاق سره د قسم کفاره راځی په دې وجه دلته په دې حدیث کښې د کفاره یمین ذکر هم راغلې دې اوښکاره خبره ده چه کله یوسړې د غلام آزادولو یا مسکینانوته د خوراك ورکولو طاقت نه لری نود هغه دپاره درې روژې دی

**د دويم فريق دلائل:** ① د حضرت ابن عباس ﷺ په روايت دې إِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنْ مَشْيِ أُخْتِكَ، فَلْتَرْكَبْ وَلْتُهْدِ بَدَنَةً". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ. په دې کښې د بدنه ذکر او د هدی ذکر دې دا ټول دم دی د یمین د کفاره ذکر په کښې نشته

② په مستدرك حاكم كښې د يو روايت الفاظ دا دى "فليهدهديا وليركب".

**[۳۴۴۳]د ناجائز نذر د کفارې ورکولو وجوب**

| |
|---|
| ۳۴۴۳-[۱۰] (¹) ①وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -: ②«أَنَّ أَخَوَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ بَيْنَهُمَا مِيرَاثٌ، ③فَسَأَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ الْقِسْمَةَ، ④فَقَالَ: إِنْ عُدْتَ تَسْأَلُنِي الْقِسْمَةَ فَكُلُّ مَالِي فِي رِتَاجِ الْكَعْبَةِ. ⑤فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: إِنَّ الْكَعْبَةَ غَنِيَّةٌ عَنْ مَالِكَ، ⑥كَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ، ⑦وَكَلِّمْ أَخَاكَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا يَمِينَ عَلَيْكَ وَلَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ الرَّبِّ، ⑧وَلَا فِي قَطِيعَةِ الرَّحِمِ، ⑨وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |

**ترجمه:** ①او حضرت سعید ابن مسیب وايي ②چې دوه انصارې ورونو ته د چا میراث حاصل شوی وو (چې د هغه دواړو په منځ کې تسلیمول باقي وو، ③نو په هغه دواړو کې يو ورور د بل ورور څخه د هغه میراث د تقسیم مطالبه وکړه. ④نو هغه دويم ورور ورته اوويل چې زه دا نذر منم که، اوس ته بيا زما څخه د تقسيم مطالبه لري، نو زما ټول مال دې په کعبه کې خرڅ کړل شي. ⑤هر كله چې دا صورت حال د حضرت عمر فاروق ﷺ (په علم کې راغلی نو هغه، وفرمایل چې کعبه ستا د مال څخه بي پروا ده (یعني کعبې ته د دې ضرورت نشته چې ته خپل مال هغه ته نذر کړي) ⑥او په تا دا نذر پوره کول واجب نه دی. خکه ته د خپل قسم (یعني د دې ناجائزه نذر) کفاره ادا کړه. ⑦او هر کله چې ستا ورور د دې میراث د تقسیمولو مطالبه وکړي (نو په دې معامله کې) ته د خپل ورور سره خبری وکړه (یعني دا میراث تقسیمولو سره د هغه مطالبه پوره کړه، خکه چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې په تاسو د دې قسم نذر پوره کول واجب نه دی. او د پروردګار د معصيت نذر ناجائز دی (یعني د کوم نذر تعلق چې د پروردګار د نافرماني او یوی ګناه سره وي. هغه پوره کول نه دي پکار) ⑧او نه هغه نذر پوره کول پکار دی. چې د قرابتداري قطع کولو سره متعلق وي. ⑨او د کوم څيز چې انسان مالك نه وي د هغه نذر پوره کول هم جائز نه دی (بلکه کوم نذر چې د ناجائز کیدو په وجه پوره نه شي د هغه کفاره ورکول واجب دی) ابوداود

¹) اخرجه ابوداود في كتاب الأيمان والنذور /باب اليمين في قطيعة الرحم (رقم-۳۲۷۲)

**حل اللغات** ①الْقِسْمَةَ: تقسیم کول. ②إِنْ عُذْتَ: که تا دوباره داسې اوونیل. ③فِي رِتَاجِ الْكَعْبَةِ: رتاج لونی دروازې او پهاټك ته وائی مراد کعبه ده. ④قَطِيعَةِ: پریکول، پریخودل. ⑤الرَّحِمِ: رشته داری.

**تسهیلات:**

**نوټ** په دې حدیث کښې د ناجائزه نذرنه پوره کولو ماتولوذکر دې دا خبره په مختلفو احادیثو کښې وړاندې تیره شوې ده اوتفصیل ئې هم تیرشوې دې د دوباره ذکر کولو څه ضرورت نشته

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۴۳۴] جائزاو ناجائز نذر

۳۴۳۴—[۸] ( )①وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ②" «النَّذْرُ نَذْرَانِ: فَمَنْ كَانَ نَذَرَ فِي طَاعَةٍ فَذٰلِكَ لِلّٰهِ فِيهِ الْوَفَاءُ، ③وَمَنْ كَانَ نَذَرَ فِي مَعْصِيَةٍ فَذٰلِكَ لِلشَّيْطَانِ وَلَا وَفَاءَ فِيهِ. ④وَيُكَفِّرُهُ مَا يُكَفِّرُ الْيَمِينَ» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت عمران ﷛ ابن حصین وایي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي ②چې نذر په دوه قسمه دی (یو خو دا چې) یو سړی د طاعت (یعني د حق تعالی ﷻ د بندګی نذر ومني، دا نذر خالص د الله ﷻ د پاره دی، داسې نذر پوره کول واجب دی، ③او دویم دا چې یوسړی د ګناه نذر ومني، دا نذر د شیطان د پاره دی، داسې نذر پوره کول واجب نه دی، ④بلکه په داسې صورت کې دي د هغه کفاره ادا کړي، کومه چې د قسم د ماتولو په صورت کې ورکول کیږي، نسایي.

**حل اللغات:** ①الْوَفَاءُ: پوره کول، سرته رسول.

**تسهیلات:**

**نوټ** په دې حدیث کښې د ناجائزه نذرنه پوره کولو ماتولوذکر دې دا خبره په مختلفو احادیثو کښې وړاندې تیره شوې ده اوتفصیل ئې هم تیرشوې دې د دوباره ذکر کولو څه ضرورت نشته

## [۳۴۳۵] د ځان قربانی کولو د نذر منلو حکم

۳۴۳۵—[۹] ( )①وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ قَالَ: ②إِنَّ رَجُلًا نَذَرَ أَنْ يَنْحَرَ نَفْسَهُ إِنْ نَجَّاهُ اللّٰهُ مِنْ عَدُوِّهِ. ③فَسَأَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ، فَقَالَ لَهُ: سَلْ مَسْرُوقًا، فَسَأَلَهُ، ④فَقَالَ لَهُ: لَا تَنْحَرْ نَفْسَكَ ; فَإِنَّكَ إِنْ كُنْتَ مُؤْمِنًا قَتَلْتَ نَفْسًا مُؤْمِنَةً، ⑤وَإِنْ كُنْتَ كَافِرًا تَعَجَّلْتَ إِلَى النَّارِ، ⑥وَاشْتَرِ كَبْشًا فَاذْبَحْهُ لِلْمَسَاكِينِ ⑦; فَإِنَّ إِسْحَاقَ خَيْرٌ مِنْكَ، وَفُدِيَ بِكَبْشٍ. ⑧فَأُخْبِرَ ابْنُ عَبَّاسٍ، فَقَالَ: هٰكَذَا كُنْتُ أَرَدْتُ أَنْ أُفْتِيَكَ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

---

( ) اخرجه النسائی فی کتاب الأیمان والنذور /باب کفارة النذر (رقم-۳۸۴۵)

( ) اخرجه رزین

**ترجمه:** ⑴ او حضرت محمد ابن منتشر وايي ⑵ چې يو سړي دا نذر ومنلي که الله تعالى هغه ته د دښمن څخه نجات ورکړي، نو هغه به خپل ځان ذبح کړي، هغه ته چې د دښمن څخه نجات حاصل شو، ⑶ نو (هغه په دې مسئله کې) د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه معلومات وکړل،نوهغوی ورته ووئيل د مسروق څخه تپوس وکړئ نوهغه د مسروق څخه تپوس وکړو ⑷ هغه ورته وفرمايل چې ته خپل ځان مه ذبح کوه، ځکه که ته مسلمان يې، نو (په دې صورت کې) ته به د يو مسلمان د قتل مرتکب شې، ⑸ او که ته کافر يې، نو (په دې صورت کې لکه چې ) ته دوزخ ته په تلوکې تلواړې کوې، ⑹ نو ستا په باره کې دا حکم دی چې ته يو پسه رانيولو سره د مسکينانو د پاره هغه ذبح کړه، ⑺ حضرت اسحاق عليه السلام ستا څخه ښه وو، چې د هغه بدله يو پسه وګرځول شو ، ⑻ هغه سړي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما (د حضرت مسروق د دې فتوی څخه خبرکړي) نو هغوی وفرمايل چې حقيقت دا دی چې ما تا ته د دې فتوی د ورکولو اراده لرله (رزين)

**حل اللغات:** ⑴ وَاشْتَرِ: او واخله، ⑵ كَبْشًا: ګډ،پسه،

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ:

**دمحمدبن المنتشر مختصر تعارف:** دا جليل القدر تابعي دې اود حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه ئې احاديث ونيلې دی دا صاحب د حضرت مسروق بن اجدع وراره دې همدان قبيلې سره د ده تعلق وو او په کوفه کښې اوسيدلو.

**قوله:** سَلْ مَسْرُوقًا:

**دمسروق بن اجدع همداني مختصر تعارف:** حضرت مسروق بن اجدع رحمه الله ډير لوئی تابعی دې د حضورپاك په حيات طيبه کښې پيدا شوې وو مګر ملاقات ئې اونه کړې شو هغه د څلور واړو خلفاء راشدين رضي الله عنهم او حضرت عائشه رضي الله عنها نه ئې نه ښه پوره علم حاصل کړو په دې وجه په تابعينو کښې هغه ته يو امتيازی شان حاصل وو

**قوله:** إِنَّ رَجُلًا نَذَرَ أَنْ يَنْحَرَ نَفْسَهُ إِنْ نَجَّاهُ اللهُ مِنْ عَدُوِّهِ

**دخپل ځان د قرباني کولو نذر** (د مسئلې پوښتنه کونکې دا سړې د يو عجيبه نفسياتي مرض ښکار شوې وو د هغه دا خيال په ده باندې سور شوې وو که چرې د هغه دښمن دې قتل کړو نو په دې کښې به د هغه ډيره رسوائی اوبدنامی وی په دې وجه هغه دا نذر منلې ووکه الله تعالی زه د دښمن د چال نه بچ کړم نوزه به د هغه په نوم باندې خپل ځان قربانولوسره ذبح کوم د دغه سړي يو طبعی خواهش او د توهم پرستئ يوه جذبه وه هم د دغه خودکشئ باره کښې هغه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه د مسئلې پوښتنه اوکړه هغوی دې حضرت مسروق رحمه الله ته اوليګلو نوحضرت مسروق رحمه الله اوفرمائيل که ته مسلمان ئې

وخپل ځان دې قتل کړو بوته به د يو مسلمان قاتل جوړشي اوکه چرې ته کافر نې نو په ډيره ت زني سره به خپل ځان د دوزخ اور کښې ورد بکه کړې نو داسې مه کوه بلکه بهتر داده چه ددې ندر په بدله کښې نه يو ګډ راوړه او ذبح کړه ځکه چه الله تعالى دحضرت اسحاق ﷺ په بدله کښې يو ګډ قبول کړې وو

**قوله فَإِنَّ إِسْحَاقَ عَزَمَ مِنْكَ وَلِدِيَ بِكَبْشٍ:**

**د ذبيح د مصداق تحقيق:** ① د علی ﷺ ابن عباس ﷺ عبدالله بن عمر ﷺ ، ابوهريره ﷺ ، ابوالطفيل ﷺ ، سعيد المسيب ﷺ ، سعيد بن جبير ﷺ ، حسن بصری ﷺ ، مجاهد ﷺ ، عمر بن عبدالعزيز ﷺ ، شعبی ﷺ ، محمد بن کعب قرظی ﷺ او نورو ډيرو تابعينو نه منقول دی چې دغه ځوئې اسماعيل ﷺ وو

حافظ ابن کثير ﷺ وغيره دا قول اختيار کړې دې[1] اودويم راروان قول نې په سخته رد کړې دې

② عمر فاروق ﷺ ، عبدالله بن مسعود ﷺ ، عباس ﷺ ، ابن عباس ﷺ ، کعب الاحبار ﷺ ، سعيد بن جبير ﷺ ، قتاده ﷺ ، مسروق ﷺ ، عکرمه ﷺ ، عطاء ﷺ ، مقاتل ﷺ ، زهری ﷺ او سدی ﷺ نه منقول دی چې دغه ځوئې اسحاق ﷺ وو ، حافظ ابن جرير طبری ﷺ دا قول غوره کړې دې[2]

**راجح قول او ددې دلائل:** دلته د دواړو فريقو په دليلونو باندې مکمله تبصره نشي کيدې بې هم د قرآن پاک د طرزبيان او د روايتونو دمضبوطيا تر مخه غوره دا معلوميږی چې د ابراهيم ﷺ دغه ځوئې اسماعيل ﷺ وو چې

① قرآن کريم ددې ټولو قيصې نقل کولونه پس فرمائيلی دی چې ﴿وَبَشَّرْنَٰهُ بِإِسْحَٰقَ نَبِيًّا مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ ددې نه صفا دا معلوميږی چې دغه ځوئې نې داسحاق ﷺ څخه علاوه بل يو وو او د اسحاق ﷺ زيږې ورته دې نه پس ورکړې شوې وو

② د اسحاق زيری ورکولو کښې دا بيان دې چې اسحاق ﷺ به نبی وی ، دې نه علاوه په يو بل آيت مبارک کښې دابيان دې چې د اسحاق ﷺ د پيدا کيدو سره د ازيرې هم ورکړې شوې وو چې دوئ ﷺ نه به يعقوب ﷺ پيدا کيږی لکه فرمائی چې ﴿فَبَشَّرْنَٰهَا بِإِسْحَٰقَ وَمِن وَرَآءِ إِسْحَٰقَ يَعْقُوبَ﴾ نو ددې صفا مطلب دادې چې دوئ ﷺ به تر ډيره عمره پورې ژوندی وی تر دې چې اولاد به نې هم کيږی ، نو بيا په وړوکتوب ددوئ ﷺ د ذبح کولو به څه مطلب کيدی شی ؟ او که په وړوکتوب کښې ددوئ ﷺ پيغمبر کيدو نه وړاندې ددوئ ﷺ د ذبح کولو حکم ورکړې کيدلې نو ابراهيم ﷺ به پوهيدو چې دوئ ﷺ خو به پيغمبر جوړيږی

---

[1]) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۳۲ نه ۳۹ پورې.

[2]) تفسير الطبری تحت هذه الآية: ج ۲۱، ص ۷۸

دوئ ﷺ نه به يعقوب ﷺ پيدا كيږي نو په ذبح كولو سره د دوئ ﷺ مړ كيدل نشته . په دې شان به دا نه خو څه لوئې امتحان وو او نه به ددې په كولو سره ابراهيم ﷺ دڅه تعريف حقدار وو امتحان خو به دې صورت كښې ممكن وو چې د ابراهيم ﷺ دا يقين وې چې زما خوئې به په ذبح كولو سره ختم شي ، په دې بنا د اسماعيل ﷺ په باره كښې د اخبره پوره ربنتيا كيږي چې الله ﷻ د دوئ ﷺ د ژوندي پاتې كيدو او د پيغمبر جوړيدو څه پيشنګوئي نه وه فرمائيلې

④ دقرآن پاک د بيان نه معلوميږي چې ابراهيم ﷺ ته د رومبي خوئې د ذبح كولو حكم شوې دې ولې چې هغوئ ﷺ كله چې خپل وطن نه هجرت كولو نو د يو خوئې دپاره ئې دعا كړې وه ، ددې په جواب كښې ورته دا زيرې وركړې شو چې هغوئ ﷺ ته به الله ﷻ يو زغمناک خوئې وركړي . كله چې هغه ورسره د ګرځيدو راګرځيدو جوګه شو نو د ذبح كولو حكم ئې وركړې شو . نو د واقعاتو داټوله سلسله ښائي چې دا د ابراهيم ﷺ رومبې خوئې وو اودا اتفاقي خبره ده چې رومبې څوئې ئې اسماعيل ﷺ دې او اسحاق ﷺ ئې دويم خوئې دې . څكه په دې كښې هيڅ شک نه پاتې كيږي چې ذبيح اسماعيل ﷺ وو.

⑤ دا خبره هم تقريبا په ډاګه شوې ده چې دخوئې د قربانئ دا واقعه د مكې مكرمې په خواؤ شا كښې راپيښه شوې وه . څكه په اهل عربو كښې د حج په دوران كښې په مخه دا طريقه روانه پاتې شوې ده . چې دوئ به قرباني كوله ، بلـه دا چې د ابراهيم ﷺ د خوئې په بدل كښې چې كوم ګډ قرباني كړې شوې وو دهغې ښكرونه په كلونو كلونو په كعبه شريفه كښې آويزان پاتې شوي وو . لكه حافظ ابن كثير رحمه الله ددې په تائيد كښې څو روايتونه نقل كړې دي . او د عامر شعبي رحمه الله دا قول ئې هم ذكر كړې دې چې ماد ګډ [پسه] دغه ښكرونه په كعبه كښې پخپله آويزان ليدلي دي [ابن كثير ص/۱۸ جلد/۴] (۱) او سفيان فرمائيلي دي چې ددې ګډ ښكرونه په كعبه شريفه كښې په مخه آويزان پاتې شوې وؤ تر دې چې په هغې اور اوسوځيدل كوم چې د حجاج بن يوسف په زمانه كښې په خانه كعبه كښې لګيدلې وو [ايضا ص/۱۷ جلد/۲] (۲) اوس دا خبره ښكاره ده چې په مكه مكرمه كښې اسماعيل ﷺ استوګنه كړيده . اسحاق ﷺ نه ده كړې . په دې بنا دا خبره په ډاګه شوه چې د ذبح حكم د اسماعيل ﷺ په باره كښې شوې وو د اسحاق ﷺ باره كښې نه وو شوې پاتې شو هغه روايتونه چې هغوئ كښې د مختلفو صحابه كرامو او تابعينو باره كښې ذكر دي چې اسماعيل ﷺ ذبيح ګرځولې دې نو په دې باره كښې حافظ ابن كثير رحمه الله ليكلي دي چې

---

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۲۹

(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۲۹

**د عمر رضی الله عنه د کعب الاحبار څخه سماع:** الله ﷻ ښه پوهیږي خو په ظاهره د دا ټولې خبرې د کعب الاحبار رحمه الله نه راخستې شوې دې داسې معلومیږي چې هغوی کله د عمرفاروق رضی الله عنه په زمانه کښې اسلام راوړو نو عمر فاروق رضی الله عنه ته به نې د خپلو زړو کتابونو نه خبرې آوروله چې د هغوی په آوریدو سره نورو ته هم دا موقعه په ګوتو ورغله چې هغوی به نې هم خبرې آوریدلې او د هغې نقل کول نې شروع کړل په دې کښې هر قسم یقینی اوغیر یقینی خبرې راجمع شوې وې سره د دې چې دې امت ته د دغې خبرو هیڅ ضرورت نشته والله اعلم [تفسیر ابن کثیر ص/۱۷ جلد/۴] (۱)

**اسحاق علیه السلام لره د ذبیح ګرځولو بنیاد:** د حافظ ابن کثیر رحمه الله دا خبره قیاس سره نزدې معلومیږي ولې چې د اسحاق علیه السلام ذبیح ګرځولو بنیاد په اسرائیلي روایتونو باندې قائم کړې شوې دې او هم دا وجه ده چې یهود او نصرانیان اسحاق علیه السلام ته ذبیح وائی موجوده بائیبل کښې دا واقعه په دې الفاظو کښې بیان کړې شوې ده چې ددې خبرونه پس داسې اوشو چې الله ﷻ په ابراهام علیه السلام باندې آزمیښت اوکړو او ورته نې اوفرمائیل چې ائې ابراهام علیه السلام هغوی علیه السلام اووئیل چې زه حاضر یم بیا الله ﷻ اوفرمائل ته خپل ایکی یو خوئې اضحاق علیه السلام چې ته ورسره مینه کوې څان سره کړه ، د موریاه ملک ته لاړ شه او هلته په یو غر باندې چې زه به نې درته اوښایم د سوځیدونکې قربانئ په ډول اوخیژوه [پیدائش ۲۲:۲]

**اسماعیل علیه السلام د موریو ځوئې:** په دې کښې د ذبح واقعه اسحاق علیه السلام ته منسوب کړې شوې ده خو که د انصاف او تحقیق نه کار واخستې شی نو صفا معلومیږي چې دلته یهودیانو د خپل روایتی تعصب نه کار اخستې دې او د تورات په عبارت کښې نې بدلون کړې دې ولې چې د کتاب پیدائش په دغه بیان شوی عبارت کښې د ایکی یو خوئې لفظ ښائې چې ابراهیم علیه السلام ته د ایکی یو خوئې دقربانی کولو حکم ورکړې شوې وو ، نو هم په دغه باب کښې دې پسې لیکی چې تاخپل ایکی یو خوئې هم ما نه منع نه کړو [پیدائش ۲۲:۲]

**د ابراهیم علیه السلام د ایکی یو ځوئې مصداق:** دې جمله کښې په داګه داخبره موجود ده چې دغه خوئې دابراهیم علیه السلام ایکی یو خوئې وو . خو بل خوا دا خبره یقینی ده چې اسحاق علیه السلام د هغوی علیه السلام ایکی یواځې خوئې نه وو بلکه دهغوی علیه السلام ایکی یواځې خوئې اسماعیل علیه السلام وو نو هم د پیدائش نور عبارتونه ددې ګواهی ورکوی چې د اسماعیل علیه السلام پیدا کیدل د اسحاق علیه السلام نه ډیر وړاندې دی

اوګورئی .ود ابرام علیه السلام بی بی ساره څه اولاد او نه شو دهغوی علیه السلام یوه مصرئی وینځه وه

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۳۲

چې هاجره نوم ئې وو چې هغوئ ﷺ ورته نژدې شو نو د هغې اولاد اوشو د الله ﷻ فرښتې ورته اوونيل چې ته اوس بارداره ئې خونې به دې کيږي د هغه نوم اسماعيل ﷺ کيږده کله چې اسماعيل ﷺ د هغې نه پيدا شو نو د ابرام ﷺ عمر شپږاتيال کاله وو. [پيدائش باب ۱۲ آيتونه او ۴ وه او ۱۲] دغه شان نور عبارتونه هم په دې دلالت کوي چې ذبيح اسمعيل عليه السلام وو اسحاق عليه السلام نه وو

**د اسحاق عليه السلام د اسماعيل عليه السلام څخه کشروالي:** دې عبارتونو نه په ډاګه معلوميږي چې اسحاق ﷺ د اسماعيل ﷺ نه څوارلس کاله کشر وو. تر دغې وخته پورې د ابراهيم ﷺ ايکى يوخوئي وو، اوس ددې نه پس کله چې د کتاب پيدائش په دوه ويشتم باب کښې د خونې د قربانۍ بيان راځي نو په هغې کښې د لفظ ايکى يو ددې خبر ګواهي ورکوي چې دې نه مراد اسماعيل ﷺ دې، او چا يهودي دې سره د اسحاق ﷺ لفظ خانص په دې غرض لګولي دې چې دا فضيلت د بني اسماعيلو ﷺ په ځائې بنى اسحاق ﷺ ته حصل شي

**د اسحاق عليه السلام ذبيح نه کيدو يوبل دليل:** دې نه علاوه د بائيبل هم په دې کتاب د پيدائش کښې چرته چې د اسحاق ﷺ د پيداکيدو زيرې ابراهيم ﷺ ته ورکړې شوې دې. هلته دا هم بيان شوېدې چې يقينا زه ده ته [يعنى اسحاق ﷺ ته] برکت ورکړم چې قومونه به د دوئ د نسل نه وي. [پيدائش ۱۷ ۱۲]

اوس ښکاره خبره ده چې دکوم خونې باره کښې د هغه د پيدا کيدو نه وړاندې دا خبر ورکړې شوې وي چې هغه به صاحب اولاد وي او قومونه به د هغه د نسل نه وي. د هغه د قربانولو حکم څنګه ورکولې شي؟ دې نه هم دا معلوميږي چې داحکم د اسحاق ﷺ باره کښې نه بلکه د اسماعيل ﷺ باره کښې وو

**د يهودو د باطل خيال ترديد:** ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ مُبِينٌ﴾ د بائيبل ددې عبارتونو ملاحظه کولو سره دا اندازه کيديشي چې ددې دواړو په نسل کښې ځينې ښه هم دي او ځينې داسې هم دي چې په ډاګه خپل زيان کوي ددې آيت تر مخه د يهودو هغه باطل خيال رد کړې شوې دې چې دوئ به د ټولو نه زيات دانسان غور والې دا ګڼرلو چې د پيغمبرانو ﷺ په اولاد کښې وي او هم دا به ئې د فضيلت او دنجات ذريعه ګڼرله، ددې آيت مبارک ترمخه دا خبره په ډاګه شوه چې د انسان نسبي تعلق هيڅ پکار نه راځي بلکه نجات او کاميابي وغيره په خپل عمل سره ملاويږي

# [۱۵] كِتَابُ الْقِصَاصِ

## دقصاص بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة وثلاثون حديثا مشتملة على تسعة مسائل:**

① حل إراقة الدم بالقصاص: ۱، ۱۲، ۱۱، ۱۸، ۲۵، ۲۷، ۲۸، ۳۱، ۳۴.
② عظمة جريمة القتل بغير حق: ۲، ۳، ۵، ۶، ۹، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۹، ۲۰، ۳۲، ۳۳.
③ القصاص الأخروي في إهلاک نفسه وعضوه: ۷، ۸، ۱۰،
④ الدية وقت عفو القصاص: ۱۱، ۱۳، ۱۴، ۲۵، ۲۷،
⑤ قصاص الأطراف: ۱۳، ۲٤ .
⑥ موانع القصاص: ۴، ۱۴، ۲۱، ۲۳، ۲۶، ۲۴.
⑦ عدم الأخذ بجناية الغير: ۲۱، ۲۲.
⑧ الزجر بالقتل بعد أخذ الدية: ۲۷، ۲۹،
⑨ الترغيب في عفو القصاص: ۳۰،

**دقصاص لغوی معانی:** ① قص يقص باب نصر ينصر نه قصاپرې کولو معنی کښې دې "قص الشعر" يعنی په قينچئی سره ئی ويښته پرې کړل
② قصاص د بیان ورکولو په معنی کښې هم راځی البته صله را وړلو سره ئی فرق کیږی "قص اثره" دا د شاته تللو سره خاص دې لکه "فارتدا على آثارهما قصصا" او "قص الخبر قصصا" دا خبرور کولو او بیان کولو سره خاص دې لکه
③ د نصر ينصر د باب نه که مصدر "قصصا" راشی نو د چا د خپو په نښو باندې شاشاته تللو ته وائی
④ قصاص د بدله او انتقام اخستلو په معنی کښې دې او ﴿وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ﴾ د مساوات او برابرئی په معنی کښې دې

**په لغوی ـ شرعی قصاص کښې مناسبت:** په شرعی قصاص کښې پرې کول او شاته د تللو په مفهوم کښې دې ځکه چه د مقتول وارث د بدله اخستلو په غرض سره قاتل پسې شاشاته خی دې د پاره چه په دې باندې قابو بیا او مومی دغه شان پرې کړی لکه چه دې قاتل مقتول پرې کړې وو هم د دغه ځانی نه په دې کښې د مساوات مفهوم هم راغلې لهذا په لغوی توګه هم په قصاص کښې بدله اخستل. مساوات. د قاتل لټون او د هغه د پرې کولو مفهوم موجود دې

**دقصاص شرعی تعریف:** د شریعت په اصطلاح کښې د قصاص تعریف داسې دې "القصاص

هو ان يفعل بالفاعل مثل ما فعل. يعنی قاتل يا جارح سره هم هغه څه کول کوم چه هغه کړی دی اسلامی عادلانه نظام کښې قصاص صرف په قتل عمد کښې کیږی په دې وجه دلته دَ قتل اقسام بیانول ضروری دی

**دقاجائزه قتل پنځه قسمونه:** ① قتل عمد، داهغه قتل دې چه قصداً عمداً څوك په تیره څیزیا ټوپك سره اووژنی

② قتل شبه عمد، داهغه قتل دې چه په قصد سره بغیر دَقتل دَ آله نه اووژنی.

③ قتل خطاء، دَدې دوه صورتونه دی

(الف) اول قتل خطاء فی القصد دې داهغه قتل دې چه دَلرې نه ئې یو څیزاولیدلو اوخیال ئې اوکړو چه دا ښکار دې هغې طرف ته ئې غشې اوویشتلو یائې په هغې ګولئی اوچلوله اوهغه په حقیقت کښې سړې وو په ګولئی لګیدو سره مړشو.

(ب) دویم قتل خطاء فی الفعل دې چه ګولئی په نښه باندې اوویشتله مګر لاس ئې خطا شو یا ګولئ خطا شوه په سړی باندې اولګیدله او هغه مړشو داداوړه صورتونه دَ قتل خطاء دی

④ جاری مجرای خطاء، یعنی دَ خطاء په ځائی، داهغه قتل دې چه مثلاً یو سړې په کټ باندې اوده وی او په خوب کښې واوړی په چا راپریوځی اوهغه په دې سره مړشی.

⑤ قتل تسبب، دَدې صورت دادې چه یوسړی دَ بل په زمکه کښې کوهې اوکنستلو هلته څوك پریوتلو اومړشو. یادلرئی دَ قتل دَ قسمونودا تعریفات دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په مسلك دی دَ نورو ائمه حضراتو په تعریفاتو کښې لږ شان فرق دې.

**د قتل موجبات:** ① دَ قتل عمد موجب یو خو ګناه کبیره ده دویم قصاص دې اودریم دَمقتول میراث نه دَ قاتل محروم کیدل دی.

② قتل شبه عمد دَ وجې نه ګناه کیږی قاتل دَ میراث نه محروم کیږی په قاتل باندې کفاره لازم راځی یعنی غلام آزادول یا دوه میاشتې روژې ساتل او دیت مغلظه اداکول چه دَ قاتل په عاقله باندې به راځی

③ قتل خطاء او جاری مجرای خطاء دَ وجې نه قاتل دَمقتول دَ میراث نه محروم کیږی په قاتل باندې کفاره راځی اودَ قاتل په عاقله باندې دیت راځی په دې کښې ګناه نشته دې اودَ بې احتیاطئی جرمانه کفاره ده

④ قتل بسبب کښې عاقله باندې دیت راځی

**په قتل عمل کښې د قصاص اجراء:** دا خبره یادساتئی چه قصاص صرف قتل عمد کښې وی قتل شبه عمد یا قتل خطاء یاجاری مجرای خطاء کښې قصاص نشته دې.

**د مقتول اولیاؤ اود قصاص حق:** بله داخبره یادساتئی چه دَ قصاص حق اګرکه دَ مقتول دَ وارثانو دې

**د قصاص د نفاذ حقدار:** دقصاص نافذ کول اودَدې دتنفیذ حق وارثانوته حاصل نه دې بلکه دنافذ کولوحق حکومت وخت ته حاصل دې خکه چه که هرسړې په ذاتی توګه قصاص اخستل شروع کړی نودَ امن په خائی به بدامنی خوریږی خکه چه دَ مقتول ورثاء دَغصې نه مغلوب کیدوسره حدود قصاص نه تجاوز کولې شی بل دَ قصاص کولو تفصیلات اودَدې دَ واجب کیدو باریک نکات دومره زیات دی چه هرسړې دَدې دَ پوهیدو نه قاصر اوعاجزدې په دې وجه دَ اسلامی عدالت طرف ته رجوع کول ضروری دی باقی دَ دنیاداموجوده دَ پهانسنی نظام قصاص نه دې

**په قصاص کښې د حیات کیدو مطلب:** بله داخبره هم یاده ساتل پکاردی چه قصاص کول دَ خلقو دَ ژوند دَ بقاء او دَحفاظت ذریعه ده خکه چه دَ یوسړی دَ قصاص کیدوسره ډیرو خانونوته تحفظ ملاویږی په سعودی حکومت کښې صرف دَقصاص نظام قائم دې دَ کوم په وجه چه هلته مکمل امن اوامان دې دَ قصاص نه علاوه هلته دَ نور شرعی حدود نفاذ نشته دې په افغانستان کښې دَ طالبانو اسلامی خلافت په دورکښې چه کوم وخت دَ حدود اوقصاص نفاذ وو نوهلته څنګه یو مثالی امن وو په حدود او قصاص کښې دَ فرق بیان ان شاء الله کتاب الحدود کښې راخی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [۳۴۴٦] د مسلمان د وینې حرمت

[۱] (۱)①عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِءٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنِّي رَسُوْلُ اللّٰهِ③إِلَّا بِإِحْدٰى ثَلَاثٍ: ④النَّفْسُ بِالنَّفْسِ، ⑤وَالثَّيِّبُ الزَّانِي، ⑥وَالْمَارِقُ لِدِيْنِهِ التَّارِكُ لِلْجَمَاعَةِ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①د حضرت عبد الله ابن مسعود ﵁ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②د مسلم انسان، چې د دې امر شهادت ورکړي، چې د الله ﷻ نه ماسوا بل معبود نشته او بلا شکه زه د الله ﷻ رسول یم. ③نو د هغه وینه بهیول جائز نه دی، خو دا چې په دې دریو خبرو کې څه یوه خبره پیښه شي. ④① عمداً قتل کول چې د وینی په باره کې وینه واخستی شي (یعني قصاص) وآخستی شي (لیکن دا د مقتول د ولي حق دی، چې هغه په دې باره کې د شریعت د مقرر کړو اصول مطابق د قاتل نه بدله واخلي) ⑤② د واده شوی (مسلمان، مکلف او آزاد) زنا کول (چې هغه سنګسار کړل شي) ⑥③ د خپل دین نه

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الدّیات/باب قول الله تعالی: {أنّ النّفس بالنّفس والعین بالعین والأنف بالأنف والأذن بالأذن والسّنّ بالسّنّ والجروح قصاص فمن تصدّق به فهو کفّارة له ومن لم یحکم بما أنزل الله فأولئک هم الظّالمون} [المائدة: ٤٥](رقم-٦٨٧٨) ومسلم فی کتاب القسامة والمحاربین والقصاص والدّیات/باب ما یباح به دم المسلم(رقم-٢٥ - (١٦٧٦)

وتونكي او خپل جماعت پرينبودنكى ،يعني كوم مسلمان چې مرتد شي د هغه قتلول جائز دى، بخاري، مسلم

**حل اللغات** ①الثَّيِّبُ: واده شوي،②الْمَارِقُ: وتونكې، خارج كيدونكې.

**تسهيلات: قوله: النَّفْسُ بِالنَّفْسِ:**

**په قصاص كښې د صفاتو په اعتبار كښې ۲ مذاهب:**

په دې كښې اختلاف دې چه آيا صرف دَ ذات انسانى لحاظ به كولې شى يا دَ جنس او انسانى صفاتو به هم اعتبار كولې شى. يعنى حريت وعبديت ذكورت وانوثت اواسلاميت وذميت لحاظ به هم وى كه نه؟

① جمهور فرمائى چه دَ صفاتو لحاظ به ساتلې شى كه يو حريعنى آزاد سړى څوك غلام قتل كړو نو حر به دَ غلام په قصاص كښې نه شى وژلې اوحر دَ حر په بدله كښې اوعبد دَ عبد په بدله كښې به وژلې شى.

② دَ ائمه احناف په نيز قصاص كښې دَ ذات انسانى اعتبار دې دَدې زياتى صفاتو اعتبار نشته دې. لهذا دَ عبد په بدله كښې به دَ حر نه قصاص اخستلې شى بل دَ ښځې په بدله كښې به سړې قتل كولې شى.

**داول فريق دليل:** آيت ﴿الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنْثَىٰ بِالْأُنْثَىٰ﴾ [سورت بقره ۱۷۸]. د دوى مستدل دې طريقه دَ استدلال داسې دې چه دَ آيت مفهوم مخالف اخستې شوې دې نو دَ حر په بدله كښې حر دې بل څوك نه دې اودَعبد په بدله كښې صرف هم عبد دې بل څوك نه دې په دې وجه به دَ عبد په وژلوسره دَ حر نه قصاص نه شى اخستې نو كه يو حر څوك غلام قتل كړو نو دَ دغه آزاد نه به قصاص نه شى اخستې

**د اول فريق د دليل جوابونه:** ① دويم فريق وائى ونږ دَ مفهوم مخالف قائل نه يو مونږ دَ آيت نه ستاسو مفهوم مخالف اخستل نه منو نو ستاسو استدلال په مونږ باندې هيڅ حجت نه دې

② دَ آيت مطلب اومفهوم دا دې چه په دې آيت كښې الله تعالى دَ جاهليت يو نظام ختم كړې دې په ايام جاهليت كښې به داسې كيدل چه صاحب شان او شريف قوم سړى بدله كښې به هغه خلقو وضيع كمزورې اودكم خاندان دوه سړى وژل دَ شريف قوم دَ غلام په بدله كښې به دَ ښكته قوم آزاد سړې قتل كيدو دَ ښځې په بدله كښې به سړې وژلې شو دا غلط رواج په دې آيت كښې مات كړې شو بل دلته مفهوم مخالف نشى اخستې ځكه چه دَ منطوق په موجودګئى كښې دَ مفهوم اعتبار نشته

③ دا الزامى جواب هم دويم فريق وركړې دې چه تاسو دَ كوم آيت نه استدلال كړې دې په دې كښې دَ ښځې په بدله كښې دَ ښځې ذكر دې حالانكه تاسو منئى چه كه ښځې سړې

قتل کړو يا سړي ښځه قتل کړه نو په دواړو کښې به قصاص جاري کيږي نود خپلې ضابطې مطابق اول فريق پخپله په آيت(وَالْأُنثَىٰ بِالْأُنثَىٰ) باندې عمل اونه کړو

**د دويم فريق دلائل:** دا آيت د دويم فريق مستدل دې ﴿أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ﴾ [سورت مائده الايه ۴۵.]

② دويم دليل دا آيت دې ﴿وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ﴾ [سورت بقره ۱۷۹.]

③ دا آيت هم د دوی مستدل دې ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ [سورت بقره ۱۷۸]

په دې ټولو آياتونو کښې مطلق د ذات انساني ذکر دې او په دې کښې دافرق نشته چه څوك په کوم صفت باندې متصف دې صرف د ځان په بدله کښې د ځان ذکر دې

④ زيربحث حديث هم د دوی مستدل دې په دې کښې مطلق نفس په مقابله کښې مطلق نفس ذکر راغلې دې د څه زياتي صفت ذکر نشته دې.

**قوله** وَالثَّيِّبُ الزَّانِي:

**د واده کړی د زنا سزا:** يعنی واده کړې سړې چه خلوت صحيحه کونکې وی مسلمان وی مکلف او آزاد وی که د زنا ارتکاب اوکړی نو هغه به سنګسار کولې شی

**قوله** وَالْمَارِقُ لِدِينِهِ:

**د مرتد د قتل حکم:** مارق د وتلو په معنی کښې دې دلته خپل دين پريخودو سره وتونکې يعنی دين اسلام پريخودونکی ته مارق وئيلې شوې دې اود دې نه پس "التارك" الفاظ د دې د پاره په صورت د صفت مؤکده راوړلې شوې دی يعنی کوم سړې چه قولاً فعلاً يا اعتقاداً د دين اسلام نه مرتد شی نودريو ورځو پورې به هغه پوهه کولې شی که توبه نې اوکړه خو ټيك دی ګنی هغه به قتل کولې شی په دې کښې د ټولو فقهاؤ اتفاق دې که ښځه مرتده شی نو هغه به قتل کولې شی که نه؟ په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې

**د مرتدې ښځې په قتلولو کښې ۲ مذاهب:**

① جمهور علماء فرمانی چه د دې حديث عموم په رڼرا کښې ښځه به هم د ارتداد په سزا کښې قتل کولې شی

② ائمه احناف فرمانی د ارتداد په سزا کښې به ښځه قيد کولې شی او قتل کولې به نه شی

**داول فريق دلائل:** ① د بخاری شريف حديث "من بدل دينه فاقتلوه" حديث داول فريق مستدل دې

② نبی کريم حضرت معاذ ﷺ ته اوفرمائيل «ايما امرأة ارتدت عن الاسلام فادعها فان عادت والا فاضرب عنقها»

**داول فريق د اول او دويم دليل صحيح جواب:** د دې ټولو دلائلو دا جواب دې چه د دې

عموم نه د ښځي حکم مستثنی دي اود مذکوره روایاتونه په دي عموم کښي تخصیص راغلي دي

③ عقلي دلیل دادي چه کوم جنایت سړی کړي دي د ارتداد هم دغه جنایت ښځي هم کړي دي نو د دواړو سزا هم یوشان کیدل پکاردي

**دعقلي دليلي جواب:** سړی په ښځوباندي دلته نه شي قیاس کولي ځکه چه سړی د جنګ میدان ته ځي اودکافرانو امداد کولي شي اوښځه دا امداد نه شي کولي د دي حدیث نه ثابته شوه چه د اسلام قبلولو نه پس د چا دقتل اسباب هم دغه دري کیدي شي جمهورو د تارك الصلوة د قتل حکم هم ورکړي دي لیکن احناف د ده دقتل قائل نه دی اود هغه په جیل کښي د بندولو قائل دی.

**د دويم فريق دلائل:** ① رسول الله ﷺ د ښځو اوبچو د قتل کولونه منع فرمانیلي ده «نهی عن قتل النساء والصبیان» (ترمذی، ابوداؤد)

② دحضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه روایت د دوی مستدل دي د کوم الفاظ چه داسي دی «وايما امرأة ارتدت عن الاسلام فادعها فان تابت فاقبل منها وان ابت فاستتبها» (معجم طبرانی، بحواله زجاجة المصابیح ۴/۳) یعنی که مرتده ښځه توبه نه کوی نوبیا هم په هغي د توبه کولو کوشش اوکړئی.

③ په نه قتلولو کښي یوحکمت اوعلت شته اوهغه دا چه ښځه ناقصة العقل ده نو د یوحده پوري معذوره ده د پوهه کولوکوشش اوکړئی. بله ښځه د جنګ کونکونه نه ده که مرتده شی نودښمن ته امداد نه شی ورکولي په خلاف د سړو چه هغوی د جنګ کونکونه دی نودوی به دریو ورځو پوري پوهه کولي شی که منع شو نوټیك ده ګنی قتل کولي به شی

## [۳۴۴۷] د قاتل مسلمان د ديني عدم حرمت

۳۴۴۷-[۲](۱) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «لَنْ يَزَالَ الْمُؤْمِنُ فِي فُسْحَةٍ مِنْ دِيْنِهِ مَالَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي چي رسول الله ﷺ وفرمایل ② د ځو پوري چي یو مسلمان د خون حرام (یعني د ناحق) قتل مرتکب نه وي، نو هغه همیشه د خپل دین په وسعت او فراخی کي وي. (بخاري)

**حل اللغات** ① لَنْ يَزَالَ: همیشه. ② فُسْحَة: وسعت، فراخی

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الدیات/باب قول الله تعالی: {ومن یقتل مؤمنا متعمدا فجزاؤه جهنم} [النساء: ۹۳] (رقم-۶۸۶۲)

**تسهيلات:**

**قوله مَالَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا**

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې څلور اقوال:** ① ابن الملك رحمه الله فرمائي د كوم كس نه د قتل دا خراب فعل نه صادريږي مگر د حق نه علاوه (يعني حدود وقصاص) نو الله ﷻ دهغه دپاره ديني امور آسانوي او ده ته د نيكو عملونو توفيق وركوي

② امام طيبي رحمه الله فرمائي كوم كس څوك په ناحقه نه قتلوي نو هغه ته دالله ﷻ دطرفه د رحمت او بخشش اميد وي اگر چې دده نه نور كبائر صادر شي ليكن كله چې دې د قتل كولو حرام جرم كوي نو په ده باندې د رحمت دروازه بنده شي (بيا دې دهغه خلقو په زمره كښې شامليږي كوم چې دالله ﷻ د رحمت نه نااميده وي لكه څنگه چې د حضرت ابوهريره ﷺ روايت كښې دى چې (من أعان على قتل مؤمن ولو بشطر كلمة لقي الله مكتوب بين عينيه آيس من رحمة الله) كوم كس چې د مؤمن په قتل كښې د يوې كلمې ونيلو برابر هم شريك شي (كلمة نه مراد ا ، ق دى) نو دې به د الله ﷻ سره داسې حال كښې ملاقات كوى چې دده د دواړو سترگو په مينځ كښې به ليكلي شوي وى چې دې دالله ﷻ د رحمت نه مايوسه دې

③ عند البعض ظالم قاتل ته په دنيا كښې د نيكو اعمالو كولو توفيق نه ملاويږى

④ دا حديث پاك په تغليظ و تشديد باندې محمول دې (مرقاة ج ۷ص ۴۸)

**[۲۴۴۸] د قيامت په ورځ حقوق العباد كښې د تولو څخه اولنى فيصله**

۳۴۴۸-[۳] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «أَوَّلُ مَا يُقْضٰى بَيْنَ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ③ فِي الدِّمَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د قيامت په ورځ د تولو نه مخكې چې د كوم څيز فيصله كيږي ③ هغه خون دى. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** ① الدِّمَاءِ: جمع د دم ده وينه ، قتل

**تسهيلات:**

**قوله أَوَّلُ مَا يُقْضٰى بَيْنَ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**داول تپوس په احاديثو كښې تعارض:** دلته په دې حديث كښې خودلې شوي دى چې د قيامت په ورځ به د تولو نه مخكښې د قتل حساب شروع كيږي او د ترمذي وغيره په نورو

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب الديات/باب قول الله تعالى: {ومن يقتل مؤمنا متعمدا فجزاؤه جهنم} [النساء: ۹۳] (رقم-۶۸۶۴) ومسلم في كتاب القسامة والمحاربين والقصاص والديات/باب المجازاة بالدماء في الآخرة. وأنها أول ما يقضى فيه بين الناس يوم القيامة (رقم-۲۸ - (۱۶۷۸)

روایاتوکښې دمونځ ذکردي چه ددې حساب اوفیصله به د ټولو نه مخکښې کیږی. په دواړو روایتونوکښې واضح تعارض دې

**د تعارض هرې جوابونه:** ① په عبادتونوکښې به د ټولو نه مخکښې د مانځه قضیه پیش کولې شی او په معاملات کښې به د ټولونه مخکښې د قتل قضیه اوچتولې شی

② اوامر او مامورات کښې به د ټولو نه اول دمونځ حساب اخستلې شی اومنهیات اوامور منهیه کښې دټولو نه مخکښې د ناحق وینې حساب به کیږی

③ حقوق الله کښې به د ټولو نه مخکښې فیصله د مانځه کیږی. پخوانوجماتونو کښې به اکثردا شعر لیکلې شوې وو. او په حقوق العباد کښې د ټولو نه مخکښې فیصله به د دماء یعنی د وینې کیږی نوهیڅ تعارض نشته دې.

**[٢٤٤٩] د کلمې په وئیلو د وینې حرمت**

٣٣٣٣—[٣] (١) ①«وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: ②يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ لَقِيتُ رَجُلًا مِنَ الْكُفَّارِ فَاقْتَتَلْنَا، ③فَضَرَبَ إِحْدَى يَدَيَّ بِالسَّيْفِ فَقَطَعَهَا، ④ثُمَّ لَاذَ مِنِّي بِشَجَرَةٍ، ⑤فَقَالَ: أَسْلَمْتُ لِلّٰهِ - ⑥وَفِي رِوَايَةٍ: فَلَمَّا أَهْوَيْتُ لِأَقْتُلَهُ ⑦قَالَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ - أَأَقْتُلُهُ بَعْدَ أَنْ قَالَهَا؟ ⑧قَالَ: "لَا تَقْتُلْهُ".

**ترجمه:** ①او د حضرت مقداد ابن اسود رضی الله عنه نه روایت دی چې هغه عرض اوکړو ②چې یا رسول الله ﷺ ماته وښایه که زه یو کافر پیداکړم اوموننږ سره وجنګیږو③او هغه کافر زما په یو لاس د توري ګذار کولو سره هغه پریکړي، ④او بیا د یوی ونې په خوا کې زما نه پناه نیولو سره ⑤دا اووائي، چې زه د الله جل جلاله د پاره مسلمان شوم، ⑥او په یو روایت کې دا دي، او څنګه چې زه د هغه د قتلولو اراده وکړم، ⑦هغه اووائي چې لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ،نو آیا زه د هغه د ژبې نه دا الفاظ وتلو نه روسته، هغه قتلولی شم؟ ⑧حضور ﷺ وفرمایل (د دې باوجود) هغه مه قتلوه، مقدادویې

**حل اللغات:** ① أَرَأَيْتَ: ماته خبرراکړئ، ② لَاذَ: لَاذَ،يَلُوذُ پناه اخستل، ③ أَهْوَيْتُ: زه ور نښکته شوم ④ بِشَجَرَةٍ: ونه

①فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّهُ قَطَعَ إِحْدَى يَدَيَّ. ②فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (لَا تَقْتُلْهُ، فَإِنْ قَتَلْتَهُ فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ أَنْ تَقْتُلَهُ، ③وَإِنَّكَ بِمَنْزِلَتِهِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ كَلِمَتَهُ الَّتِي قَالَ)» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①ما عرض اوکړو چې اي دالله رسوله هغه زمایولاس کټ کړیدي ②،رسول علیه السلام وفرمایل چې مه یې قتلوه څکه که ته هغه قتل کړي، نو هغه به هغه ځای ته ورسیږي. ③کوم ځای چې ته د هغه د قتلولو نه مخکې وې، او ته به هغه ځای ته ورسیږې،

١ ) اخرجه البخاري في كتاب الدّيات /باب قول الله تعالى: {ومن يقتل مؤمنا متعمّدا فجزاؤه جهنّم} [النساء: ٩٣] (رقم-٦٨٦٥) ومسلم في كتاب الإيمان /باب تحريم قتل الكافر بعد أن قال: لا إله إلّا الله(رقم-١٥٥ - (٩٥)

چرته چې هغه د کلمې ويلو نه مخکې وو، يعنې ته به جهنمې شې هغه به جنتې شې.
بخاري. مسلم.

**تسهيلات:**

**قوله** فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ:

**د حديث په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① يعنى هغه به دَ ايمان اومؤمن په خانى شى "وانك بمنزلته" يعنى تاسو به دَ كفر په خانى باندې راشئى دا حكم تشديداً تغليظاً او زجراً دې "قاله الطيبي"

② دَ دغه غير مسلم دکلمې ونيلونه پس که چرې تاسو هغه قتل کړو نولکه څنګه چه اول تاسو دَ هغه دَ قتل کولونه مخکښې محفوظ الدم وئى اوس هغه محفوظ الدم شو اوهغه دَ قتل دَ وجې نه اوس تاسو غيرمحفوظ الدم شوئى اوڅنګه چه هغه مخکښې دَ اسلام راوړلونه غيرمحفوظ وو اوس تاسو دَ هغه دَ قتل دَ وجې نه غيرمحفوظ شوئى خلاصه دا چه دَاسلام راوړلونه مخکښې دَ کفر دَ وجې نه دَ هغه قتل کول چه څنګه صحيح وو اوس دَ اسلام راوړلونه پس دَهغه په قتل کولو سره ستاسو قتل صحيح شو الکاشف ۱۶/۷.

**يوه فقهى مسئله:** قاضى عياض رحمه الله دَدې حديث نه دامسئله راويستلې ده چه په مکره باندې دَ اکراه په صورت کښې هم دَهغه اسلام قبول او معتبر دې

**[۳٤۵۰] دَ کلمه ګو د قتلولو عدم جواز**

[۵] (۱) [۱] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: [۲] «بَعَثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أُنَاسٍ مِنْ جُهَيْنَةَ [۳] فَأَتَيْتُ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ، فَذَهَبْتُ أَطْعَنُهُ، [٤] فَقَالَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، [۵] فَطَعَنْتُهُ فَقَتَلْتُهُ، [٦] فَجِئْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ، [۷] فَقَالَ: "أَقَتَلْتَهُ وَقَدْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ؟"

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسامه ابن زيد رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ مونږ د قبيله جهينه د خلقو د مقابلې د پاره وليږلو. [۳] نو (د هغوى د مقابلې په دوران کې) ما په يو سړي په نيزې سره حمله کول وغوښتل. [٤] چې هغه اوويل لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، [۵] ليکن ما په هغه کې نيزه پيوست کولو سره هغه مې قتل کړي. [٦] بيا چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې واپس راغلم، او دا واقعه مې ورته بيان کړه. [۷] نو حضور ﷺ وفرمايل (صد آفسوس) تا هغه په داسې صورت کې قتل کړي چې هغه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰه ويلې وه.

**حل اللغات** ① أُنَاسٍ: خلق. ② أَطْعَنُهُ: په نيزه مې پرې حمله اوکړه.

---

۱) اخرجه البخارى فى كتاب الديات/باب قول الله تعالى: {ومن أحياها} [المائدة: ۳۲] (رقم-۶۸۷۲) ومسلم فى كتاب الإيمان/باب تحريم قتل الكافر بعد أن قال: لا إله إلا الله(رقم-۱۵۸ - (۹۶)

[۱] قُلْتُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! [۲] إِنَّمَا فَعَلَ ذٰلِكَ تَعَوُّذًا. [۳] قَالَ: "فَهَلَّا شَقَقْتَ عَنْ قَلْبِهِ»؟ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ما عرض وكړو، چې يا رسول الله! ﷺ [۲] هغه خومحض د قتل نه د خان ساتلو د پاره كلمه ويلې وه [۳] حضور ﷺ وفرمايل چې تا د هغه زړه شلولو سره ولې ونه كتلې

**حل اللغات** ۞ تَعَوُّذًا: دخان ساتلو دپاره. ۞ فَهَلَّا شَقَقْتَ: نو تا ولې اونه څيرلو، اونه شلولو

۳۳۵ - (۱) [۱] وَفِي رِوَايَةِ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْبَجَلِيِّ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "كَيْفَ تَصْنَعُ بِلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ إِذَا جَاءَتْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟" [۳] قَالَهُ مِرَارًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او جندوب رضي الله عنه ابن عبد الله بجلي چې كوم روايت نقل كړې دى په هغه كې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې د قيامت په ورځ كلمه لَا اِلٰهَ اِلَّا الله د خپل ويونكي يعني د مقتول، د طرف نه جګړه كولو سره تاته راشي. نو هغه وخت به ته څه جواب وركوي؟ [۳] حضور ﷺ (دخوف وركولو د پاره) دا الفاظ څو څله ارشاد وفرمايل. مسلم.

**حل اللغات** ۞ كَيْفَ تَصْنَعُ: ته به څه كوې، څه جواب به وركوې؟ ۞ مِرَارًا: بار بار. څو څو څله.

**تسهيلات: قوله:** جُهَيْنَةَ:

**د حضرت اسامه رضى الله عنه يو نو مسلم لره د قتلولو واقعه:** حضرت اسامه رضي الله عنه په دې لښكر اوفوجې دسته كښې دَ قبيله جهينه طرف ته دَهغه دَ ملګروسره نبي كريم روان كړې وو فهلا شققت عن قلبه، حضرت اسامه رضي الله عنه سوچ اوكړو چه داسړې صرف دَ وېرې دَوجې نه كلمه وائى اودَ ژبې په څوكه باندې دَ ځان بچ كولودپاره كلمه وائى اودَ ده په زړه كښې ايمان نشته دې لهذا دَده قتل كول جائزدى يا حضرت اسامه رضي الله عنه دا اجتهاداوكړو كله چه زما توره دَهغه دَ سټ پورې رسيدلې ده، نيزه دَ هغه طرف ته وړاندې شوې ده نو په دې حالت غرغره كښې دَ دغه سړى ايمان معتبرنه دې

**قوله** فَهَلَّا شَقَقْتَ عَنْ قَلْبِهِ:

خو نبى كريم دَحضرت اسامه خيال اواجتهاد غيرصحيح اوګرځولو اووئى فرمائيله چه كله دغه سړى كلمه ونيلې وه نوتاله دَهغه ظاهرى اسلام قبلول وو باطن اودَهغه دَ زړه كيفيت نه تاپيژندلې شو اونه ددې ضرورت وو تاله پكاروو چه دَهغه په ظاهرى حالت دې فيصله كړې وه اودَهغه دَقتل نه منع شوې وې ته پخپله سوچ اوكړه كه دغه سړې دا كلمه دَ قيامت په ورځ خپل خان سره راوړى نوته به څه كوې نبى كريم صرف دَ خفګان اظهار اوكړو اودَ حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه نه ئى قصاص يا ديت وانه خستلو خكه چه اسامه رضي الله عنه كوم دا سړې وژلې وو نوهغه دَ اجتهاد دَلاندې داسې كړې وو او په اجتهادى غلطئى باندې نبى كريم بنه رټنه اوكړه او نور ئى هيڅ اونه ونيل

۱) اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب تحريم قتل الكافر بعد أن قال: لا إله إلّا الله(رقم-۱۶۰ - (۹۷)

**[۳٤٥۲] د معاهد د قتلولو ممانعت**

۳۳۰۳-[۲] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ قَتَلَ مُعَاهِدًا لَمْ يَرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ، [۳] وَإِنَّ رِيحَهَا تُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ أَرْبَعِينَ خَرِيفًا»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړی چې عهد والا قتل كړي، هغه به د جنت بوی نه و مومي ، [۳] او د جنت بوی د څلويښتو كلونو د لارې په مسافت كې راځی، (بخاري)

**حل اللغات** ① مُعَاهِدًا: دجنګ بندئ معاهده كونكې، ② لَمْ يَرَحْ: بوئی به نه كړی، ③ مَسِيرَةِ: مسافت. فاصله، ④ خَرِيفًا: خريف دَخزان موسم ته وائی مراد ترې نه څلويښت كاله دی

**تسهيلات: قوله: مُعَاهِدًا:**

**د معاهد تعريف:** معاهد هغه كافرته وائی كوم چه امام اوخليفه دَ وخت سره دَ جنګ نه كولو عهداو معهده كړې وی كه هغه ذمی وی كه حربی وی اوكه مستامن وی.

**قوله لَمْ يَرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ:**

**د جنت بوئې نه محسوسولو كښې درې توجيهات:** ① مراد دادې چه هغه دا حرام عمل حلال ګڼړی نوک فرشو نودَ جنت خوشبوئی به پرې حرام وی.

② دا نی په توګه دَ تشديد تغليظ او په توګه دَ زجراوتوبيخ فرمائيلی دی.

③ مراد دادې چه په شروع كښې به داسرې دَ جنت دَ خوشبوئی ادراك نه شی كولې دَ سزاتيرولونه پس به احساس كوی

**قوله أَرْبَعِينَ خَرِيفًا»:**

**پهٔ احاديثو كښې د تعارض اشكال:** په دې حديث كښې دَ څلويښتوكالو ذكر دې بعضې روايتوكښې اوياكاله دې بعضې كښې سل كاله دې بعضې كښې پنځه سوا كاله دې يا دَ زرو كالومسافت ذكرهم ملاوېږی نودَدې تفاوت څه وجه ده

**د تعارض د اشكال جواب:** دا دَ اشخاص اودَوی دَ درجو دَ اختلاف د تفاوت دَ وجې نه دې دا څه تعارض نه دې يعنی دَ اوچتو درجووالو ته به په نسبت دَ ښكته درجووالو خوشبوئی دَ لرې نه راځی

۱) اخرجه البخاري في كتاب الجزية/باب إثم من قتل معاهدا بغير جرم (رقم-۳۱۶۶) وابن ماجه في كتاب الديات/باب من قتل معاهدا (رقم-۲۶۸۶)

## [۲٤۵۲]د خودکشي کونکي په باره کښې وعيد

۳۳۷۲—[۷](۱)[۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «مَنْ تَرَدَّى مِنْ جَبَلٍ فَقَتَلَ نَفْسَهُ، [۳]فَهُوَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ يَتَرَدَّى فِيهَا خَالِدًا [۴]مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا، [۵]وَمَنْ تَحَسَّى سُمًّا فَقَتَلَ نَفْسَهُ،

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]کوم سړی چې د غره نه خان غورځولو سره خود کشی وکړي، [۳]نو هغه سړی به هميشه په دوزخ کې زغړول کېږي ، [۴]او هلته به هميشه هميشه وي، او هيڅ کله به د هغه نه ونه وځي، [۵]او کوم سړی چې د زهر څکلو سره خودکشي وکړي،

**حل اللغات:** ①تَرَدَّي: دَ باب تفعل نه دې خپل خان دَغروغيره نه راغورزول. باب تفعل دَ تکلف دَپاره هم کيدې شی ②خَالِدًا مُخَلَّدًا: دَمخلد لفظ دَ خالدادَ پاره تاکيددې اوابدا هم تاکيددې هميشه پاتې کيدل، ③تَحَسَّى: دَ باب تفعل نه دې. "حسو" دَ څکلوپه معنی کښې دې دلته زهرڅکل مراد دی. دَباب تفعل نه دَتکلف معنی ظاهريږی چه کراهت سره په خپل خان باندې زورزياتې کولو سره زهر اوڅکل ④سُمًّا: په سين باندې زبر زير پيښ درې واړه حرکات راځی زهرته ونيلی شی

[۱]فَسُمُّهُ فِي يَدِهِ [۲]يَتَحَسَّاهُ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا، [۳]وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِحَدِيدَةٍ، [۴]فَحَدِيدَتُهُ فِي يَدِهِ يَتَوَجَّأُ بِهَا فِي بَطْنِهِ [۵]فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]د هغه زهر به د هغه په لاس کې وي، [۲]چې هغه به يې د دوزخ په اور کې څکي ،هغه به هميشه هميشه په دوزخ کې وي، د هغه نه به هيڅ کله نه را وځي، [۳]او کوم سړی چې د اوسپنې په يو څيز (مثلًا چاړه وغيره) سره خپل خان قتل کړي، [۴]هغه هتيار به د دوزخ په اور کې د هغه په لاس کې وي، چې هغه به يې په خپله خيټه کې تومبي، [۵]او هميشه به په دوزخ کې وي، د هغه نه به هيڅ کله نه اُوځی. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ⑤حَدِيدَةٍ: تيز مخ والا دَ وسپنې آله ⑥يَتَوَجَّأُ: دَ باب تفعل نه دې ،چاړه چاقو سره خپله خيټه شلولی

**تسهيلات:** قوله: خَالِدًا مُخَلَّدًا:

**د قاتل په جهنم کښې د هميشه اوسيدو په نص کښې توجيهات:** ① دا حکم تشديداً تغليظاً تهديداً زجراً اوتوبيخاً دې

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الطّبّ/باب شرب السّمّ والدّواء به وبما يخاف منه والخبيث (رقم-۵۷۷۸) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب غلظ تحريم قتل الإنسان نفسه. وأنّ من قتل نفسه بشیء عذّب به فی النّار. وأنّه لا يدخل الجنّة إلّا نفس مسلمة(رقم-۱۷۵ - (۱۰۹) والترمذی فی کتاب الطّبّ عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فيمن قتل نفسه بسمّ أو غيره (رقم-۲۰٤٤) والنسائی فی کتاب الجنائز/باب/ترک الصّلاة على من قتل نفسه (رقم-۱۹۶۵) واحمد فی المسند: ۲/ ۲۵٤

③ د خلود نه مراد مدت مدیده طویله دي کوم چه په محاوره کښې ونیلې شي

④ دا د همیشه باېې کیدل به ددې وجې نه وي چه دې سرې خودکشي حلال ګنړلو سره کړې نو کافر شو په دوزخ کښې به پروت وي

**فائده: په اسلام کښې د خود کشي د حرمت وجه:** اسلام خودکشي په دې وجه حرام کړې ده چه د انسان خان د هغه خپل ملکیت نه دې نو څنګه چه نور انسانان وژل حرام دي هم دغه شان خپل خان وژل هم حرام دي البته د خودکشي داجرم د بعضې اعتباراتو سره د بل قتل کولو نه زیات غلیظ جرم دې خکه چه په دې کښې اکثر د الله تعالی د نا امیدئ عنصر موندلې شي چه هغه ماته خوراك نه راکوي یا نه شي راکولې نو په شکایت او نا امیدئ کښې د خپل ژوند خاتمه کوي که چرې دا خبره په کښې نه وي نو بیا قاتل نفس جرم د قتل غیر د جرم نه سپك دې کذافی المرقات خودکشي د دنیاپه یو مهذب قانون کښې هم جائز نه ده او د انسان جوړشوي خپل قانون کښې هم دا قابل تعزیر جرم ګرخولې شوې دې اسلام خو آفاقي او فطري قانون دې هغه د مخکښې نه دا جرم حرام ګرخولې دې

---

۳۴۵۴—[۸] (۱) ⟨۱⟩ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⟨۲⟩ "«الَّذِي يَخْنُقُ نَفْسَهُ ⟨۳⟩ يَخْنُقُهَا فِي النَّارِ ⟨۴⟩ وَالَّذِي يَطْعَنُهَا يَطْعَنُهَا فِي النَّارِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

**ترجمه:** ⟨۱⟩ او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ⟨۲⟩ کوم سرې چې مرئ خفه کولو سره خپل خان مړ کړي، ⟨۳⟩ هغه به په دوزخ کې هم خپله مرئ خفه کوي. ⟨۴⟩ او چه چې په نیزه سره خودکشي وکړه. هغه به په دوزخ کې هم خپل خان په نیزه سره وهي. بخاري

**حل اللغات** ① يَخْنُقُ مرئ خفه کوي ② يَطْعَنُهَا: په نیزه سره ني وهي

**تسهیلات: قوله يخنق نفسه**

د نون په کسرې سره هم راخي او باب نصر نه د نون په ضمې سره هم راخي قال شارح المصابيح أي يعصر حلقه یعني خپل ستونی تاوهل او نچونړول یا خپل خان مړ کول الحاصل چه چې خپل خان پخپله مړ کړو نو په قیامت کښې به هغه ته هم هغه شان سزا ورکولې کیږي

**[۳۴۵۵] په خودکش باندې د جنت حرمت**

---

۳۴۵۵—[۹] (۲) ⟨۱⟩ وَعَنْ جُنْدَبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⟨۲⟩ «كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ رَجُلٌ بِهِ جُرْحٌ، ⟨۳⟩ فَجَزِعَ فَأَخَذَ سِكِّينًا، ⟨۴⟩ فَحَزَّ بِهَا يَدَهُ فَمَا رَقَأَ الدَّمُ حَتَّى مَاتَ. ⟨۵⟩ قَالَ

---

۱ ) اخرجه البخاري فی کتاب الجنائز باب ما جاء فی قاتل النفس (رقم-۱۳۶۵) واحمد فی المسند: ۲/۴۳۵

۲ ) اخرجه البخاري فی کتاب أحاديث الأنبياء باب ما ذكر عن بنی إسرائيل (رقم-۳۴۶۳) ومسلم فی کتاب الإيمان باب غلظ تحريم قتل الإنسان نفسه وأن من قتل نفسه بشيء عذب به في النار. وأنه لا يدخل الجنة إلا نفس مسلمة (رقم-۱۸۰ (۱۱۳)

اللهُ تَعَالَى: بَادَرَنِي عَبْدِي بِنَفْسِهِ فَحَرَّمْتُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت جندب ﷺ ابن عبد الله ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ (يوه ورځ) وفرمايل [۲]ستاسو نه په مخکې خلقو کې يو سړی وو، چې زخمي شوی وو. [۳]نو (د زخم تکليف شديد کيدو په وجه) هغه صبر ونه کړي، چاړه يې پورته کړه [۴]او خپل لاس يې پريکړلو (چې زخمي وو) د هغه نتيجه دا شوه چې زخم دفع نه شو، او هغه مړ شو. [۵]الله ﷻ وفرمايل چې زما بنده د خپل خان په باره کې زما د فيصلې انتظار ونه کړي، بلکه خپل خان يې هلاک کړي، نو ما په هغه جنت حرام کړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** ①جُرْحٌ: زخم، ②فَجَزِعَ: فرياد نې اوکړو، بې صبری نې اوکړه. ③سِكِّينًا: چاړه. ④فَمَا رَقَأَ: پس دفع نه شو، جوړنه شو ⑤بَادَرَنِي :مقابله او ضد نې اوکړو ما سره

**تسهيلات:**

**قوله فحرمت عليه الجنة**

د مذکوره جملې وضاحت: ابن الملك ﷫ فرمائي چې په ده باندې د جنت د حراميدو مطلب دادې چې ده خانمرګی حلال ګنړلې وه او د حرام څيز باره کښې د حلال عقيده لرل صريحا کفر دې په دې وجه په دې باندې دخودل جنت حرام کړې شو، يا ددې نه مراد دادې چې ترکومې پورې دې جهنم کښې خپله سزا تيره نه کړي نو دې به د اول جنت ته د تلو نه محروم کړې شي

**[۳٤٥٦] د خودکشي په باره کښې يوه سبق آموز واقعه**

۳٤۵٦-[۱۰] (۱) [۱]وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: «أَنَّ الطُّفَيْلَ بْنَ عَمْرٍو الدَّوْسِيَّ لَمَّا هَاجَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَدِينَةِ هَاجَرَ إِلَيْهِ، [۲]وَهَاجَرَ مَعَهُ رَجُلٌ مِنْ قَوْمِهِ، [۳]فَمَرِضَ فَجَزِعَ، [۴]فَأَخَذَ مَشَاقِصَ لَهُ، فَقَطَعَ بِهَا بَرَاجِمَهُ، فَشَخَبَتْ يَدَاهُ، حَتَّى مَاتَ، [۵]فَرَآهُ الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو فِي مَنَامِهِ وَهَيْئَتُهُ حَسَنَةٌ وَرَآهُ مُغَطِّيًا يَدَيْهِ، [٦]فَقَالَ: مَا صَنَعَ بِكَ رَبُّكَ؟

**ترجمه:** [۱]او حضرت جابر ﷺ وايي نبي کريم ﷺ چې په هجرت مديني ته تشريف راوړو. نو طفيل ابن عمرو دوسي هم هجرت کولو سره حضور ﷺ ته راغلی، [۲]د هغه سره د هغه د قبيلې يو بل سړی هم هجرت وکړي [۳]اتفاقي، هغه سړی بيمارشو، او (کوم وخت چې مرض شدت اختيار کړي) د هغه نه صبر ونه شو. [۴]نو هغه د غشي تيره څوکه آخستوسره د خپلو ګوتو جوړونه يې پريکړل، په دې وجه د هغه د دواړو لاسونو نه دومره وينه جاري شوه، چې هغه مړ شو [۵]د هغه د مرګ نه وروسته يوه ورځ طفيل بن عمرو ﷺ هغه سړی په خوب کې په داسې حالت کې وليدلو، چې هيئت خوبنه وو، خو هغه

۱) اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب الدليل على أن قاتل نفسه لا يكفر(رقم-۱۸٤ - (۱۱٦)

خپل دواړه لاسونه پټ کړي وو، ٦ طفیل ﷺ د هغه نه پوښتنه وکړه، چې ستا رب ستا سره څنګه معامله وکړه؟

**حل اللغات** ①اَلْجَزَعَ: فریاد نې اوکړو، بې صبری نې اوکړه. ②مَشَاقِصَ: دَ مشقص جمع ده لویه چاړه. ③بَرَاجِمَهُ: د برجمة جمع ده د ګوتوجوړونه ④فَشَخَبَتْ: دَ نصر اوفتح نه راځی دَ رګونو یا دَ زخم نه دَ فوارې په شان دَ وینه جاری شوه

١ فَقَالَ: غَفَرَلِي بِهِجْرَتِي إِلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ٢ قَالَ: مَالِي أَرَاكَ مُغَطِّيًا يَدَيْكَ؟ ٣ قَالَ: قِيلَ لِي: لَنْ نُصْلِحَ مِنْكَ مَا أَفْسَدْتَ، ٤ فَقَصَّهَا الطُّفَيْلُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ٥ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اَللّٰهُمَّ وَلِيَدَيْهِ فَاغْفِرْ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ١ هغه سړي اوویل چې الله ﷻ زه په دې وجه وبخښلم، چې ما د هغه نبي ﷺ طرف ته هجرت کړي وو، ٢ بیا طفیل ﷺ اوویل چې زه تا وینم، چې دواړه لاسونه دې پټ کړي دي. ٣ هغه سړي ربه ډیر حسرت سره) اوویل چې د پروردګار د طرف نه ماته ونیل شوی دی، چې کوم څیز تا خپله خراب کړي دی، مونږ هغه هیڅ کله نه صحیح کوو، ٤ کوم وخت چې طفیل ﷺ دا خوب د رسول الله ﷺ په مخکې پیش کړي. ٥ نو حضور ﷺ وفرمایل چې اې الله! ﷻ هغه او د هغه دواړه لاسونه وبخښې، (مسلم)

**حل اللغات** ⑤مُغَطِّيًا: پټ کړی نې وو. ⑥مَاصَنَعَ بِكَ: څه نې اوکړل تاسره، څه معامله نې اوکړه تاسره. ⑦فَقَصَّ: قصه نې بیان کړه،

**تسهیلات**: **قوله**: بِهِجْرَتِي إِلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د هجرت برکت**: یعنی دَ الله تعالی رسول محمدعربی ﷺ طرف ته دَ هجرت دَ برکت نه الله تعالی زما دَ خودکشنی جرم معاف کړو دې نه معلومیږی چه هجرت ډیر لوئی عمل دې اوخاص کر په مدینه منوره کښې دَ نبی کریم طرف ته دَ صحابه کرامو ﷺ هجرت ډیر لوئی عمل وودکوم په برکت چه الله تعالی دَ صحابه کرامو لوئی لوئی خطاګانې معاف کړې نو دَ یوسړی دپاره مناسب نه دی چه په صحابه کرامو باندې ګوته اوچته کړی اودَ خپل بې کاره عقل په تله کښې دَهغوی اوچت مقام تلل شروع کړی

دَ دې حدیث نه داهم معلومیږی چه کبیره ګناه موجب کفرنه ده اونه دَ دوزخ دَ دائمی عذاب ذریعه ده چنانچه دَ اهل سنت هم دغه عقیده ده چه دَ سزاتیرولونه پس دَ کبیره مرتکب به دَ دوزخ نه راوځی

**قوله**: اَللّٰهُمَّ وَلِيَدَيْهِ فَاغْفِرْ

**د صحابی دپاره د مغفرت دعا**: رسول الله ﷺ ډیر دَ مینې په انداز کښې دَ دغه صحابی دپاره دَمغفرت دعا اوکړه چونکه معامله صرف دَ لاسونووه نونبی کریم دا مقدم کولو سره فاغفرمؤخرکړو او وئی فرمائیل اې رب کریم دَ ده لاسونه هم اوبخښې

[۲۴۵۷] د مقتول وارثانو ته قصاص او ديت په دواړو كښې د يو د اخستلو اختيار

۳۴۵۸-[۱۱] (۱) ١ وَعَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْكَعْبِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " ٢ «ثُمَّ أَنْتُمْ يَا خُزَاعَةُ! قَدْ قَتَلْتُمْ هَذَا الْقَتِيلَ مِنْ هُذَيْلٍ، ٣ وَأَنَا وَاللَّهِ عَاقِلُهُ، ٤ مَنْ قَتَلَ بَعْدَهُ قَتِيلًا فَأَهْلُهُ بَيْنَ خِيرَتَيْنِ: ٥ إِنْ أَحَبُّوا قَتَلُوا، وَإِنْ أَحَبُّوا أَخَذُوا الْعَقْلَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو شريح كعبي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي چې حضور ﷺ (د مكې د فتح په ورځ كومه خطبه ارشاد وفرمايله او د هغه ابتدايي حصه د حرم مكه په باب كې تيره شويده، د هغه آخري الفاظ دا وو) وفرمايل ٢ چې اې خزاعه! تاسو دا مقتول چې د قبيله هُذَيل يو فرد وو، قتل كړي دی. ٣ او زه قسم په خدای د هغه د خون بها ذمه وارېم. ٤ اوس د دې نه روسته (په دې حكم سره خبرولی شي كه) يو سړی څوك قتل كړي، نو د مقتول وارثانو ته ددوو څيزونو نه د يو شي اختيارولو حق حاصل دی. ٥ ① چې هغه قاتل قتل كړي ② كه هغه خون بها واخلی (ترمذي شافعي)

**حل اللغات:** ①الْقَتِيلَ: مقتول، ②عَاقِلُهُ: دخون بها ذمه وار(دقاتل قبيله) ③فَأَهْلُهُ: اهل وعيال، وارثان، ④خِيرَتَيْنِ: دوه اختياره. ⑤الْعَقْلَ: خون بها، ديت.

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَهْلُهُ بَيْنَ خِيرَتَيْنِ:**

**د مذكوره واقعي تاريخي پس منظر:** يعنی دَ مقتول وراثانوته په دوو څيزونوكښې دَ يودَاختيارولوحق حاصل دې. دَدې واقعه تاريخی پس منظرداسې دې چه دَ جاهليت په دَروكښې دَ هذيل قبيلې خلقو دَ قبيله خزاعه يوسړې وژلې وو. دَ فتح مكه په ورځ خزاعه ته په هذيل باندې اوچتوالې حاصل شوې وو. نوخزاعه دَ هذيل يوسړې اووژلو اوخپله زړه بدله ئې واخستله نبی كريم دَ فتنې اوفساد دَختمولوپه غرض سره دَدغه مقتول ديت په خپل ذمه واخستلو اودې نه پس دَ فتح مكه په خطبوكښې په يوه خطبه كښې ئې دا شرعی قاعده بيان كړه كه اوس چا څوك ناحقه قتل كړو نو دَ مقتول وارثانو ته به په دوو خبروكښې اختيار وركولې شی چه خوهغوی قصاص واخلی يادیت اخستوسره دې قاتل معاف كړی اوس دَدغه اختيارباره كښې دَ فقهاؤ په مينځ كښې څه اختلاف دې

**د قتل عمد په موجب كښې ۲ مذاهب:**

①شوافعو اوحنابله فرمائی چه په قتل عمد كښې دَ مقتول وارثانوته دَ قصاص اخستلو هم اختياردې اودَ قاتل نه دَ ديت اخستلوهم اختياردې كه هغوی دَ قاتل نه دَ ديت مطالبه

۱) اخرجه ابوداود في كتاب الدّيات/باب وليّ العمد يرضى بالدّية (رقم-۴۵۰۴) والترمذي في كتاب الدّيات عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في حكم وليّ القتيل في القصاص والعفو(رقم-۱۴۰۶) واحمد في المسند: ۴/۳۲

اوکړی نو قاتل به دیت ورکوی

② ائمه احناف اومالکیه فرمائی دَ قتل عمد موجب صرف قصاص دې دَمقتول وارثان دَ قاتل نه صرف دَ قصاص مطالبه کولې شی اودَ قاتل دَ مرضئی نه بغیردَ هغه نه دا مطالبه نه شی کولې چه مونږ ته دیت راکړه مونږ قصاص نه اخلو

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث د دوی مستدل دې خکه چې په دې کښې دَمقتول وارثانوته دَ دوو خبرو اختيارورکړې شوې دې داحضرات فرمائی چه که چرې قاتل په ديت ورکولوباندې راضی نه وی اودَ قصاص ورکولودَپاره تياروی نوبياهم دَ مقتول وارثان دَهغه نه دَديت مطالبه کولې شی

**داول فريق د دليل جواب:** دَزيربحث شوافعو اوحنابله دَمستدل جواب دادې چه دلته ديت اخستوکښې به دَ قاتل دَ رضا خيال ساتلی شی دې دَپاره چه په ټولو نصوصوکښې تطبيق راشی اوتعارض پاتې نه شی

**ددويم فريق دلائل:** ① دَ قرآن عظيم هغه آياتونه دی په کوم کښې چه دَ قتل عمد سزا قصاص متعين کړې شوې ده لکه : ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى﴾ [سورت بقره ۱۷۸]. ﴿وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَآ اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾ [سورت مائده ۴۵]. ﴿ وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰأُولِي الْأَلْبَابِ﴾[سورت بقره ۱۷۰]

② دَ حضرت انس ﷺ روايت کښې نبی کريم فرمائيلی «ياانس كتاب الله القصاص» اې انس کتاب الله کښې خو هم قصاص دې

③ دَ حضرت ابن عباس ﷺ په حديث کښې دا الفاظ دی «العمدقودوالخطاءدية» يعنی په قتل عمدکښې هم قصاص دې اوقتل خطاء کښې ديت دې داروايت نصب الرايه کښې ۴/۳۲۷ سند سره موجود دې

۳۳۸۰-(۱) [۱]وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ إِسْنَادُهُ، [۲]وَصَرَّحَ بِأَنَّهُ لَيْسَ فِي الصَّحِيحَيْنِ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ، [۳]وَقَالَ: وَأَخْرَجَاهُ مِنْ رِوَايَةِ أَبِي هُرَيْرَةَ يَعْنِي بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** [۱]په شرح السنة کې دا روايت د شافعي ﷺ په اسناد سره مذکور دی، [۲]او د شرح السنه مصنف بغوي ﷺ دا صراحت کړی دی، چې دا حديث په بخاري او مسلم کې د ابو شريح ﷺ نه منقول نه دی. [۳]ليکن بغوی ﷺ ويلی دی چې په بخاری او مسلم کې دا روايت د ابوهريره ﷺ نه منقول دی. حالانکه په هغه کې هم بالمعنی منقول دی

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب العلم/باب کتابة العلم (رقم-۱۱۲) ومسلم فی کتاب الحج /باب تحريم مكة وصيدها وخلاها وشجرها ولقطتها. إلّا لمنشد على الدّوام (رقم-۴۴۸ - (۱۳۵۵)

## [۲٤٥۹] دَ بنځې په بدله کښې د سړي قصاص

م‍ ۳۳۰۰ [۱۲] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ: «أَنَّ يَهُودِيًّا رَضَّ رَأْسَ جَارِيَةٍ بَيْنَ حَجَرَيْنِ [۲] فَقِيلَ لَهَا: مَنْ فَعَلَ بِكِ هَذَا؟ [۳] أَفُلَانٌ؟ حَتَّى سُمِّيَ الْيَهُودِيُّ فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا. [۴] فَجِيءَ بِالْيَهُودِيِّ، فَاعْتَرَفَ فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضَّ رَأْسُهُ بِالْحِجَارَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي چې يو يهودي د يوې جينۍ سر د دوو کاڼو په منځ کې وټکی. (يعني په يو کاڼي د هغې سر اېښولو سره په دويم کاڼي يې گذار ورباندې وکړي. نو د جينۍ په حالت دنزعي کې چې بيان وآخستي شو، نو) [۲] د هغې نه پوښتنه وشوه چې ستا سره چا دا معامله کړې ده؟ [۳] آيا فلانی سړی، آيا فلانی سړی (يعني په کومو خلقو چې شبه وه، د هغوی نومونه واخستي شو، ددې پورې چې د هغه يهودي نوم وآخستی شو، نو جينۍ د خپل سر په اشارې سره وښودل چې هو، هغه داسې کړي دي) [۴] بيا هغه يهودي حاضر کړل شو، او هغه د خپل جرم اقرار وکړي، نو رسول الله ﷺ هغه شان د هغه يهودي د سر د ټکولو حکم وکړي، او د هغه سر په کاڼو سره ميده کړی شو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① رَضَّ: اوټکولو، چخنړی کړلو ② فَأَوْمَأَتْ: نو اشاره ئې اوکړه ③ فَاعْتَرَفَ: نو هغه اقرار اوکړو

**تسهيلات: قوله:** رَضَّ: دا دَ باب نصر ينصر نه ټکولو چقنړی کولو اودَل کولوته وائی

**قوله:** فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا:

**د حديث د جملې مفهوم:** يعنی هغه جينئی دَ زخم دَوجې نه خبره نه شوه کولې صرف دَ اشارې کولوطاقت ئی لرلو صحابه کرامودَ هغې نه تپوس اوکړو ته چا وهلې آيا فلانکی وهلې فلانکی وهلې؟ کله چه دَهغه يهودی نوم واخستې شو چاچه وهلې وه نوجينئی دَ سر په اشارې سره اوخودل چه اودغه يهودی وهلې يم په دې باندې يهودی په قصاص کښې قتل کړې شو خوهغه دَ جرم اعتراف کړې وو

**دحديث نه مستنبط مسائل:** ① که يوسړی خوك ښځه قتل کړه نودَ ښځې په قصاص کښې به سړې قتل کولې شی

② که چا خوك سړې په درونـد کاڼې سـره وهلوبانـدې قتـل کـړو نودغـه قاتـل دَ قتـل عمدمرتکب شو اودَ ده نه به قصاص اخستلې شی دې مسئلې ته قتل بالمثقل وائی اوهم

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الدّيات/باب إذا أقرّ بالقتل مرّة قتل به (رقم ٦٨٨٤) ومسلم فی کتاب القسامة والمحاربين والقصاص والدّيات/باب ثبوت القصاص فی القتل بالحجر وغيره من المحدّدات. والمثقّلات. وقتل الرّجل بالمرأة (رقم-١٥ - (١٦٧٢) و ابو داود فی کتاب الدّيات/باب يقاد من القاتل(رقم-٤٥٢٧) والترمذی فی کتاب الدّيات عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فيمن رضخ رأسه بصخرة (رقم-١٣٩٤) والنسائی فی کتاب مناسک الحجّ/باب الحجّ بغير نيّة يقصده المحرم (رقم-٢٧٤٢) وابن ماجه فی کتاب الدّيات/باب يقتاد من القاتل کما قتل (رقم-٢٦٦٥) واحمد فی المسند: ١٩٣/٣

په دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې چه آیا په دې کښې قصاص دې که دیت؟

**د قتل بالمثقل په حکم کښې ۲ مذاهب:**

① جمهور فقهاء اوصاحبین فرمائی چه قتل بالمثقل موجب قصاص دې اوداقتل عمد دې لکه څنګه چه په دې حدیث کښې په درونده کانړی سره یهودی جینئی ویشتلو سره شهیده کړه او دهغه نه قصاص واخستې شو

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه قتل بالمثقل شبه دعمد ده او شبه دعمد کښې دیت دې قصاص نشته دې

**داول فریق دلیل:** زیربحث د حضرت انس رضی الله عنه د دوی مستدل دې چه په خپله مدعا باندې واضح دلیل دې

**داول فریق د دلیل جوابونه:** ① دا قصاص په سیاست باندې محمول وو اګرچه د قاعده په رنړا کښې دلته قصاص نه وو د سیاست قاعده دټولو فقهاؤ په نیز مسلم ده بعضې علماؤ په دې موضوع باندې مستقل تصنیفات لیکلی دی مثلاً علامه عبدالبر ابن شحنه د لسان الحکام په نوم باندې کتاب لیکلې دې علامه ابن تیمیه السیاسة الشرعیه په نوم باندې کتاب لیکلې دې

② ددې حدیث دادې چه دا سړې قطاع الطریق یعنی ډاکو وو هغه د دغه جینئی نه بنګړی اخستې وو او هغه نقض عهد هم کړې وو بهرحال د جمهورو دلیل واضح تر دې اوصاحبین هم جمهورو سره دی

**د دویم فریق دلیل:** د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه حدیث د دویم فریق مستدل دې دکوم الفاظ چه داسې دی «الا ان دیة الخطأ شبه العمدماکان بالسوط والعصا» (ابوداؤد .بحواله مشکوة ص ۳۰۲ باب الدیات فصل ثانی)

امام صاحب رحمه الله فرمائی چه دلته په لښته. چوکه او همسا کښې هیڅ فرق نشته دې چه هغه غټه وی یا وړه وی نو په دې سره دقتل بالمثقل ضابطه حاصله شوه

② کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت هم د دوی مستدل دې الفاظ ئې دا دی «من قتل فی عمیة فی رمی یکون بالحجارة اوجلد بالسیاط اوضرب بعصا فهوخطاء وعقله عقل الخطأ» (ابوداؤد .بحواله مشکوة ص ۳۰۲)

**په مساوات فی القتل و القصاص کښې ۲ مذاهب:**

① ددې زیر بحث حدیث نه امام شافعی رحمه الله اوامام مالک رحمه الله دا مسئله مستنبط کړې ده چه قتل او قصاص کښې مساوات فی الفعل ضروری دې یعنی په کانړی سره دقتل بدله به په کانړی سره اخستې شی او د زهر بدله په زهر سره او د چوکې بدله په چوکه سره او په ګولئی ویشتلو سره بدله په ګولئی سره اخستې شی دې دپاره چه مساوات قائم شی.

② امام ابوحنيفه رحمه الله او په يوقول كښې امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي په قصاص كښې مساوات في العمل ضروري نه دي بلكه قصاص په توري سره متعين دي

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث د دوی مستدل دې چه په كاڼړی وژلوسره بدله به په كاڼړی وژلوسره واخستې شوه

**داول فريق د دليل جواب:** دا حديث په سياست باندې محمول دې، دې دپاره چه خلقو ته دَ زيات نه زيات عبرت حاصل شي

**د دويم فريق دليل:** "لاقود الابالسيف" حديث د دوی مستدل دې

**[٢٤٦٠] په غاښونو كښې د قصاص حكم**

٣٤٦٠-[١٣] (١) ① وَعَنْهُ قَالَ: «كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ - وَهِيَ عَمَّةُ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - ② ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، ③ فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ④ فَأَمَرَ بِالْقِصَاصِ، ⑤ فَقَالَ أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ عَمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: لَا وَاللّٰهِ لَا تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ!

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې بي بي ربيع د حضرت انس رضي الله عنه ابن مالك ترور (د پلار خور) وه، ② هغه د يوي انصاري جينۍ غاښ مات كړي، ③ د هغه جينۍ رشته داران د استغاثي سره د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو، ④ حضور د بدلي اخستلو حكم وفرمايلو (يعني دا فيصله يي وكړه، چې د بي بي ربيع رضي الله عنها غاښ دې هم مات كړل شي) ⑤ انس رضي الله عنه ابن نضر چې د انس ابن مالك رضي الله عنه تره وو، هغه عرض اوكړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم داسې به نه كيږي، قسم په خداى د بي بي ربيعي رضي الله عنها غاښ به نشي ماتولى،

**حل اللغات:** ① كَسَرَتْ: مات ئې كړو. ② ثَنِيَّةَ: مخامخ غاښ،

① فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَنَسُ! كِتَابُ اللّٰهِ الْقِصَاصُ". ② فَرَضِيَ الْقَوْمُ وَقَبِلُوا الْأَرْشَ. ③ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې اي انسه! د الله جل جلاله حكم د بدلي اخستو دى، ② ليكن (الله جل جلاله داسې وكړل چې) د جينۍ خاندان والا (د بي بي ربيعي رضي الله عنها غاښ نه ماتولو باندې راضي شو او ديت مالي معاوضه يي قبوله كړه، ③ نو رسول صلى الله عليه وسلم وفرمايل بعضې بندګان د خداى جل جلاله داسې دي كه هغه په څه خبره د الله جل جلاله قسم واخلي، نو الله تعالى جل جلاله د هغوئ قسم پوره كوي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ② الْأَرْشَ: تاوان، مالي معاوضه، ديت. ③ لَأَبَرَّهُ: برى به ئې كړى، پوره به ئې كړى

١ ) اخرجه البخارى فى كتاب الدّيات/باب العاقلة (رقم-٦٩٠٣) ومسلم فى كتاب القسامة والمحاربين والقصاص والدّيات/باب إثبات القصاص فى الأسنان، وما فى معناها (رقم-٢٤ - (١٦٧٥)) و ابو داود فى كتاب الدّيات/باب القصاص من السّنّ (رقم-٤٥٩٥) والنسائى فى كتاب القسامة/باب القصاص من الثّنيّة (رقم-٤٧٥٧) واحمد فى المسند ١٢٨/٣

**تسهيلات:**

**قوله كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ:**
**د خو نومونو تعين:** دلته د ټولو نه مخکښې په دې روایت کښې يو د خونومونو تعين ضروري دې

① په دې کښې ربيع د يوې ښځې نوم دې چه د نضر لورده
② د مالك نوم دې چه د نضر خوئې دې
③ انس هم د نضر خوئې دې
④ مالك بن نضر هم د خپل خوئې نوم انس ايخودې وو دغه شان د تره او وراره دواړو نوم انس وو او انس بن مالك د نبی کريم خاص خادم وو د دې روايت راوی هم هغه انس بن مالك دې
⑤ حضرت ربيع د انس ترور وه او د انس بن نضر خور وه

**قوله لَاوَاللّٰهِ لَاتُكْسَرُ:** دا د "لاوالله" قسم هم دې انس بن نضر خوړلې دې او نبی کريم "يا انس كتاب الله القصاص" خطاب هم ده ته کړې دې

**د انس بن نضر د قسم خوړلو وجه:** د حضرت انس بن نضر دا کلام اودا قسم خوړل د نبی کريم د کلام او حکم نه انکار نه وو او نه د هغې مخالفت مقصود وو بلکه د الله تعالی په وسيع رحمت باندې د هغه نظر وو او د هغه اميدوو چه قسم په خدائی الله تعالی به داسې نه کوی بلکه هغه به دغه مدعيان راضی کوی اودا خلق به د قصاص په ځائی ديت قبلوی چنانچه هم داسې اوشو د حضرت انس بن نضر رضي الله عنه نيت چونکه ښه وو د الله تعالی د حکم نه انکار نه وو بلکه د رحمت انتظار وو په دې وجه نبی کريم د هغه تعريف اوکړو او د خفګان اظهارئې اونه کړو او "ارش" ديت ته وائی بهر حال "قلندر ہرچہ گوید دیدہ گوید"

**[۲٤٦۱] د کافر په قصاص کښې د مسلمان د قتلولو حکم**

۳۳۳۶—[۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «سَأَلْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [۲] هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ لَيْسَ فِي الْقُرْآنِ؟ [۳] فَقَالَ: وَالَّذِي فَلَقَ الْحَبَّةَ، وَبَرَأَ النَّسَمَةَ، [۴] مَا عِنْدَنَا إِلَّا مَا فِي الْقُرْآنِ، [۵] إِلَّا فَهْمًا يُعْطَى رَجُلٌ فِي كِتَابِهِ وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو جُحيفه رضي الله عنه وايي چې ما د حضرت علي کرم الله وجهه نه پوښتنه وکړه [۲] چې آيا ستاسو سره د قرآن نه علاوه يو بل شی هم شته؟ [۳] هغه وفرمايل چې قسم دی په هغه ذات چې هغه غله پيدا کړه، او جان رسا والا ته يي وجود وبخښلی، [۴] زما سره

۱) اخرجه البخاري في كتاب الدّيات /باب العاقلة (رقم-۶۹۰۳)

داسې هیڅ څیز نشته چې په قرآن کې موجود نه وي، [۵]هو د قرآن هغه پوهه (ماته ضرور راکول شوی ده) کوم چې یو انسان ته ورکول کیدی شي، او زمونږ سره څه داسې څیزونه دي چې په کاغذ کې لیکل شوي دي؟

**حل اللغات** ①فَلَقَ :وې چودلو، څیرې ئې کړلو②الْحَبَّةَ دانه، تُخم.③بَرَأَ:وجود ئې ورکړو. پیدا ئې کړو ④النَّسَمَةَ:د نون سین اومیم فتحاتو سره نفس اوهرساه والا، ذی روح

[۱]قُلْتُ: وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ؟[۲]قَالَ: الْعَقْلُ وَفِكَاكُ الْأَسِيرِ،[۳]وَأَنْ لَا يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَذُكِرَ حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ: "«لَا تُقْتَلُ نَفْسٌ ظُلْمًا»". فِي "كِتَابِ الْعِلْمِ".

**ترجمه:** [۱]ما عرض اوکړو چې هغه څه څیزونه دي چې په کاغذ کې لیکل شوي دي؟ [۲]هغه وفرمایل چې (د ناحق قتل) خون بها، د هغه مقدار او د هغه احکام او د قیدی پرېښودو ثواب لیکلی دی، [۳]او دا لیکلي دي، چې د کافر (چې ذمي نه وي) په بدله کې دي مسلمان نشي قتلولی، (بخاري)

**حل اللغات** ⑤الْعَقْلُ : دیت، مالی معاوضه، ⑥وَفِكَاكُ:خلاصول، آزادول.⑦الْأَسِيرِ:قیدی.

**تسهیلات:**

**قوله:** هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ:

**د حضرت ابوجحیفه نه د سوال کولو غرض** :حضرت علی رضی الله عنه نه د حضرت ابوجحیفه رضی الله عنه د سوال کولو او د تپوس منشاء د شیعه روافض هغه عقیده وه دکوم په وجه چه به هغوی ونیل حضرت علی رضی الله عنه ته رسول الله ﷺ په خصوصی توګه باندې علم اسرار ورکړې وو اونبی کریم هغوی خلیفه او وصی جوړکړې وو دا عقیده د نن صبا روافض کښې هم رائج ده هم په دې وجه ئې په اذان کښې د خلیفه او وصی لفظ داخل کړې دې بل د شیعه ګانو داهم عقیده ده چه عامو خلقو ته ۳۰سپارې قرآن ملاؤ شومګر حضرت علی رضی الله عنه ته ۴۰ سپارې قرآن ملاؤ دې په کوم کښې چه ۱۰اسپارې د اهل بیت په فضائل باندې مشتمل وې کومې چه دې وخت کښې موجود قرآن پاك نه غائب دی د دې تولو خبرو په رنړا کښې د ابوجحیفه سوال وو په جواب کښې د حضرت علی رضی الله عنه د طرف نه د دې تولو خبرو تردید راغلو بلکه هغوی په ډیر تاکیدسره قسم خوړلوسره تردید اوکړو دې دپاره چه دامت په ذهنونوکښې څه شك شبه پیدا نه شي

**قوله:** إِلَّا فَهْمًا

**د فهم نه مراد:** یعنی الله تعالی چه دخپل کتاب پوهه چاته ورکوی هغه هم الله تعالی ماته راکړې ده دکوم په ذریعه چه ز د قرآن کریم احکام او معانی استنباط کوم دهغې په اجمالی اشاراتو باندې پوهیږم اودهغې ژورو علومو ته وررسیږم

**قوله:** وَأَنْ لَا يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ»

**د کافر په قصاص کښې د مسلمان عدم قتل:** دَدې حدیث په دې جمله سره دَ فقهاؤ په مینځ کښې یو اختلافي مسئله راؤچته شوې ده دَ فقهاء کرامو خو په دې کښې اتفاق دې چه دَ یو کافر حربی قتل کولو سره به د مسلمانانو نه قصاص نه شی اخستې

**د ذمی یا معاهد په قتل د مسلمان په قصاص کښې ۲ مذاهب:**

① دَ جمهور ائمه مسلك دا دې چه دَ ذمی بدله کښې به دَ مسلمان نه قصاص نه شی اخستې

② دَ ائمه احنافو مسلك دا دې چه دَذمی او معاهد په بدله کښې به مسلمان په قصاص کښې قتل کولې شی

**داول فریق اول دلیل:** ① د زیر بحث حدیث دا جمله "وان لایقتل مسلم بکافر" د دوی مستدل دې او طریقه د استدلال ئې دا ده چه په دې جمله کښې دکافر لفظ دې کوم چه عام دې که هغه حربی وی یې ذمی وی یا معاهد وی دَمسلمان نه به بدله او قصاص نه شی اخستې

**داول فریق دویم دلیل:** ② د دوی عقلی دلیل دا دې چه کافر او مسلمان کښې مساوات نشته دې دَ ذمی قتل سره دَدې چه جائز نه دې لیکن په وجه دَ کفر دَ هغه په قتل کښې دَ بحث شبه راغله نو قصاص به نه شی اخستې [نصب الرایه ۳۳۵/۴.]

**د اول فریق د دلیلونو جواب:** امام طحاوی رحمه الله فرمائی دلته په دې حدیث کښې دَ کافر نه مراد حربی کافر دې ذمی مراد نه دې او په کافر حربی کښې دَ چاهم اختلاف نشته دې دې نه علاوه دَ پورته ذکر شوو روایتونو او صحابه کرامو رضی الله عنهم فیصلو دَ زیر بحث حدیث په عموم کښې خصوص پیدا کړې دې نو دَدې نه ذمی مراد نه دې اګرچه دَ ظاهری حدیث نه عموم معلومیږی کله چه دَهغوی دَ نقلی دلیل جواب اوشو نو دَعقلی دلیل وجود ختم شو

**د دویم فریق دلائل اربعه:** ① دَحضرت علی رضی الله عنه یو اثر او قصه ده هغوی دَ ذمی په بدله کښې دَمسلمان نه قصاص واخستلو او ونې فرمائیل "من کان له ذمتنا فدمه کدمنا ودیته کدیتنا" [نصب الرایه ۳۳۷/۴.]

② دَدار قطنی روایت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دا دی «ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قتل مسلما بمعاهد» بحواله نصب الرایه ج ۴.

③ دَ حضرت عمر رضی الله عنه هغه فیصله د دوی مستدل ده په کومه کښې چه هغوی دَ یو ذمی په بدله کښې دَ یو مسلمان نه قصاص واخستو حواله بالا دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم دې فیصلو اودَ اسلاف دَدې مستدلات پوره تفصیل تعلیق الصبیح ۱۲۶/۴ کښې اوګورئی

④ هغه عام ضابطه د دوی مستدل دې دکومې ذکر چه په ډیرو روایاتو کښې راغلې دې

اوپه کوم کښې چه د ذمیانو حقوق اود ځان او مال د تحفظ ذمه واري قبوله کړې شوې ده دهغوی د مالونو غلا کول جرم دي د هغوی ښځو سره زنا یا د زنا تهمت لګول جرم دي نو دهغوی د وینې حفاظت هم "دماءهم کدمائنا واموالهم کاموالنا" په رڼا کښې ضروري دې ،کذا فی زجاجة المصابیح ۱۵/۳،

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۴۶۲] د مسلم د قتل د ګناه لوئي والې

۳۴۶۳-[۱۵] (۱) [۱] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] " «لَزَوَالُ الدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ [۳] مِنْ قَتْلِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ. وَوَقَفَهُ بَعْضُهُمْ، وَهُوَ الْأَصَحُّ.

**ترجمه**: [۱] د حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] د الله ﷻ په نز د پوره دنیا ختمیدل [۳] د یومرد مؤمن د قتلیدو نه زیات آسانه دی ،ترمذي، نسایي، او په بعضې روایاتو کې یې دا حدیث موقوف بیان کړي دی ،یعني دایي ویلي دی چې دا حدیث نبوي ﷺ نه دی، بلکه د عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما قول دی، او دا زیات صحیح دی

**حل اللغات** ① زَوَالُ : ختمیدل، ② أَهْوَنُ: دیر آسان

**تسهیلات: قوله لَزَوَالُ الدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ:**

**د الله په نیز د مسلمان عظمت**: الله تعالی دَدې کائنات څیزونه دَمسلمانانو دَپاره پیدا کړی دی دې دَپاره چه هغوی دَ دې څیزونونه فائده اوچته کړی او عبادت او کړی

عبد الرحمان بابا څه ښه فرمائیلی دی

د خلیل د کعبې دا ،زړه، کعبه ده لویه — چا چې آباد کړل ویران حرم د زړه

اوس چه یوسړی څوك مسلمان قتل کړو نو لکه چه هغه پوره کائنات مرګ سره مخ کړو هم دَدغه مضمون طرف ته دَ قرآن پاك په دې آیت کښې اشاره ده ﴿مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا﴾ [سورت مائده ۳۲]

۳۴۶۴-(۲) [۱] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

**ترجمه**: [۱] او ابن ماجه رحمه الله دا روایت د حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما په ځای د حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه نه نقل کړي دی

۱ ) اخرجه الترمذی فی کتاب الدّیات عن رسول الله صلّى الله علیه وسلّم /باب ما جاء فی تشدید قتل المؤمن (رقم-۱۳۹۵) والنسائی فی کتاب تحریم الدّم /باب تعظیم الدّم (رقم-۳۹۸۶)

۲ ) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الدّیات /باب التّغلیظ فی قتل مسلم ظلما (رقم-۲۶۱۹)

**[۲٤٦٤] د یو مؤمن په قتل د ټولو انسانانو جهنم ته تلل**

۳۰۰۳-[۱۶] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "«لَوْ أَنَّ أَهْلَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ اشْتَرَكُوا فِي دَمِ مُؤْمِنٍ [۳] لَأَكَبَّهُمُ اللّٰهُ فِي النَّارِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوسعید خدري او حضرت ابوهریره رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] که ،دا ثابته شي چه، د آسمان والا او د زمکې والا ټول د یو مرد مومن په قتل کې شریك دي، [۳] نو الله ﷻ به دوی ټول د دوزخ په اور کې پرمخې واچوي. امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دی او ویلي یې دی چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:** ① لَأَكَبَّهُمْ: پرمخې به یې اوغورزوی، ألټه به یې نسکور کړي.

**تسهیلات:**

**قوله: لَأَكَبَّهُمْ لَأَكَبَّهُمُ اللّٰهُ فِي النَّارِ:**

**د لفظ کب او اکب تحقیق:** علامه طیبی رحمه الله لغت د امام علامه جوهری رحمه الله نه نقل کړی دی چه "کب" فعل متعدی دې او "اکب" فعل لازمی دې او دا به د نوادرات نه وی چه "اکب" فعل لازم وی او "کب" متعدی وی په دې وجه بعضې شارحینو ونیلی دی چه دلته اصل لفظ "کبهم الله" دې د یوراوی نه نقل کولو کښې غلطی شوې ده علامه طیبی رحمه الله فرمانی چه د نبی کریم کلام معیاردې اهل لغت له هم د دې تابعداری کول پکاردی بل ټول راویان داسې نقل کوی یعنی د دې ټولو طرف ته د سهونسبت نه دا بهتردی چه جوهری ته د سهو نسبت اوکړې شی جامع صغیرکښې داحدیث "کبهم الله فی النار" په الفاظوسره نقل دی الکشف ۷/۶۶.

**[۲٤٦۵] د قیامت په ورځ د مقتول فریاد**

۳۰۰۴-[۱۷] (۲) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "«يَجِيءُ الْمَقْتُولُ بِالْقَاتِلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۳] نَاصِيَتُهُ وَرَأْسُهُ بِيَدِهِ، [۴] وَأَوْدَاجُهُ تَشْخُبُ دَمًا، [۵] يَقُولُ: يَا رَبِّ! قَتَلَنِي، حَتَّى يُدْنِيَهُ مِنَ الْعَرْشِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د نبي کریم ﷺ نه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ به مقتول خپل قاتل داسې نیولی راولي، [۳] چې د قاتل تندی

---

۱) اخرجه الترمذی فی کتاب الدّیات عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب الحکم فی الدّماء (رقم-۱۳۹۸)

۲) اخرجه الترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب: ومن سورة النّساء (رقم ۳۰۲۹) والنسائی فی کتاب تحریم الدّم/باب تعظیم الدّم (رقم-۳۹۹۹) وابن ماجه فی کتاب الدّیات/باب هل لقاتل مؤمن توبة (رقم-۲۶۲۱) واحمد فی المسند: ۱/۲٤۰

او سر به د مقتول په لاس کې وي، ۴ او خپله به د هغه د رګونو نه وینه بهیږي. ۵ او د هغه په ژبه به دا الفاظ وي پروردګاره! ده زه قتل کړي یم (زما فریاد رسي وکه)، ددې پورې چې مقتول به قاتل (رابنکلو سره) د عرش الهي ته نزدې بوځي، (ترمذی، نسایی، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ①نَاصِيَتُهُ: دتندی ویښته ②وَأَوْدَاجُهُ: دا د ودج جمع ده دسټ رګونه. ③تَشْخَبُ: نصر ینصر نه دې ، د رګونونه وینه جاری شوه

**تسهیلات:**

**قوله: وَأَوْدَاجُهُ تَشْخَبُ دَمًا:**

**د حدیث د بعضې ټکو وضاحت:** ① وَأَوْدَاجُهُ: دا د ودج جمع ده دسټ دهغه رګونونو دې چه د ذبح په وخت پرې کولې شی بعضې شارحین وائی چه دلته د جمع نه تثنیه مراد اخستې شوې ده بعضې روایاتوکښې "ودجان" الفظ هم راغلی دی

② دَمًا: داتمیز "محول عن الفاعل" دې یعنی په معنوی توګه باندې فاعل دې عبارت به داسې وی ③ "تشخب دمها" د دې حدیث نه معلومه شوه چه دقیامت په ورځ به مقتول خپل پوره حق د قاتل نه غواړی اود مظلومیت کیفیت سره به د الله تعالی مخې ته حاضریږی او الله تعالی به هغه راضی کوی

**[۲۴۶۶] د یوم الدار په موقع د عثمان ﷺ تقریر**

---

۳۴۶۳-[۱۸] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، «أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَشْرَفَ يَوْمَ الدَّارِ، ۲ فَقَالَ: أَنْشُدُكُمْ بِاللهِ أَتَعْلَمُونَ ۳ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِءٍ مُسْلِمٍ إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ: ۴ زِنًا بَعْدَ إِحْصَانٍ، ۵ أَوْكُفْرٍ بَعْدَ إِسْلَامٍ، ۶ أَوْقَتْلِ نَفْسٍ بِغَيْرِ حَقٍّ فَقُتِلَ بِهِ".

---

**توجمه:** ۱ و حضرت ابو امامه ﷺ ابن سهل ابن حنیف وایي چې حضرت عثمان ابن عفان ﷺ د دار په ورځ چت ته وختلی، ۲ او (د بلوه کونکو مخاطب کولو سره یې) فرمایل چې زه تاسو ته په خدای قسم درکولو سره پوښتنه در نه کوم، چې آیا تاسو ته نه ده معلومه. ۳ چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي، د یو مرد مومن خون ریزي (په هیڅ صورت کې) جائز نه وي، خو دا چې په دي دریو خبرو کې یوه خبره پیښه شي ۴ ① د نکاح کولو نه وروسته زنا کول ۵ ② د اسلام راوړلو نه وروسته مرتد کیدل ۶ ③ او څوك ناحقه قتلول. چې د هغه په بدله کې به قتلول کیږی،

---

۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الدّیات /باب الإمام یأمر بالعفو فی الدّم (رقم-۴۵۰۲) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء لا یحلّ دم امرئ مسلم إلّا بإحدی ثلاث (رقم-۲۱۵۸) والنسائی فی کتاب تحریم الدّم/باب ذکر ما یحلّ به دم المسلم (رقم-۴۰۱۹) ولبن ماجه فی کتاب الحدود/باب لا یحلّ دم امرئ مسلم. إلّا فی ثلاث (رقم-۲۵۳۳)واحمد فی المسند: ۶۱/۱

**حل اللغات** ①أَشْرَفَ: په اوچت ځائي رابنکاره شو، په چت رابنکاره شو ②يَوْمَ الدَّارِ: د کور ورځې، د عثمان رضی الله عنه د محاصرې ورځې مراد دی ③أَنْشُدُكُمْ: تاسو ته قسم درکوم ④إِحْصَانٌ: پاکوالی، حفاظت، نکاح، دلته ترې نکاح مراد ده.

[۱]فَوَاللهِ مَا زَنَيْتُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا إِسْلَامٍ، [۲]وَلَا ارْتَدَدْتُ مُنْذُ بَايَعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۳]وَلَا قَتَلْتُ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ فَبِمَ تَقْتُلُونَنِي»؟ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، وَلِلدَّارَقُطْنِيِّ لَفْظُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [۱]نو په الله جل جلاله مې دې قسم وي چې ما خو نه په زمانه د جاهليت کې زنا کړېده، او نه مې په زمانه د اسلام کې، [۲]او کله چې مې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بيعت کړي دی، تر ننه د اسلام نه نه يم ګرځيدلی، [۳]او نه مې څوك قتل کړي دی، چې د هغه قتلول د الله جل جلاله په نزد حرام وي، نو د خدای جل جلاله د پاره ماته وښايئ چې، تاسو په کومه بناء زما قتلول غواړئ، دا روايت ترمذي نسائي او ابن ماجه نقل کړي دی او د حديث الفاظ د دارمي دي

**حل اللغات** ⑤مُنْذُ بَايَعْتُ: د کوم وخت نه چه ما بيعت کړي دي.

**تسهيلات:**

**قوله، أَشْرَفَ يَوْمَ الدَّارِ:**

**د حديث مذکور مختصر پس منظر:** يوم الدار يعنی دَ کورورځ دې نه دَحضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه دَ محاصرې ورځې مراد دی ابن سبا يهودی دَ حضرت عثمان رضی الله عنه خلاف شام، مدينه، کوفه کښې پروپيګنډه اوکړه مګر کامياب نه شو مصرته تلوسره دَهغه پروپيګنډه کامياب شوه دا سړې ډير لوئی منافق وو. دَحضرت عثمان رضی الله عنه دَ ګورنرخلاف ئې دروغو پروپيګنډه کولوسره حضرت عثمان رضی الله عنه بدنامولو په مصرکښې هغه يو جنګی ګروپ تيارکړو اوبيا دا ګروپ مدينې ته راغلو او بلوه ئې شروع کړه يوه ورځ حضرت عثمان رضی الله عنه په محاصره کښې دَ خپل کور دَچت نه هغه خلقوسره خبرې اترې اوکړې اودَ خپل قتل دَ حرمت دلائل ئې ورکړلو نو آخر بلوه کونکو هم په دغه محاصره کښې هغوی شيهد کړل تفصيل به ان شاء الله روستو راځی

**[۲۴۶۷] دقتل په وجه د خير د کارو نو څخه محروميا**

۳۴۶۰-[۱۹] (۱)[۱]وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲]"«لَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ مُعْنِقًا صَالِحًا، [۳]مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا، [۴]فَإِذَا أَصَابَ دَمًا حَرَامًا بَلَّحَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابودرداء رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲]مسلمان هغه وخته پورې د نيکې طرف ته سبقت کوي، او د الله جل جلاله او د هغه د بنده ګانو د حقوق په آدائيګی کې مشغول وي، [۳]د څو پورې چې هغه حرام خون نه کوي،

---
۱) اخرجه ابوداود فی کتاب التّرجّل /باب فی تعظيم قتل المؤمن (رقم-۴۲۷۰)

۴ و هر كله چې هغه حرام خون وكړي، نو ستړى شي. (ابوداود)

**حل اللغات** ① لَايَزَالُ: هميشه. ② مُعْنِقًا: تيز تلل، په نيک کار کې وړاندې کيدل. قائم اوسيدل. ③ لَمْ يُصِبْ: چه نه وى رسيدلې، کړې نې نه وى. ④ بَلَّحَ: ستړې شو.

**تسهيلات: قوله** بَلَّحَ:

**د قتل نه پس د قاتل د نيکو نه محروميدل:** يعنى د هغه تيزى اوچالاکى ختميږى اوس هغه د نيک او ښه عمل نه جداکيږى اوالله تعالى هغه ته د نيکئى توفيق نه ورکوى تجربه شاهد ده چه قاتل د قتل د وجې نه پټيږى نود ښکاره عام عباداتومواقعو نه محروم کيږى پټ پټ کيږى ګرځى اوکله چه داحالت وى نود آخرت د ښيګړو سره سره د دنيا د ښيګړې او حلال ګټې نه هم محروم کيږى

**[۳۴۶۸] د ناحق قتل عدم بخشش**

۳۴۶۸—[۲۰] (۱) ۱ وَعَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ «كُلُّ ذَنْبٍ عَسَى اللّٰهُ أَنْ يَغْفِرَهُ ۳ إِلَّا مَنْ مَاتَ مُشْرِكًا ۴ أَوْمَنْ يَقْتُلُ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو درداء ﷛ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ د هري ګناه په باره کې دا اميد دى چې الله ﷻ هغه وبخښي، ۳ خو هغه سړي نه بخښي. چې د شرك په حالت کې مړ شي، ۴ يا چا چې يو مسلمان عمداً قتل کړي وي. (ابوداود)

۳۴۶۹—(۲) وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ مُعَاوِيَةَ.

**ترجمه:** نسائي ﷫ دا روايت د حضرت معاويه ﷛ نه نقل کړي دى

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوْمَنْ يَقْتُلُ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا:

**د مسلمان قاتل په مخلد في النار کيدو باندې اعتراض:** د دې حديث نه په ظاهرى توګه دامعلوميږى چه مؤمن ناحق قتل کونکې مسلمان به هميشه په دوزخ کښې وى او د مشرك په شان به د هغه بخشش نه کيږى حالانکه د اهل سنت والجماعة او عام امت عقيده ده چه د مؤمن قتل ګناه کبيره ده او د ګناه کبيره مرتکب مخلدفى النار به نه وى البته د خوارجو او معتزلو دا عقيده ده چه دې به مخلد فى النار وى د حديث نه په ظاهره د دې تائيد کيږى د اهل سنت مستدل ﴿ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ ﴾ آيت دي

۱) اخرجه ابوداود فى كتاب التّرجّل /باب فى تعظيم قتل المؤمن (رقم - ۴۲۷۰)
۲) اخرجه النسائى فى السنن كتاب تحريم الدّم(رقم - ۳۹۸۴) واحمد فى المسند: ۹۹/۴

**د اعتراض جوابونه:** ① دا حديث د هغه سړي باره کښې دې چه قتل مسلم جائزګڼړي نوهغه کافر دې "مخلد في النار" دې

② دا حديث په تغليظ اوتشديد اوتهديد اوتوبيخ باندې محمول دې

**[۲۴۷۰] د پلار محفه د خوني د قصاص حکم**

۳۴۷۰-[۲۱] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا تُقَامُ الْحُدُودُ فِي الْمَسَاجِدِ، [۳] وَلَا يُقَادُ بِالْوَلَدِ الْوَالِدُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په مسجدونو کې دې حدود نشي جاري کولی، [۳] او نه دې د اولاد د قتل په بدله کې پلار قتل کړل شي بلکه د پلار نه دې ديت يعنی مالي معاوضه واخستی شي، ترمذي. دارمي

**حل اللغات** ① اَلْحُدُودُ: شرعی سزا ګانې. ② وَلَا يُقَادُ: نه به شی قتلولې. قصاص به نشی اخستلې

**تسهيلات:**

**قوله في المساجد**

**په جماتونو کښې د حدودو د نفاذ حکم:** دَحديث دَدې اولنی جزء مطلب دادې چه په جماتونوکښې حدود مثلاً دَ غلا حد يا دَ زنا يادَ خمر يا حدقذف مه جاری کونی دغه شان قصاص هم په جمات کښې مه اخلئی ځکه چه جماتونه صرف دَ فرض مونځونو سنن ونوافلو اودَ الله تعالی دَ کلام دَ تلاوت دَپاره جوړشوی دی

**قوله لَا يُقَادُ بِالْوَلَدِ الْوَالِدُ:**

**د خوني په قتل کښې د مور پلار عدم قصاص:** يعنی که پلار خپل خوئی قتل کړی نوهغه به د مقتول خوئی په بدله کښې په توګه دَ قصاص مه قتل کونی هم دغه حکم دَ نيکه او غرنيکه هم دې اوهم دغه حکم دَ مور اونياګانو هم دې دَعلماء کرامو په دې باندې اتفاق دې که خوئی مور پلار قتل کړل نودغه بدبخت به په قصاص کښې قتل کولې شی

**د خوني په ذبح کولو کښې د پلار په قصاص ۲ مذاهب:**

① امام مالك رحمه الله فرمائی که پلار خوئی په مروجه طريقه سره مړکړو نومسئله داسې ده ځنګه چه جمهوروائی ليکن که پلار خوئی ذبح کولوسره مړ کړو نوبيابه دَدې ظالمانه اووحشيانه فعل د وجې نه د پلار نه قصاص اخستلې شی

② جمهورفرمائی پلاربه دخوئی په قصاص کښې مطلقاً نشی قتل کولې

**د اول فريق د مذهب جواب:** زيربحث حديث مطلق دې په دې کښې دَ ذبح او غيرذبح څه

۱) اخرجه الترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم باب ما جاء في الرّجل يقتل ابنه يقاد منه أم لا (رقم ۱۴۰۱) والنسائي في كتاب الديات/باب لا يقتل والد بولده (رقم ۲۶۶۱) واحمد في المسند: ۱۶/۱

ذكر نشته نو نود امام مالك رحمه الله رائي به پريخودلې شي

**د دويم فريق دلائل:** ① زيربحث حديث د دوى مستدل دې خكه چې دا په دې كښې صريح دې چه د پلار نه به د خونى د قتل په بدله كښې قصاص نه شى اخستې،

② پلار د دغه خونى د ژوند ذريعه جوړشوې دې اوس دا خونى د پلار د مرګ ذريعه نه شى جوړيدې قرآن كريم كښې الله تعالى خونى ته د موړپلار شكر په خانى راوړلو حكم وركړې دې اوهغوى ته د تكليف نه وركولونى سخت تاكيد كړې دې اوهغوى سره په نرمئى سره د پيش كيدو تلقين ئى كړې دې

③ په احاديثو كښې "انت ومالك لابيك" الفاظ راغلى دى په كوم سره چه خونى د پلار د مملوك مال په شان كيږى اوس به د هغه نه قصاص نه شى اخستې په دنيا كښې د شريعت حكم دادې او د آخرت معامله الله تعالى ته حواله ده البته په دنيا كښې به د پلار نه ديت اخستې شى

**[۳۴۷۱] پلار او ځوئى هريو د خپلې ګناه ذمه واركيدل**

[۲۲] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي رِمْثَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: «أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ أَبِي [۲] قَالَ: "مَنْ هَذَا الَّذِي مَعَكَ؟ [۳] قَالَ: ابْنِي أَشْهَدُ بِهِ. [۴] قَالَ: "أَمَا إِنَّهُ لَا يَجْنِي عَلَيْكَ وَلَا تَجْنِي عَلَيْهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابو رمثه رضي الله عنه وايي چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت كې د خپل پلار سره حاضر شوم [۲] نو حضور ﷺ وفرمايل چې دا ستاسو سره څوك دى؟ [۳] زما پلار ورته اوويل دا زما ځوى دى، ته ﷺ ګواه اوسه چې دازمازوي دي. [۴] حضور ﷺ وفرمايل چې خبردار ته به په ده تيرى او ظلم نه كوى او دى به په تا تيرى او جنايت نه كوى. ابوداود نسايي.

**حل اللغات:** ① أَشْهَدُ بِهِ: ته ګواه اوسه ② لَا يَجْنِي: ظلم، جرم، زياتي به نه كوى.

[۱] وَزَادَ فِي " شَرْحِ السُّنَّةِ " فِي أَوَّلِهِ [۲] قَالَ: «دَخَلْتُ مَعَ أَبِي عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى أَبِي الَّذِي بِظَهْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [۳] فَقَالَ: دَعْنِي أُعَالِجُ الَّذِي بِظَهْرِكَ فَإِنِّي طَبِيبٌ. [۴] قَالَ: " أَنْتَ رَفِيقٌ وَاللَّهُ الطَّبِيبُ» ".

**ترجمه:** [۱] او صاحب مصابيح په شرح السنه كې د دې او د روايت په شروع كې دا الفاظ هم نقل كړي دي [۲] چې ابو رمثه رضي الله عنه اوويل كوم وخت چې زه د خپل پلار سره د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شوم، او زما پلار د رسول الله ﷺ په شا مباركه مهر نبوت

---

۱ ) اخرجه ابوداود فى كتاب الديات/باب لا يؤخذ أحد بجريرة أخيه أو أبيه (رقم-۴۴۹۵) والنسائى فى كتاب القسامة /باب هل يؤخذ أحد بجريرة غيره (رقم-۴۸۳۲) واحمد فى المسند: ۱۶۳/۴

وليدلو، ③نو هغه د دې په حقيقت پوهه نه شو ، او هغه اوويل چې ماته اجازت راکړه چې ستا په شاه څه څيز دی، زه د دې علاج وکړم، ځکه چې زه طبيب يم، ④رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته (خو بس) رفيق يې طبيب (خو) الله ﷻ دی

**حل اللغات**: ③بِظَهْرِ: شا،ملا. ④دَعْنِي: ما پريږده، اجازت راكړه، ⑤أُعَالِجُ: چه علاج اوکړم، ⑥طَبِيبٌ: ډاکتر، حکيم،

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَنْ أَبِي رِمْثَةَ : حضرت ابورمثه رفاعه التيمي**: نوم رفاعة، کنيت ابورمثة اوقبيله تيم سره ئې تعلق لرلو. غالبًا دَ مکې دَ فتح نه پس په اسلام مشرف شوې وو. دَ هغه دَ دين بڼره کښې سوال باندې رسول الله ﷺ هغه په کرسئی باندې کينولواو دَ دين ضروري تعليم ئې ورکړو (مسلم).

ابورفاعه کښې دَ جهاد ډيره جذبه وه اوهغه به دعاهم کوله چه اې الله ماته داسې مرګ رانصيب کړې چه دَ نورو مسلمانانودپاره دَ پسخيدو سبب وی.(۱) اوهم داسې اوشو۴۴هـ کله چه په کابل باندې حمله اوشوه په سجستان کښې تولـه شپه عبادت کولونـه پس ئې سحر سترګې ورغلې فوځ ورانـدې لاړواودې هـم هلتـه اوده وو نودښمنـانو دې يـوازې اوليدو نو ذبح ئې کړو.(۲) دهغه نه څه روايات نقل دی چه دَ هغې په شميرکښې اختلاف دې.

**قوله: ابْنِي إِشْهَدْ بِهِ:**

**د جاهليت يو قانون**: دې کلام سره دَ ابورمثه دَ والد مقصددَ جاهليت دَ زمانې دَ يودستور او رواج طرف ته اشاره کول وو. په جاهليت کښې دا رواج وو چه دَ پلار په جرم کښې به خونی نيولې کيدو اودَ خونی په جرم کښې به دَ پلار مواخذه کيدله. لکه هريوبه دَ بل په جرم کښې دَ مواخذه قابل ګڼړلې شو. دَ ابورمثه دَ پلار مقصد هم دَ دې کلام نه دغه وو چه دازما صلبی خونی دې ته په دې باندې ګواه اوسيږه که چرې ده څه جرم اوکړو نوزه به دَ ده ذمه وار يم اوکه ما څه جرم اوکړو نو زما دا خونی به دَهغې ذمه وار وی

**قوله: أَمَا إِنَّهُ لَا يَجْنِي عَلَيْكَ وَلَا تَجْنِي عَلَيْهِ:**

**د جاهلی قانون خاتمه**: ددې په جواب کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل اوس به داسې نه کيږي اوس به خونی خپل پلار په خپله ګناه او جرم کښې نه شي راګيرولې اونه به پلار خپل خونی په خپله ګناه کښې راګيرولې اوس دَ جاهليت دا غيرمنصفانه رواج ختم شو. اوس به هرسړې دَخپلې ګناه اوخپل جرم په دنيا اوآخرت کښې پخپله ذمه وار وی.

(۱) الطبقات ابن سعد ۴۸/۷). (۲) طبقات ابن سعد) (۳) مسلم فی الحج باب جواز دخول مکة بغير إحرام)
(۴) سيرت خيرالعباد. (۵)حاوی ۷۸/۲. (۶)مسلم فی الحج باب جواز دخول مكة بغير إحرام).

**قوله**: أَنْتَ رَفِيقٌ:

**د ابو رمثه د غلط فهمي ترديد**: دَ ابورمثه پلار دَنبی کریم په شامبارکه باندې مهرنبوت اوليدلو نوخيال ئې اوکړوچه دا چرته پولئې او دانه ده په دې وجه هغه اووئيل تاسو ماته اجازت راکړئې چه زه دَدې علاج اوکړم داخبره دَډيرې ناداننې دَ وجې نه وه اُو به دې کښې دَ بې ادبئې اړخ هم ووپه دې وجه نبی کریم ډيرخفه شو اوونې فرمانيل ته طبيب نۀ ئې بلکه رفيق ئې يعنې دَ مرض اوبيمارئې ظاهري حالت ته په کتو سره دَدې مطابق دوائې تجويزکولوسره ورکولې شې دَ مرض حقيقت ته رسيدل اوشفاورکول ستاکارنه دې ته صرف مريض سره نرمې کولې شې بس نرمې کوه طبيب خودَ الله تعالى ذات دې چه دَ مرض حقيقت هم پيژنې اودارو اوعلاج هم پيژنې اوهم هغه شفاورکوی دَ نورو په اختيارکښې دا څيزونه نه وی نوته خو صرف مهربان کيدې شې شفاورکونکې نه شې کيدې

**[٢٤٧٢]د خوی څخه د پلار د قصاص اخستلو حکم**

| ٣٤٧٢—[٢٣] (١) ①وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، «عَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ②حَضَرْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقِيدُ الْأَبَ مِنِ ابْنِهِ، ③وَلَا يُقِيدُ الِابْنَ مِنْ أَبِيهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَضَعَّفَهُ. |
|---|

**ترجمه**: ①و حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه او هغه د حضرت سراقه ﷺ ابن مالك نه روايت کوي ②چې هغه اوويل زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوی يم، حضور ﷺ به د خوی نه د پلار قصاص آخستلو. ③ليکن د پلار نه د خوی قصاص يي نه آخستلو، ترمذي ﷫ دا روايت نقل کړي دی او دا يي ضعيف ګرځولی دی

**حل اللغات**: ①حَضَرْتُ: حاضر شوم، ②يُقِيدُ: قصاص ئې اخستلو

**تسهيلات**:

**قوله**: يُقِيدُ الْأَبَ مِنِ ابْنِهِ:

يعنې که زوې خپل پلار اووژنې نو د پلار په قصاص کښې به زوې قتل کيږی ليکن که پلار خپل زوې اووژنې نو پلار به د زوې په قصاص نشو قتل کولې بلکه دده د خون بها (دوينې معاوضه)به اخستې شوه

١) اخرجه الترمذی فی کتاب الدّيات عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی الرّجل يقتل ابنه يقاد منه أم لا (رقم-١٣٩٩)

**[۲۴۷۲] د غلام په قصاص كښې د آزاد د قتلولو حكم**

۳۳۰۳ - [۲۳] (۱) [۱] وَعَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ، [۳] وَمَنْ جَدَعَ عَبْدَهُ جَدَعْنَاهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.
[۴] وَزَادَ النَّسَائِيُّ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: " «وَمَنْ خَصَى عَبْدَهُ خَصَيْنَاهُ» ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت حسن (تابعي رحمه الله) د حضرت سمره (صحابي رضي الله عنه) نه روايت كوي هغه اوويل چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] كوم سړى چې خپل غلام قتل كړي مونږ به هغه قتلوو، [۳] او كوم سړى چې د خپل غلام اعضاء (يعني پزه، غوږ، لاس، پښه وغيره) پريكړي مونږ به د هغه اعضاء پريكړو (ترمذي ابوداود ابن ماجه دارمي) [۴] او نسائي رحمه الله په يو دويم روايت كې دا الفاظ هم نقل كړي دي چې كوم سړى خپل غلام خصي كړي مونږ به هغه خصي كړو

**حل اللغات** ① جَدَعَ: پريكړلو، (اندام پريكول) ② خَصَى: خصى ئې كړلو، د شهوت ماده ئې ختموه كړه

**تسهيلات:**

**قوله مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ:**

**د غلام په مقابله كښې د حر په قصاص كښې ۲ مذاهب:**

كه چرې غلام آزاد سړې قتل كړو نو په اتفاق سره به د دغه غلام نه قصاص اخستې شي ليكن كه يو آزاد سړى چرته غلام قتل كړو نو آيا د دغه آزاد نه به قصاص اخستې شي كه نه؟ په دې كښې د فقهاء كرامو اختلاف دې

① جمهور فرمائي چه د غلام بدله كښې به حر او آزاد سړې نه شي قتل كولې كه هغه غلام د ده خپل وي او كه د بل چا غلام وي

② ائمه احناف فرمائي كه چرې آقا خپل غلام قتل كړي نو په دې كښې به د آقا نه قصاص نه شي اخستې ليكن كه هغه د بل چا غلام قتل كړو نو قصاص به اخستې شي

**داول فريق دليل:** د قرآن كريم د آيت ﴿الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ د اول فريق مستدل دې او مفهوم مخالف ئې اخستې دې چه د آزاد بدله كښې آزاد دې نو د غلام په بدله كښې به د آزاد نه قصاص نه شي اخستې لكه چه څنګه دا مسئله وړاندې تيره شوه

**داول فريق د دليل جوابونه:** ① دواړو فريقينو دپاره په يوځائي ددې حديث جواب وركول

---

۱) اخرجه ابوداود في كتاب الديات/باب من قتل عبده او مثل به أيقاد منه (رقم - ۴۵۱۶) والترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرجل يقتل عبده (رقم - ۱۴۱۴) والنسائي في كتاب القسامة/باب القود من السيد للمولى (رقم - ۴۷۳۶) وابن ماجه في كتاب الديات/باب هل يقتل الحر بالعبد (رقم - ۲۶۶۴) واحمد في المسند: ۵/۱۰

دی څکه چه دا روایت دباقی تولو روایاتو اوقواعدوسره معارض دي ددي دپاره چه د اندام په بدله کښې اندام پرې کولوحکم اود خصی کولو په بدله کښې د خصی کولوحکم د چاپه نیزهم نشته دې نو ددې روایت جواب ورکول دټولوذمه واری ده نواول جواب دادې چه دا حکم د زجرتوبیخ او تشدید اوتغلیظ په بنیادباندې دې اوپه دې کښې دا سیاسی حکمت پټ پروت دې چه خلق د خپلو غلامانود قتل کولوجرأت اونه کړی اونه دهغوی د اندامونو په پرې کولوکښې تادئی نه کار واخلی

② "عبده"نه د تیرې شوې زمانې غلامی مراد ده نه چه فی الحال دې غلام دې اوس خودې آزاددې لیکن یو وخت هغه ددې مولی غلام وو په دې اعتبارسره ورته غلام اووئیلې شو نو د آزادسړی متعلق چه کوم حکم په دې حدیث کښې دې په هغې کښې د چااختلاف نشته دې

**د دویم فریق دلائل خمسه:** ① د قرآن کریم هغه آیاتونه هم د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه د نفس په بدله کښې د نفس حکم ذکردې دهغې تفصیل چه په حدیث نمبر(۳۳۳۶) کښې تیرشوې دې

② د نسائی یوروایت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه داسې دی ((لايقاد المملوك من مولاه)) (نسائی) داد احناف په مدعاباندې یودلیل دې چه د آقا نه د غلام دپاره قصاص نشته دې

③ ((عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ان رجلاً قتل عبده متعمداً فجلده النبي ﷺ مصلاة جلدة ونفاه سنة ومحا سهمه من المسلمين ولم يقده به وامره ان يعتق رقبة)) (دارقطنی او بیهقی ،بحواله زجاجة المصابیح ۱۸/۳) ددې حدیث نه هم ثابته ده چه د آقا نه به قصاص نه شی اخستې

④ هغه دردناك واقعه هم د دوی مستدل دې په کومه کښې چه ذکر دی یوسړی خپله وینځه د زنا په تهمت کښې په اور باندې کینوله اود هغې شرمګاه ئی اوسیزله دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه په وړاندې مقدمه پیش شوه هیڅوك ګواه نه وو نه وینځې د زنا اعتراف اوکړونوحضرت عمر فاروق رضی الله عنه هغه سړی ته اوفرمائیل ((لولم اسمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول لايقاد مملوك من مالكه لاقدتها منك)) (زجاجة المصابیح ۱۹/۳)

⑤ عقلی دلیل دادې چه د مولی او غلام په قصاص کښې شبه راغله څکه چه غلام د مولی په ملکیت کښې دې البته په شبه سره قصاص ختم شو

## [٢٤٧٤]د ديت مقدار او د اوښانو نوم ونه

٣٣-[٣٥] (١) ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ٢ «مَنْ قَتَلَ مُتَعَمِّدًا دُفِعَ إِلَى أَوْلِيَاءِ الْمَقْتُولِ: ٣ فَإِنْ شَاءُوا قَتَلُوا، ٤ وَإِنْ شَاءُوا أَخَذُوا الدِّيَةَ: ٥ وَهِيَ ثَلَاثُونَ حِقَّةً وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً وَأَرْبَعُونَ خَلِفَةً. ٦ وَمَا صَالَحُوا عَلَيْهِ فَهُوَ لَهُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عمرو ابن شعب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړی چې قتل عمداً وکړي هغه دې د مقتول وارثانوته حواله شي ٣ خواه که هغه هغه (د مقتول په بدله کې) قتل کړي، ٤ او که د هغه نه ديت يعنی خون بها واخلي ٥ او د خون بها (مقدار او تعداد) دادی چې ديرش اوښې هغه وي چې (د دريم کال نه تيريدو سره) په څلورم کال کې وي، او ديرش اوښې هغه وي چې په پنځم کال کې وي. او څلويښت اوښې هغه وي چې بلاربې (حامله) وي ٦ (د دې نه علاوه) او په کوم څيز چې صلح وشي، په هغوئ به د هغه مقدار وي (يعني ديت چې د مقتول د وارثانو حق دی د هغه اصل مقدار او تعداد خو دغه دی، خو که وارثان په کم راضي شي نو په قتال به هغه واجب وي)

**حل اللغات** ① دُفِعَ: حواله دې کړې شی، ② الدِّيَةَ: خون بها، مالی معاوضه، ③ خَلِفَةً: بلاربه اوښه

**تسهيلات:** قوله: وَإِنْ شَاءُوا أَخَذُوا الدِّيَةَ: وَهِيَ ثَلَاثُونَ حِقَّةً..الخ:

**فائده: زکاة سره متعلق بعضې اصطلاحی ټکی:**

① حقة،بنت مخاض: هغه ماده اوښه ده دکوم چه يوکال پوره شوې وی او په دويم کښې داخله شوې وی

② "بنت لبون" هغه ښځه اوښه ده دکومې چه دوه کاله پوره شوې وی او په دريم کښې داخله شوې وی

③ "حقة" هغه ښځه اوښه ده دکومې چه درې کاله پوره شوې وی او په څلورم کښې قدم ايښودې وی

④ "جذعه" هغه ښځه اوښه ده دکومې چه څلور کاله پوره شوې وی او پنځم کښې قدم ايخودې وی دې نه پس

⑤ "ثني" ده داهغه اوښ يا اوښه ده چه په شپږم کال کښې داخل شی

⑥ "رباعی" هغې اوښ ته وائی کله چې هغه په اووم کال کښې قدم کيږدی او مادې ته رباعيه وائی

١) اخرجه الترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في الدية كم هي من الإبل (رقم-١٣٨٧) والنسائي في كتاب الديات /باب من قتل عمدا فرضوا بالدية (رقم-٢٦٢٦) واحمد في المسند:٢/١٨٣

⑦ "سديس" هغې اوښ ته وائي كله چه هغه اووه كاله پوره كړي او په اتم كښې داخل شي
⑧ "بازل" هغې اوښ ته وائي كله چه هغه اته كاله مكمل كړي په نهم كال كښې داخل شي دې نه پس كه هغه په لسم كال كښې هم داخليږي هغه ته "بازل" او "مخلف" هم وائي دې نه پس د يوعمردپاره هم څه خاص نوم نشته دې البته "بازل" سره د عام لفظ لګولو نه اندازه كولې شي دغه شان "مخلف" سره دعام لفظ لګولو سره وئيلي شي "بازل عام وبازل عامين" او "مخلف عام ومخلف عامين"

**قوله:** - "وَأَرْبَعُونَ خَلِفَةً"

**د خون بها په ترتيب كښې ۲ مذاهب:**

① دَدې جمع خلفات ده حمل دارې اوښې ته وائي په قتل عمد كښې دَ قصاص په ځائي كه په ديت او خون بها باندې طرفين راضي وي نو دَ خون بها باره كښې دَامام شافعي رحمه الله په نيز هم دغه ترتيب دې كوم چه په دې حديث كښې دې. چه ديرش حقه وي او ديرش جذعه وي او څلويښت خلفات يعني حاملې وي.

② دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَخون بهاترتيب دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَ روايت مطابق داسې دې چه ۲۵ بنت مخاض وي۲۵ بنت لبون ۲۵ حقه او ۲۵ جذعه اوښې وي دَ شوافعو په نيزچه دَاثلاثاً دَديت اداكولو كوم ترتيب دې دا ديت مغلظه دې دَ احناف په نيز دَ ارباعاً والا ترتيب ديت مغلظه دې.

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث داول فريق مستدل دې. په كوم كښې چه دَ اثلاثاً ترتيب دې

**داول فريق د دليل جواب:** دَ ددويم فريق په نيز كوم روايات د دوی مستدلات دی هغه دَ زير بحث حديث نه راجح دی. دا روايت د هغې رواياتو مقابله نشي كولې

**د دويم فريق دلائل:** دَ سائب بن يزيد رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې دكوم الفاظ چه دادي ‹‹روي الزهري عن السائب بن يزيد قال كانت الدية على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم رباعاً خمساً وعشرين جذعة وخمساً وعشرين حقة وخمساً وعشرين بنت لبون وخمساً وعشرين بنت مخاض›› (كذا في المغنى تعليق الصبيح ۴/ ۱۳۲)

② دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه هم د دوی مستدل دې كوم چه امام ابو داؤد رحمه الله نقل كولوسره سكوت فرمائيلې دې كوم چه دَ حديث دَ صحت نښه ده دَحديث الفاظ دادي ‹‹عن علقمة والاسود قالا قال عبدالله في شبه العمد خمس وعشرون حقة وخمس وعشرون جذعة وخمس وعشرون بنات لبون وخمس وعشرون بنات مخاض›› (رواه ابو داؤد) په دې كښې هم دَارباعاً ترتيب ذكردې لكه چه پورته دَ حضرت سائب رضي الله عنه په روايت كښې دی.

**[۲۴۷۵] په قصاص او ديت كښې د ټولو مسلمانانو برابري**

۳۴۷۵ - [۲۶] (۱) ۱ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ «اَلْمُسْلِمُوْنَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ، ۳ وَيَسْعٰى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ، ۴ وَيَرُدُّ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ، ۵ وَهُمْ يَدٌ عَلٰى مَنْ سِوَاهُمْ، أَلَا لَا يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ، وَلَا ذُوْ عَهْدٍ فِيْ عَهْدِهٖ» . رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت علي كرم الله وجهه د نبي كريم ﷺ نه روايت كوي حضور ﷺ وفرمايل ۲ په قصاص او ديت كې ټول مسلمانان برابر دي، ۳ او يو ادنى مسلمان هم آمان وركولى شي. ۴ او د لرې والا مسلمان هم حق لري، او ټول مسلمانان د يو لاس په شان دي يعني ټول مسلمانان د غير مسلمو په مقابله كې په خپلو كې د يو بل مددگار كيدو ۵ او د يو بل سره د اتفاق او اتحاد ساتلو او په خپلو كې اختلاف نه كولو كې د يو لاس په شان دي. چې څنگه يو څيز نيولو يا د سكون او حركت په موقع د يو لاس په ټول اجزاؤ كې څه مخالفت يا جدايي نه وي، دغه شان مسلمانانو ته هم پكار دي چې د غيرو په مقابله كې متحد او متفق وي، او په خپلو كې د يوبل مدد كوي، او خبردار د كافر په بدله كې دې مسلمان نشي وژلى. او نه عهد والا (يعني ذمي) دې وژلى شي، د څو پورې چې هغه په عهد وامن كې وي. (ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ۱ تَتَكَافَأُ: برابر دي، ۲ وَيَسْعٰى: حقدار دي ۳ بِذِمَّتِهِمْ: امان وركولې شي ۴ أَدْنَاهُمْ: ادنى، معمولى په دوى كښې ۵ أَقْصَاهُمْ: لرې په دوى كښې، ۶ يَدٌ: لاس، موټې، متفق. ۷ ذُوْعَهْدٍ: عهدولا، ذمى.

**تسهيلات:**

**قوله: اَلْمُسْلِمُوْنَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ:**

**كفاءت في الدماء نه مراد:** دادكفاءت نه دې چه دَ مساوات اوبرابرنى په معنى كښې دې يعنى د خون بها اخستلو وركولو اوقصاص كښې ټول مسلمانان يوشان برابر دى په يوادنى او اعلى كښې يا شريف او رذيل كښې يا په لوئى وړوكى كښې يا په نيك عمل اوبدعمل كښې يا عالم جاهل يا اميرغريب يا ښځه اوسړى كښې دَ ديت اوقصاص هيڅ فرق نشته دې دا نشته چه دَ لوئى ذات والا ديت به زيات وى اودَ وړوكى ذات والا ديت به كم وى اوس دادَ اسلام عادلانه نظام دې دَ جاهليت ظالمانه فرق اوس ختم شوې دې چه د اوچتې طبقې اوخاندان دَ سړى قصاص دَ يوپه ځاى دوه او درې وژلې شى

۱ ) اخرجه ابو داود فى كتاب الديات/باب أيقاد المسلم بالكافر(رقم-۴۵۳۰) والنسائى فى كتاب القسامة/باب سقوط القود من المسلم للكافر(رقم-۴۷۴۶) واحمد فى المسند: ۱۲۲/۱

**قوله:** **وَيَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ:**
**د ادنى مسلمان د امن ور کولو صحت:** يعنى يوکمزوري مسلمان که هرڅومره ګمنام ولى نه وى يا ښځه اوسري مسلمانان غلامان ولې نه وى هغه که يوکافرته امن ورکړى نوټولو مسلمانانوله د هغه احترام کول پکار دى او دغه کافرته امن ورکول پکار دى
**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**
**قوله:** ① **وَيَرُدُّ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ:** يعنى دَ اسلام دَ لښکر نه چه مثلاً يو وړوکې ټولګې جدا شو اولرې لاړو اوجنګيدو اومال غنيمت ئې حاصل کړو نو په هغوى باندې لازم دى چه هغوى دې مال غنيمت راوړى او مرکز او بيت المال کښې دې جمع کړى دَ دغه ټولګى په دغه مال باندې خپل هيڅ حق نشته دې
**قوله:** ② **وَهُمْ يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ:** يعنى دَ دنيا ټول مسلمانان دَ کافرانو په مقابله کښې دَ اوسپنې دَ يو ديوال په شان دى يولاس دې چرته هم چه په يومسلمان باندې دَ کافرانو دَ طرف نه ظلم اوزياتې کيږى نو په ټولو مسلمانانو باندې فرض دى چه هغوى دَ خپلو مسلمانانوروڼړو امداداوکړى. په دې حديث کښې مسلمانانوته دا دستاويزى حکم ورکړې شوې دې چه څنګه "الكفرملةواحدة" دى دغه شان مسلمانان هم دکافرانو په مقابله کښې يولاس دى هغوى دَ يوبل دَ امداد نه خلاصيدې نه شى.
**قوله:** **أَلَا لَا يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ : په حديث کښې د کافرنه مراد :** دَ احنافو په نيز دلته دَ کافرنه حربى کافر مراد دې چه دَ هغه په قصاص کښې به مسلمان قتل کولې نه شى اودَ ذمى په بدله کښې به قتل کولې شى. دلته دَ ذمى جدا ذکر کول دَدې خبرې دليل دې چه دَ کافرنه مراد حربى دې اودَ ذمى حکم جدا دې.

| ۲۴۷۶ـــ(۱) وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. |
| --- |

**ترجمه:** او ابن ماجه رحمه الله دا روايت د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې دى

**[۲۴۷۷] مقتول اوزخمى ته د دريو څيزونو اختيار**

| ۲۴۷۷ـــ[۲۷] (۲) ۱ وَعَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْخُزَاعِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ۲ "«مَنْ أُصِيبَ بِدَمٍ أَوْ خَبْلٍ - وَالْخَبْلُ: الْجُرْحُ - فَهُوَ بِالْخِيَارِ بَيْنَ إِحْدَى ثَلَاثٍ، ۳ فَإِنْ أَرَادَ الرَّابِعَةَ فَخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ: ۴ بَيْنَ أَنْ يَقْتَصَّ ۵ أَوْ يَعْفُوَ ۶ أَوْ يَأْخُذَ الْعَقْلَ، فَإِنْ أَخَذَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا ثُمَّ عَدَا بَعْدَ ذَلِكَ فَلَهُ النَّارُ خَالِدًا فِيهَا مُخَلَّدًا أَبَدًا» "رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ. |
| --- |

۱ ) اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الدّيات /باب المسلمون تتكافأ دماؤهم (رقم -۲۶۸۳)
۲ ) اخرجه ابوداود فى كتاب الدّيات /باب الإمام يأمر بالعفو فى الدّم (رقم -۴۴۹۶) وابن ماجه فى كتاب الدّيات /باب من قتل له قتيل فهو بالخيار بين إحدى ثلاث (رقم -۲۶۲۳)

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو شريح خزاعي ﷺ وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي [٢] كوم سرى چې د قتل ناحق يا زخم په وجه غمزده وي (يعني د كوم سړي مورث چې ناحق قتل شوى وي، يا د هغه د بدن يو اندام پرې شوى وي) نو هغه په دريو څيزونو كې د يو شي د اختيارولو حقدار دى، [٣] او كه هغه (د هغه دري څيزونو نه زائد) د څلورم څيز طلبگار وي ، نو د هغه لاس ونيسى (يعني هغه د هغه څلورم طلب كولو نه منع كړه) او هغه دري څيزونه دا دي [٤] ① يا خو هغه دي قصاص واخلي [٥] ② يا معاف دي كړي [٦] ③ يا مالي معاوضه دي واخلي، بيا كه هغه په دريو څيزونو كې يو څيز اختيار كړي، او د دې نه وروسته د دويم څيز اضافه يې وكړه (يعني مثلًا مخكې خو هغه معاف كړي، بيا وروسته د قصاص يا مالي مطالبه وكړه) نو د هغه د پاره د دوزخ اور دى، چې په هغه كې به هميشه اوسيږي، په هغه كې به هميشه ساتل كيږي، او هيڅ كله به تري نه نه اوځي، (دارمي)

**حل اللغات** ①أُصِيبَ: چه ورته رسيدلي وى، مبتلاشوي وى، ②خَبْل: زخم. ③الْجُرْحُ: زخم. ④أَنْ يَقْتَصَّ: قصاص دې واخلى، ⑤الْعَقْلَ: ديت، مالى معاوضه. ⑥عَدَا: د زياتى مطالبه كوى، زياتې او تجوز كوى

**تسهيلات:**

**قوله**: فَلَهُ النَّارُ خَالِدًا فِيهَا مُخَلَّدًا أَبَدًا . په دوزخ كښې دَ هميشه اوسيدوحكم تشديدًا تغليظًا اوزجرًا وتوبيخًا وتهديدًا دي

**[٣٤٧٨] د قتل خطاء حكم**

[٢٨] (١) [١] وَعَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] " «مَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيَّةٍ فِي رَمْيٍ يَكُونُ بَيْنَهُمْ بِالْحِجَارَةِ، أَوْ جَلْدٍ بِالسِّيَاطِ أَوْ ضَرْبٍ بِعَصًا، [٣] فَهُوَ خَطَأٌ ; وَعَقْلُهُ عَقْلُ الْخَطَإِ، [٤] وَمَنْ قَتَلَ عَمْدًا فَهُوَ قَوَدٌ [٥] وَمَنْ حَالَ دُونَهُ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَغَضَبُهُ، [٦] لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت طاوس رحمه الله د ابن عباس ﷺ نه او هغه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] كوم سرى چې د خلقو په منځ كې د كانړو په ويشتو يا د دورو او كوتكو بې دريغه گذارونو كې ووژل شي (يعني دا معلومه نه شي چې قاتل څوك دى) [٣] نو دا قتل (د گناه نه كيدو په اعتبار سره) به د قتلِ خطاء په حكم كې وي (څكه چې هغه بلا قصد قتل شوى دى) او هغه ديت، د قتلِ خطاء ديت دى [٤] او كوم سرى چې قصداً ووژل شو ، نو د هغه قتل، قصاص واجب كوي، [٥] او كوم سرى چې د قصاص په اخستو كې

١ ) اخرجه ابوداود في كتاب الديات/باب من قتل في عميا بين قوم (رقم-٤٥٤٠) والنسائى فى كتاب القسامة/باب من قتل بحجر أو سوط (رقم-٤٧٨٩) وابن ماجه فى كتاب الديات/باب من حال بين ولىّ المقتول وبين القود أو الدية (رقم-٢٦٣٥)

حائل (مزاحم) وي، په هغه د الله ﷻ لعنت او د هغه غضب دی، ⑥نه د هغه نفل قبليږي ، او نه فرض. (ابوداود ، نسايي)

**حل اللغات:** (۱) عِمِّيَّةٍ :دَعين کسره اوميم مشدد کسره اويامشدده سره دي. داداسې فتنې او بې حده زيات ډزو يا کاڼرو ويشتلوته وائی دَ کوم چه دَ صحيح صورت حال اندازه نه شی کيدې. (۲) رَمْيٌ: ويشتل، غوزارونه کول. (۳) الْحِجَارَةِ: کاڼری (۴) حَلْبٍ بِالسِّيَاطِ :دُورو سره وهل. (د څرمن دُوره)، (۵) عَصًا: همسا ، کوتک ، (۶) عَقْلُ الْخَطَأِ: د قتل خطا ديت، (۷) قَوَدٌ: قصاص، (۸) حَالَ: حائل شو، مزاحم شو ، (۹) صَرْفٌ: نفلی عبادت، (توبه) (۱۰) عَدْلٌ: فرض عبادت، (فديه)،

**تسهيلات: قوله:** مَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيَّةٍ:

**په هجوم کښې په قتل باندې عدم قصاص:** دَ حديث مطلب دادې مثلاً دَ دوو ډلو جنګ دې اوطرفين نه په يوبل بې شميره کاڼرو وريدو يا کوړو او ياد ډنډو استعمال شروع دې. او په جنګ کښې څوك سرې مړشی نو دا قتل خطاء دې کوم چه قصاص نه واجبوی بلکه داقتل بالمثقل دې کوم چه ديت واجب کوی اودا ديت به په عاقله باندې راځی.

**د قتل شبه عمد په تعريف کښې اقوال:**

① په کوم يومثقل څيز سره ئی اووژنی دې قسم قتل ته فقهاء شبه عمدوائی

② دَ شوافعو اوصاحبينو په نيز دَ شبه عمد تعريف دادې چه قصداً يو سړې بغيردَ آله قتل نه په يوځل اووهی په کوم سره چه عموماً دَ چامرګ نه واقع کيږی. لکه وړوکې کاڼرې يا په وړوکی چوکې سره قتل کول.

③ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَ قتل شبه عمدتعريف داسې دې هغه قتل چه قصداً اوکړې شی ليکن په يوداسې څيزسره چه نه دَ اوسپنې وی او نه په تفريق اعضاء کښې دَ اوسپنې په شان وی. لکه په کاڼری او همساسره قتل کول.

**ثمره د اختلاف:** دَ احنافو اوشوافعو دَ اختلاف ثمره داده که يوسړی بل سړې په يو دروند کاڼری يا پيړه درنه همسا باندې اووهی نودَ شوافعو په نيز داقتل عمد دې په کوم کښې چه قصاص دې اودَ احنافو په نيزبه شبه عمدوی

**په مذکوره حديث سره د امام ابوحنيفه تائيد:** دَ زيربحث حديث دَ ظاهری الفاظ نه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دَ مسلك تائيد کيږی ځکه چه مطلق کاڼری او چوکه دروندنه درونډ او دَ لوئی نه لوئی کيدې شی دَ شوافعو په نيزدَ دې نه سپك څيزونه مراد دی.

**قوله:** وَمَنْ قَتَلَ عَمْدًا:

**د قتل په صيغه کښې دوه احتمالات:** ① اشعة اللمعات کښې شيخ عبدالحق رحمه الله دا صيغه دَمجهول صيغه منلوسره ترجمه کړې ده.

② ملاعلی قاری رحمه الله دَ معروف منلې ده. اشعة المعات:۳/۲۳۸.

د حديث د بعضي جملو وضاحت، ① لَهُوَ قَوَدٌ: يعنى چاچه څوك په آله جارحه يعنى تيره څيزباندې قصداً اووژلونو په دې قتل سره قصاص لازم راځى

② وَمَنْ حَالَ دُونَهُ: يعنى كوم سړې چه دَ قاتل نه په قصاص اخستلو كښې حائل شو اوخپل اثراورسوخ استعمالولوسره ئې دَ دې شرعى حكم په نافذكولو كښې ركاوټ جوړشو نو په هغه به دَالله تعالى لعنت نازليږى

③ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ: شيخ عبدالحق رحمه الله اشعه المعات كښې ليكلى دى چه دَ صرف ترجمه په توبې سره هم كولې شى او نفل سره هم كيږى او عدل ترجمه فديه سره هم كولې شى او فرض سره هم كولې شى هرخانى كښې دَدې الفاظو دا مطلب اخستلې شى [اشعة المعات ۲۳۰،۲۳۸/۳].

**فائده: د قتل قسمونه**:دَ فقهاء كرامو په نيزدَ قتل پنځه قسمونه دى

①قتل عمد ②قتل شبه عمد ③قتل خطا ④قتل جارى مجراى خطا ⑤قتل بسبب. دَ كتاب القصاص په شروع كښې دَتولوتعريف او تفصيل تيرشوې دې

**[۲۴۷۹] د ديت اخستلوڅخه روسته دقاتل د قتلولو ګناه**

[۲۹] (۱) ①وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«لَا أُعْفِي مَنْ قَتَلَ بَعْدَ أَخْذِ الدِّيَةِ»". رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه**: ①او حضرت جابر رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②دَ مقتول ولي. د وارثانونه ، چې كوم سړى (د قاتل نه ) ديت (خون بها) اخستو نه وروسته هغه قتل كړي. زه هغه نه معاف كوم (بلكه هغه به هم په طورِ خاص قتلوم) ابوداوود

**حل اللغات** (۱)لَا أُعْفِي :زه نه معاف كوم.

**تسهيلات**:

**قوله** لَا أُعْفِي مَنْ قَتَلَ بَعْدَ أَخْذِ الدِّيَةِ،

**د ديت اخستلويا معاف كولوڅخه روسته د بدلې اخستلو وعيد**: مقتول كوم ولي چې قتل معاف كړى يا ديت واخلى او بيا هم بدله اخستل غواړى نو هغه دپاره دردناك عذاب دې كما في قوله تعالى «فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ»، داشان حديث (لا أعفى من قتل بعد أخذ الدية) كښې د نبى كريم ﷺ ارشاد دې . د هغه كس دپاره معافى نشته دې څوك چې ديت اخستلو نه پس هم قتل اوكړى يا دا مطلب دې چې دداسې مقتول د ولى قاتل به معاف نه كړم ځينې حضرات فرمائى چې په زمانه جاهليت كښې به اول داسې

۱ ) اخرجه ابوداود فى كتاب الديات/باب من يقتل بعد أخذ الدية (رقم-۴۵۰۷)واحمد فى المسند:۳۶۳/۳

كيدل چې كه يو كس بۀ قتل كړې شو نو قاتل به د مقتول ديت ادا كړو او مامون بۀ شو ليكن كله به خلقو په ده باندې غلبه اوموندله نو بيا به نې دې قتل كولو او ديت به نې واپس كولو نبى كريم ﷺ د جاهليت د زمانې ددې فعل ترديد اوكړو (مرقاة ج ۷ص ۶۷، ۶۸) داشان داسې قاتل (چې د مقتول ولى دې) به د جمهور په نزد قصاصا نه قتل كيږى لهذا نه معاف كولو نه مراد قتل كول نه دى

**[۲۴۸۰] د زخم د معاف كولو ثواب**

۳۴۸۰-[۳۰] (۱) ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ② "«مَا مِنْ رَجُلٍ يُصَابُ بِشَيْءٍ فِي جَسَدِهِ فَتَصَدَّقَ بِهِ ③ إِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ بِهِ دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْهُ خَطِيئَةً» "). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابودرداء رضی الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي ② چې د كوم سړي د بدن څه حصه چې زخمي كړل شوه، او هغه زخم كونكى يې معاف كړي (يعني د هغه نه يې څه بدله وانخستله، او په تقدير الهي صابر شو) ③ نو د الله تعالى به د دې په وجه د هغه يوه درجه بلنده كړي او يوه گناه به يې معاف كړي، (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** (۱) يُصَابُ: چه رسيدلي وي ورته (زخم) (۲) فَتَصَدَّقَ: معاف ئې كړى، څه معاوضه بدله ترې اونه غواړى (۳) حَطَّ: رژوى، لرې كوى.

**تسهيلات:**

**قوله: يُصَابُ بِشَيْءٍ فِي جَسَدِهِ:** ددې نه مراد آسمانى مصيبت يا قتل نه دې بلكه د يو مسلمان د طرف زخم وغيره رسول دى. لهذا داسې صورت په زخمى كوؤنكې مسلمان معاف كولو كښې لوې فضيلت دې. كما فى فى القرآن (فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا.... إلخ) دا شان دا معافى د مسلمان مجرم باره كښې ده. كافر نه بدله اخستل ضرورى دى كافر نه كه بدله وانخستل شى نو هغه به نور هم جرى شى

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۴۸۱] يو مسلمان په قصاص كښې د صنعاء يمن د خلقو قصاص كول**

۳۴۸۱-[۳۱] (۲) ① عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ: أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَتَلَ نَفَرًا خَمْسَةً أَوْ سَبْعَةً ② بِرَجُلٍ وَاحِدٍ قَتَلُوهُ قَتْلَ غِيلَةٍ، ③ وَقَالَ عُمَرُ: لَوْ تَمَالَأَ عَلَيْهِ أَهْلُ صَنْعَاءَ ④ لَقَتَلْتُهُمْ جَمِيعًا. رَوَاهُ مَالِكٌ.

۱ ) اخرجه الترمذى فى كتاب الدّيات عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى العفو (رقم-۱۳۹۳) وابن ماجه كتاب الدّيات/باب العفو فى القصاص (رقم-۲۶۹۳) واحمد فى المسند: ۴۴۸/۶

۲ ) اخرجه مالک فى الموطا كتاب العقول/باب ما جاء فى الغيلة والسّحر (رقم-۱۳)

**ترجمه:** ۱ او حضرت سعيد ابن مسيب رحمه الله راوي دی چې حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه (خليفة المسلمين) داسې د پنځه يا اوو سړو جماعت قتل کړي، ۲ چې هغوئ په دهوکه دهوکه سره يو سړی قتل کړي وو، ۳ او حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل که صنعاء والا تولو دا قتل کړي وی، يا د قاتلانو مدد يې کړي وی، ۴ نو ما به هغه ټول قتل کړي وو.

**حل اللغات:** (۱) غِيلَة: په دهوکې سره، (۲) تَمَالَأَ: د مَلأ نه دې دَاتفاق اتحاد اويوبل سره تعاون کولو په معنی کښې دې

**تسهيلات:** **قوله:** أَهْلُ صَنْعَاءَ:

**د صنعاء ښار د ذکر کولو وجه:** دَ يمن دَملك مرکزی ښاردې. نن صبادَدې ملك دارالخلافه ده. حضرت عمر رضي الله عنه دَدې ښارنوم ياخوپه دې وجه واخستو چه دَقاتلانو تعلق هم دې ښارسره وو يا هغوی رضي الله عنه دَ عربو دَ دستور مطابق کثرت ښکاره کولو دَپاره دَ صنعا نوم واخستلو يعنی که په زرګونوخلق هم دَ يو انسان په قتل کښې شريك شی نوزه به ټول په قصاص کښې وژنم. دَدې عدل اوانصاف نه معلوميږی چه اسلام دَ انسانی ځان څومره حفاظت کړې دې ليکن نن صبا دَ حقوق انسانی په نوم باندې جوړشوی تنظيمونه هم انسانی حقوق دَخپو لاندې کوی.

| ۳۴۸۲ ـ (۱) وَرَوَى الْبُخَارِيُّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ نَحْوَهُ. |
|---|

**ترجمه:** امام بخاري رحمه الله هم دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه د دې په مثل نقل کړي دی.

**[۳٤۸۳] د د مقتول د الله په دربار کښې خپل قاتل پيش کول**

| ۳۴۸۳ ـ [۳۲] (۲) ۱ وَعَنْ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: حَدَّثَنِي فُلَانٌ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ «يَجِيءُ الْمَقْتُولُ بِقَاتِلِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۳ فَيَقُولُ: سَلْ هَذَا فِيمَ قَتَلَنِي. ۴ فَيَقُولُ: قَتَلْتُهُ عَلَى مُلْكِ فُلَانٍ ". ۵ قَالَ جُنْدُبٌ: فَاتَّقِهَا». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ۱ او حضرت جندب وايي چې ماته فلاني صحابي (چې د هغه نوم يا خو جندب رضي الله عنه واخست يا د راوي په ذهن کې ياد پاتې نه شو) دا حديث بيان کړي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ۲ د قيامت په ورځ به مقتول خپل قاتل نيولی راولي، ۳ او الله تعالی ته به فرياد وکړي چې د ده نه پوښتنه وکړي چې زه يې ولی قتل کړي وم؟ ۴ قاتل به وايي چې ما د فلانی سړی په سلطنت کې قتل کړي وو، ۵ جندب رضي الله عنه (د دا حديث بيانولو نه وروسته) اوويل ته د دې نه ځان اوساته. (نسايي)

**حل اللغات:** (۱) فَاتَّقِهَا: دې نه ځان اوساته

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الدّيات/باب إذا أصاب قوم من رجل، هل يعاقب أو يقتصّ منهم کلهم(رقم-۶۸۹۶)
۲) اخرجه النسائی فی کتاب تحريم الدّم/باب تعظيم الدّم (رقم-۳۹۹۸)

**تسهيلات:**

**قوله:** قَتَلَهُ عَلَى مُلْكِ فُلَانٍ:

**د الله په دربار کښې د مقتول فرياد:** يعنی مقتول به دَ قيامت په ورځ چه کله په قاتل باندې دَقتل دعویٰ کوی اوالله تعالی ته به فریاد کوی چه دَدې قاتل نه پوښتنه اوکړئی چه ده زه ولې قتل کړې ووم نوقاتل به په جواب کښې وائی چه مادَ فلانکی سړی په بادشاهئ کښې دې قتل کړې وو

**په سوال او جواب کښې د عدم مطابقت اعتراض:** دَ قاتل داجواب دَ مقتول دَ سوال او دعویٰ اوفریاد دَپاره جواب نه شی جوړیدې نو په دې سوال جواب کښې څه مطابقت دې؟

**د اعتراض جواب:** په دې کښې مطابقت واضح دې چه قاتل په جواب کښې وائی چه بیشکه مادې قتل ړې ووخومادَفلانکی بادشاه په بادشاهئ کښې دَهغه په اشاره او امدادسره دې قتل کړې وولهذا دَدې قتل اصل محرك او ذمه وار هم دغه بادشاه دې جندب ﷺ هم هغه مشهور صحابی دې چه دَ ابوذر غفاری ﷺ په نوم باندې مشهوردې.

**[۲۴۸۴] په قتل کښې د معمولی مدد کولو سزا**

۳۴۸۴-[۳۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ أَعَانَ عَلَى قَتْلِ مُؤْمِنٍ شَطْرَ كَلِمَةٍ لَقِيَ اللَّهَ، [۳] مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ آيِسٌ مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې نیمه جمله ویلو سره هم د یو مومن په قتل کې مدد وکړي (یعني مثلًا اُقتل پوره يې ونه ویلو بلکه یواځې اُق يې وویلو) نو هغه به د الله ﷻ سره په داسې حال کې ملاقات کوي [۳] چې د هغه د دواړو سترګو په منځ کې به يې دا لیکلی وي چې دا هغه کس دی چې د الله ﷻ د رحمت نه نا امیده دی. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** (۱) شَطْرَ كَلِمَةٍ: نیمګړې خبره. (۲) آيِسٌ: نااُمیده.

**تسهيلات: قوله:** شَطْرَ كَلِمَةٍ:

**په قتل کښې په معمولی شرکت د قتل سزا:** يعنی پوره دَ اقتل کلمه ئې نه وئیلې بلکه دَ قاتل په معاونت اوامداد کښې صرف "اق" نیمه کلمه وئیلې وی هغه هم دَ قاتل سره په دې قتل کښې شریك دې

دَدې نه معلومه شوه چه دَ چا په قتـل کولو کښې عمـلاً دَ شریك کیدونه عـلاوه منصوبه سازی کـول یا مشوره کـول یـا دَ رضـامندئی اظهـار کول اودَ څه قسم لاز خودنې اوامداد اونصرت کول هم جرم دې

(۱) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الدّیات/باب التّغلیظ فی قتل مسلم ظلما (رقم-۲۶۲۰)

**قوله**: أَيِسٌ مِنْ رَحْمَةِ اللهِ:

**ده دې جملې په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① يعنى داسړې دَالله تعالى دَ رحمت نه نااميده دې دَ مسلمان قتل كول دَ گناه په سختوالى كښې دَ كفرپه شان دې. دا جمله چه دا سړې دَ الله تعالى دَ رحمت نه نااميدې هم دَدغه ارتكاب كفرنه كنايه ده چه دكافرانوپه شان به داسړې هم دَ الله تعالى دَ رحمت نه نااميده وى نودا زجروتشديد اوتهديد اوتوبيخ باندې محمول دى

② مطلب چه دَ مؤمن په قتل كښې معاونت اونصرت چه كوم سړې حلال گڼړى هغه به دَالله تعالى دَ رحمت نه نااميده اوكافروى

**[۲٤۸۵] د قاتل معاون لره قيد كول**

مه ٣٣٣ــــ [٣٣] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «إِذَا أَمْسَكَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ [٣] وَقَتَلَهُ الْآخَرُ، [٤] يُقْتَلُ الَّذِي قَتَلَ [٥] وَيُحْبَسُ الَّذِي أَمْسَكَ». رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابن عمر ﷺ د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبى كريم ﷺ فرمايل [٢] هر كله چې يو شخص يو سړى ونيسي، [٣] او دويم هغه قتل كړي. [٤] نو (د مقتول په بدله كې) هغه سړى دې قتل كړي، چا چې هغه قتل كړي دى، [٥] او نيونكي ته دې د قيد سزا وركول شي، (دارقطني)

**حل اللغات**: (١) أَمْسَكَ: اونيسى، ايسار ئې كړى. (٢) يُحْبَسُ: قيد كولې به شى

**تسهيلات**: **قوله**: وَيُحْبَسُ:

**د قاتل د معاون په سزا كښې ۳ مذاهب**:

يو سړى بل يو سړې راؤنيولو اودويم قتل كړو نو په دې باندې اتفاق دې چه دَ قاتل نه به قصاص اخستلې شى ليكن دَدغه نيونكى به څه سزا وى په دې كښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① دَ امام احمد ؒ يوقول دادې چه ترمرگه پورې به دغه سړې قيد كولې شى لكه چه په دې حديث كښې دى

② امام مالك ؒ او دَ يوقول مطابق امام احمد ؒ فرمائى چه دغه نيونكې سړې به هم قتل كولې شى

③ امام ابوحنيفه ؒ اوامام شافعى ؒ فرمائى چه دغه سړى ته به تعزير وركولې شى اوس په تعزيركښې به دَ قاضى اودَحاكم دَ رائې اعتباركيږى كه چرې هغه غواړى نو قيد كولې شى اوكه مناسب گڼړى نودې قتل كولې هم شى ځكه چه دَ تعزير دائره وسيع وى

١) اخرجه الدارقطنى ٣ / ١٤٠ رقم الحديث ١٧٦

**تنبیه:** شارحین حدیث لیکلی دی چه دا حدیث دهغه تولو احادیثو سره معارض دې په کوم کښې چه د قاتل مدد اومعاونت باندې د قصاص حکم لګولې شوې دې لهذا هغوی فرمائی چه داحدیث د خپل حکم په اعتبارسره منسوخ دې (کذافی الاشعة)

# [۱۶] كِتَابُ الدِّيَاتِ

## [۱] بَابُ الدِّيَاتِ

### د دیتونو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه اثنان وعشرون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① دية الأطراف: ۱، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۶.

② دية الجنين: ۲، ۳، ۴، ۱۷، ۲۲.

③ دية غير العمد على العاقلة الأغنياء دون الفقراء : ۲، ۳، ۴، ۱۴، ۱۹.

④ دية شبه العمد : ۵، ۱۵، ۲۰، ۲۱.

⑤ حكم دية النفس : ۶ ، ۱۰، ۱۸.

⑥ حكم دية الخطاء: ۱۱، ۱۲، ۱۳ ، ۱۴ ، ۲۰.

**د دیت لغوی:** ودي یدي دیة د باب ضرب نه د قاتل د طرف نه دمقتول وارثانوته مالی معاوضه ورکولوته دیت وائی

**د دیت اصطلاحی تعریف:** د شریعت په اصطلاح کښې دیت د هغه مالی معاوضه نوم دې چه د یواندام یا د یوخان ختمولو په بدله کښې ورکولې شی چونکه دیت کله د یوخان بدله کښې راخی کله د یواندام بدله کښې راخی کله دیت مغلظه وی اوکله دیت مخففه وی په دې وجه په کتاب کښې دیات جمع راوړلې شوې ده د کوم مفرد چه دیة دې

**د دیت دوه قسمونه:** ① دیت مغلظه دې ② دیت مخففه

**د دیت مغلظه په تعریف کښې ۲ مذاهب:**

① د امام شافعی رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیزهم دیت مغلظه سل اوښې دی لیکن درې قسمه اوښې به وی مثلاً ۳۰حقه ۳۰جذعه او څلویښت خلفات یعنی حامله به وی دې تقسیم ته اثلاثًا وائی او رومبی تقسیم ته ارباعًا وائی

② د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله په نیز دیت مغلظه سل اوښې دی لیکن څلور قسم اوښې به وی ۲۵بنت خاض او ۲۵بنت لبون دې ۲۵ حقه او ۲۵جذعه وی.

**د ديت مغلظه او مخففه د ادا کولو اجناس:** ① ديت مغلظه په هغه سړی باندې راځی چه دَ قتل شبه عمد مرتکب شوې وی يا په قتل عمد کښې په ديت باندې صلح شوې وی. ديت مغلظه صرف دَ اوښانو په صورت ادا کولې شی

② ديت مخففه اوښانو او دراهم اودنانيردواړو سره ادا کيدې شی. که چرې په اوښانوسره ادا کول وی نو پنځه قسمه سل اوښان به اداکولې کيږی ۲۰ بنت مخاض ۲۰ بنت لبون ۲۰ ابن مخاض، ۲۰ حقه او ۲۰ جذعه به ورکوی

**د نقدينو (سره سپينو) په صورت کښې د ديت د ادا کولو مقدار کښې ۲ مذاهب**

① دَ ديت مخففه ادائيگی که چرې په سرو زرو يا سپينو زرو سره وی نودَ سرو زرو نه زر دينار دی اوچاندئی نه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزلس زره دراهم دی

② دَ شوافعو حضراتو په نيزدولس زره دراهم دی.

**داول فريق دليل:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د دوی مستدل دې.کوم چه دَ مشکوة په صفحه ۳۰۴باندې ذکردې په کوم کښې چه دَ دولس زرو دراهم تصريح موجود ده.

**د دويم فريق دليل:** دَ حضرت عمر رضي الله عنه يوروايت د دوی مستدل دې. کوم چه په زجاجة المصابيح کښې دَامام محمد رحمه الله په حواله سره ذکرکړې شوې دې. الفاظ داسې دی (روي البيهقي من طريق الشافعي رحمه الله قال محمد بن الحسن رحمه الله بلغنا عن عمر انه فرض على اهل الذهب في الدية الف دينار ومن الورق عشرة آلاف درهم) (زجاجة المصابيح ج۳ص۳۳)

**راجح قول:** احنافو دَ لسو زرو دراهم روايت ته ترجيح ورکوی چه دا متيقن دی ځکه چه لس زره دَ دولسو زرو په ضمن کښې دی اودَ زياتی دَ پاره نور ثبوت پکاردې. بل دَ دولسو زرو ذکرچه په روايت کښې راغلې دې هغه دَ وزن سته په اعتبار سره دې اولس زره دَ وزن سبعه په اعتبارسره دې نومقدار هم يودې هيڅ فرق نشته دې. ديت مخففه په هغه سړی باندې راځی چه قتل خطا يا جاری مجر ای خطا يا دَ قتل بتسبب مرتکب شوې وی خلاصه دا چه قتل عمد کښې قصاص دې قتل شبه عمد کښې ديت مغلظه دې کوم چه په عاقله باندې دې او په سړی باندې کفاره ده قتل خطا او جاری مجرای خطاکښې په سړی باندې کفاره ده اوپه عاقله باندې ديت دې. قتل تسبب کښې عاقله باندې ديت دې په سړی باندې کفاره نشته دې

**د ديت متعلق يو څو اصطلاحاتو وضاحت:**

① يو کامل خون بهاده هغې ته ديت وائی

② يونصف ديت دې او يوعشرديت دې يعنی دَ ديت لسمه حصه نودَ سلو لسمه حصه لس ده.

③ دَ اعضاء معاوضه ته ارش وائی بيادَ ديت دَ اداکولوترتيب داسې دې چه دَ قتل خطا

مجرم عاقله باندې به ديت راځي ليکن هغه به په دريو کالو کښې قسط وار اداکوي هر کال به يو ثلث ديت اداکيږي

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [٢٤٨٦] د ګوتې د کټ کولو ديت

٣٤٨٢-[١] (١) ⓵عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ⓶ "«هٰذِهٖ وَهٰذِهٖ سَوَاءٌ» "يَعْنِي: الْخِنْصَرَ وَالْإِبْهَامَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ⓵حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶دا او دا (يعني حضور ﷺ د خپلې خچې ګوتې او قتې ګوتې طرف ته په اشاره کولو سره وفرمايل چې) خچې ګوته قتې ګوته (د ديت په اعتبار سره دواړه برابر دي)، (بخاري)

**حل اللغات:** (١) هٰذِهٖ وَهٰذِهٖ: دا او دا (اسمائې اشارات دی) (٢) الْخِنْصَرَ: قچې ګوته، نرۍ ګوته، (٣) الْإِبْهَامَ: غټه، متې ګوته.

**تسهيلات: قوله:** الْخِنْصَرَ:

**د بعضې ګوتو نومونه:**

① دلاس د ټولونه وړې ګوتې ته خنصروائی کومې ته چه کچه ګوته وائی.

② "الابهام" غټې ګوتې ته وائی.

**د ديت په مقدار کښې د تفاوت معيار:** پوره ديت راتلل يا نصف راتلل يا لسمه حصه ديت واجب کيدو دارومدار د يواندام په منفعت باندې دې که پوره منفعت ضائع شو نوپوره ديت راځی ګنی کم ديت به راځی.

**د ګوتې په اعتبار سره د ديت مقدار:** ① که يوسړی د بل سړی ټولې ګوتې پرې کړې نود لاسونو ټول منفعت ختم شو لهذا پوره ديت به راځی په دې لحاظ سره د هرې ګوتې په بدله کښې لس اوښان ديت کښې راځی نود لاسونو په لسو ګوتو کښې به سل اوښان راځی

② په دې حساب سره کچه ګوته او غټه ګوته برابر دی ځکه چه منفعت ئې يوشان دې سره دې چه په کچه ګوته کښې درې بندونه دی او په غټه ګوته کښې دوه دی مګر منفعت ئې برابر دې نوديت ئې هم برابر دې

١ ) اخرجه البخاري فی کتاب الدّيات/باب دية الأصابع (رقم-٦٨٩٥) و ابو داود فی کتاب الدّيات/باب ديات الأعضاء (رقم-٤٥٥٨) والترمذی فی کتاب الدّيات عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی دية الأصابع (رقم-١٣٩٢)والنسائی فی کتاب البيوع/باب بيع التّمر بالتّمر متفاضلا (رقم-٤٥٥٨) وابن ماجه فی کتاب الدّيات/باب دية الأصابع (رقم-٢٦٥٢)

د جوړونو په اعتبار سره د ديت مقدار : كه د ګوتې يوجوړ يا بند پرې كړى شي نوده لسم ديت ثلث به وركولې شى اود غټې ګوتې دوه بنده دى لهذا د يوبند په پرې كيدو باندې نصف عشر يعنى پنځه اوښان به وركولې شى د اسلام په عادلانه نظام باندې قربان چه د ګوتود جوړونو او بندونو حفاظت ئى هم كړې دې او په بين الاقوامى انسانى قوانين باندې لعنت دې چه د انسانى حقوقو په نوم سره ئى انسانى حقوق د خپولاندې كړى دى

**[۲۴۸۷] د ښځې په خېټه كښې د بچى ديت**

۳۴۸۷-[۲] (۱) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: «قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنِينِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي لِحْيَانَ سَقَطَ مَيِّتًا بِغُرَّةٍ: ②عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ، ③ثُمَّ إِنَّ الْمَرْأَةَ الَّتِي قُضِيَ عَلَيْهَا بِالْغُرَّةِ تُوُفِّيَتْ ④فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنَّ مِيرَاثَهَا لِبَنِيهَا وَزَوْجِهَا ⑤وَالْعَقْلُ عَلَى عَصَبَتِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د بني لحيان د يوې ښځې د ماشوم په ديت كې چې مړ كيدو سره د هغه د خيټې نه لويدلى وو (په عاقله) غره مقرره كړي وه، ②او د غره نه مراد غلام يا وينځه ده، ③بيا هر كله چې هغه ښځه (چې د هغه په عاقله غره واجب كړي وه.) مړه شوه، ④نو حضور ﷺ دا فيصله وفرمايله چې د هغه ميراث د هغه د ځمنو او خاوند د پاره دى ⑤او د هغې ديت د هغې په عصبه دى، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: ①جَنِينِ: په حمل، خيټه كې دننه ماشوم ②سَقَطَ: اوغورزيده، ③بِغُرَّةٍ: تاوان، ديت غلام يا وينځه، د پوره ديت شلمه حصه چه پنځه سوه درهم جوړيږى اوپوره ديت لس زره درهم دي
(۱) اَلْعَقْلُ: ديت، مالى معاوضه،

**تسهيلات**: قوله: فِي جَنِينِ امْرَأَةٍ:

**د حديث مفهوم**: تركومې پورې چه بچې د مور په خيټه كښې وى هغه ته جنين وائى "لحيان" په لام باندې فتحه هم ده اوكسره هم ده داد عربود يو قبيلې نوم دې چه د بنولحيان په نوم سره مشهوره ده په راتلونكى روايت كښې لفظ هذيل راغلې دې نوهيڅ منافات نشته دې خكه چه هذيل لويه قبيله ده او لحيان د دې يو ښاخ دې

**د حديث پس منظر**: قصه داسې اوشوه چه د هذيل قبيلې يودوه ښځې وې د يوې تعلق د لحيان سره وو داد يو بل بنې وې په دوى كښې يوې هغه بله بن په كاڼړى يا لرګى باندې اووهله اوهغه حامله وه په دې ګذار سره د هغې بچې هم په خيټه كښې مړشو اوحمل ساقط

۱) اخرجه البخاري في كتاب الديات/باب جنين المرأة. وأن العقل على الوالد وعصبة الوالد. لا على الولد (رقم-۶۹۰۹) ومسلم في كتاب القسامة والمحاربين والقصاص والديات/باب دية الجنين. ووجوب الدية في قتل الخطإ. وشبه العمد على عاقلة الجاني (رقم-۳۵ - (۱۶۸۱) و ابو داود في كتاب الجهاد/باب في السّبق (رقم-۲۵۷۷) والترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في دية الجنين (رقم-۱۴۱۰) والنسائي في كتاب القسامة/باب دية جنين المرأة (رقم-۴۸۱۷)

شو مقدمه نبی کریم ﷺ له راغله نبی کریم دَ ماشوم په دیت کښې یو غلام یا وینځه مقرر کړه

**قوله:** سَقَطَ مَيِّتًا بِغُرَّةٍ: عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ:

**د غره معنی:** غره دَ اس په تندی باندې سپین داغ ته وائی. بیا دَدې اطلاق په هر روښانه اوپرقیدونکی څیز باندې اوشو

**په حدیث کښې د غره مصداق:** دلته دَغره اطلاق په غلام او وینځه باندې شوې دې کوم چه روښانه مال دې او "عبداوامة" هم دَدغه غره تفسیر او وضاحت دې او ظاهر دادی چه دا الفاظ دَ حضوراکرم ﷺ خپل دی. دَ یوراوی وضاحت نه دې. راتلونکی حدیث نمبر(۳۵۰۳) کښې په دې الفاظوسره دَ فرس او بغل نور الفاظ هم لګیدلی دی هغه دَ یوراوی دَطرف نه دی کوم چه په وهم باندې مبنی دی. دا روایت دَمشکوة شریف په صفحه ۳۰۴ باندې موجود دې. که چرې بچې په خیټه کښې مړ شو راؤوتلو نوهم دغه حکم دې اوکه چرې ژوندې پیدا شی او په دغه ګذار سره مړشی نو په دې کښې بیا پوره دیت لازمی راځی

**اشکال:** راتلونکی دَ حضرت مغیره بن شعبه ﷺ روایت کښې دی چه نبی کریم دَ غره دیت په عاقله باندې کیخودو. دې سره شبه پیداکیدې شوه چه کله دیت په عاقله باندې دې نوبیا دَ دغه سړی میراث هم عاقله ته ملاویدل پکار دی دَچادَ طرف نه چه عاقله دیت اداکولوسره ورکړې دې.

**د اشکال جواب:** دَدغه شبه دَ لرې کولودَپاره په حدیث شریف کښې دا الفاظ راغلل "ثمران المرأة" یعنی کومې ښځې چه جنایت کولو دَ دویمې ښځې بچې وژلې وو هغه پخپله مړه شوه اودَهغې دَ میراث مسئله پیدا شوه نونبی کریم دَهغې دَ میراث فیصله دَهغې دَ وارثانودَپاره اوکړه چه میراث به دَ دغه ښځې خامنو اوخاوند ته ملاویږی اودیت به دَ دغه ښځې په عصبه باندې راځی. دلته دَ میراث تصریح دَ خامنو اوخاوند دَپاره ځکه اوکړې شوه چه دَدغه ښځې وارثان دغه وخت کښې هم دا وو

**دویم اشکال:** دَحدیث مطلب دادې چه میراث دَ وارثانودې که هرڅوك هم وارث شی دَدې حدیث نه معلومیږی چه قاتله ښځه مړه شوه اودَ روستو روایتونونه معلومیږی چه هغه ښځه مړه شوه دَ چا په خیټه کښې چه دَهغې بچې مړ شوې وو اول بچې مړ شو او بیائی مور مړه شوه نودَ دې تفاوت او تعارض دوه جوابونه دی.

**د اشکال دوه جوابونه:** ① دا دوه جدا جدا واقعات وو

② په دې حدیث کښې "قضی علیها بالغرة" الفاظ کښې علیها په معنی دَ لها دی یعنی دَ کومې ښځې دَپاره چه دَ دیت فیصله شوې وه هغه مړه شوه دغه شان به باقی روایاتوسره تعارض نه پاتې کیږی عام شارحینودَ علیها ضمیر جانبه قاتله طرف ته راګرځولې دې او

"قضی" صیغه معروف اومجهول دواړه شان لیکلې ده ملاعلی قاری رحمه الله خو اول ضمائر جانبه قاتله سره یوځائی کړل او روستو ئې دَ تحقیق دوران کښې اولیکل چه دا مړه شوې ښځه جانبه نه بلکه مجنبه وه

**قوله. وَالْعَقْلُ عَلَى عَصَبَتِهَا:**

**د عاقلة دوه وجوه تسمیه:** ① شرح السنه کښې لیکلی دی چه عقل دیت ته وائی دیت ته عقل ځکه اووئیلې شو چه عقل دَ ترلوپه معنی کښې دې اودیت ورکونکې هم دَدیت اوښان ترلوسره دَ مقتول کورته راولی اوتړی.

② بعضې وئیلی دی چه عقل دَ منع کولوپه معنی کښې دې لکه څنګه چه په عقل انسانی کښې دَ منع کولومعنی موجود ده نودیت ته عقل ځکه اووئیلې شو چه دا هم انسان دَ قتل وغیره جرم نه منع کوی. هم په دې مناسبت سره عصبه اوخاندان ته عاقله وائی

**د بحث تمهید:** دلته زیربحث حدیث کښې په عصبه باندې دیت لازم کړې شوې دې او روستو دَ مغیره بن شعبه رضی الله عنه په روایت کښې هم دَ دیت لزوم په عصبه باندې کیخودې شوې دې نودَدې نه دا مسئله پیداشوې ده چه آیا دَ سړی عاقله او دیت اداکولو ذمه واری به صرف په عصبه اودَ سړی خاص دَ وینې رشته سره تړلې خاندان وی یا عاقله نورخلق هم کیدې شی په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د عاقله په مصداق کښې ۲ مذاهب:**

① دَامام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزپه هرحال کښې هم عصبه عاقله دی دَ عصبه نه علاوه بل هیڅوك په عاقله کښې داخلیدې نه شی.

② دَ ائمه احناف په نیز اهل تناصر او عام مصائب کښې دَیوبل امدادیان خلق هم په عاقله کښې داخل دی

**د اول فریق دلیل**: زیربحث حدیث کښې دا الفاظ ,,والعقل علی عصبتها،، د دوی مستدل دې

**داول فریق د دلیل جواب**: په هغه زمانه کښې عصبه به عاقله وه ددې وجې په حدیث کښې ,,والعقل علی عصبتها،، اووئیلی شو لکه چې دامام اعظم رحمه الله په نیزعصبات هم عاقله دی اوپه مشکل وخت کښې په کار راتلونکی د نورو قبیلوخلق هم عصبه کښې شامل دی

**د دویم فریق دلیل:** دَنبی کریم په مبارکه زمانه کښې به هم عصبات اهل تناصر وو لهذا هم دغه عاقله وو لیکن دَحضرت عمرفاروق رضی الله عنه په زمانه کښې به اهل دیوان عاقله صرف اهل تناصر ګنړلې شو نوحضرت عمر رضی الله عنه دَ ټولو صحابه کرامو په موجودګئی کښې اهل دیوان عاقله اوګرځول اوچاهم په دې باندې نکیراونه کړو "کذافی نصب الرایه"

[۲٤٨٨] په کاڼړي سره د واقع کیدونکي قتل کښې د قصاص حکم

۳۳۸۸—[۳] (۱) ① وَعَنْهُ قَالَ: ② «اقْتَتَلَتِ امْرَأَتَانِ مِنْ هُذَيْلٍ ③ فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى بِحَجَرٍ فَقَتَلَتْهَا ④ وَمَا فِي بَطْنِهَا، ⑤ فَقَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ دِيَةَ جَنِينِهَا ⑥ غُرَّةٌ: عَبْدٌ أَوْ وَلِيدَةٌ، ⑦ وَقَضَى بِدِيَةِ الْمَرْأَةِ عَلَى عَاقِلَتِهَا، وَوَرَّثَهَا وَلَدَهَا وَمَنْ مَعَهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷺ وایي ② چې (یوه ورځ) د قبیله هذیل دوو ښځو په خپل منځ کې جنګ وکړي، ③ په هغوئ کې یوې ښځې دویمه ښځه په کاڼي وویشته، په هغه سره هغه ښځه مړه شوه، ④ او د هغه د خیټې وړوکی هم مړ شو . ⑤ رسول الله ﷺ حکم وکړي چې د مقتولې د هغه ماشوم دیت، کوم چې د هغې په خیټه کې مړ شوی دی، ⑥ غرّه یعنی یوه وینځه یا یو غلام دی، ⑦ او حکم یې وکړي چې دمقتولې دیت د قاتلې په خاندان او په برداري باندې دی، او حضور ﷺ د هغه دیت وارثان د هغه ځامن او هغه خلق وګرځول، کوم چې د ځامنو سره وراثت کې شریك وو، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① فَرَمَتْ: هغې اوویشتله، ② وَلِيدَةٌ: وینځه.

**تسهیلات: قوله:** فَقَتَلَتْهَا:

**په قتل بالمثقل سره د دیت وجوب:** داسې معلومیږي چه دا واقعه دَ دغه مخکینې واقعه نه مختلف ده ځکه چه په هغې کښې دا ذکر وو چه اول بچې په خیټه کښې مړشو بیا اسقاط اوشو اوبیا ښځه خپل پخپله مړه شوه. لیکن دلته خو تصریح شته چه هم په یوکاڼړی ویشتلوسره ښځه هم مړه شوه اودهغې په خیټه کښې بچې هم مړشو او داعمل په یوځائې یك دم اوشو. بهرحال دَدې روایاتونه داخبره په واضحه توګه مخې ته راغله چه قتل بالمثقل سره دیت لازم راځی قصاص نه راځي.

**قوله:** وَقَضَى بِدِيَةِ الْمَرْأَةِ:

**د امرأة نه مراد:** دې نه مقتوله ښځه مراد ده کومه چه "ام الجنين" ده. "على عاقلتها" یعنی دَقاتله ښځې عاقله په ذمه دَمقتول دیت مقررکړو. دَها ضمیر دَ قاتله طرف ته راګرځي. "وورثها" دَورث فاعل ضمیر دَ رسول الله ﷺ طرف ته راجع دې او دَ ها ضمیر "دية" طرف ته راګرځي. "ولدها" دلته ولدها مفعول به واقع شوې دې یعنی نبی کریم دَمقتوله دَ دیت وارث دَدغې مقتوله ځوئی جوړکړو اوځوك چه هغې سره وو هغه ئې وارث جوړکړل

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الدّیات/باب جنین المرأة، وأنّ العقل علی الوالد وعصبة الوالد، لا علی الولد (رقم-۶۹۱۰) ومسلم فی کتاب القسامة والمحاربین والقصاص والدّیات/باب دیة الجنین، ووجوب الدّیة فی قتل الخطإ، وشبه العمد علی عاقلة الجانی (رقم-۳۶ - (۱۶۸۱) و ابو داود فی کتاب الدّیات/باب دیة الجنین (رقم-۴۵۷۶) والنسائی فی کتاب القسامة/باب دیة جنین المرأة (رقم-۴۸۱۸) ومالک فی الموطا کتاب العقول/باب عقل الجنین (رقم-۵)

دَملاعلی قاری رحمه الله دَ کلام نه معلومیږی چه دلته "ولدها" جمع سره دي یعنی اولادها په دي صورت کښي "ومن معهم" ضمیر اولاد طرف ته راجع دي لیکن که چرې "ولدها" کښي لفظ ولد مفرد وی نوبیابه دې سره دَ جنس معامله کولې شی نودَ معهم ضمیر مسئله به حل شی چه جنس دَ ولدطرف ته دَ جمع ضمیر راوګرځولې شی اودَ جنس اطلاق په قلیل اوکثیر دواړو باندې کیږی

۳۳۸۸—[۳] (۱) [۱]وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [۲]«أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا ضَرَّتَيْنِ، [۳]فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى بِحَجَرٍ أَوْ عَمُودِ فُسْطَاطٍ، [۴]فَأَلْقَتْ جَنِينَهَا، [۵]فَقَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ غُرَّةً: عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ، [۶]وَجَعَلَهُ عَلَى عَصَبَةِ الْمَرْأَةِ». هٰذِهِ رِوَايَةُ التِّرْمِذِيِّ،

**ترجمه:** [۱]او حضرت مغیره رضی الله عنه ابن شعبه وایي [۲]چې دوه ښځي چې په خپل منځ کې بنې وي (یوه ورځ سره په جنګ شوي) [۳]په هغوئ کې یوي دویمه (چې حامله وه) په کاڼی یا د خیمي په لرګی سره ووهله، [۴] چې د هغه په وجه د هغې حمل ساقط شو ، [۵]نو رسول الله ﷺ د خیټي د بچي په دیت کې غره یعنی د یوي وینځې یا د یو غلام ورکولو حکم وکړي، [۶]او دیت یې په وهونکي ښځي واجب کړي، دا د ترمذي رحمه الله روایت دي،

**حل اللغات:** ①ضَرَّتَيْنِ: دادَ ضرة تثنیه ده بنې (بن) ته وائی. ② عَمُودِ: دَخیمې ستن او لوئی بانړس ③فُسْطَاطٍ: لویه خیمه ، ④ فَأَلْقَتْ جَنِينَهَا: خپل ماشوم ئې اوغورزلو، یعنی حمل ئې ساقط شو ⑤عَصَبَةِ الْمَرْأَةِ: د ښځې رشته داران

[۱]وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ: [۲]«قَالَ ضَرَبَتِ امْرَأَةٌ ضَرَّتَهَا بِعَمُودِ فُسْطَاطٍ وَهِيَ حُبْلَى، فَقَتَلَتْهَا. [۳]قَالَ: وَإِحْدَاهُمَا لِحْيَانِيَّةٌ. [۴]قَالَ: فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَةَ الْمَقْتُولَةِ عَلَى عَصَبَةِ الْقَاتِلَةِ [۵]وَغُرَّةً لِمَا فِي بَطْنِهَا».

**ترجمه:** [۱]او د مسلم رحمه الله په روایت کې داسې دی [۲]چې حضرت مغیره رضی الله عنه اوویل یوي ښځي خپله بنه چې حامله وه، د خیمې په لرګي ووهله، چې د هغه په وجه هغه مړه شوه (او د هغې په خیټه کې وړوکی هم مړشو) [۳]مغیره رضی الله عنه وایي په هغه دواړو کې یوه ښځه د لحیان د خاندان نه وه (چې دقبیله هذیل یو شاخ دی) [۴]د مغیره رضی الله عنه بیان دی چې رسول الله ﷺ د مقتولې دیت د قاتلې په عاقله باندې واجب کړي، [۵]او د خیټې د ماشوم په دیت کې د غره یعنی د یوي وینځې یا د یو غلام حکم وفرمایلو

**حل اللغات:** ①حُبْلَى: حامله. ②لِحْيَانِيَّةٌ: د لحیان خاندان او قبیلې والا.

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب الدّیات/باب جنین المرأة (رقم-۶۹۰۵) ومسلم فی کتاب القسامة والمحاربین والقصاص والدّیات/باب دیة الجنین، ووجوب الدّیة فی قتل الخطإ، وشبه العمد علی عاقلة الجانی (رقم-۳۸ - (۱۶۸۲) والترمذی فی کتاب الدّیات عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی دیة الجنین (رقم-۱۴۱۱)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى بِحَجَرٍ أَوْ عَمُودِ فُسْطَاطٍ:

**قتل بالمثقل عمد نه دې:** داحدیث هم دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې چه قتل بالمثقل عمدنه دې بلکه شبه دعمد ده په دې وجه دلته ددې قتل په بدله کښې قصاص نشته بلکه دیت واخستې شو شوافعو حضرات فرمائی دلته دکانړی نه وړوکې کانړې مراددې اود لرګی نه وړوکې لرګې مراد دې احناف وائی چه په حدیث کښې هیڅ قیدنشته چه داخیزونه واړه وو

**[۲۴۹۰] د قتل خطاء او شبه عمد دیت**

[۵] (۱) ① عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② «أَلَا إِنَّ دِيَةَ الْخَطَإِ شِبْهِ الْعَمْدِ ③ مَا كَانَ بِالسَّوْطِ وَالْعَصَا ④ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ: ⑤ مِنْهَا أَرْبَعُونَ فِي بُطُونِهَا أَوْلَادُهَا» وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② پوهه یدل پکار دی چې قتلِ خطاء چې د هغه نه مراد شبه عمد دی، ③ چې دوري او کوتك (لرګي) سره چې واقع شوی وي، ④ د دیت سل اوښان دي، ⑤ چې په هغه کې څلوېښت داسې اوښې کیدل پکار دی، چې د هغه په خیټه کې بچي وي (نسائي ابن ماجه دارمي) او په ابوداود کې دا روایت ابن عمرو رضي الله عنهما او ابن عمر رضي الله عنهما د دواړو نه نقل کړي دی، او په شرح السنه کې دا روایت دابن عمر رضي الله عنهما نه بالفاظ مصابیح نقل شوی دی

**حل اللغات:** (۱) دِيَةَ الْخَطَإِ: د قتل خطا دیت یعنی مالی معاوضه، (۲) شِبْهِ الْعَمْدِ: قتل شبه العمد، (۳) بِالسَّوْطِ: دوره، د څرمنې چابک.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَلَا إِنَّ دِيَةَ الْخَطَإِ:

**د مذکوره جملې ترکیب:** علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه شبه العمد الفاظ د دیت الخطاء نه بدل واقع دی او ماکان بالسوط والعصا دې بدل نه بدل دې دا ټول بدل اومبدل یوځائی کیدوسره د ان دپاره اسم شو او مأة من الابل د ان خبردې د عبارت ترجمه به داسې وی
خبردار قتل خطا یعنی شبه عمدچه په کوړه اوچوکه سره واقع شوې وی دهغې دیت سل اوښان دی

---

۱) اخرجه النسائی فی السنن کتاب القسامة/باب ذکر الاختلاف علی خالد الحذاء (رقم-۴۷۹۹) وابن ماجه فی کتاب الدیات/باب دیة شبه العمد مغلظة (رقم-۲۶۲۸) واحمد فی المسند:۲/۱۱

**د قتل تقسیم طرف ته اشاره:** دې حدیث نه دَ قتل عمد قتل شبه عمد قتل خطا قتل جاري مجراي خطا اوقتل تسبب دَ تقسیم طرف ته اشاره راؤخي. دا روایت دَامام ابوحنیفه رحمه الله دَ مسلك واضح دلیل دې چه قتل بالمثقل شبه عمددې په کوم سره چه قصاص نه بلکه دیت لازمیږي اودا به دیت مغلظه وي. دَ احنافو په نیزدیت مغلظه سل اوښان دي. لیکن دَاداکولوترتیب ارباعًا دې یعنی دَ ۲۵، ۲۵ په حساب سره به وي اودَ شوافعو په نیزدا ترتیب اثلاثًا یعنی ۳۰، ۳۰ او ۴۰ حساب سره وي تفصیل وړاندې تیرشو [الکاشف ۸۵/۷]

---(۱)وَرَوَاهُ أَبُودَاوُدَعَنْهُ،وَعَنِ ابْنِ عَمْرٍو.وَفِي(شَرْحِ السُّنَّةِ)لَفْظُ(الْمَصَابِيحِ)عَنِ ابْنِ عُمَرَ

**ترجمه:** او په ابوداود کې دا روایت ابن عمرو رضي الله عنه او ابن عمر رضي الله عنهما د دواړو نه نقل کړې دی، او په شرح السنه کې دا روایت دابن عمر رضي الله عنهما نه بالفاظ مصابیح نقل شوی دی

**[۳٤۹۲]د بدن د مختلفو اندامونو دیت**

---[۲] (۲)[۱]وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، [۲]«أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى أَهْلِ الْيَمَنِ، [۳]وَكَانَ فِي كِتَابِهِ: [۴]أَنَّ مَنِ اعْتَبَطَ مُؤْمِنًا قَتْلًا [۵]فَإِنَّهُ قَوَدُ يَدِهِ [٦]إِلَّا أَنْ يَرْضَى أَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِ) [۷]وَفِيهِ: (أَنَّ الرَّجُلَ يُقْتَلُ بِالْمَرْأَةِ)

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوبکر ابن محمد ابن عمرو ابن حزم د خپل پلار (محمد ابن عمرو) نه او هغه د ابوبکر د نیکه (عمرو ابن حزم) نه روایت کوي، [۲]چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اهل یمن ته یوه هدایت نامه ولیږله، [۳]په هغه کې لیکلي وو، [۴]کوم سړی چې قصداً یو مسلمان په ناحقه قتل کړي (یعني د قتلْ عمد ارتکاب وکړي) [۵]نو د هغه د لاسونو د فعل قصاص دی (یعني هغه چې د خپل لاسونو د فعل او تقصیر په ذریعه کوم قتل عمد کړي دی، د هغه په سزا کې دي هغه قتل کړل شي) [٦]خو دا چې د مقتول وارثان راضي شي (یعني د مقتول وارث که قاتل معاف کړي یا د هغه نه د خون بها په اخستو راضي شي، نو هغه دي نشي قتلولی) [۷]په هغه هدایت نامه کې دا هم وو، چې د مقتولې ښځې په بدله کې دي قاتل سړی په قصاص کې قتل کړل شي،

**حل اللغات:** ①اعْتَبَطَ :دَ څه جرم او جنایت نه بغیر دچا قتلول ②قَوَدُ: قودَ انقیادنه ماخوذ دې تابعدار کیدل. او قاتل هم په قصاص کښې دَ اولیاء مقتول په مخکښې تابعدار کیږي. ③قَوَدُيَدِهِ: یعنی دَ خپل لاس دَ جرم دَ وجې نه دَقصاص مستحق کیږي لکه چه دَ ده لاس دَ قصاص سامان پیدا کړو.

۱) اخرجه ابو داود فی کتاب الدّیات/باب فی دیة الخطا شبه العمد (رقم-٤٥٤٧)

۲) اخرجه النسائی فی السنن کتاب القسامة/باب ذکر حدیث عمرو بن حزم فی العقول. واختلاف النّاقلین له (رقم-٤٨٥٣) ومالک فی الموطا کتاب العقول/باب ذکر العقول (رقم-۱)

[۱] وَفِيهِ: (فِي النَّفْسِ الدِّيَةُ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ، [۲] وَعَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ أَلْفُ دِينَارٍ، [۳] وَفِي الْأَنْفِ إِذَا أُوعِبَ جَدْعُهُ الدِّيَةُ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ، [۴] وَفِي الْأَسْنَانِ الدِّيَةُ، [۵] وَفِي الشَّفَتَيْنِ الدِّيَةُ [٦] وَفِي الْبَيْضَتَيْنِ الدِّيَةُ، [۷] وَفِي الذَّكَرِ الدِّيَةُ، [۸] وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ، [۹] وَفِي الرِّجْلِ الْوَاحِدَةِ نِصْفُ الدِّيَةِ، وَفِي الْمَأْمُومَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ، [۱۰] وَفِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ،

**ترجمه:** [۱] په هغه کې دا هم لیکلي وو، چې د نفس خون بها سل اوښان دي (یعني د چاسره چې سل اوښان وي، هغه دي په خون بها کې د مذکوره تفصیل مطابق سل اوښان ورکړي) [۲] او د چا سره چې سره زر وي، هغه دي یو هزار دینار ورکړي، [۳] او د پوزې دیت (هر کله چې هغه پوره پرې شوي وي) سل اوښان دي، [۴] او د غاښونو دیت (هر کله چې ټول مات شوي وي) پوره دیت دی، [۵] او د دواړو خصیتینو ایستلو هم پوره دیت دی، [٦] او د ملا د هډوکو د ماتولو هم پوره دیت دی، [۷] او د عضو مخصوص (ذکر) د پریکولو هم پوره دیت دی، [۸] او د دواړو سترګو ښکلو هم پوره دیت دی، [۹] او د یوی پښی د په پریکولو نیم دیت دی، او د سر د چمړه په زخمي کولو دریمه حصه دیت دی، [۱۰] او خیټه کې زخم رسولو باندې دریمه حصه دیت دی،

**حل اللغات:** ⑦أَهْلِ الذَّهَبِ: اود سرو زرو په مالکانو ⑧الْأَنْفِ: پوزه، ⑨إِذَا أُوعِبَ: کله چې پوزه پوره کټ کړی، ⑩جَدْعُهُ: جدع دَ باب فتح نه دَ پوزې پرې کول ⑪الْأَسْنَانِ: جمع د سن ده غاښونه. ⑫الشَّفَتَيْنِ: شونډې، (۱۰) الْبَيْضَتَيْنِ: خصیتین، دوه هګۍ، (۱۱) الذَّكَرِ: ذکر، عضوتناسل، د سړی خاص اندام. (۱۲) الْمَأْمُومَةِ: د سر چمړه، د سر خرمن، (۱۳) الْجَائِفَةِ: دخیټې ژور زخم،

[۱] وَفِي الْمُنَقِّلَةِ خَمْسَ عَشْرَةَ مِنَ الْإِبِلِ، [۲] وَفِي كُلِّ أُصْبُعٍ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ وَالرِّجْلِ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ، [۳] وَفِي السِّنِّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ» [۴] رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ. وَفِي رِوَايَةِ مَالِكٍ: («وَفِي الْعَيْنِ خَمْسُونَ، وَفِي الْيَدِ خَمْسُونَ، وَفِي الرِّجْلِ خَمْسُونَ، وَفِي الْمُوضِحَةِ خَمْسٌ»".

**ترجمه:** [۱] او دغه شان په مجروح (زخمي) کولو چې هډوکي د خپل ځای نه بې ځایه شوی وي. پنځلس اوښان ورکول واجب دي، [۲] او د لاس او پښو د ګوتو هري یوي ګوتي پریکولو باندې لس اوښان ورکول واجب دي، [۳] او د هر غاښ په بدله کې پنځه پنځه اوښان دي، [۴] (نسایي دارمي) او د امام مالک رحمه الله په روایت کې دا الفاظ دي چې د یوي سترګي د ماتولو دیت پنځوس اوښان دي، او د یو لاس او یوي پښي دیت پنځوس پنځوس اوښان دي. او د داسې زخم رسولو دیت چې په هغه کې هډوکي بهر راوتلي وي، یا ښکاره شوي وي پنځه اوښان دي

**حل اللغات:** (۱۴) الْمُنَقِّلَةِ: ژور زخم چه هډوکی ورسره بې ځایه شی، (۱۵) الْمُوضِحَةِ: ژور زخم چه هډوکی ورسره رابنکاره شی

**تسهيلات:**

**قوله:** يَرْضَى أَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِ:

**د قتل عمد په صورت کښې د ديت اخستلو جواز:** قتل خطا اوقتل شبه خطا اوقتل شبه عمدکښې په اتفاق سره ديت دې قصاص نه دې اوقتل عمد کښې په اتفاق قصاص دې ليکن که چرې اوليا، دَ مقتول په ديت اخستلوباندې راضي شی نوداهم جائز دی چه هغه قاتل بالکل معاف کړی ياهغه سره صلح اوکړی ديت واخلی

**په ديت کښې د اوښانو د موجودګۍ په صورت کښې د دې په بدل کښې د نقدينو ورکولو په حکم کښې ۲ مذاهب:**

① په مذکوره صورت کښې د امام شافعی رحمه الله فرمائی که چرې اوښان موجودوی نوسره زر اوسپين زرورکول جائزنه دی. اوښان متعين دی اوکه چرې جانبين دَ اوښانو په ځائی په زرنقدباندې راضي شي نوبياجائزدی.

② امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام احمد رحمه الله فرمائی چه دَ اوښانو په موجودګئی کښې هم سره زر اوسپين زر ديت کښې ورکولې شی دَمقتول وارثان به ئی اخلی

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث ددوی مستدل دې په دې کښې دَ سلو اوښانوتصريح ده

**د دويم فريق دليل:** بيشکه دلته دَ اوښانوذکر دې ليکن په توګه دَ صلح اودَ طرفين په رضامندئی سره دَ اوښانونه علاوه مقررشوې او فيصله شوې څيزونه هم دَ اوښانوبدل کيدې شی که هغه سره زر وی اوکه سپين زر وی يا نور څيزونه وی

**قوله:** أَلْفُ دِينَارٍ:

**د زرو ديناريه ځائې د دارهم په مقدار کښې ۲ مذاهب:**

په زرو ديناروکښې خو دَ هيچاهم اختلاف نشته دې. خو د دې په برابر په دراهمو کښې اختلاف دې

① دَ شوافعو په نيزدولس زره درهم دی

② احنافو په نيزلس زره درهم دی. دَدې باب په شروع کښې دامسئله ليکلې شوې ده

**د ديت د ډېر والی او کم والی ضابطه او د دې ماخذ:** داخبره دې نه وړاندې ليکلې شوې ده چه دَ ديت دَ زياتيدو اوکميدو وجه دَ جرم نوعيت دې که چرې نقصان داسې اندام ته رسيدلې دې کوم ته چه په انسانی بدن کښې مرکزی حيثيت حاصل دې اودَ دغه اندام پوره منفعت ختم شوې دې په کوم سره چه دَ بدن ښائست اوموزونيت ته مکمل نقصان رسيدلې دې نو په داسې صورت کښې پوره ديت واجب کيږی اوکه دَدې نه دکمې درجې نقصان دې نوبيادَ نصف يا ثلث ديت حکم جاری کيږی. دا ضابطه دَ نبی کريم دَ دې مبارك حکم نه حاصليږی په کوم کښې چه نبی کريم دَ داسې مخصوص اندام په ضائع کيدو باندې دَ پوره

ديت حکم فرمانيلي دي د کوم اندام په ضائع کيدو چه د انسان په جمال اوکمال کښې فرق راځي اود سړی عظمت اوشان اوشوکت ته نقصان رسيږی مثلاً پوزه ده يا ژبه ده يا سترګي دی په دې سره دانسان پوره منفعت ضائع کيږی

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په خپل خلافت کښې د يوزخم د وجې نه څلور ديتونه واجب کړي وو ځکه چه سره د دې هغه زخم يووو خو د دغه سړی عقل هم په دغه زخم سره ختم شوي وو د هغه سماعت اوبصارت او مردانه قوت اوعقل بول چال څلور واړه څيزونه ختم شوي وو (عن عمر بن الخطاب انه قضى فى رجل ضرب رجلاً فذهب سمعه وبصره ونكاحه وعقله باربع ديات، (زجاجة المصابيح ج۳ص۲۹)

**[۳٤۹۲] د مواضح اواسنانو د ديت مقدار**

۳۴۷۳ـــ[۷] (۱) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: [۲] «قَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَوَاضِحِ خَمْسًا خَمْسًا مِنَ الْإِبِلِ، [۳] وَفِي الْأَسْنَانِ خَمْسًا خَمْسًا مِنَ الْإِبِلِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ. وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهِ الْفَصْلَ الْأَوَّلَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عمرو بن شعيب رحمه الله د خپل پلار نه او هغه خپل نيکه نه نقل کوي [۲] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم حکم وکړي د داسې زخمونو ديت چې په هغه کې هډوکي ظاهر شي، پنځه پنځه اوښان دي، [۳] او د غاښونو (يعني د هر هر غاښ) ديت هم پنځه پنځه اوښان دي. (ابوداود نسايي دارمي) ترمذي رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله (د دې حديث) مخکنی جز (چې په هغه کې د زخمونو ديت بيان شوی دی) نقل کړي دی.

**تسهيلات**:

**نوټ**: د دې حديث پاك تشريح ما قبل حديث کښې تيره شوې ده البته دې خانې کښې يو سوال او جواب وړاندې کيږی

**قوله**: وَفِي الْأَسْنَانِ خَمْسًا خَمْسًا مِنَ الْإِبِلِ:

**اشکال**: هرکله چې د ټولوغاښونو ديت سل اوښان دی نو ديو غاښ ديت پنځه اوښان څنګه کيدشی؟ ځکه چې د ټولو غاښونو تعداد دوه ديرش دي، په دې اعتبار سره د يو غاښ ديت درې اوښان او د دې نه څه لږ شان زيات پکار دي؟

**داشکال جواب**: دا ضروری نه دی چې شارع څومره احکام نافذ کړی دی، عقل دې د هغې ټولو ادراك او احاطه اوکړی، نو ډير احکام داسې دی چې په هغې کښې د عقل هيڅ عمل

١) اخرجه ابو داود فى كتاب الديات/باب ديات الأعضاء (رقم-٤٥٦٦) والترمذى فى كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الموضحة (رقم-١٣٩٠) وابن ماجه فى السنن كتاب الديات/باب الموضحة (رقم-٢٦٥٥) واحمد فى المسند: ٢/٢١٥

دخل نشته دي بلکه څنګه چې شارع حکم ورکړي دي زمونږ کار په هغې باندې عمل کول دي ، اعتراضات نه

**[۳۴۹۴] د لاس او د پښو د ګوتو د ديت برابری**

۳۴۹۴-[۸] (۱) ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: [۲] «جَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَابِعَ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ سَوَاءً». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي ۲ چې رسول الله ﷺ د دواړو لاسونو او پښو تولې ګوتې مساوي ګرځولی دی ،ددي پورې چې قتی ګوته او خچی هم د يو بل برابر ګرځولی دی، اګر چې د بندونو د اعتبار نه په دواړو کې فرق دی، ،ابوداود ترمذي،

**تسهيلات:**

**نوټ** د ترجمې څخه مطلب واضح دي

**[۳٤۹۵] دبعضې اندامونو ديت برابری**

۳٤۹۵-[۹] (۲) ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «الْأَصَابِعُ سَوَاءٌ، ۳ وَالْأَسْنَانُ سَوَاءٌ، ٤ وَالثَّنِيَّةُ وَالضِّرْسُ سَوَاءٌ، ۵ هٰذِهٖ وَهٰذِهٖ سَوَاءٌ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي ۲ چې رسول الله ﷺ وفرمايل ،د ديت په اعتبار سره تولې ګوتې برابرې دي، ۳ او تول غاښونه برابر دي ،اګر چې بعضې غاښونه لوی دي و بعضې واړه دي ٤ او د مخ غاښونه او داړي يعنی د ژامې غاښونه برابر دي ،اګر چې داړي د مخ د غاښونو نه لوی دي، خو ديت د دواړو برابر دی، ۵ او حضور ﷺ د بتې او خچې ګوتو طرف ته اشاره کولو سره وښودل چې دا او دا برابری دي، ،ابوداود،

**حل اللغات** (۱) اَلثَّنِيَّةُ: مخامخ غاښ (۲) الضِّرْسُ: د ژامې غاښ (۳) هٰذِهٖ وَهٰذِهٖ: دا او دا ،اسمائي اشارت دی.

**تسهيلات:**

**قوله** اَلْأَصَابِعُ سَوَاءٌ، وَالْأَسْنَانُ سَوَاءٌ:

**مذکوره د درې واړو احاديثو دپاره د يو عنوان د انعقاد وجه:** پورتنی دريواړه احاديث هم ديوعنوان لاندې څکه کيخودې شوی دی چه ددې تولو تعلق غاښونو او ګوتو سره دي حديث نمبر(۳۳۳) کښې مواضح لفظ راغلې دي داد موضحة جمع ده موضحه هغه زخم ته

۱ ) اخرجه ابو داود في كتاب الديات باب ديات الأعضاء (رقم-٤٥٦١) والترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في دية الأصابع (رقم-١٣٩١)

۲ ) اخرجه ابو داود في كتاب الديات باب ديات الأعضاء (رقم-٤٥٥٩) وابن ماجه في كتاب الديات باب دية الأسنان (رقم-٢٦٥٠)

وائی دَ کوم نه چه خرمن اخواشی او هډوکي ښکاره شی. په دې کښې به پنځه اوښان په دیت کښې ورکولې شی دَ دیت دا تعین دَ شارع کار دې په دې کښې دَ چاقیاس ته هیڅ هم دخل نشته دې

حدیث نمبر (۳۴۹۵) کښې ثنیة لفظ راغلي دې دَدې جمع ثنایاده. په خله کښې مخامخ غاښونو ته رباعي وائی. دې سره ثنایا دی دې نه پس اضراس ونواجذ دی ضرس دَ جامې غاښ ته وائی یعنی لوئی واړه غاښونه په دیت کښې برابر دی دغه شان ګوتې برابردی سره دَدې چه په غټه ګوته کښې دوه غوټې وی. (هذه وهذه سواء) کښې اشاره دَ غټې ګوتې او لاس کچې ګوتې طرف ته ده

دا دَ شریعت حکم دې چه دَعقل اوقیاس دلته دخل نشته دې سره دَدې چه په غټه ګوته کښې جوړونه کم دی او په کچه ګوته کښې زیات دی.

نسر جاۓ مرکبتران تا خفتن　　　　که جا با سپر باید انداختن

یعنی هرځائی کښې عقلی اس نه شي زغلولې په ډیرو ځایونو کښې وسله غورزولې کیږی.

**[٣٤٩٦] د ذمي کافر د دیت مقدار**

٣٤٩٦-[١٠] (١) ①وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: ②«خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ ③ثُمَّ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ، ④وَمَا كَانَ مِنْ حِلْفِ الْجَاهِلِيَّةِ فَإِنَّ الْإِسْلَامَ لَا يَزِيدُهُ إِلَّا شِدَّةً، الْمُؤْمِنُونَ يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ ⑤يُجِيرُ عَلَيْهِمْ أَدْنَاهُمْ، وَيَرُدُّ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ يَرُدُّ سَرَايَاهُمْ عَلَى قَعِيدَتِهِمْ،

**ترجمه:** ①او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار (حضرت شعیب) او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي ②چې رسول الله ﷺ د مکې د فتح په کال یوه خطبه ورکړله. ③او په هغه کې (د حمد وثناء نه وروسته) وفرمایل چې په اسلام کې قسم او عهد وپیمان کول جائز نه دی، ④لیکن هغه عهد وقسم چې د هغه په زمانه د جاهلیت کې رواج وو، هغه اسلام په مضبوطي سره نیسي (یاد لري) ټول مسلمانان د خپل غیر (یعني کفارو) په مقابله کې (د نیکیو په خورولو او په خپلو کې د یو بل په مددګار کیدو کې) د یو لاس په شان دی، ⑤یو ادنی ترین مسلمان هم د ټولو مسلمانانو د طرف نه پنا ورکولی شي، او هغه مسلمان هم حق لري، کوم چې د ټولو مسلمانانو نه چرته لري وي، او د مسلمانانو لښکر هغه ټول مسلمانان هم (د مال غنیمت) حقدار جوړ وي، کوم چې (د لښکر سره نه وي تلی، بلکه) ناست پاتې شوي وي

(١) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحدیث ٤٥٨٣ واحمد فی المسند ٢/ ١٨٠

**حل اللغات** ①لَا حِلْفَ: حلف د ح، په كسره او لام سكون سره. يوبل سره قسم كول. عهدوپيمان ومعاهده او لوظ كول ②شِدَّةً: سخت والي. مضبوط والي. ③يَدٌ: يو لاس. يو موتي. اتحاد او اتفاق. ④يُجِيرُ: پناه وركولي شي. ⑤أَدْنَاهُمْ: ادنى. معمولى. ⑥أَقْصَاهُمْ: لري. ⑦قَعِيدُهُمْ: د دوى ناست جهاد ته نه وى تللي.

①وَلَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ، ②دِيَةُ الْكَافِرِ نِصْفُ دِيَةِ الْمُسْلِمِ ③لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ، ④وَلَا تُؤْخَذُ صَدَقَاتُهُمْ إِلَّا فِي دُورِهِمْ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: دِيَةُ الْمُعَاهِدِ نِصْفُ دِيَةِ الْحُرِّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①خبردار، هيڅ مسلمان دې د يو (حربي) كافر په بدله كې نشي وژلى. امام شافعي رحمه الله وايي چې د ذمي كافر په بدله كې دې هم مسلمان نشي قتلولى. ②او د ذمي كافر ديت د مسلمان د ديت نيم دى. ③او (په زكوة وصولونكى كار كې پطور د خاص واوري) چې د زكوة حيوان دې په رابنكلو سره نشي راغوښتلى. ④او (زكوة وركونكى دې هم واوري چې هغه دې خپل حيوان چرته لري نه بيايي (زكوة وصولونكي ته پكار دى چې) زكوة د هغوى كورونو ته ورتلو سره واخستي شي. او په يو روايت كې دا هم دى چې د عهد والا ديت د آزاد د ديت نيم دى. (ابوداؤد)

**حل اللغات** ⑧لَا جَلَبَ: په رابنكلو دې نه راولى. ⑨وَلَا جَنَبَ: ورې ته كول دې نه كوى. ⑩فِي دُورِهِمْ: په كورونو د هغوى كښې ⑪الْمُعَاهِدِ: ذمي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ

**په دور جاهليت كښې د حلف د معاهدې رواج:** په دې كښې د قسم مفهوم موجود دې د جاهليت په زمانه كښې دا عهدوپيمان دغه شان كيدل دوو كسانو يا دوه ډلو به په خپل مينځ كښې قسم خوړلوسره دا معاهده كوله چه كه چرې په تاباندې مصيبت راغلويا په موږ كښې په يوباندې مصيبت راغلو نوموږ به د يوبل امدادكوو په دغه مصيبت كښې به دواړه برابرشريك يو په جنګ كښې به يوبل سره برابر شريك يو په ميراث كښې به د يوبل وارثان يو او په تاوان اونقصان كښې به شريك يو كه ظالم وى اوكه مظلوم وى

**په اسلام كښې د جاهلى حلف فسخ:** په دې معاهده كښې د ظالم امداد وو او په هرجائزاوناجائز كښې بې خايه معاونت وو په دې وجه نبى كريم دا منع كړل او د ميراث آيت د دې معاهده حيثيت باطل كړو په دې وجه د دې ممانعت اوكړې شو

**قوله:** «لَا يَزِيدُهُ إِلَّا شِدَّةً».

**د انصافى معاهدې برقرار ساتل:** په جاهليت كښې چه به ناجائزمعاهدې كيدلې نوځه معاهدې په كښې داسې هم وې چه په انصاف باندې وې مثلاً يوحلف نامه به داسې وه چه د مظلوم امدادبه كوو خپلولى به ساتو اود انسانى جائزحقوق حفاظت به كوو اسلام دا

معاهده باقی پریخوده اونبی کریم اعلان اوکړو چه اسلام به دا نوره هم کلکه کړی خلاصه دا چه بنه معاهده بنه ده دَهغې پالنه به کولې شی اوخرابه معاهده خرابه ده دې نه به ویزاره کیدل وی

**قوله**: عَلَى قَعِيدَتِهِمْ:

**د قعید تعریف**: قعیده او القاعده دَمرکز په معنی کښې دې داد اسلامی افواج مرکز او لویه چهاؤنړی اوکیمپ ته وائی. مطلب دادې چه مرکزکوم چهاپه مار ټولګی لرې لرې علاقوته دَ فوجی کاروائی دَپاره لیګلې هغه ټولګی پخپله لاړل اوهغوی ته دَ غنیمت مال حاصل شو نوپه هغوی باندې لازم ده چه پوره مال دَ غنیمت دې راوړی مرکزکښې دې جمع کړی دَ یرد مفعول به په دواړو خایونوکښې محذوف دې کوم چه الغنیمة دې دا جمله دَماقبل یرد دَپاره په منزله دَ بیان ده.

**قوله**: وَلَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ: بکافر کښې کافرنه حربی مراددې دادَ احنافو مسلك دې

**قوله**: دِيَةُ الْكَافِرِ نِصْفُ دِيَةِ الْمُسْلِمِ:

**د دیت مقدار**: یادلرنی دَ جمهورو په نیز پوره دیت دولس زره درهم دې دَدې نصف شپږ زره درهم دې اودَدې ثلث څلور زره درهم دی دَ احنافو په نیزپوره دیت لس زره درهم دې دَدې نصف پنځه زره درهم دې.

**د ذمي په دیت کښې ۳ مذاهب**:

دَ ذمی کافردیت دَ مسلمان دَ دیت په مقابله کښې نیم دې. دَ حربی کافرپه قتل کښې هیڅ دیت نشته اودَ ذمی په دیت کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

① امام مالك رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزدَ ذمی کافردیت دَ مسلمان دَدیت نصف دې

② امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دَ غیرمسلم ذمی دیت دَمسلمان په مقابله کښې ثلث یعنی دریمه حصه دې

③ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی دَمسلمان اوذمی دیت برابردې

**داول فریق دلیل**: زیر بحث حدیث د دوي مستدل دې په دې کښې دَ نصف دیت تصریح موجود ده

**د دویم فریق دلیل**: دَمصنف عبدالرزاق یوحدیث د دویم فریق مستدل دې دَ کوم الفاظ چه دادی «انه علیه السلام فرض علی کل مسلم قتل رجلا من اهل الکتاب اربعة الاف درهم» (مصنف عبدالرزاق)

**د دریم فریق دلائل**: ① «عن سعیدبن المسیب قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم دیة کل ذي عهدفی عهده الف دینار» (مراسیل ابوداؤد بحواله زجاجة المصابیح ج۳ص۳۰)

④ ان النبی صلی الله علیه وسلم ودی ذمیًا دیة مسلم کذا في دارقطنی «دَ دارقطنی په دویم روایت کښې دی «ان النبی صلی الله علیه وسلم جعل دیة المعاهد کدیة المسلم»

⑤ عن ابن عباس رضي الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم ودي العامریین بدیة المسلمین وکان لهما عهد من رسول الله صلی الله علیه وسلم» کذا في الترمذی باب الدیات، یعنی دَ قبیله عامر دَ دوو معاهدو په قتل باندې نبی کریم دَ دوو مسلمانانو دَدیت برابر دیت ادا کړو

⑥ دَ خلفاء راشدین قضایا او فیصلې هم د دوي مستدل دي د حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه په مبارکه زمانه کښې او دَ حضرت عمر اوحضرت عثمان رضي الله عنهما په مبارك دورکښې هم دغه شان فیصلې شوی دی چه دَ غیرمسلم دیت دَمسلمان دَ دیت مساوی او برابر ګرځولې شوې دي

**داول فریق د دلیل جواب:** دویم فریق وائی مونږ دَ کوموا احادیثو اودَخلفاء راشدین دَ فیصلونه استدلال کړې دې هغه دَ نورو روایاتو نه راجح دی.

**قوله: لَاجَلَبَ:**

**د جلب د لفظ مختلف مصادیق:** دالفظ په کتاب الزکوة کښې هم راغلې دې اوپه کتاب الجهاد کښې هم راغلې دې اودلته هم راغلې دې. دَ دې تعلق کله زکوة سره وی اوکله دَ اسونومقابله سره وی دواړو ځایونوکښې ځان ځانله مفهوم دې دلته دا جمله دَزکوة متعلق ده په دې کښې دَ زکوة وصولونکی کارکن ته وئیلې شوی دی چه هغه دې دَ ښار په مرکزکښې کیناستو سره زکوة ورکونکوته دا نه وائی چه تاسو خپل مال املاك ښار ته راؤړئ دې دَ پاره چه زه ئې معاینه اوکړم او بیازکوة وصول کړم په دې کښې دَ مالکانودَپاره ډیر مشقت دې

**قوله: وَلَاجَنَبَ:**

**د مذکوره جملې متعلقین:** دَدې جملې تعلق مالکانوسره دې چه هغوی خپل مال اوځاروی دَدغه مقام نه لرې بوځی کوم ځائی ته چه دَ زکوة وصول کونکې کارکن رسیدلې وو مالکانوهغه ته اوونیل چه دلته راشه اوزمونږ مال اوځاروی اوګوره اودَ زکوة مال وصول کړه په دې کښې دَ زکوة وصول کونکی دَپاره ډیرمشقت دې په دې وجه نبی کریم دواړه صورتونه منع اوفرمائیل چه «لاجلب ولا جنب» هم دَدې جملې دَ تاکید اوتوضیح دَپاره دَ حدیث وړاندینئی جمله ارشاد اوفرمائیلې شوه «ولاتوخذ صدقتهم الافی دورهم»

## [٢٤٩٧] د قتل خطاء ديت

٣٤٩٧—[١١] (١) [١] وَعَنْ خِشْفِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [٢] قَالَ: «قَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دِيَةِ الْخَطَإِ عِشْرِينَ بِنْتَ مَخَاضٍ، [٣] وَعِشْرِينَ ابْنَ مَخَاضٍ ذُكُورٍ، [٤] وَعِشْرِينَ بِنْتَ لَبُونٍ، [٥] وَعِشْرِينَ جَذَعَةً، وَعِشْرِينَ حِقَّةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] او خشف ابن مالك رحمه الله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل كوي چي هغه اوويل [٢] چې رسول الله ﷺ د قتلِ خطاء ديت دا مقرر كړي چې شل اوښې دي هغه وي چې په دويم كال كې لګيدلى وي، [٣] او شل اوښان د دويم كال خاوندان يعنى شل نر او شل مادى چې جمع څلويښت شى، [٤] و شل اوښى هغه وى چې په دريم كال كې لګيدلى وي، [٥] او شل اوښې دي هغه وي چې په پنځم كال كې وي، او شل اوښې دي هغه وي چې په څلورم كال كې وي. (ترمذي ابوداود نسائي)

[١] وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ مَسْعُودٍ وَخِشْفٌ مَجْهُولٌ لَا يُعْرَفُ إِلَّا بِهٰذَا الْحَدِيثِ. [٢] وَرُوِيَ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدَى قَتِيلَ خَيْبَرَ بِمِائَةٍ مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ [٣] وَلَيْسَ فِي أَسْنَانِ إِبِلِ الصَّدَقَةِ ابْنُ مَخَاضٍ إِنَّمَا فِيهَا ابْنُ لَبُونٍ.

**ترجمه:** [١] د دې حديث په باره كې صحيح خبره دا ده چې دا په ابن مسعود رضي الله عنه موقوف دى (يعني د هغه خپل قول دى) او (د دې راوي) خشف يو غير معروف راوي دى، چې يواځې د دې حديث سره پيژندل كيږي (يعني د دې نه علاوه بل يو روايت د هغه نه منقول نه دى) [٢] بغوي رحمه الله په شرح السنه كې داسې نقل كړي دى رسول الله ﷺ د هغه سړي په ديت كې چې په خيبر كې قتل شوى وو (او دغه تفصيلي واقعه به په باب القسامت كې بيان شي) په زكوة كې راوړل شوي اوښانو نه سل اوښان وركړي وو، [٣] او د زكوة په هغه اوښانو كې يو اوښ هم د يو كال نه وو بلكه د دوو دوو كالو وو.

**حل اللغات:** ① وَدَى: ادا ئې كړل ② أَسْنَانٌ: جمع د سن غاښونه ③ ابْنُ مَخَاضٍ: د يو كال اوښ. ④ ابْنُ لَبُونٍ: د دوو كالو داوښې بچے

**تسهيلات:** قوله: دِيَةِ الْخَطَإِ عِشْرِينَ بِنْتَ مَخَاضٍ:

### په ديت مخففه كښې د اوښانوپه نوعيت كښې ٢ مذاهب:

① په ديت مخففه كښې د اوښانو ديت اود تقسيم بيان په دې حديث كښې راغلي دې د قتل خطاء په ديت مخففه كښې داوښانوتقسيم په پنځه شان باندې دې په دې كښې د چا

١) اخرجه ابو داود فى كتاب الدّيات/باب الدّية كم هى؟ (رقم-٤٥٤٥) والترمذى فى كتاب الدّيات عن رسول الله صلى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى الدّية كم هى من الإبل (رقم-١٣٨٦) والنسائى فى كتاب القسامة/باب ذكر أسنان دية الخطأ (رقم-٤٨٠٢) وابن ماجه فى كتاب الدّيات/باب دية الخطأ (رقم-٢٦٣١)

اختلاف نشته البته

② امام شافعي رحمه الله دَ ابن مخاض په خائې ابن لبون قائل دې يعنې ۲۰بنت مخاض ۲۰ ابن مخاض او ۲۰بنت لبون او ۲۰ حقه او ۲۰دَجذعه چه كوم ترتيب زير بحث حديث كښې راغلې دې په دې كښې امام شافعي دَ ابن مخاض په خائې دَ ابن لبون قائل دې ليكن احناف هم دَدې قائل دى كوم چه په دې حديث كښې ترتيب ذكر دې

**د احنافو په زيربحث مستدل بانديې اعتراضات:** زير نظر حديث چونكه دَ احناف واضح دليل دې په دې وجه شوافعو حضراتو دَدې دكمزورې كولودَپاره درې اعتراضات كړى دى

**اول اعتراض:** ① اودا روايت په اصل كښې په ابن مسعود رضي الله عنه بانديې موقوف دې

**د اول اعتراض جواب:** ملاعلي قاري رحمه الله فرمائى كه چرې دا روايت موقوف هم دې نو هيڅ مضائقه نشته ځكه چه په دې روايت كښې دَ شرعي اعدادو بيان شوې دې او په كوم روايت كښې چه دَ مقادير شرعيه بيان وى هغه غيرمدرك بالقياس وى كوم چه دَمرفوع په حكم كښې وى لهذا دا حديث دَمرفوع په حكم كښې دې

**دويم اعتراض:** دَ دې حديث يوراوى خشف بن مالك مجهول دې

**د دويم اعتراض جواب:** خشف دَ خپل پلار مالك طائي نه روايت كوى دَ حضرت عمرفاروق رضي الله عنه روايت اخلي. دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت كوى هغه څنګه مجهول دې حالانكه ضابطه دَ اصول حديث داده چه كله يوسړې دَ دوو كسانونه روايت كوى نوهغه مجهول نه پاتې كيږى بلكه معروف كيږى. بل امام نسائي رحمه الله غوندې سخت محدث دَخشف بن مالك توثيق كړې دې. ابن حبان رحمه الله خشف په ثقات كښې شميركړې دې "كذا في المرقات ملخصاً". امام ترمذى رحمه الله امام ابوداؤد رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله په خپلو كتابونو كښې خشف نه روايت كړې دې لهذا دَ انصاف تقاضاداده چه په دې روايت بانديې څه كلام اونه كړې شى

**دريم اعتراض:** ③ اودَ خيبر دَ مقتول چه كوم ديت نبى كريم اداكړې وو په هغې كښې ابن لبون وركړې وو دَ ابن مخاض ذكر په دې روايت كښې نشته دې نوابن لبون به اخستې شى ابن مخاض به پريخودې شى

**د دريم اعتراض دوه جوابونه:** ① علامه شمنى رحمه الله فرمائى دَخيبردَ ديت معامله دَ نبى كريم دَ طرف نه احسان او دَ تبرع په توګه وه څه ضابطه نه وه نبى كريم دَخپل طرف نه اكثر ديت وركړې وو نوهغه دَ صلح يوصورت وو

② دَ مقتول خيبرپه ديت كښې چرته چه دَ ابن لبون لفظ راغلې دې نوهم په دغه روايت كښې دَدې جواب هم دې چه هغه وخت دَ صدقه په اوښانو كښې ابن مخاض موجودنه وو په دې وجه ابن لبون وركړې شو

## [۳۴۹۸] په ديت كښې د اوښانو بنيادي كردار

۳۴۹۸ - [۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: [۲] «كَانَتْ قِيمَةُ الدِّيَةِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِمِائَةِ دِينَارٍ، أَوْ ثَمَانِيَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ، [۳] وَدِيَةُ أَهْلِ الْكِتَابِ يَوْمَئِذٍ النِّصْفُ مِنْ دِيَةِ الْمُسْلِمِينَ. [۴] قَالَ: فَكَانَ كَذٰلِكَ حَتّٰى اسْتُخْلِفَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَامَ خَطِيبًا [۵] فَقَالَ: إِنَّ الْإِبِلَ قَدْ غَلَتْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي [۲] چې د نبي كريم ﷺ په زمانه كې د ديت (د سلو اوښانو) قيمت اته سوه ديناره يا اته زره درهمه وو. [۳] او د هغه په زمانه كې د اهل كتابو (يعني عيسايانو او يهوديانو) ديت د مسلمانانو د ديت نيمه وو. [۴] د هغه نيكه وايي چې د حضرت عمر ؓ تر خليفه كيدو د دې مطابق عمل در آمد كيدلې، د حضرت عمر ؓ (د خليفه كيدو نه وروسته) د خطبه وركولو د پاره ودريدلو [۵] او وي فرمايل چې د اوښ قيمت زيات شوى دى.

**حل اللغات** ① اسْتُخْلِفَ: چه خليفه جوړكړې شو. ② غَلَتْ: نرخ ئې زيات شو قيمت ئې زيات شو.

[۱] قَالَ: فَفَرَضَ عُمَرُ عَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ أَلْفَ دِينَارٍ، [۲] وَعَلَى أَهْلِ الْوَرِقِ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا، [۳] وَعَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ، [۴] وَعَلَى أَهْلِ الشَّاءِ أَلْفَيْ شَاةٍ، [۵] وَعَلَى أَهْلِ الْحُلَلِ مِائَتَيْ حُلَّةٍ. [۶] قَالَ: وَتَرَكَ دِيَةَ أَهْلِ الذِّمَّةِ لَمْ يَرْفَعْهَا فِيمَا رَفَعَ مِنَ الدِّيَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] د راوي بيان دى چې (د دې نه وروسته) حضرت عمر ؓ چې كوم ديت مقرر كړي وو، د هغه تفصيل دا دى چې په سره زر ساتونكو يو زر ديناره، [۲] په سپينو زرو ساتونكو دولس زره درهم. [۳] د غوا په مالكانو دوه سوه غواګانې. [۴] د بزو په مالكانو دوه زره بزې چيلې. [۵] او د كپړې په جوړولو (تجارت كونكو) دوه سوه جوړې. [۶] راوي وايي چې حضرت عمر ؓ د ذميانو ديت په خپل حال برقرار وساتلى (يعني د حضور ﷺ په زمانه كې د ذميانو ديت څلور زره درهمه وو. حضرت عمر ؓ هغه برقرار وساتلى) په دې كې يې هيڅ اضافه ونه كړه. څنګه چې په نورو ديتونو كې اضافه وشوه. (ابوداود)

**حل اللغات** ③ فَفَرَضَهَا: مقررئې كړلو. لازم ئې كړلو ④ أَهْلِ الذَّهَبِ: د سرو زرو خاوندان ⑤ أَهْلِ الْوَرِقِ: د سپينو زر خاوندان (لورنكي) ⑥ أَهْلِ الْبَقَرِ: غواګانو والا ⑦ أَهْلِ الشَّاءِ: ګډو چيلو والا ⑧ أَهْلِ الْحُلَلِ: جامو والا (بزاز، دكپړې تجارت كونكى). ⑨ حُلَّةٍ: كپړه، جوړه. ⑩ أَهْلِ الذِّمَّةِ: ذميان، چه دمسلمانانو په ملک كښې په معاهده سره اوسيږي. ⑪ لَمْ يَرْفَعْهَا: زيات ئې نه كړل. برقرار ئې اوساتلو

۱) اخرجه ابو داود فى كتاب الديات/باب الدية كم هى؟ (رقم-۴۵۴۲)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَفَرَضَهَا عُمَرُ

**د دیت په معیار او اصل کښې ۳ مذاهب:**

دَدې روایت دَ وجې نه دَ فقهاء کرامو په مینځ کښې دا مسئله راؤچته شوې ده چه دَ دیت مقررولو کښې اصل معیار اوبنیاد څه څیز دې آیا اوبنان بنیاد دې یا نقد دینار اودراهم دَ دیت مقررکولو دَپاره اصل دې یا دغه دواړو سره څه نور څیزونه هم دَ دیت مقررکولودپاره اصل دې په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① امام شافعي رحمه الله فرمائي چه اصل معیاراوبنیاد اوبنان دی دَ اوبنانو دَ قیمت په حساب سره دینار او دراهم به مقررکولې شي سل اوبنان یودیت دې لهذا دَ سل اوبنانودَ قیمت په حساب سره مثلاً پاکستان کښې دَ روپئی حساب کولوسره به دیت ورکړې کیږي. دَ اوبنانو ارزان یا ګران کیدوسره دَ روپو په زیاتیدو اوکمیدو باندې به اثر پریوځي لیکن په دیت کښې اصل صرف هم اوبنان دی. لهذا دَ مجبورئی نه بغیر دَ اوبنانو په موجودګئی کښې دَهغې دَ قیمت طرف ته تلل نه دی پکار.

② صاحبین یعنی امام ابویوسف رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نیزدَ دیت په مقررکولو کښې شپږ څیزونه اصل دی (۱) اوبنان (۲) سره زر (۳) سپین زر (۴) غواګانې (۵) چیلئی (۶) دَ کپړو جوړې

③ دَامام ابوحنیفه رحمه الله دَدیت په مقررکولوکښې درې څیزونه اصل دی (۱) اوبنان (۲) سره زر (۳) سپین زر

**داول فریق دلائل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې دوی د دې دَ هغه حصې نه استدلال کړې دې په کومه کښې چه دَ اوبنانو ذکر حضرت عمر رضي الله عنه دَ اصل په توګه کړې دې

② بل په نورو احادیثوکښې دَ سلو اوبنانو تصریح موجود ده دې سره دَ بل څه څیز ذکرنشته دې لکه چه دَ حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه روایت کښې مأةمن الابل الفاظ راغلي دی کوم چه دَدې باب په حدیث نمبر (۳۳۹۰) کښې ذکردی

**داول فریق د دلائلو مجموعي جواب:** هرکله چې په احادیثوکښې دَ اوبنانونه علاوه څیزونوذکر شته نوبیا دیت صرف په اوبنانوکښې منحصرکول جائزنه دی

**ددویم فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دویم فریق هم مستدل دې په دې کښې دَ شپږو څیزونو تصریح موجودده

**د دویم فریق د دلیل جواب:** په دغه شپږو څیزونو کښې ابل فضه اوذهب نه علاوه څیزونوکښې انضباط نشته بلکه دَ زمانې په تغیرسره دَ اشیاء په قیمتونوکښې ډیر

تغير راځي نودا به څنګه اصل جوړيږي لهذا صرف اوښان سره زر او سپين زر د اصل په توګه قبلول پکاردي

**د دريم فريق دلائل:** ① د دريم فريق مستدل د ابوبکربن محمد رحمه الله حديث نمبر (۳۳۳) دي په کوم کښې چه دا الفاظ دي (في النفس الدية مائة من الابل)

② سره او سپين زر اصل ګرځولو د پاره دوی سره د حضرت عمر رضی الله عنه دي کوم چه امام محمد رحمه الله په خپل موطا کښې داسې ذکر کړې دې (قال محمد بلغنا عن عمر رضي الله عنه انه فرض على اهل الذهب في الدية الف دينار ومن الورق عشرة آلاف درهم) بيهقي او ابن ابی شيبه هم د دې تخريج کړې دې

**[۳۴۹۹] د ديت مقدار**

۳۴۹۹ـ[۱۳] (۱) ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ (أَنَّهُ جَعَلَ الدِّيَةَ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي ۲ چې حضور صلی الله علیه وسلم دولس زره درهم ديت مقرر کړې. (ترمذي ابوداود نسايي دارمي)

**تسهيلات:**

دې حديث سره متعلق تشريح د دې باب په شروع کښې په مکمل توګه باندې شوې ده.

**[۳۵۰۰] د خطا د ديت مقدار**

۳۵۰۰ـ[۱۴] (۲) ۱ «وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: ۲ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَوِّمُ دِيَةَ الْخَطَإِ عَلَى أَهْلِ الْقُرَى أَرْبَعَمِائَةِ دِينَارٍ ۳ أَوْ عِدْلَهَا مِنَ الْوَرِقِ وَيُقَوِّمُهَا عَلَى أَثْمَانِ الْإِبِلِ ۴ فَإِذَا غَلَتْ رَفَعَ فِي قِيمَتِهَا وَإِذَا هَاجَتْ رُخْصًا نَقَصَ مِنْ قِيمَتِهَا ۵ وَبَلَغَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ أَرْبَعِمِائَةِ دِينَارٍ إِلَى ثَمَانِمِائَةِ دِينَارٍ وَعِدْلُهَا مِنَ الْوَرِقِ ثَمَانِيَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمرو ابن شعيب رحمه الله د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي ۲ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په کلي والاوو د قتلِ خطاء ديت څلور سوه دينار ۳ يا د دې مساوي قيمت يعنې د سپينو زرو څلور زره درهم مقرر کړل. او دا مقدار به د اوښانو د قيمت مطابق وو. ۴ هر کله چې د اوښانو په قيمت کې به اضافه کيده، نو حضور صلی الله علیه وسلم به د ديت په

۱) اخرجه ابو داود في كتاب الديات/باب الدية كم هي؟ (رقم-۴۵۴۶) والترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الدية كم هي من الدراهم؟ (رقم-۱۳۸۸) والنسائي في كتاب القسامة/باب ذكر الدية من الورق (رقم-۴۸۰۳) وابن ماجه في كتاب الديات/باب دية الخطأ (رقم-۲۶۳۲)

۲) اخرجه ابو داود في كتاب الديات/باب ديات الأعضاء (رقم-۴۵۶۴) والنسائي في كتاب القسامة/باب ذكر الاختلاف على خالد الحذاء (رقم-۴۸۰۱) وابن ماجه في كتاب الديات/باب دية الخطأ (رقم-۲۶۳۰)

مقدار کې هم اضافه کوله اوکله چې به داوښانو په قيمتونوکي کمي راتله نو حضورﷺ به د ديت په مقدار کې کمی کوله، [۵]دا وجه ده چې د حضورﷺ په زمانه کې د ديت مقدار خلور سوه دينار نه واخله تر اته سوو دينارو يا د دې مساوي قيمت (د سپينو زرو اته زره درهم) پورې وو،

**حل اللغات** ①يُقَوِّمُ: قانموی، مقررکوی، ②عِدْلَهَا: ددې برابر، ③الْوَرِق: سپين زر ④غَلَتْ: قيمت زياتيدل، ⑤هَاجَتْ: زيږ اوقيمت پريوتل، آرزانيدل ⑥رُخْصًا: قيمت کميدل آرزانيدل

[۱]قَالَ: وَقَضَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ [۲]وَعَلَى أَهْلِ الشَّاءِ أَلْفَيْ شَاةٍ [۳]وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْعَقْلَ مِيرَاثٌ بَيْنَ وَرَثَةِ الْقَتِيلِ [۴]وَقَضَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ عَقْلَ الْمَرْأَةِ بَيْنَ عَصَبَتِهَا. وَلَا يَرِثُ الْقَاتِلُ شَيْئًا» ) رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱]راوي وايي چې رسول اللهﷺ په غوا والاوو دوه سوه غواګانې [۲]او په بزو والاوو دوه زره بزې (چيلې)، په طور د ديت مقرر کړي وو، [۳]او رسول اللهﷺ د ديت مال د مقتول د وارثانو حق ګرځولی دی، [۴]او رسول اللهﷺ وفرمايل چې د ښځې ديت د هغه په عصباتو دی، او قاتل (که خپل مورث قتل کړي وی، نو هغه) به د مورث د وراثت نه محروم وي. نه به هغه ته د مقتول د ديت نه څه حصه حاصليږي ، او نه به د هغه د ترکې ميراث نه د څه شي مقدار وي، (ابوداود نسايي)

**حل اللغات** ⑦عَصَبَتِهَا: دهغې رشته داران.

**تسهيلات**:

**قوله** وَإِذَا هَاجَتْ رُخْصًا نَقَصَ مِنْ قِيمَتِهَا:

**د رخصا ضبط اود دې نه مراد**: په راء باندې فتحه ده اوخاء باندې سکون دی مراد د قيمتونو کميدل دی يعنی کله چه به دَ اوښانو په قيمت کښې کمې راتلو نونبی کريم به دَ ديت په مقدار کښې هم کمې کولو کله دَ ديت مقدار څلورسوا دينارو پورې کميدلو او کله به اتوسوو دينارو پورې اوچتيدلو

**قوله**. أَنَّ عَقْلَ الْمَرْأَةِ بَيْنَ عَصَبَتِهَا:

**د مذکوره جملې ولېلو وجه**: داجمله نبی کريم خکه اوفرمائيله دې دَپاره چه دا خبره واضحه شی چه دَښځې په عاقله باندې دَ ديت تاوان راځی اوښځه دَ غلام په شان نه ده دَ چاچه عاقله نه وی ځکه چه غلام په خپل ديت ورکولوکښې پخپله ذمه وار دې دَهغه څوك عاقله نشته دې

## [۲۵۰۱] د شبه عمد قتل حكم

[۱۵] (۱) [۱] وَعَنْهُ، عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «عَقْلُ شِبْهِ الْعَمْدِ مُغَلَّظٌ مِثْلُ عَقْلِ الْعَمْدِ [۳] وَلَا يُقْتَلُ صَاحِبُهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعيب رحمه الله د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [۲] د قتلِ شبه عمد ديت د قتلِ عمد د ديت په شان سخت دی، [۳] ليكن د شبه عمد مرتكب دی نشي قتلولی. (ابوداود)

**حل اللغات** ① عَقْلُ: خون بها، ديت ② مُغَلَّظٌ: سخت.

**تسهيلات:**

**قوله** وَلَا يُقْتَلُ صَاحِبُهُ:

**د سوال مقدر جواب:** داجمله په حقيقت كښې دَ يواشتباه او وهم جواب دې. شبه اووهم دَدې حديث دَ شروع كلام نه داسې پيداشوې چه دَ قتل شبه عمد ديت په دې حديث كښې يوځل مغلظ گرځولې شوی دی په كوم سره چه وهم پيداشو چه كله په ديت كښې دواړه يوځل دی نو په قصاص كښې به هم يوشان وی. دا وهم لرې كولودپاره نبی كريم اوفرمايل (ولايقتل صاحبه) يعنی دَ شبه عمد دَقتل مرتكب به په قصاص كښې نه شی قتل كولې دلته تشبيه صرف تغليظ ديت كښې ده په قصاص كښې نشته دې.

## [۲۵۰۲] د زخمي شوی سترگې ديت

[۱۶] (۲) [۱] وَعَنْهُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: [۲] «قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَيْنِ الْقَائِمَةِ السَّادَّةِ [۳] لِمَكَانِهَا بِثُلُثِ الدِّيَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي [۲] چې رسول الله ﷺ د داسې سترگې په باره كې چې د زخمي كيدو نه وروسته په خپل ځاى باقي پاتې شي. [۳] ليكن د رڼا نه محرومه شي. دا حكم وفرمايلو چې د هغې (د پوره ديت، ثلث (دريمه) دی. (ابوداود نسايي)

**حل اللغات** ① الْقَائِمَةِ: موجوده ② السَّادَّةِ: په خپل ځاې برابر .

---

۱) اخرجه ابو داود فى كتاب الدّيات/باب ديات الأعضاء (رقم-۴۵۶۵) واحمد فى المسند: ۲/۲۲۴

۲) اخرجه ابو داود فى كتاب الدّيات/باب ديات الأعضاء (رقم-۴۵۶۷) والنسائى فى كتاب القسامة/باب العين العوراء السّادّة لمكانها إذا طمست (رقم-۴۸۴۰)

**تسهيلات:**

**قوله فِي الْعَيْنِ الْقَائِمَةِ السَّادَّةِ**

**د زخم په وجه د بصارت د ختميدو په حكم كښې ۲ مذاهب:**

① اسحاق بن راهويه په نيز په سترگه داسې زخم اولگيدو چه نظرئې ختم شو ليكن په خپل ځائې باندې ده اوډ مخ رونق ئې هم په ځائې دې په ښائست او زينت كښې ئې څه فرق رانغلو كتونكې ته داسې ښكارى لكه چه صحيح سالم سترگه ده نو په دې كښې دريمه حصه ديت دې

② عام فقهاء په دې صورت كښې (حكومة عدل) واجب گرځوى يعنى ماهر عادل تجربه كار سړې چه فيصله اوكړى چه دَدې سترگې څومره ديت كيدل پكاردى دا فيصله به داسې وى چه دَ مضروب سړې غلام فرض كړې شى او په صحيح سترگه سره دَ ده قيمت اولگولې شى او بيا په ناقص سترگه سره دَ ده قيمت اولگولې شى چه څومره قيمت كميږى نوچه څومره قيمت كم شى هم دومره ديت او تاوان به په زخمى كونكى سړى باندې راځى

**د اول فريق دليل:** زيربحث حديث د وى مستدل دې دَ كوم ظاهرى الفاظ چې په دې دلالت كوى

**د اول فريق د دليل جواب:** علامه توريشتى رحمه الله په حواله سره ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى كه چرې دا حديث صحيح ثابت شى نوبيابه دا په حكومة عدل باندې محمول كيږى

**د دويم فريق دليل:** په مذكوره صورت كښې په مكمل توگه باندې منفعت نه ختميږى د دې په په دې باندې عمل نشى كولې

**[۳۵۰۲] د خيټې د ماشوم ديت**

سدس—[۱۷] (۱) ①وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ②قَالَ: «قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ بِغُرَّةٍ ③عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ أَوْ فَرَسٍ، أَوْ بَغْلٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ وَخَالِدٌ الْوَاسِطِيُّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو وَلَمْ يَذْكُرْ: أَوْ فَرَسٍ أَوْ بَغْلٍ.

**ترجمه:** ①او حضرت محمد ابن عمرو د حضرت ابو سلمه نه او هغه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نقل كوي ②چې رسول الله ﷺ (د حاملې) د خيټې د ماشوم خون بها غره مقرره كړه. ③او د غره نه مراد يوه وينځه يا يو غلام يا يوآس يا يو كچر دى. ابوداود رحمه الله دا روايت نقل كولو سره ويلي دي چې دا روايت حماد ابن سلمه او خالد واسطي د محمد ابن عمرو نه نقل كړي دى. ليكن په دي دواړو كې هيڅ يو هم لفظ فرس او بغل (يعني آس او

۱) اخرجه ابو داود فى كتاب الديات/باب دية الجنين (رقم-۴۵۶۹) والترمذى فى كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى دية الجنين (رقم-۱۴۱۰) واحمد فى المسند:۴۹۸/۲

كچر. ذكر كړي نه دى (نو په دي روايت كې) د فرس او بغل اضافه شاذ ده. او په دي اعتبار دا حديث ضعيف دى، ابوداؤد نسايي

**حل اللغات** (۱) بِغُرَّةٍ: د اس په تندى باندې سپين داغ ته وائى. هر ښانسته څيز . دلته ترې غلام يا وينځه يا اس مراد دى

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوْفَرَسٍ، أَوْبَغْلٍ:

**د مذكوره الفاظو په حديث كښې ادراج:** علماء فرمائى چه (فرس او بغل) دَ الفاظواضافه په دې حديث كښې دَ يوراوى دَ طرف نه دې كوم چه شاذاو نامقبول دې ابوداؤد رحمه الله هم دا الفاظ مسترد كړى دى

**[۲۵۰٤] د طبيب د لاسه د مرګ واقع كيدو حكم**

[۱۸] (۱) ① وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② «مَنْ تَطَبَّبَ وَلَمْ يُعْلَمْ مِنْهُ طِبٌّ ③ فَهُوَضَامِنٌ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَوَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سرى چې خپل ځان طبيب ظاهر كړي. حالانكه د هغه طبيب كيدل معلوم نه وي (يعني هغه په فن طب كې څه مهارت نه لري) او بيا څوك د هغه د لاسه مړ شي. ③ نو هغه به ضامن وي. (ابوداود نسايي)

**تسهيلات: قوله:** مَنْ تَطَبَّبَ:

**د تطبيب معنى:** باب تفعل نه دې يعنى طبيب او ډاكټر نه دې بلكه په دهوكه او فراډ سره خپل خان طبيب ظاهره وى او دَ مريض علاج كوى

**قوله:** فَهُوَضَامِنٌ

**د جعلى ډاكټر د نقصان په صورت كښې د ضمان وجوب:** كه چرته يوجعلى اونقلى ډاكټر دَ يومريض علاج اوكړو اوهغه په علاج باندې نه پوهيدلو اومريض ته ئى نقصان اورسولو نودغه جعلى ډاكټربه ذمه وارى وى او په هغه باندې به ضمان راځى دَدې مسئلې تفصيل بذل المجهود كښې دې دَدې خلاصه داده كه چرې يوجعلى ډاكټر دَ يومريض په وړاندې دَ يوې دوائى ډير تعريف اوكړو اودَ استعمالولوترغيب ئى وركړو اوونى ونيل دا اوخوره ډيره ښه دوائى ده دغه مريض هغه دوائى اوخوړله اومړشو نو دَدغه مريض په دې دوائى خوړلو

---

۱) احرجه ابو داود فى كتاب الدّيات باب فيمن تطبّب بغير علم فأعنت (رقم ٤٥٨٦) والنسائى فى كتاب القسامة باب صفة شبه العمد وعلى من دية الأجنّة. وشبه العمد. وذكر اختلاف ألفاظ النّاقلين لخبر إبراهيم. عن عبيد بن نضيلة. عن مغيرة (رقم ٤٨٣٠) وابن ماجه فى كتاب الطّبّ باب من تطبّب. ولم يعلم منه طبّ (رقم ٣٤٦٦)

کنبې عمل دخل راغلو نو په دې صورت کنبې په دغه جعلي ډاکټر نه قصاص شته او نه دیت البته دغه ناهل نقلي طبيب ته به دتعزیر په توګه سزا ورکولې شي چه د طب د فن نه ناواقف دې جاهل مريض ته غلطه مشوره ولې ورکړه

**په جعلي دوائي د قتل حکم:** اوکه دغه جعلي ډاکټر په خپل لاس مريض ته دوائي ورکړه اومريض مړشو نو په دې صورت کښې به دغه نقلي ډاکټر ضامن وي يعنې دافعل د قتل خطا په حکم کښې دې په کوم کښې چه ديت په عاقله باندې راځي اوقصاص نشته دې دلته چونکه مريض دغه نقلي ډاکټرته د علاج اجازت پخپله ورکړې وو په دې وجه قصاص ساقط شواو ديت لازم راځي

**[۳۵۰۵] د ديت د معافۍ يوه واقعه**

۳۵۰۵-[۱۹] (۱) ۱ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: «أَنَّ غُلَامًا لِأُنَاسٍ فُقَرَاءَ ۲ قَطَعَ أُذُنَ غُلَامٍ لِأُنَاسٍ أَغْنِيَاءَ ۳ فَأَتَى أَهْلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: ۴ إِنَّا أُنَاسٌ فُقَرَاءُ ۵ فَلَمْ يَجْعَلْ عَلَيْهِمْ شَيْئًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ و حضرت عمران ابن حصين وايي چې يو هلك چې د مفلس خندان سره يې تعلق نړلو. ۲ د يو داسې هلك غوږ يې پريکړې، چې د يو دولتمند خاندان نه وو. ۳ کوم هلك چې غوږ پريکړې وو. د هغه خاندان والاد رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو. او عرض يې وکړې ۴ چې مونږ محتاج او مفلس يو (په مونږ دې ديت نه مقرر کيږي، ۵ رسول الله ﷺ د هغوئ د رخواست منظورولو سره) په هغوئ څه څيز مقرر نه کړې. (ابوداود، نسيي)

**تسهيلات:**

**قوله قَطَعَ أُذُنَ غُلَامٍ لِأُنَاسٍ أَغْنِيَاءَ:**

**په ماثوم باندې عدم قصاص:** يعنې د مالداره خلقو د خوني غوږ د غريب نو خلق خوني پرې کړو د غلام نه مراد نابالغ بچې دې عبدمراد نه دې څکه چه چرې عبدوې نود دغه جرم تاوان به پخپله په هغه راځي څکه چه د غلام څوك عاقله نه وي هغه د جرم د تاوان پخپله ذمه وار دې او په زيربحث واقعه کښې چونکه د غوږ پرې کونکې وړوکې ماشوم وونود ماشومانونه قصاص نه شي اخستې په دې وجه په عاقله باندې ديت راغلو ليکن هغه عاقله پخپله دومره فقيران وو چه د ديت متحمل کيدې نه شو په دې وجه په دې سره هم ديت ساقط شو څکه چه فقير عاقله باندې ديت نه راځي

۱) اخرجه ابو داود في كتاب الديات باب في جناية العبد يكون للفقراء (رقم-۴۵۹۰) والنسائي في كتاب القسامة باب سقوط القود بين المماليک فيما دون النفس (رقم-۴۷۵۱)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۵۰۶] د قتل شبه عمد او قتل خطاء ديت

۲۵۰۶-[۲۰] (۱) [۱] عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: [۲] دِيَةُ شِبْهِ الْعَمْدِ أَثْلَاثًا ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ حِقَّةً، [۳] وَثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً، [۴] وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ ثَنِيَّةً إِلَى بَازِلِ عَامِهَا كُلُّهَا خَلِفَاتٌ. [۵] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: فِي الْخَطَإِ أَرْبَاعًا: خَمْسٌ وَعِشْرُونَ حِقَّةً، [۶] وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ جَذَعَةً [۷] وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ لَبُونٍ، [۸] وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ مَخَاضٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علي كرم الله وجهه نه منقول دى. وي فرمايل [۲] چې د قتلِ شبه عمد په ديت كې سل اوښان وركول واجب دي. په دي تفصيل چې دريو ديرش ۳۳ اوښې هغه وي. كومي چې په څلورم كال كې وي. [۳] او دريو ديرش اوښي هغه وي. كومي چې په پنځم كال كې شروع شوى وي. [۴] او څلور ديرش اوښي هغه وي چې په شپږم كال كې وي. تر اته كنه. چې په نهم كال كې وي. او ټولي حاملى (بلاربي) وي. [۵] په يو بل روايت كې د حضرت علي كرم الله وجهه نه دا منقول دى چې هغه وفرمايل د قتلِ خطاء په ديت كې څلور قسمه اوښي وركول واجب دي. په دي تفصيل چې پنځويشت هغه وي چې د دريو كالو وي. [۶] او ۲۵ هغه وي چې د څلورو څلورو كالو وي، [۷] او ۲۵ هغه وي. چې د دوو دوو كلنو وي. [۸] ۲۵ هغه وي، چې د يوه يوه كال وي. (ابوداود)

**حل اللغات** (۱) شِبْهِ الْعَمْدِ: قتل شبه العمد. (۲) أَثْلَاثًا: دري قسمه. (۳) إِلَى بَازِلِ عَامِهَا: بازل هغه اوښ ته وائى كوم چې پورا د اتو كالو وى او په نهم كال كښې داخل شوې وى په هغه وخت كښې د هغه غاښونه هم ښكاره شوى وى او په قوت كښې هم كامل شوې وى (۴) خَلِفَاتٌ: حاملي. بلاربي. (۵) أَرْبَاعًا: څلور قسمه (۶) بَنَاتِ لَبُونٍ: د دوه كالو اوښه. (۷) بَنَاتِ مَخَاضٍ: د يو كال اوښه.

**تسهيلات:**

**قوله** إِلَى بَازِلِ عَامِهَا كُلُّهَا خَلِفَاتٌ:

**د بازل تعريف:** بازل هغه اوښ ته وائى كوم چې پورا د اتو كالو وى او په نهم كال كښې داخل شوې وى په هغه وخت كښې د هغه غاښونه هم ښكاره شوى وى او په قوت كښې هم كامل شوې وى

## [۲۵۰۷] د شبه العمد د ديت مقدار

۲۵۰۷-[۲۱] (۲) [۱] وَعَنْ مُجَاهِدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] قَضَى عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ ثَلَاثِينَ حِقَّةً، وَثَلَاثِينَ جَذَعَةً، وَأَرْبَعِينَ خَلِفَةً، مَا بَيْنَ ثَنِيَّةٍ إِلَى بَازِلِ عَامِهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

۱) اخرجه ابو داود في كتاب الدّيات/باب في دية الخطإ شبه العمد (رقم-۴۵۵۱)
۲) اخرجه ابو داود في كتاب الدّيات/باب في دية الخطإ شبه العمد (رقم-۴۵۵۱) واحمد في المسند: ۴۹/۱

**ترجمه**: [١] او د حضرت مجاهد رحمه الله نه روايت دى [٢] چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د قتل شبه عمد په ديت کې ديرش اوښې د دريو دريو کلو، ديرش د څلورو څلورو کلو. او څلويښت اوښې حاملې (بلاربې) چې د پنځه پنځه کالو وي، د ورکولو حکم وکړي، گويا دا روايت د امام شافعي رحمه الله د مسلك موافق دى. (ابوداود)

**تسهيلات**: **نوټ** د کتاب القصاص حديث نمبر (٣٣٤٣) په توضيح کښې د اوښانو د عمرونو بيان دي هم هلته ئې اوګورئ

## [٢٥٠٨] د جنين د قاتل حکم

٣٥٠٨-[٢٢] (١) [١] وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي الْجَنِينِ يُقْتَلُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ وَلِيدَةٍ. [٣] فَقَالَ الَّذِي قُضِيَ عَلَيْهِ: كَيْفَ أَغْرَمُ مَنْ لَا شَرِبَ وَلَا أَكَلَ وَلَا نَطَقَ وَلَا اسْتَهَلَّ وَمِثْلُ ذَلِكَ يُطَلُّ. [٤] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (إِنَّمَا هَذَا مِنْ إِخْوَانِ الْكُهَّانِ» ) رَوَاهُ مَالِكٌ وَالنَّسَائِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه**: [١] او حضرت سعيد ابن مسيب وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د خيټې د هغه ماشوم ديت. چې ووژل شي. يو غره يعنى يو غلام يا يوه وينځه مقرر کړل. په کوم سړي چې دا ديت واجب شوی وو. [٣] هغه عرض اوکړو چې د هغه ماشوم تاوان څنګه ورکړم؟ چې هغه څه څيز نه څکلی نه خوړلی دی، او نه يې خبري کړي دي. او نه يې آواز کړي دی، د دې قسم قتل خو سقط کيږي. [٤] رسول الله ﷺ (د هغه سړي په دا خبر اوريدو سره حاضرينو ته) وفرمايل د دې نه علاوه نور څه اوويل شي چې دا سړی د کاهنانو ورور دی، امام مالك رحمه الله او امام نسايي رحمه الله خو دا روايت بطريق ارسال (يعني د راوي صحابي ذکر کولو بغير) نقل کړي دی

**حل اللغات** ①وَلِيدَةٍ: وينځه. ②أَغْرَمُ: تاوان (ديت)، ③شَرِبَ: څکل. ④اسْتَهَلَّ: آواز نې پورته کړلو ⑤يُطَلُّ: سقط کوی. هدر کوی. ⑥الْكُهَّانِ: جمع د کاهن ده کاهنان. د مستقبل د غيبو دعوه کونکی پال کتونکی ⑦ جنين: د مور په خيټه کښې چه کوم بچې وی د پيدا کيدونه وړاندې هغې ته جنين وائی

٣٥٠٩-(٢) وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ عَنْهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مُتَّصِلًا.

**ترجمه**: ابوداود د حضرت سعيد نه او هغه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه بطريق اتصال نقل کړي دی

---

١) اخرجه النسائي في كتاب القسامة/باب دية جنين المرأة (رقم-٤٨٢٠) ومالك في الموطا كتاب العقول/باب عقل الجنين (رقم ٦)

٢) اخرجه ابو داود في كتاب الديات/باب دية الجنين (رقم-٤٥٧٦) واحمد في المسند: ٢/٢٧٤

**تسهیلات:**

**قوله:** اسْتَهَلَّ:

**په مذکوره صورت کښې اسلامي حکم:** دَ پیدا کیدو په وخت چه کله ماشوم ژوندې وی نو هغه په چغو چغو ژاړی دې ته ئې استهل وئیلې دې. داکلمه دَ دې نه وړاندې دَ نطق دَپاره په منزله دَتفسیر ده سره دَدې چه داکلمه دَدې نه زیاته غیرمانوس ده مګردَ سجع جوړولودَپاره دې سړی دا مؤخرکړه لکه چه هغه اکل دَ سجع په غرض دَ شرب نه مؤخرکړې دې. حالانکه اکل ړومبې ذکرکولې شی او شرب روستووی. بطل دامشدددې دَ مجهول صیغه ده بې ځایه او لغوکولو په معنی کښې دې. دې سړی دَ جاهلیت دَ رواج او دستور مطابق داکلام کړې دې چه دغه شان به دَ بچی وینه ضائع ده حالانکه داد اسلام نظریه نه ده په اسلام کښې خوبا قاعده دَده دیت دې کوم چه دَ غرة په نوم باندې مشهوردې.

**قوله:** إِخْوَانِ الْكُهَّانِ:

**د کاهن تعریف او د نبی کریم د خفګان وجه:** داد کاهن جمع ده کاهن هغه سړی ته وائی چه په غیبوباندې دَ پوهیدلودعوی کوی اودَ مستقبل غلطې خبرې دَالفاظو په ډیری کښې په بنانسته مسجع صورت کښې پیش کوی دې دَپاره چه په لفاظئی سره دَخلقو زړونه خپل طرف ته مائل کړی اودَ شریعت خلاف خپل باطل نظریات رائج کړی. هم په دې وجه نبی کریم دَ دغه سړی نه خفه شو.

**په مسجع کلام باندې اعتراض ولې؟:** مسجع اومقفی کلام خو په احادیثو کښې ډیر راغلې دې بل په قرآن عظیم کښې هم داسې کلام فواصل سره موجوددې. بیا دلته په دې باندې نکیرولې اوفرمائیلې شو؟

**داشکال جواب:** مطلق مسجع کلام مذموم نه دې بلکه هغه مذموم دې چه تکلف اوډیرزیات بناوټی اوتصنع سره راوړلې شی لکه چه دې سړی دَتقدیم اوتاخیر قواعد مات کړل صرف دَ سجع په غرض سره ئی یوباطل کلام اوکړو. بهرحال که بچې په خیټه کښې مړشی نودَهغې حکم دغه دې کوم چه نبی کریم بیان کړې دې چه غره واجب ده یا پنځه سوه درهم دی اوکه چرې ژوندې پیداشی اوچادَ پیداکیدونه پس قتل کړو نو په دې کښې قصاص دې.

(الحمد لله ، اووم جلد ختم شو)